حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب وغیرہ۔

کفایت اللہ ابن صدیق

easypaisa

+923052488551
+923247442395





مالکی حنبلی

# فوز المبتدي

## بشرح

## مختصر القدري

## دریم جلد


تالیف:- مولانا شاہ فیصل

فاضل وفاق المدارس، امداد العلوم، دار العلوم اسلامیہ چارسدہ


### خصوصیات

① جملة ترجمه یعنی هرې جملې سره متصل د هغې ترجمه
② هره مسئله به مستقل متن کښې ذکر کول
③ دمتن د هرې مسئلې دباره نقلی عقلی یا دواړه قسمه دلائل ذکر کول
④ د احادیثو تخریج کول
⑤ د حنفیانو په خپل مینځ کښې د اختلاف ذکر مع دلائل
⑥ د حنفیانو په خپل مینځ کښې د اختلاف په صورت کښې د قول راجع تعین کول
⑦ د نورو امامانو مذاهب بغیر د دلائلو څخه لاندې په حاشیه کښې ذکر کول
⑧ د کتاب په اول کښې د فقه سره متعلق تاریخی مقدمه ذکر کول
⑨ د گرانو لغاتو حل
⑩ د قوسینو په مینځ کښې د قندهاری ټکو اضافه کول


فیصل کتب خانه

بالمقابل مکتبه حقانیه محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور

موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

دکتاب نوم:- فوز المبتدی بشرح مختصر القدوری
مؤلف: مولانا شاه فیصل فاضل وفاق المدارس
خورونکی فیصل کتب خانه محله جنگی

دملاویدو پتی :

د فیصل کتب خانې نه علاوه

① مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوټته
② مکتبه عمریه چمن بلوچستان
③ صداقت کتب خانه قندهار افغانستان
④ امیرحمزه کتب خانه قندهار
⑤ دینی کتب خانه تیمرګره (پښتونخواه)
⑥ قدرت کتاب فروشی کابل ښار
⑦ انصاف کتب خانه جلال آباد
⑧ اخون زاده کتب خانه تل

خپرونکی

فیصل کتب خانه
بالمقابل مکتبه حقانیه محله جنگی پیښور قصه خوانئ پیښور
موبائیل ۰۳۲۱۹۰۹۱۸۳۵

## بَابُ الْقَسَامَةِ

كتاب الشهادات ........ ۳۷۰

>
>
>
>
>>

>
>
>
>
>
>
>
>
>
>

# كِتَابُ اللِّعَانِ

**ترجمه** > (دا) کتاب دلعان (داحکامو په بیان کښې) دې.

**تشریح** > **اللعان لغة** > لعان دباب مفاعلت نه دې.لغوی معنی ئې ده رټل اودرحمت نه لرې کول،
**اللعان شرعًا** > اوپه شریعت کښې لعان هغه څلورو شهادتونو اولعنت او غضب ته وائی.کوم چه د ښځې اوخاوند په مینځ کښې جاری وی.اود مجموعة نوم لعان ددې وجې کیخودې شو.چه په دې کښې لعنت مذکور دې.لکه څنګه چه مونځ په رکوع باندې مشتمل دې.ددې وجې د مونځ نوم رکوع کیخودې

شو. اوپه تشهد باندې د مشتمل کېدوپه وجه د التحيات نوم تشهد كيخودې شو. نود لعان نوم كيخودل تسمية الكل باسم الجزء د قبيلة څخه دي.

**وركنه** د لعان ركن هغه شهادت دې. چه په قسم سره مؤكد وي. اود ددې سبب د سړي په خپله ښځه باندې داسې تهمت لګول چه هغه په پردوكښې موجب د حد وي.

**شرطه** اوددې شرط قيام د نكاح دې. اوددې حكم د لعان د فارغ كيدو نه پس سمدستي د وطي اواستمتاع حرمت دې. اوزمونږ په نيزد لعان اهل هغه څوك دې. چه هغه د شهادت اهل وي. اودامام شافعي رحمه الله په نيزهغه څوك دې. چه هغه د يمين اهل وي.

پاتې شوه دا خبره چه لعان نوم ورله ولې كيخودې شو. حالانكه په دې كښې خو غضب هم موجود دې. نوددې جواب دا دې. چه لعنت د سړي دطرفه وي. اوغضب د ښځې دطرفه، اوښكاره خبره ده. چه كوم څيزد سړي سره متعلق وي. هغه مقدم وي. نوځكه په نوم كيخودو كښې لعنت ته ترجيح وركړې شوه. غضب ته نه،

### دلعان موجب اوتعريف

| |
|---|
| إِذَاقَذَفَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ بِالزِّنَا چه كله سړى خپلې ښځې باندې د زنا تهمت اولګولو وَهُمَا مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ حالاتكه دواړه د شهادت لائق دي. وَالْمَرْأَةُ مِمَّنْ اوښځه هم داسې ده يُحَدُّ قَاذِفُهَا چه ددې په تهمت لګونكې باندې حدلګولې شي. أَوْنَفٰى نَسَبَ وَلَدِهَا يا ئې ددې د بچي د نسب نفي اوكړله وَطَالَبَتْهُ المرأة بِمُوجِبِ الْقَذْفِ او ښځې د قذف د موجب مطالبه اوكړله فَعَلَيْهِ اللِّعَانُ نو په سړي به لعان كول واجب وي. |

**تشريح** صورت د مسئلې دا ده. چه كله خاوند په خپله ښځه د زنا تهمت اولګولو. مثلاً ورته ئې اوونيل. چه ته زناكاره ئې. يا ما ته په زنا ليدلې ئې. يا ئې ورته اوونيل. اې زناكارې. دا د جمهورو مذهب دې. اوامام شافعي، امام احمد اوپه يوروايت كښې امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.

اوچه ښځه اوخاوند دواړه د شهادت ادا كولولياقت هم لري. اوښځه داسې وي. چه په دې باندې چا تهمت لګولې وي. په هغه باندې حدجاري كيدې شي. ياخاوند دخپلې ښځې دبچي د نسب نه انكاراوكړلو. چه دا ماشوم د زنا نه پيدا دې. يا ئې دا اوونيل. چه دا ماشوم زما نه دې. اوښځې دخپل خاوندنه د موجب قذف مطالبه اوكړله. نوپه خاوند باندې لعان واجب دې.

دا خبره دې ښكاره وي. چه د سړي په خپله ښځه باندې تهمت لګول په ابتداء د اسلام كښې حد قذف وو. لكه څنګه چه په پردئ ښځه باندې د تهمت لګولوموجب حد قذف دې.

**دليله** الله تعالى فرمائيلي دي. ﴿وَالَّذِيْنَ يَرْمُوْنَ أَزْوَاجَهُمْ وَلَمْ يَكُنْ لَّهُمْ شُهَدَاءُ إِلَّا أَنْفُسُهُمْ فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهٰدٰتٍ بِاللهِ إِنَّهُ لَمِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝ وَالْخَامِسَةُ أَنَّ لَعْنَتَ اللهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝ وَيَدْرَؤُا عَنْهَا الْعَذَابَ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَ شَهٰدٰتٍ بِاللهِ إِنَّهُ لَمِنَ الْكٰذِبِيْنَ ۝ وَالْخَامِسَةَ أَنَّ غَضَبَ اللهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصّٰدِقِيْنَ ۝﴾ يعني كوم كسان چه په خپلومنكوحوښځو باندې د زنا تهمت اولګوي. اودوى سره د خپلې دعوا نه بل څوك ګواهان نه وي. (كوم چه په شماركښې څلوروي)نو د دوى شهادت (كوم چه د حبس يا حدقذف لرې كونكې دې.)هم دا دې. چه څلور ځله دالله تعالى په نوم قسم اوخوري. اودا اووائي. چه بيشكه زه رښتونې يم. اوپه پنځم ځل به اووائي. چه په ما دې دالله تعالى لعنت وي. كه زه دروغژن يم. اوددې نه پس به ددې ښځې نه سزا (حبس يا حد زنا) په دې طريقه لرې كړې شي. چه هغه به څلور ځله قسم خوري. چه بيشكه دا سړې

دروغژن دي.اوپه پنځم ځل به دا اووائي.چه په ما دې دالله تعالى غضب وي.که دې رښتونې وي.(بيان القرآن)

## دخاوند دلعان څخه منع کيدل

| |
|---|
| فَإِنِ امْتَنَعَ مِنْهُ بيا که خاوند دلعان کولو نه انکار اوکړو حَبَسَهُ الْحَاكِمُ نوحاکم به دا قيد کوى حَتّٰى يُلَاعِنَ ترديې چه دې لعان اوکړى أَوْ يُكَذِّبَ نَفْسَهُ يا خپل ځان دروغجن کړى فَيُحَدُّ نو ده ته به حد ورکولي شي |

**حل اللغة** ﴿ ① حبس: بندول ②② يكذب: دروغژن كړى.]

**تشريح**﴿ مسئله دا ده.① که خاوند د لعان کولونه انکار اوکړلو.نوحاکم به دې قيد کړى. ترديې چه لعان اوکړى.دا زمونږ مذهب دې. ②اوامام شافعي،امام مالك اوامام احمد ﷺ فرمائي.چه په ده به حد جارى کولې شى.بنياد داختلاف دا دې.چه د دوى په نيزموجب د حدقذف دې.اوزمونږ په نيزموجب لعان دې.يا دې خپل ځان دروغژن کړى.نوکه دې کس خپل ځان دروغژن کړلو.نوپه اتفاق سره به په ده حد قذف جارى کولې شى.

**دليله**﴿ دليل دا دې.چه په خاوند باندې دا حق يعنى لعان واجب دې.په داسې حال کښې چه دې ئې په پوره کولوقادرهم وى.نودې حق دپاره به دې قيد کړې شى.ترديې چه خاوند دا حق پوره کړى.ياخپل ځان دروغژن کړى.چه د لعان سبب ختم شى.اودلعان سبب په ښځه خاوندکښې ديوبل لره تکذيب کول دى.ځکه چه لعان په هغه وخت کښې واجبيږى.چه خاوند په خپله ښځه د زنا تهمت اولګوى.اويا په خپلوکښې هريودبل تکذيب کوى.البته که خاوندخپل تکذيب اوکړى.نوتکاذب باقى پاتې نشو.بلکه خاوند دښځې موافق شو.چه دې زنا نه ده کړې.

| |
|---|
| وَإِنْ لَاعَنَ اوکه خاوند لعان اوکړو وَجَبَ عَلَيْهَا اللِّعَانُ نو په ښځه به هم لعان کول واجب وى |

**تشريح**﴿ که خاوندلعان اوکړلو.نوپه ښځه هم لعان واجب دې.

**دليله**﴿ دليل هغه آيت دې.کوم چه مونږ اولوستلو.يعنى ﴿فَشَهَادَةُ أَحَدِهِمْ أَرْبَعُ شَهَادَاتٍ بِاللّٰهِ﴾ الاية

**ابتداء اللعان**﴿ خودلعان شروع به د خاوندنه کيږى.ځکه چه خاوند مدعى دې.اولعان د شهادت نوم دې.اودشهادت مطالبه د مدعى نه کيږى.نوځکه به اول خاوند لعان کوى.

## دښځې دلعان نه انکارکول

| |
|---|
| فَإِنِ امْتَنَعَتْ بيا که ښځې انکار اوکړو حَبَسَهَا الْحَاكِمُ نو حاکم به دا قيد کوى حَتّٰى تُلَاعِنَ أَوْ تُصَدِّقَهُ ترديې چه دا لعان اوکړى.يا دسړى قول رشتونى کړى |

**تشريح**﴿ که ښځې دلعان نه انکاراوکړلو.نوحاکم به دا قيد کړى.ترديې چه لعان اوکړى.اويا د خاوند تصديق اوکړى.

**دليله**﴿ دليل دا دې.چه لعان په ښځه باندې هم واجب دې.اودا په دې باندې قادره هم ده.نوځکه به په دې حق کښې دا بندولې شى.

پہ غلام .کافر.اومحدود فی القذف باندې حدجاری کول

وَإِذَا كَانَ الزَّوْجُ عَبْدًا أَوْ كَافِرًا اوکه خاوند غلام وی.یاکافر وی. أَوْ مَحْدُودًا فِي قَذْفٍ یا دی په څه تهمت کښې ( حد ) وهلې شوې وی فَقَذَفَ امْرَأَتَهُ نوده خپلې ښځې باندې تهمت اولګولو فَعَلَيْهِ الْحَدُّ نو په ده به حد واجب وی

تشریح> صورت د مسئلې دا دې.که خاوند غلام وی.یا کافروی.ددې صورت دا دې.چه ښځه خاونددواړه کافران وی.یاښځه مسلمانه شی.اوخاوند ته داسلام پیش کولونه وراندې خاوند په ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو.یا خاوند داسې دې.چه دقذف لګولوپه وجه ده باندې حدقذف جاری شوې وی.په دې درې واړه صورتونوکښې که خاوند په خپله ښځه باندې دزنا تهمت اولګولو.نوپه ده باندې لعان واجب نه دې.بلکه حدقذف پرې واجب دې.

علیله> دلعان وجوب خو ددې وجې ممتنع شو.چه دا کس دشهادت اهل پاتې نشو.حالانکه د لعان کونکی دپاره دشهادت اهلیت شرط دې.نوهرکله چه د لعان وجوب ممتنع شو.نوموجب اصلی یعنی حدقذف طرف ته به رجوع کولې شی.اوحد قذف دالله تعالی د قول ﴿وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ فَاجْلِدُوهُمْ ثَمَانِينَ جَلْدَةً وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ نه ثابت دې.یعنی ددې آیت په وجه اول خو حدقذف مشروع شوې دې.بیا دخاوند په خپله ښځه باندې د تهمت لګولوپه صورت کښې لعان د حدقذف نائب اوخلیفه وی.نوکه د لعان د شرط د نشتوالی د وجې لعان متعذر شی.نوموجب اصلی یعنی حدقذف ته به رجوع کولې شی.

دښځې دشهادت عدم اهلیت حکم

وَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ مِنْ أَهْلِ الشَّهَادَةِ اوکه خاوند دشهادت لائق وی وَهِيَ أَمَةٌ أَوْ كَافِرَةٌ اوحال داچه ښځه وینځه ده.یا کافره ده. أَوْ مَحْدُودَةٌ فِي قَذْفٍ یا دڅه تهمت په وجه ( دې ته) حد لګولې شوې وی أَوْ كَانَتْ مِمَّنْ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا یاداسې ښځه وی.چه ددې تهمت لګونکی باندې حد نشی لګولې فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ فِي قَذْفِهَا وَلَا لِعَانَ .نو ددې په خاوند به د دې په قذف کښې حد یا لعان هیڅ نه وی

تشریح> مسئله دا ده.چه خاوند دشهادت اهلیت لرې.خودده ښځه دچا وینځه ده.یا کافره ده.یا دې ته حدقذف ورکړې شوې وی.یا دا د داسې کس ښځه وی.چه په دې باندې تهمت لګونکی باندې حدقذف نشې جاری کولې.لکه چه دا ماشومه وی.یا لیونۍ وی.یازناکاره وی.نوپه دې ټولوصورتونوکښې ددې په خاوند باندې نه حدواجب دې.اونه لعان.

علیله> ځکه چه دا ښځه نه قابله د شهادت ده.اونه ددې طرف ته احصان شته.نوچه دا ښځه قابله د شهادت نه ده.ددې وجې به لعان واجب نه وی.ځکه چه لعان د وجوب دپاره دا ضروری ده.چه زوجین به اهل د شهادت وی.اوددې دمحصنه نه کیدوپه وجه په خاوند باندې حدقذف نشی جارې کولې.ځکه چه حدقذف په محصنه ښځه باندې دتهمت لګولوپه وجه واجبیږی.

د لعان طریقه

وَصِفَةُ اللِّعَانِ اود لعان بیان دادې أَنْ يَبْتَدِئَ الْقَاضِي چه قاضی د خاوند نه شروع اوکړی فَيَشْهَدُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ نو خاوند څلور ځله ګواهی ورکړی. يَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ هرځل دا اووائی أَشْهَدُ بِاللّٰهِ إِنِّي لَمِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَيْتُهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا چه زه د الله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم چه په دې ښځه

ماکوم د زنا عیب لګولی دی.په دې کښې د رشتیا ویونکو څخه یم. ثُمَّ يَقُولُ فِي الْخَامِسَةِ او پنځم
خل اووائی لَعْنَةُ اللهِ عَلَيْهِ إِنْ كَانَ مِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَاهَا بِهِ مِنَ الزِّنَا چه ده په دې ښځه د
زنا کوم عیب لګولی دی.یا په دې کښې که دی د روغجنو څخه وی.نو په ده د الله لعنت دی يُشِيرُ إِلَيْهَا
فِي جَمِيعِ ذَلِكَ او په دې ټولو ځلوکښې به دې ښځې طرف ته اشاره کوی

**تشریح**> په دې عبارت کښې امام قدوری رحمه الله د لعان طریقه بیانوی.تفصیل دا دی.چه کله ښځه د قاضی په عدالت کښې د قذف مقدمه وراندې کړی.نواول به قاضی دا ښځه په عفواودرګذرباندې اماده کړی.خوددې باوجود که دا ښځه په جګړه باندې کلکه وه.اوخاوند د قذف نه انکارکولو.نوپه ښځه باندې ددووعادلانوګواهانو پیش کول لازم دی.چه قاضی سره ددې دعوی ثابته شی.اوکه ښځې په ګواهۍ کښې یوسړی اودوه ښځې پیش کړی. نو ددوی شهادت به قابل قبول نه وی.اوکه ښځې دوه عادلان ګواهان پیش کړل.اوخاوند یوسړی اودوه ښځې په خپل تصدیق باندې پیش کړی.نوپه دې صورت کښې به لعان ساقط شی.اوکه خاوند دزنا تهمت لګولوباندې اقراراوکړلو.نوده نه به د زنا د ثبوت دپاره د څلورو ګواهانو مطالبه کولی شی.نوکه ده په زنا باندې د ټولوشرطونوسره څلورګواهان پیش کړل.نو اوس به کټلی شی.چه دا ښځه محصنه (واده شوی) ده.اوکه غیرمصحنه (ناواده شوی) ده.که محصنه وی.نودا رجم(سنګسار) کولی شی.اوکه غیرمحصنه وی.نوکوړې به ورته ورکولی شی.
اوکه دې خاوند سره ګواهان نه وی.نولعان به واجب وی.اود لعان صورت به دا وی:چه قاضی به ښځه اوخاوند دواړه حاضرکړی.اودلعان شروع به د خاوند نه کیږی.نودې به څلور ځله ګواهی ورکړی.اوهرځله به دا وائی.چه زه دالله تعالی په قسم ګواهی ورکوم.چه ما په دې ښځه د زنا کوم تهمت لګولی دی.په دې کښې زه رښتونی یم.اوپه پنځم ځل به اووائی.چه ده (یعنی ما) چه په دې ښځه باندې دزنا کوم تهمت لګولی دی.که دې کښې زه دروغژن یم.نوپه ده (یعنی په ما) دې دالله تعالی لعنت وی.اوددې خبرپه وخت کښې به ښځې طرف ته اشاره کوی.

ثُمَّ تَشْهَدُ الْمَرْأَةُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ بیا به ښځه څلور ځله ګواهی ورکوی تَقُولُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ هر ځل به وائی.
أَشْهَدُ بِاللهِ چه زه د الله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم إِنَّهُ لَمِنَ الْكَاذِبِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا
چه دې سړی په ما کوم د زناکاری عیب لګولی دی پدې کښې دی دروغجنو څخه دی وَتَقُولُ فِي
الْخَامِسَةِ او پنځم ځل به وائی غَضَبُ اللهِ عَلَيْهَا إِنْ كَانَ مِنَ الصَّادِقِينَ فِيمَا رَمَانِي بِهِ مِنَ الزِّنَا
چه ده د زناکاری کوم عیب ما باندې لګولی دی.که داسړی په دې قول کښې د رشتیا ویونکوڅخه
وی.نوپه دې ( په ماباندې) د الله تعالی غضب دی

**تشریح**> بیا به دغه شان ښځه څلورځله ګواهی ورکوی.اوهرځل به وائی.چه زه د الله تعالی په نوم باندې قسم خورم.اوګواهی ورکوم.چه دې سړی په ماباندې دزنا کوم تهمت لګولی دی.دی په دې کښې دروغژن دی.اوپه پنځم ځل به اووائی.چه ده په ماباندې د زنا کوم تهمت لګولی دی.که دا کس په دې خبره کښې رښتونی وی.نوپه دې (ماباندې) دې دالله تعالی غضب وی.
**فائده**> اودلعان په دې ترتیب باندې دلیل هغه آیت دی.کوم چه مونږ وراندې تلاوت کړی دی.وی ګورئ.

### دقاضي په تفريق سره جدائي واقع کول

| |
|---|
| وَإِذَا الْتَعَنَا چه کله (ښځې خاوند) دواړو لعان اوکړو فَرَّقَ الْقَاضِي بَيْنَهُمَا جداوالې به راولي. قاضي په مينځ د دواړو کښې |

**تشريح** ① صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي. چه کله ښځه اوخاوند دواړه لعان اوکړي. نوصرف په لعان سره تفريق نه واقع کيږي. تردې چه قاضي تفريق اوکړي. نوکه د قاضي د تفريق نه وړاندې په دواړو کښې يو کس مړ شو. نوبل به دهغه وارث وي. اوکه سړي ظهار اوکړلو. يا ئې طلاق ورکړلو. نوظهاراوطلاق به واقع کيږي. (¹)

**دليله** د لعان په وجه د حرمت ثبوت امساك بالمعروف ختموي. نوپه خاوند باندې تسريح بالاحسان واجب ده. خوچه کله خاوند د تسريح بالاحسان نه منع شو. نوقاضي به ښځې نه د ظلم لرې کولودپاره دخاوند قائم مقام شي. اوتسريح بالاحسان (تفريق) به اوکړي. نوثابته شوه. چه دقاضي تفريق ضروري دې.

| |
|---|
| وكَانَتِ الْفُرْقَةُ تَطْلِيقَةً بَائِنَةً اودا جدائي به طلاق بائن وي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ رحمهما الله د امام ابوحنيفه او امام محمد رحمه الله په نيز |

**تشريح** په لعان کولوسره چه کوم تفريق واقع کيږي. دطرفينو رحمهما الله په نيزدا طلاق بائن دې.

**دلائلهما** ① دليل دا دې. چه دقاضي تفريق خاوند طرف ته منسوب کيږي. لکه څنګه که د يوکال مهلت نه پس قاضي عنين (نامرده) اود ده د ښځې په مينځ کښې تفريق اوکړي. نودا تفريق به طلاق بائن وي. نودغه شان دلته به هم د قاضي تفريق طلاق بائن وي.

② دويم دليل دا دې. چه ددې تفريق مقصد دښځې نه دظلم لرې کول دي. اوظلم لرې کول د طلاق بائن نه بغيرپه بل څه نشي حاصليدې.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ رحمه الله اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائيلي دي يَكُونُ تَحْرِيمًا مُؤَبَّدًا چه دا دائمي حرمت دې |

**تشريح** مسلك ابي يوسف امام ابويوسف رحمه الله فرمائي. چه په خپل مينځ کښې لعان اوکړي. نوپه دې سره حرمت مؤبده ثابتيږي. نودا ښځه په ده باندې هميشه دپاره حرامه شوه. هم دا دامام زفر، حسن اوامام شافعي رحمه الله قول هم دې.

**دليله** دليل دا دې. چه «المتلاعنان لايجتمعان أبداً» [1] يعني لعان کونکي ښځه خاوند کله هم نشي جمع کيدې. په دې حديث کښې په دائمي حرمت باندې صراحت شوې دې.

### د بچي د نفي کولوپه صورت کښې د زنا تهمت لګول

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ الْقَذْفُ بِوَلَدٍ اوکه تهمت لګول د بچي د نفي کولو په ذريعه وي. نَفَى الْقَاضِي نَسَبَهُ نو قاضي به ددې بچي د نسب نفي کوي وَأَلْحَقَهُ بِأُمِّهِ اودا بچي به ددې مور سره لاحق کوي |

¹ ) امام زفر رحمه الله فرمائي. چه صرف په لعان کولوسره فرقت واقع کيږي. دقاضي د تفريق څه ضرورت نشته. اودا د امام مالك رحمه الله مذهب هم دې.

[1] من حديث سهل بن سعد (رضي الله عنه) اخرجه ابوداؤد في الطلاق باب ٢٦ رقم ٢٢٥٦.)-

**تشریح>** مسئله دا ده.که یوکس په خپله ښځه باندې د زنا عیب په دې طریقه اولګولو.چه دا ماشوم زما د نطفه نه نه دی.نودلعان نه پس به قاضی دده ماشوم نسب دده نه نفی کړی.اوماشوم به مورسره کړی.
**صورة اللعان في المسئلة>** اوپه دې کښې دلعان صورت دا دې.چه قاضی به دغه سړی ته حکم اوکړی.چه هغه داسې اووائی.زه دالله تعالی په قسم سره ګواهی ورکوم.چه ما د ماشوم نفی کړې ده.اوپه ښځه مې عیب لګولې دې.په دې کښې زه ریښتونې یم.اوښځه به داسې اووائی.چه زه په الله تعالی باندې قسم خورلوسره ګواهی ورکوم.چه تا په ما باندې د ماشوم د نفی کوم عیب لګولې دې.په دې کښې ته دروغژن ئې.

### دخاوند دخپل ځان تکذیب کولونه پس دنکاح حکم

| |
|---|
| فَإِنْ عَادَ الزَّوْجُ وَكَذَّبَ نَفْسَهُ بیا که خاوند رجوع اوکړله.او خپل ځان ئې دروغجن کړو. حَدَّهُ الْقَاضِي نو قاضی به ده ته حدقذف ورکوی |

**تشریح>** مسئله دا ده.که دلعان نه پس خاوند دخپلې خبرې نه رجوع اوکړله.اوخپل تکذیب ئې اوکړلو.نو قاضی به ورته حد قذف ورکړی.
**دلیله>** دلیل دا دې.چه ده په خپل ځان باندې دحدقذف جاری کولو اقراراوکړلو.نودده د اقرارد وجې به ورته حد قذف ورکولې شی.

| |
|---|
| وَحَلَّ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا او ددې سړی دپاره حلال دی.چه ددې ښځې سره نکاح اوکړی |

**تشریح>** اودخپل ځان دروغژن کولونه پس دې د دغه ښځې سره نکاح کولې شی.
**دلیله>** دلیل دا دې.کله خاوندته حدقذف اولګولې شو.نوپه ده کښې دلعان صلاحیت پاتې نشو.اوهرکله چه دلعان صلاحیت پاتې نشو.نوپه دې پورې چه د تحریم کوم حکم متعلق وو.هغه به هم مرتفع (پورته) شی.نوځکه ددې ښځې سره دوباره نکاح کول صحیح دی.

| |
|---|
| وَكَذَلِكَ إِنْ قَذَفَ غَيْرَهَا اوهم دغه شان حکم دې که په بل چا باندې تهمت اولګوی فَحُدَّ بِهِ اوحد پرې جاری کړې شو أَوْزَنَتْ فَحُدَّتْ او یا زنا اوکړی او حد پرې جاری کړې شو حَلَّ لَهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو ددې سړی دپاره حلال دی.چه ددې ښځې سره نکاح اوکړی |

**تشریح>** د مخکښې مسئلې پشان دا صورت هم دې چې یو کس په اجنبیه ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو او بیا ئې په څلورو ګواهانو سره د هغې زنا ثابته نکړې شوه د کومې په وجه چې په هغه باندې حد زنا جاری کړې شو.نو د حد کیدو نه پس دده دپاره جائز دی چې هغې ښځې سره نکاح اوکړی.

### په صغیره اولیونۍ باندې د زنا تهمت لګول

| |
|---|
| وَإِنْ قَذَفَ امْرَأَتَهُ اوکه یو سړی پخپله ښځه باندې د زنا عیب اولګولو. وَهِيَ صَغِيرَةٌ حالاتکه دا ماشومه ده أَوْ مَجْنُونَةٌ یا لیونۍ ده فَلَا لِعَانَ بَيْنَهُمَا ولاحد نو په دوی دواړو کښې به لعان نه کیږی.اونه حد شته |

**تشریح>** مسئله دا ده.که خاوندپه خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو.په داسې حال کښې چه هغه ماشومه یا لیونۍ وه.نوپه دې دواړو صورتونوکښې به په دوی کښې لعان نه کیږی.

**دلیله**> دلیل دا دي.چه د ماشومې او لیونی په قاذف باندې حدقذف نشي جاري کولي.اګرچه د دوی قاذف بواجنبي سړي وي.ځکه چه دلعان په شرطونوکښې بوشرط دا دي.چه ښځه داسې وي.چه د هغې قاذف باندې حدقذف جاري کيدي شي.نودغه شان به د خاوند نه د لعان مطالبه نشی کولي.ځکه چه لعان د حدقذف قائم مقام دي.(نوچه حد قذف نشي ورکولي.لعان به هم نشی کولي)

| |
|---|
| **وَقَذْفُ الْأَخْرَسِ** اود ګونګی تهمت لګول **لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ اللِّعَانُ** دې سره به هم لعان نه متعلق کیږی |

**تشریح**> اوکه ګونګا په خپله ښځه باندې د زنا تهمت اولګولو.نوبه دې پورې هم لعان نه متعلق کیږی.(۱)
**دلیله**> دلیل دا دي.چه لعان په صریحی قذف پورې متعلق کیږی.لکه څنګه چه حدقذف په صریحی قذف پورې متعلق کیږی.

**په (لیس حملک مني) باندې د لعان د ثبوت حکم**

| |
|---|
| **وَإِذَا قَالَ الزَّوْجُ** اوکه خاوند اووئیل **لَيْسَ حَمْلُكِ مِنِّي** چه ستا حمل زما نه نه دي. **فَلَا لِعَانَ** نو لعان به نه وي.اودا د امام ابوحنیفه اود زفر رحمهما الله قول دي |

**تشریح**> مسئله دا ده.که خاوند خپلې ښځې ته اووئیل.(حملك ليس مني)نوبه دې باندې نه لعان ثابتیږی.اونه حدخود لعان عدم ثبوت د امام ابوحنیفه اوامام زفر رحمهما الله قول دي.اودا قول د امام احمد رحمه الله هم دي.(۲)
**دلیله**> ځکه چه د حمل وجود نشته.نو دې به قاذف نه وي
**مسلک الصاحبین**> صاحبین رحمهما الله فرمائی.که دې ښځې د تهمت لګیدو د وخت نه پس د شپږو میاشتونه په کمه موده کښې ماشوم اوزیږولو.نودحمل د نفی کولوبه وجه به لعان واجب وی.اود شپږو میاشتو د کمې مودې قید په مبسوط کښې ذکردي.دلیل دا دي.چه په کوم وخت کښې دحمل نفی شوې وه.په هغه وخت کښې دحمل وجود یقینی نه وو.ځکه چه کیدې شوه.چه په خیټه کښې ګیس وو.دهغې د وجې خیټه پرسیدلې وه.اوبه هغې دحمل ګمان کړې شوې وو.نوځکه خاوند تهمت لګونکې نشی شمارلې.اوهرکله چه قذف ثابت نشو.نولعان به هم نشی کولې.
**دلیلهما**> دصاحبینو رحمهما الله دلیل دا دي.چه هرکله د قذف د وخت نه پس د شپږومیاشتو نه په کمه موده کښې ماشوم پیدا شو.نومونږ ته یقین راغلو.چه د قذف په وخت کښې حمل موجود وو.نوتهمت لګول موجود شو.اوچه تهمت لګول موجود شو.نوبه خاوند باندې لعان واجب شو.

**الجواب عنه**> جواب دا دي.چه د خاوند قول چه (حملك ليس مني) في الحال قذف نه دي.ځکه چه في الحال د حمل وجود یقینی نه دي.نودا داسې شوه.لکه چه په شرط پورې معلق کړې شوې وي.اوخاوند وئیلي وي.(ان كان بك حمل فليس مني)که ته حامله ئې.نوهغه حمل به زما نه نه وي.اوقذف په شرط پورې معلق کول صحیح نه دي.نوځکه دا قذف نه شو.اوچه قذف نشو.نولعان هم واجب نشو.

---

(۱) **مسلک الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د ګونګا اشاره داسې ده.لکه څنګه چه د خبرې کونکي اشاره ده.اود ګونګا په اشاره د لعان عدم وجوب ددې وجې دې.چه دګونګا د زنا عیب لګولوکښې شبه موجود ده.اود شبهاتو په وجه حدود لرې کولی شی.
(۲) القول الراجح هو قول ابي حنيفة وزفر رحمهما الله كذا في فتح القدير(۴\۱۴) والخانية (۲\۲۶۸) والبحرالرائق (۴\۱۲۱) نقلا عن القول الراجح (۱\۳۶۳)-

د خاوند د قول (زنيت وهذا الحمل من الزنا) حکم

| |
|---|
| وَإِنْ قَالَ لَهَا زَنَيْتِ اوکه خاوند خپلې ښځې ته اووئيل وَهَذَا الْحَمْلُ مِنَ الزِّنَا تا زنا کړې ده.اودا حمل د زنا نه (پيدا) دې. تَلَاعَنَا نو دواړه به لعان کوی |

حل اللغة > ① الحبل: حمل،اميد ،په رحم کښې دننه بچې

تشريح> مسئله دا ده.که خاوند اووئيل.تا زنا کړې ده.او دا حمل د زنا نه دې.نوپه دې صورت کښې به ښځه اوخاوند دواړه لعان کوی.

دليله> دليل دا دې.چه ښکاره د زنا لفظ موجود دې.نوتهمت لګول موجود شو.

| |
|---|
| وَلَمْ يَنْفِ الْقَاضِي الْحَمْلَ مِنْهُ او قاضی به حمل (ددې سړی نه) نه نفی کوی |

تشريح> البته قاضی به ددې حمل دنسب نفی نه کوی. (١)

دليله> دليل دا دې.چه د ماشوم نفی کول دماشوم په احکاموکښې يوحکم دې.اواحکام ماشوم مرتب کيږی د ولادت نه پس وړاندې نه،ځکه چه دولادت نه وړاندې شبه موجود وی.کيدې شی.چه حمل نه وی. بلکه دوينې نه خيټه ډکه شوې وی.

دولد د نفی څه و صورتونه

| |
|---|
| وَإِذَا نَفَى الرَّجُلُ وَلَدَ امْرَأَتِهِ عَقِيبَ الْوِلَادَةِ أَوْ فِي الْحَالِ الَّتِي تُقْبَلُ التَّهْنِئَةُ فِيهَا وَتُبْتَاعُ آلَةُ الْوِلَادَةِ اوکه سړی د خپلې بی بی د بچی پيدا کيدلو نه پس، يا په کوم حالت کښې چه مبارکباد قبلولې شی.يا د پيدائش څيزونه اخستې شی.نفی اوکړله صَحَّ نَفْيُهُ نو نفی کول صحيح ده وَلَاعَنَ بِهِ او ددې په وجه به لعان کوی.وَإِنْ نَفَاهُ بَعْدَ ذَلِكَ لَاعَنَ که ددې نه پس ئې نفی اوکړله نو لعان به کوی وَيَثْبُتُ النَّسَبُ او نسب به ثابت پاتې کيږی (٢) |

حل اللغة > ① عقيب: روسته ② تهنئة: مبارکی

تشريح> په دې عبارت کښې د بچی د نفی څوصورتونه بيان شوی دی.① دپيدا کيدو سره سمدستی نفی اوکړی② په هغه وخت کښې نفی اوکړی.چه دبچی په پيدا کيدو مبارکی قبلولې شی. ③دولادت د سامان اخستلوپه وخت کښې نفی اوکړی.په دې درې واړه صورتونوکښې نفی صحيح ده.يعنی دبچی نسب دپلار نه نه ثابتيږی.اودنفی کولوپه وجه په خاوند باندې لعان واجبيږی.

اوکه دبچی نفی ددې حالتونونه پس اوکړی.نولعان به کوی.اودبچی نسب دده نه ثابتيږی. دادامام ابوحنيفهؒ مذهب دې

دليله> دليل دا دې.چه دمودة حد مقررولوڅه معنی نشته.ځکه چه وخت د سوچ فکردپاره وی.اوپه سوچ اوغورفکرکښې دخلقوحالتونه مختلف وی.نوځکه مونږ دهغه څيزونواعتبارنه کوو.کوم چه د ماشوم په نفی نه کولوباندې دلالت کوی.اوهغه څيزونه چه د ماشوم په نه نفی کولوباندې دلالت کوی.دماشوم په پيدائش مبارکی قبلول،يادمبارکئ په وخت کښې چپ پاتې کيدل،يا د ولادت سامان اخستل،يا

---

١) مسلک الشافعی:- امام شافعیؒ فرمائی.چه قاضی به د دې حمل دنسب نفی کوی.

٢) القول الراجح هو قول أبي حنيفةؒ كذا في الدرالمنتقى (١\٤٦٨) وفتح القدير(٤\١٢٦) والدرالمختار (٢\٦٤١) والبحرالرائق (٤\١٢١) والهندية (١\٥١٩) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٦٥)-

ددومره وخت په داسې حالت کښې تیرېدل چه خاوند د بچی نفی نه وی کړې.دا تولې خبرې په دلالت کوی.چه خاوند دبچی په پیدا کیدو باندې خوشحاله دې.اودې خپل بچې گنړی.نوکه ددې نه پس نفی کوی.نودا نفی کول صحیح نه دی.

| |
|---|
| وَقَالَ اَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ يَصِحُّ نَفْيُهُ فِيْ مُدَّةِ النِّفَاسِ او صاحبین فرمائی چې صحیح کیږی نفی کول دده په موده د نفاس کښې |

**مسلک الصاحبین**> صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه دنفاس په موده کښې دننه د بچی نفی کول صحیح دی.

**دلیلهما**> دلیل دا دې.چه په لږه موده کښې د بچی نفی کول صحیح دی.اوپه ډیره موده کښې نفی کول صحیح نه دی.اوپه لږه اوډیره موده کښې حدفاصل د نفاس مودهٔ ده.یعنی دنفاس مودهٔ کمه ده.اوددې نه زیاته مودهٔ زیاته ده.اود نفاس مودهٔ حدفاصل ځکه مقررکړې شو.چه نفاس د ولادت اثردی.اوپه مبسوط کښې دی.چه موده دنفاس و ولادت د حالت پشان ده.یعنی په دې وخت کښې نه مونځ کولې شی.اونه روژه نیولې شی.(لکه څنگه چه په حالت د ولادت کښې دا نشی کولې)

**په یوه خیټه کښې د دوو ماشومانو دیونفی کول**

| |
|---|
| وَاِنْ وَلَدَتْ وَلَدَيْنِ فِيْ بَطْنٍ وَاحِدٍ اوکه ښځې دوه بچی د یوې خیټې ( حمل) نه راوزیږل فَنَفَى الْاَوَّلَ .نو خاوند د ړومبی بچی نفی اوکړله وَاعْتَرَفَ بِالثَّانِيْ اود دویم بچی اقرار ئې اوکړلو. ثَبَتَ نَسَبُهُمَا نود دواړو نسب به دده نه ثابت وی وَحُدَّ الزَّوْجُ او خاوند ته به حدقذف ورکولې شی |

**حل اللغة** > ① **بطن**: خیټه

**تعریح**> مسئله دا ده.که یوې ښځې په یوه خیټه دوه ماشومان اوزیږول.یعنی د دواړو ماشومانو په مینځ کښې د شپږو میاشتونه کمه مودهٔ وه.نوددې ښځې خاوندد اولنی بچی دنسب نفی اوکړله.اود دویم ئې اقرار اوکړلو.نوددې کس نه به د دواړو بچونسب ثابتیږی.

**دلیله**> ځکه چه دواړه بچی غبرگون دی.هم د یوې منیٔ نه پیدا شوی دی.نودا څنگه کیدې شی.چه یویچې دې دده وی.اوبل دې دده نه وی.بلکه د دواړوبچو نسب به هم دده نه ثابتیږی.البته په خاوندباندې به حدقذف جاري کولې شی.ځکه چه ده د دویم بچی د نسب دعوی اوکړله.اودخپل ځان تکذیب ئې اوکړلو.

| |
|---|
| وَاِنْ اعْتَرَفَ بِالْاَوَّلِ اوکه خاوند دړومبی بچی اقرار اوکړو وَنَفَى الثَّانِيْ اود دویم بچی نفی ئې اوکړله ثَبَتَ نَسَبُهُمَا نود دواړو نسب ( به دده نه ) ثابت وی. |

**تعریح**> که خاوند د اولنی بچی د نسب اقراراوکړلو.اوددویم بچی دنسب نه ئې انکاراوکړلو.نوپه دې صورت کښې هم د دواړو بچو نسب هم دده نه ثابتیږی.

**دلیله**> دلیل دا دې چه دواړه بچی غبرگون دی.

| |
|---|
| وَلَاعَنَ .او خاوند به لعان کوی |

**تعریح**> البته دومره ده.چه په دې صورت کښې په ده باندې لعان شته.

**دلیله**> دلیل دادې.چه په دې صورت کښې خاوندتهمت لگولې دې.خوددې نه ئې رجوع نه ده کړې.

# كِتَابُ الْعِدَّةِ

**ترجمه** ﴿دا﴾ باب دعدت (داحکامو په بیان کښې) دې.

**تشریح** ﴿ **الربط بما قبلها** ﴾ چونکه عدت د فرقت اثر دې. او اثر د موثرنه پس وی. نوځکه ئې اول د موثر (بیلتون) وجوه طلاق، خلع، لعان عنین وغیره ذکرکړل. اود دې ځائې نه د اثریعنی عدت بیان دې.

**سببها** ﴿ دعدت سبب نکاح یا شبه دنکاح ده.

**شرطها** ﴿ ددې شرط زوال دنکاح دې.

**رکنها** ﴿ رکن ئې هغه حرمتونه دی. کوم چه د فرقت په وخت کښې ثابتیږی. اوحکم ئې عدم جوازنکاح اونورممنوعات دی.

**تعریفها لغة** ﴿ په لغت کښې عدت دښځې دحیض د ورځوشمارلوته وائی.

**تعریفها شرعا** ﴿ اوپه شریعت کښې هغه ورځوته وائی. کومې چه په ښځه باندې د خاوند دطرفه دملك متعه د زوال نه پس دې باندې په انتظارکولوکښې لازمیږی. خوپه دې شرط چه دا ښځه مدخول بها وی. یا ورسره خلوت شوې وی. یا ئې خاوند مړشوې وی.

**اقسامها باعتبار المرأة** ﴿ دښځوپه اعتبارسره د عدت څلورقسمونه دی. ① درې حیض، ② درې میاشتې ③ وضع دحمل ④ څلور میاشتې اولس ورځې. اولنې د ذوات الحیض عدت دې. دویم د غیرذوات الحیض دریم د حامله او څلورم د متوفی عنها زوجها عدت دې.

**ددرې حیضوعدت لپاره لوصورت**

| |
|---|
| إِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا أَوْ رَجْعِيًّا او هرکله چه سړی خپلې ښځې ته طلاق بائن یا طلاق رجعی ورکړو أَوْ وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَهُمَا بِغَيْرِ طَلَاقٍ یا دواړوکښې فرقت د طلاق نه بغیر واقع شو وَهِيَ حُرَّةٌ حالانکه دا آزاده ښځه د هغه ښځو څخې ده. مِمَّنْ تَحِيضُ چاته چه حیض راځی فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَقْرَاءٍ نوددې عدت درې حیضه دي |

**تشریح** ﴿ مسئله دا ده. که یوکس خپلې ښځې ته طلاق بائن یا طلاق رجعی ورکړلو. یا ددې دواړو په مینځ کښې د طلاق نه بغیرفرقت واقع شی. اودا ښځه آزاده وی. اود ذوات الحیض څخې وی. نوددې عدت درې حیضه دی. مصنف رحمه الله ته پکار وو. چه په عبارت کښې ئې (وقد دخل بها) قید ذکرکړې وو. ځکه چه دمدخول بها عدت واجب وی. دغیرمدخول بها واجب نه وی. خود (رجعیا) ذکرکولونه پس ددې قید څه ضرورت پاتې نشو. ځکه چه رجعت په مدخول بها کښې وی. په غیرمدخول بها کښې نه وی.

اودطلاق نه علاوه په بل څه وجه فرقت به دا وی. چه په خیاربلوغ یا په خیارعتق سره ئې بیلتون واقع شوې وی. یا دعدم کفاءت په وجه یا دا چه په ښځه خاوند کښې یودبل مالك شی. ددې په وجه نکاح فاسده شی. یاد ښځې دارتداد په وجه. نوپه دې تولوصورتونوکښې فرقت بغیرطلاق واقع کیږی.

**دلیله** ﴿ د دې دلیل چه عدت درې حیضه دی. دالله تعالی دا ارشاد دې. ﴿وَالْمُطَلَّقٰتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍ﴾ ترجمه اوهغه ښځې چه طلاق ورته ورکړې شوې وی. هغوی به خپل ځانونه درې حیضه ایسار وی. دا آیت په عدت د طلاق کښې ظاهرالمراد دې.

**توضیح الفرقة بغير طلاق** > اوپاتې شوچه بیلتون بغیرطلاقه نودا د طلاق په حکم کېږي دي.

**دلیله** > ځکه چه عدت ددې وجې واجب دي.چه کوم بیلتون چه په نکاح کېږي راغلی وی.په هغې کېږي د رحم پاکي معلوم شی.اودا معنی یعنی د رحم پاکي معلومیدل دطلاق نه بغیرنه راځی.نوځکه فرقت بغیرطلاقه دطلاق په حکم کېږي دي.

| |
|---|
| **وَالْأَقْرَاءُ الْحِيَضُ** او زمونږ په نیز قروء نه حیض مراد دي. |

**تشریح** > صاحب دهدایهؒ د (قُرُوْءٌ) په لفظ باندې بحث کوی.اوفرمائی.چه دا قروء لفظ دحیض اوطهردواړو په معنی کېږي حقیقت دي.ځکه چه دا لفظ د اضدادوځنی دی.دلغت داامام ابن السکیت رائې هم دا ده. چونکه دا لفظ په دوو متضاد معانیوکېږي مشترك دي.ځکه په یو وخت کېږي دواړه معانی مراد نشی اخستلې.نودقروء دلفظ نه حیض مراد دي.(۱)

**دلائله** > ① دلیل دا دي.چه لفظ د قروء دجمعي صیغه استعمال شوې ده.اوکمه درجه د جمعې درې دی.نودحیض معنی چه مراد واخستې شی.په لفظ دجمع باندې عمل کیدې شی.اوکه دطهرمعنی مراد واخستلې شی.نوبه جمع باندې عمل نشی کیدې.ځکه چه په طلاق کېږي سنت طریقه دا ده.چه په طهرکېږي واقع کړې شی.نواوس دوه صورتونه دی.یودا چه هغه طهربه کوم کېږي چه طلاق واقع شوی وی دا به په عدت کېږي شمارلې شی.نوبه دې صورت کېږي پوره درې حیضه نه پاتې کیږی.بلکه دوه طهرونه پوره اودریم طهرناقص پاتې کیږی.اوکه دا طهربه عدت کېږي نشی شمارلې.نود دریونه زیاتیږی.بهرحال په دواړوصورتونو کېږي په جمع باندې عمل نشی کیدې.اوکه د (قُرُوْءٌ) نه حیض مراد واخستې شی.نوبه جمع باندې عمل کیدې شی.په دې طریقه چه دطهربه زمانه کېږي طلاق ورکړی.اوددې نه پس بیا درې حیضه تیرشی.

② دویم دلیل دا دي.چه دعدت مقصود د رحم پاکي معلومول دی.اودا مقصود په حیض سره حاصلیږی په طهرسره نه.

**د غیرذوات الحیض دعدت موده**

| |
|---|
| **وَإِنْ كَانَتْ لَا تَحِيضُ مِنْ صِغَرٍ أَوْ كِبَرٍ** اوکه ښځه د هغه ښځو ځنې ده.چه دې ته د ماشومتوب یا بوډئ توب په وجه حیض نه راځی. **فَعِدَّتُهَا ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ** نو د دې عدت درې میاشتې دی |

**حل اللغة** > ① **صغر**:ورکوتیوالې

**تشریح** > چه دحیض نه راتلل د کم عمرئ د وجې وی.یادا چه ښځه د ناامیدئ (بوډاتوب) عمرته رسیدلې وی.نوددې وجې حیض نه راځی.یا دا چه ښځه دعمربه لحاظ سره بالغه شوې وی.دصاحبینو ؒ په نیزچه د پنځلسو کالو وی. اودامام ابوحنیفهؒ په نیزچه د اوولسوکالووی.خولاتراوسه پورې نې حیض نه وی راغلې.د دې درې واړه قسمه ښځوعدت به درې میاشتې وی.کومې چه د درې حیضوقائم مقام دی.

**دلیله** > دلیل دا آیت دي.چه ﴿وَاللَّائِي يَئِسْنَ مِنَ الْمَحِيضِ مِنْ نِسَائِكُمْ إِنِ ارْتَبْتُمْ فَعِدَّتُهُنَّ ثَلَاثَةُ أَشْهُرٍ وَاللَّائِي لَمْ يَحِضْنَ﴾ یعنی ستاسوبه طلاقو شوو ښځوکېږي چه کومې ښځې (په وجه د زیات عمر) دحیض راتلونه ناامیده شوې وی. که تاسوته (د دوی دعدت په مقررکولوکېږي) شبه وی.نود دوی عدت درې میاشتې

(۱) دامام شافعیؒ په نیزطهرمراد دي.

دي.اودغه شان کوم ښځو ته چه دکم عمرۍ په وجه حيض نه راځي.(مرشد تهانوي)
صاحب دفتح القدير رحمه الله فرمائي.چه کله آيت د قروء نازل شو.نوصحابه کرامو رضي الله عنهم اووئيل.چه د ذوات الحيض عدت خو مونږ ته معلوم شو.خودا راته معلومه نه ده.چه کومې ښځې غيرذوات الحيض وي.يادهغوی دعدت مونږ ته علم نه وي.نودهغوی به څه حکم وي؟په دې باندې آيت نازل شو.چه يعنی که تاسوته د غيرذوات الحيض په عدت کښې شك وي.اوتراوسه پورې درته معلومه نه وي.نوددوی عدت درې مياشتې دی.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَتْ حَامِلًا اوکه دا ښځه حامله وي فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو ددې عدت دادې.چه دا وضع د حمل اوکړی |

تشريح> اوکه ښځه حامله وي.نوددې عدت وضع د حمل ده.

دليله> دليل دا آيت دی. ﴿وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَنْ يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ يعنی دحامله ښځوعدت به دده غ حمل په پيدائش باندې کيږي.(حضرت اقدس تهانوی رحمه الله)

## د مطلقې وينځې عدت

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً اوکه دا ښځه وينځه وي فَعِدَّتُهَا حَيْضَتَانِ نو ددې عدت دوه حيضه دي. |

تشريح> صورت د مسئلې دادې چه که مطلقه وينځه وي نو ددې عدت به دوه حيضه وي

دلائله> ① دليل د نبی کريم ﷺ ارشاد دې چه(طلاق الامة تطليقتان وعدتها حيضتان) (
② عقلی دليل دادې چه مملوکيت نعمت اوعذاب لره نصف کوي. دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿فَإِنْ أَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنَاتِ مِنَ الْعَذَابِ﴾ اوپو حيض تقسيم کيدې نشی څکه هغه پوره کړې شو اودغه شان به د مطلقه وينځې عدت دوه حيضه وي.
ددې طرف ته حضرت عمر رضي الله عنه اشاره کړې ده که زما په وس کښې وې نود وينځې عدت به مې يو نيم حيض ګرځولې وو.خو دا خبره زما په وس کښې نه ده. نو څکه ما دا دوه حيضه کړل. (٦٥)

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَتْ لَا تَحِيضُ اوکه وينځه داسې وي.چه دې ته حيض نه راځی فَعِدَّتُهَا شَهْرٌ وَنِصْفٌ نو ددې عدت يوه نيمه مياشت دې |

تشريح> اوکه دغه مطلقه وينځه د ذوات الحيض څنی نه وي.نوددې عدت يوه نيمه مياشت دې.
دليله> څکه چه مياشت متجزی(تکړې) کيدېشی نو په رقيت باندې عمل کولو دپاره موده نيمه کړې شوه.

## د متوفی عنها زوجها عدت

| |
|---|
| وَإِذَا مَاتَ الرَّجُلُ عَنِ امْرَأَتِهِ الْحُرَّةِ اوکله چې د خپل آزادې ښځې خاوند مړ شی فَعِدَّتُهَا أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرَةُ أَيَّامٍ څلور مياشتې او لس ورځې دی |

تشريح> مسئله داده چه متوفی عنها زوجها عدت څلور مياشتې اولس ورځې دی. برابرده که دا ښځه د ذوات الحيض څنی وی اوکه دغير ذوات الحيض، که مسلمانه وی اوکه کتابيه وی. که بالغه وی

٦٥) اخرجه عبدالرزاق فی مصنفه(نصب الراية:۳\۲۷۱)۔

اوکه نابالغه وي. که مدخول بها وي اوکه غیر مدخول بها وي. که آ ئیسه وي اوکه غیر آئیسه وي که ددې خاوند آزاد وي اوکه غیر آزاد وي.

**دلیله** دلیل دالله ﷻ دا آیت دی ﴿وَالَّذِينَ يُتَوَفَّوْنَ مِنكُمْ وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا﴾ یعنی په تاسو کښې هغه خلق چه خپلې بیبیانې پرېږدي او وفات شي نوددوئ بیبیانې به خپل خانونه څلور میاشتې او لس ورځې په انتظار کښې ساتي. اوکه متوفی عنها زوجها وینځه وي نو ددې عدت به دوه میاشتې او پنځه ورځې وي ځکه چه رقیت تنصیف راولي.

| |
|---|
| وَاِن كَانَت اَمَةً فَعِدَّتُهَا شَهْرَانِ وَخَمْسَةُ اَيَّامٍ اوکه متوفی عنها زوجها وینځه وي نو د دې عدت دوه میاشتې پنځه ورځې دي |

**تشریح** اوکه متوفی عنها زوجها وینځه وي نو ددې عدت به دوه میاشتې او پنځه ورځې وي

**دلیله** ځکه چه رقیت تنصیف راولي.

### دحامله عدت وضع دحمل ده

| |
|---|
| وَاِنْ كَانَتْ حَامِلًا اوکه متوفی عنها زوجها حامله ده فَعِدَّتُهَا اَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا نو ددې عدت دادې چه دا خپل حمل اوزیګوي. |

**تشریح** فرمائي چه متوفی عنها زوجها که آزاده وي اوکه وینځه که حامله وي نوددې عدت وضع د حمل ده.

**دلیله** دلیل دا دې چه دالله تعالی ارشاد دی. ﴿وَأُولَاتُ الْأَحْمَالِ أَجَلُهُنَّ أَن يَضَعْنَ حَمْلَهُنَّ﴾ او دا مطلق دې نوخپل اطلاق دوجې متوفی عنها زوجها اوغیرمتوفی عنها زوجها ټولو ته شامل دي.

### په مرض الوفات کښې د مطلقه وارث جوړېدل اوعدت

| |
|---|
| وَاِذَا وَرِثَتِ الْمُطَلَّقَةُ فِي الْمَرَضِ اوکله چه مطلقه (دخاوندنه) په مرض الوفات کښې وارثه شي. فَعِدَّتُهَا اَبْعَدُ الْاَجَلَيْنِ نوددې عدت به په دواړومدوکښې اوږده موده وي عِنْدَ اَبِي حَنِيفَةَ[1] په نیز دامام ابوحنیفه |

**تشریح** صورت د مسئلې دا دې چه یوکس په خپل مرض الوفات کښې خپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړلو، یا ئې ورته درې طلاقه ورکړل. اوبیا هم په عدت کښې مړشو. نودده ښځه به وارثه وي. اوددې ښځې عدت ابعدالاجلین دې. یعنی په دې ښځه دطلاق دوجې درې حیضه تیرول واجب دي. اود خاوند دوفات په وجه څلورمیاشتې اولس ورځې تیرول واجب دي. نوکه درې حیضه تیرشول. خوڅلورمیاشتې اولس ورځې نه وې برابر شوې. نونیلې به شي. چه تراوسه پورې عدت نه دې پوره شوې. تردې چه څلورمیاشتې او لس ورځې تیرې شي. اوکه څلورمیاشتې اولس ورځې تیرې شوې وې. خودرې حیضه نه وو پوره شوي. په دې طریقه چه ښځه ممتده د طهروه. نوهم دا به وئیلې شي. چه تراوسه پورې عدت پوره شوې نه دې. تردې چه درې حیضه راشي. اګرچه ښځې ته دځوکالو انتظارکولوضرورت پیښ شي. دا حکم دطرفینو رحمهما الله په نیز دې. په هدایه کښې ئې د امام ابوحنیفه سره امام محمد هم ذکر کړې دې.

---

[1] ) القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في خلاصة الفتاوى (١١٧\٢) والدرالمختار(٦٥٧\٢) والهندية (٥٣٠\١) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٩\١)-

لهما> اودطرفینو ﷫ دلیل دادې چه هرکله نکاح دمیراث په حق کښې باقي ده نو داحتیاط په وجه به دعدت په حق کښې هم باقي وي. ددې وجه دواړه عدتونه جمع کړې شول. ځکه چه دا ښځه په حقیقت کښې بائنه ده.اود حکم په اعتبار سره متوفی عنها زوجها ده.
مسلک ابي یوسف> اوامام یوسف ﷫ فرمائي چه ددې عدت صرف درې حیضه دي.علامه مرغیناني ﷫ په هدایه کښې فرمائي چه دا اختلاف په هغه صورت کښې دې چه دې ته طلاق بائن درې طلاقه ورکړې شوې وي.اوکه طلاق رجعي ورته ورکړې شوې وي نو په دې صورت کښې به په اتفاق سره عدت د وفات یعنی څلور میاشتې او لس ورځې تیروي.
دلیله> دامام یوسف ﷫ دلیل دادې چه نکاح خو دمرګ نه وړاندې په طلاق بائن سره منقطع شوې ده او چونکه د طلاق عدت درې حیضه دې نو ځکه په ښځه باندې درې حیضه تیرول واجب دي.اوپاتې شو عدت وفات نودا به په هغه صورت کښې واجبیږي چه نکاح د خاوند په وفات سره زائله شي. حالانکه دلته داسې نه ده نو ځکه به په دې ښځه عدت وفات واجب نه وي.بلکه عدت طلاق به واجب وي.

## دمرتد خاوند دمرګ پورې دطلاق رجعي په حالت کښې د وینځې آزادېدل.

| |
|---|
| وان اعتقت الأمة في عدتها من طلاق رجعي نوکه وینځه د خپل طلاق رجعي په عدت کښې آزاده کړې شوه انتقلت عدتها نو ددې عدت منتقل کیږي إلى عدة الحرائر او آزادې ښځې طرف ته واپس کیږي |

تشریح> صورت د مسئلې دادې چه وینځې ته خپل خاوند طلاق رجعي ورکړلو اوپه عدت کښې داخپل مولی آزاده که نو ددې عدت به د آزادو ښځو عدت ته منتقل کیږي یعنی که ذوات الحیض کښې وي نو درې حیضه به تیروي اوکه دغیر ذوات الحیض نه وي نودرې میاشتې به عدت تیروي.
دلیله> دلیل دادې چه په طلاق رجعي کښې نکاح نه ختمیږي بلکه من کل وجه نکاح باقي وي نو دا داسې شوه لکه چه مولی خپله منکوحه کیدو په حالت کښې آزاده کړې وي.

| |
|---|
| وان أعتقت وهي مبتوتة اوکه دا وینځه په داسې حالت کښې آزاده کړې شوه.چه معتده بائنه ده أو متوفى عنها زوجها .یا،، متوفی عنها زوجها،، ده لم تنتقل عدتها إلى عدة الحرائر نو ددې عدت د آزادو ښځو عدت طرف ته نه منتقل کیږي |

تشریح> اوکه دا وینځه په داسې حالت کښې آزاده کړې شي چه دا مطلقه بائنه وي یا ددې خاوند مړ شوې وي او دا د وفات عدت تیروي نو په دې صورت کښې به ددې عدت د آزادو ښځو عدت ته نه منتقل کیږي.
دلیله> دلیل دادې چه دطلاق بائن او دمرګ په وجه نکاح زائله شوه نودا داسې شوه لکه چه مولی دغیر منکوحه په حالت کښې آزاده کړې وي.

## آیسه په عدت کښې دحیض والا کېدل

| |
|---|
| وان كانت آيسة اوکه ( مطلقه ښځه ) دخپل حیض نه نااميده وي فاعتدت بالشهور نودې د میاشتو نه عدت پوره کول شروع کړل ثم رأت الدم بیا دې وینه اوکتله. انتقض ما مضى من عدتها نوکومه موده چه ددې په عدت کښې تیره شوه.هغه ( عدت) مات شو وكان عليها أن تستأنف العدة بالحيض او په دې به دسره ( دوباره) په حیض سره عدت تیرول واجب وي |

**حل اللغة** ﴿ ① **آيسة**: هغه ښځه چه د حيض راتلو نه نااميده شوې وی ② **الشهور**: جمع د شهر د مياشت

**تشريح**﴾ صورت دمسئلې دادې چه که مطلقه دحيض نه مايوسه وی او دې په درې مياشتو سره عدت تيرولو او اوس په دې دوران کښې د حيض وينه راغله نو حکم دادې چه په مياشتو سره کوم عدت تيرکړې دې هغه باطل شو اوس به دا د سر نه په حيض سره عدت تيروی.

صاحب دهدايه په هدايه کښې فرمائی چه دامام قدوری رحمه الله مراد دادې چه ددې ښځې د نااميدئ نه وراندې کوم عادت وودهغې مطابق ئې وينه اوليدله نو عدت باالشهور باطل شو کنی نه باطليږی.

**دليله**﴾ دليل دادې چه دعادت په طور دوينې راتلل دحيض نه مايوسی باطلوی. هم دا قول صحيح دې. نو ښکاره شوه چه دمياشت عدت دهغې خليفه نه دې. اودخليفه باطل کيدل ددې وجې وو چه د خليفه کيدو شرط دا دې چه اصل يعنی د حيض نه مايوسی متحقق وی.اودابه هله متحقق وی چه تر مرګه پورې وی. خوچه کله ددې ښځې دعادت مطابق وينه راغله نو ددې عدت به په حيض سره وی. په مياشتو سره به نه وی.ځکه چه په اصل قدرت وی. نودخليفه څه اعتبار نه وی.

**نظيره**﴾ لکه څنګه چه شيخ فانی ته د روژې په ځائې دفديه ورکولو اجازت ورکړې شوې دې خوکه دا کس په روژه نيولو قادر شو نو دفديه حکم باطل شو. او دروژې قضاء راوړل به واجب وی دغه شان که متيمم داوبو په استعمالو باندې قادر شو نو دتيمم حکم باطل شو.

**د نکاح فاسده او وطی بالشبه حکم**

| |
|---|
| وَالْمَنْكُوحَةُ نِكَاحًا فَاسِدًا او کومې ښځې سره چه نکاح فاسد اوکړې شوه. وَالْمَوْطُوءَةُ بِشُبْهَةٍ اوکومې ښځې سره چه په شبه کښې وطی اوکړې شوه عِدَّتُهُمَا الْحَيْضُ فِي الْفُرْقَةِ وَالْمَوْتِ ددې دواړو عدت د فرقت اومرګ په حالت کښې حيض دې |

**حل اللغة** ﴿ ① **الموطوءة**: وطی کړې شوې ② **الفرقة**: جدائی

**تشريح**﴾ صورت دمسئلې دادې که چاسره نکاح فاسده اوشی مثلاً بغير ګواه نه نکاح اوشی يا وطی بالشبه اوشی مثلاً په دهوکه کښې دخپلې ښځې نه سوا بلې ښځې ته بوتللې شی.او وطی ور سره اوکړی نو په دې صورت کښې به واطی (وطی کوونکی) باندې مهر واجب وی. او په ښځه عدت واجب دې. برابره ده که واطی مړ شو يا په دواړو کښې تفريق کړې شوې وی نو که دا ښځه د ذوات الحيض څخې وی او آزاده وی نوددې عدت درې حيضه دې اوکه وينځه وی نو ددې عدت دوه حيضه دې اوکه دا ښځه غير ذوات الحيض څخې وی او آزاده وی نو ددې عدت درې مياشتې دې. اوکه وينځه وی نو يوه نيمه مياشت ده.حاصل دا که واطی مړشوې وی نوهم ددې عدت به حيض سره وی اود حيض نه راتلو په صورت کښې به مياشت ددې قائم مقام وی اوعدت وفات څلور مياشتې اولس ورځې به واجب نه وی.

**دليله**﴾ دليل دادې چه ددې دواړه قسمه ښځو عدت د رحم دپاکيدو معلوملو دپاره دې. دنکاح حق ادا کولو دپاره نه دې. ځکه چه دنکاح فاسد او وطی بالشبه څه حق نه وی اودرحم دپاکئ علم په حيض سره راځی نو ځکه د دواړو عدت په حيض سره مقرر کړې شو. اوچه حيض نه راځی نو په دې صورت کښې مياشتې د حيض قائم مقام دی.

**الاشکال**﴾ خوکه داسوال اوکړې شی چه دا مقصد خو په يو حيض يا يوې مياشتې سره حاصليږی نو د درې حيضو د وجوب څه ضرورت دې

**الجواب**﴾ ددې جواب دادې چه شبه نکاح د حقيقی سره لاحق کړې شوه اود درې حيضو تيرولو حکم ورکړې شو.

**دام ولد نه دمولی وفات کېدل او دهغې عدت**

> **وَإِذَا مَاتَ مَوْلَى أُمِّ الْوَلَدِ عَنْهَا** اوکه د ام ولد مولا ( ام ولد پريخوده او) مرشو **أَوْ أَعْتَقَهَا** يا ئې دا آزاده کړله **فَعِدَّتُهَا ثَلَاثُ حِيَضٍ** نو ددې عدت درې حيضه دی

**تشريح**> صورت دمسئلې دادې که دام ولد مولی مرشو يا مولی دا آزاده کړه نو ددې ام ولد عدت به درې حيضه وی. ([1])

**دلائله**> دليل دادې چه دام ولد عدت د زوال فراش دوجې دې نودا دعدت نکاح مشابهشو او چونکه په عدت نکاح کښې درې حيضه وی نو دلته به هم درې حيضه وی.

۲ بيا په دې حکم کښې زمونږ پيشوا حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دې.دوئ فرمائيلی دی **عِدَّةُ أُمِّ الْوَلَدِ ثَلَاثُ حِيَضٍ** (۱)چه د ام ولد عدت به درې حيضه وی

**دصغيردخپلې ښځې نه وفات کېدل**

> **وَإِذَا مَاتَ الصَّغِيرُ عَنِ امْرَأَتِهِ** اوکه نابالغ هلك خپله ښځه پريخوده ( او) مرشو.**وَبِهَا حَبَلٌ** حالانکه دده دا ښځه حامله ده **فَعِدَّتُهَا أَنْ تَضَعَ حَمْلَهَا** .نو ددې عدت دادې.چه خپل حمل وضع کړی.( اوزيگوی) ([2])

**تشريح**> مسئله داده چه يو نابالغه هلك ښځه حامله پريښودله اودې ترې مرشو. نودطرفينو رحمهما الله په نيز ددې عدت وضع دحمل ده. ([2])

**دليلهما**> د طرفينو دليل دادې چهالله تعالی مطلقًا فرمائيلی دی چه دحامله ښځو عدت وضع دحمل دې. برابره ده که هغه عدت دطلاق وی اوکه دوفات وی . او برابره ده که حمل دخاوند وی اوکه دغير خاوند وی. نودآيت دخپل اطلاق دوجې دنابالغه هللك ښځې ته هم شامل دې. ځکه چهدا هم حامله ده.اګر چه ددې نسب ثابت نه دې. او دريم دادې چه دحامله ښځو په باره کښې دعدت وفات اندازه لګولې شوې د ه. په موده د وضع دحمل برابر ده که دامودہ کمه وی اوکه زياته وی. او ددې مودې مقصد دنکاح حق پوره کول دی.دحمل نه د رحم خالی معلومول نه دی ددې وجه داده چه عدت وفات د حيض په موجودګئ کښې دمياشتونه شروع کيږی.نوثابته شوه چه ددې عدتمقصد دنکاح حق ادا کول دی. درحم د فراغت معلومول نه دی.او دا معنی يعنی دنکاح حق پوره کول په ماشوم کښې هم موجود يږی.اګر چه حمل دده نه ثابت نهوی.

**مسلك ابي يوسف**> دامام ابويوسف رحمه الله په نيز ددې عدت څلورمياشتې اولس ورځې دې او دا دامام شافعی قول هم دې.

---

[1] ، **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چه ددې عدت يو حيض دې. امام مالكاو امام محمد رحمه الله هم ددې قائل دی.

۱) خرجه الزيلعی رحمه الله ثم نقل عن يحی بن ابی كثير رحمه الله ان عمروبن العاص رضی الله عنه امر ام الولد اعتقت أن تعتد ثلاث حيض (نصب الراية:۳\۲۷۵)۔

[2] ، القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (۲\۲۷۰) وفتح القدير(۴\۱۴۹) والهندية (۱\۵۳۰) والبحر الرائق (۴\۱۴۱) نقلاً عن القول الراجح (۱\۲۷۰)-

۱) خرجه الزيلعی رحمه الله ثم نقل عن يحی بن ابی كثير رحمه الله ان عمروبن العاص رضی الله عنه امر ام الولد اعتقت أن تعتد ثلاث حيض (نصب الراية:۳\۲۷۵)۔

**دليله** > دليل دادې چه دا حمل د صغير نه ثابت نه دې نو دا داسې شوه لکه چه دصغير دمرګ نه پس دا حامله شوې وی.او په دې صورت کښې په اتفاق سره عدت څلور مياشتې اواولس ورځې دی. نودغه شان په ذکر شوې صورت کښې هم څلور مياشتې او لس ورځې پوره کول ضروری دی.

**الجواب عنه** > کوم حمل دمرګ په وخت کښې حمل نه وی نوپه دې کښې ابتداء دعدت د مياشتو نه کيږی چه دنکاح حق ادا شی.اوس که روستو حمل ښکاره شی نود حدوث حمل دوجې عدت نه متغير کيږی.

| |
|---|
| فَإِنْ حَدَثَ الْحَبَلُ بَعْدَ الْمَوْتِ فَعِدَّتُهَا أَرْبَعَةُ أَشْهُرٍ وَعَشْرَةُ أَيَّامٍ که چرته د مرګ نه پس اميد ښکاره شو.نو د دې عدت به څلور مياشتې او لس ورځې وی |

**تشريح** > که زيد دخپلې ښځې سره جماع کړې وه.اوبيا دې مړ شو.نوکه د ده د مرګ نه پس علوق ښکاره شوچې دا ښځه حمل‌داره ده.نوپه دې صورت کښې به ددې عدت څلور مياشتې او لس ورځې وی.

**په حالت دحيض کښې دطلاق ورکولو صورت کښې عدت**

| |
|---|
| وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ فِي حَالَةِ الْحَيْضِ او هرکله چه سړی خپلې ښځې ته په حالت د حيض کښې طلاق ورکړو لَمْ تَعْتَدَّ بِالْحَيْضَةِ الَّتِي وَقَعَ فِيهَا الطَّلَاقُ .نو ښځه به دا حيض په کوم کښې چه طلاق واقع شوی دې.په عدت کښې نه شماری |

**تشريح** > مسئله دا ده.که سړی خپلې ښځې ته په حالت دحيض کښې طلاق ورکړو.نوهغه حيض په عدت کښې نشی شمارلې.په کوم کښې چه طلاق واقع شوی وی.

**دليله** > دليل دا دې چه په اجماع سره په عدت کښې پوره درې حيضه تيرول ضروری دی.نوځکه به په دې کښې کمې نشی کولې.

**دمعتده دوطی بالشبه په صورت کښې عدت**

| |
|---|
| وَإِذَا وُطِئَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِشُبْهَةٍ اوکومه ښځه (چه د طلاق بائن) په عدت کښې وه که دې سره وطی بالشبه اوکړې شوه فَعَلَيْهَا عِدَّةٌ أُخْرَى نو په دې ښځه به دويم عدت واجب وی وَتَدَاخَلَتِ الْعِدَّتَانِ دواړه عدتونه به په يويل کښې داخل وی فَيَكُونُ مَا تَرَاهُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْحَيْضِ مُحْتَسَبًا مِنْهُمَا جَمِيعًا او ښځه چه کوم حيض ګوری.هغه به په دواړو عدتونوکښې شمار وی وَإِذَا انْقَضَتِ الْعِدَّةُ الْأُولَى او هرکله چه رومبې عدت پوره شی. وَلَمْ تُكْمِلِ الثَّانِيَةَ. حالانکه دويم عدت نه دې پوره شوې فَعَلَيْهَا إِتْمَامُ الْعِدَّةِ الثَّانِيَةِ نو په ښځه باندې دويم عدت پوره کول واجب دی |

**تشريح** > مسئله داده که په يو ښځه باندې دوه عدتونه واجب شی نوددې دوه صورتونه دی.نودا دوه عدتونه‌به يا د دوؤ سړو نه وی يا ديو سړی نه.

**صور العدتين من رجل واحد** > که ديو سړی نه وی نوددې صورت به دا وی ① چه يوکس خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل او بيا ئې دا حلاله اوګڼرله اونکاح ئې ورسره اوکړه.او وطی ئې اوکړه. ②يا ئې حلاله اوګڼرله اومطلقه ثلاثه سره ئې وطی اوکړه .

③ يا ئې دمطلقه بينه سره په عدت کښې وطی اوکړه نو په دې صورت کښې په اتفاق سره په دواړو عدتونو کښې تداخل کولې شی.

**صور العدتين من رجلين** > اوکه دواړه عدتونه ددوؤ سړو نه وی نو بيا ددې دوه صورتونه دی. يا به د دواړوعدتونو جنس يو وی اويا به مختلف وی.که د دواړو جنس مختلف وو.مثلاً متوفی عنها زوجها

سره په شبه سره وطی شوي وه. نوددې حکم په راروانه مسئله کښې ذکردې.اوکه د دوارو عدتونو جنس يو وي.مثلاً مطلقې په خپل عدت کښې بل خاوند سره نکاح اوکړله.اوبل خاوند ورسره وطی هم کړی وی.اوبيا په دوارو کښې تفريق اوکړې شی.نوپه دې صورت کښې به زمونږ په نيزپه دوارو کښې تداخل کولې شی.

اوښځه چه کوم حيض هم اوگوری.هغه به په دوارو عدتونوکښې شمارلې شی.اوکه اولنی عدت پوره شوې وی او دويم نه وی پوره شوي نودې باندې دويم عدت پوره کول واجب دي.ددې صورت به دا وی چه د ښځې ديوحيض ليدلو نه پس ورسره دويم‌خاوند وطی اوکړی نود دويم خاوند دوطی کولو نه پس په دې باندې درې حيضه واجب دی اودوه به دځلورو قائمقام شی . په دې طريقه چه دوه حيضه په اولنی عدت کښې او دوه حيضه په دويم کښې شمار کړې شی اودريم حيض صرف‌په‌دويم کښې شمار کړې شی.

اوکه د دويم خاوند د وطی نه پس حيض رانغلو نو په دې باندې درې حيضه واجب دی. اودا درې حيضه به د شپږوقائمقام وی. (¹)

**دليله** دليل دادې چه دعدت نه مقصود درحم دحمل نه خالی کيدل معلومول دی. اودا مقصود حاصليږی په يو عدت سره نو ځکه به دواړه عدتونه متداخل کيږی.

**دعدت طلاق او وفات ابتداء**

| |
|---|
| وَابْتِدَاءُ الْعِدَّةِ فِي الطَّلَاقِ عَقِيبَ الطَّلَاقِ اود طلاق په صورت کښې به د عدت ابتداء د طلاق نه پس کيږی وَفِي الْوَفَاةِ عَقِيبَ الْوَفَاةِ اود وفات په صورت کښې به د وفات نه پس کيږی فَإِنْ لَمْ تَعْلَمْ بِالطَّلَاقِ أَوِ الْوَفَاةِ بيا که (ښځې ته) د طلاق يا وفات علم اونشو حَتّٰى مَضَتْ مُدَّةُ الْعِدَّةِ تردې چه دعدت موده تيره شوه فَقَدِ انْقَضَتْ عِدَّتُهَا نو ددې عدت پوره شو. |

**تعريح** مصنف فرمائی چه دطلاق په صورت کښې به دعدت ابتداء د طلاق نه پس کيږی. او دوفات په صورت کښې به دعدت ابتداء دوفات نه پس کيږی تردې که خاوند ښځې ته طلاق ورکړلو او دې ته پته وه. دغه شان خاوند ئې مړ شوې وو او دې ته پته نه وه‌تردې چه دعدت زمانه تيره شوه نودمعلوميدو نه پس دعدت اعاده واجب نه ده هم دا دځلوورو امامانو مذهب دې.

**دليله** دليل دادې چه دعدت واجبوونکی طلاق يا وفات دې نو وجوب دعدت معلومول شو اوطلاق ياوفات علت شو. اومعلول د خپل علت سره متصل وی نو ځکه به وجوب دعدت دخپل علت يعنی طلاق يا وفات سر متصل وی او چه د کوم وخت نه علت يا سبب موجود شی نو د هغه وخت نه به دعدت ابتداء معتبره وی.

**په نکاح فاسده دعدت ابتداء**

| |
|---|
| وَالْعِدَّةُ فِي النِّكَاحِ الْفَاسِدِ عَقِيبَ التَّفْرِيقِ بَيْنَهُمَا أَوْ عَزْمِ الْوَاطِئِ عَلَى تَرْكِ وَطْئِهَا او عدت د نکاح فاسد په صورت کښې د تفريق نه پس يا د وطی کونکی د وطی په پريخودو باندې د پخې ارادې کولو سره شروع کيږی |

**حل اللغة** ① **عقيب**:روستو② **التفريق**: جدا کول

¹ ) **مسلک الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی چه په دې صورت کښې هم تداخل نه کيږی بلکه پوره دوه عدتونه‌به تيروی.

**تعریح**> مصنف رحمه الله فرمائي چه په نکاح فاسده کښې به دعدت ابتداء دهغه وخت نه کیږي کله چه د حاکم د زوجینو په مینځ کښې تفریق اوکړي. یا دوطی نه کولو عزم اوکړي.

**دلائله**> ① دلیل دادې چه مونږ دامنو چه دعدت د وجوب سبب وطی ده خو چه څومره وطیات په نکاح فاسده کښې موجود شوي دي هغه ټول په پشان دیووطی دي.ځکه چه ټول وطیات یو عقد طرف ته منسوب دي همدا وجه ده چه دټولو وطیاتو په وجه یو مهر واجب دې نو آخري وطی په کومه چه دعدت ترتب وي.هغه به په تفریق کولوسره ثابتیږي یا دوطی نه کولو په عزم سره ځکه چه ددې نه وړاندې عدت نه واجبیږي ځکه چه اوس ددې دغیر یعنی دوطی وجود ممکن نه دې. (ځکه چه نکاح فاسده ده).

② ددویم دلیل حاصل دادې چه حقیقت وطی داسې خفي امر دې چه ددې سبب ظاهر یعنی دشبه په طور قدرت علی الوطی موجود دې. اوهر هغه امر خفي چه د ظاهري امرسبب وي نودغه ظاهري سبب به ددغه امر خفي قائمقام وي. نو چه په دې باندې دقدرت حاصل وي. آخري وطی متعین کولې نشي ځکه چه دهر وطی نه پس قدرت علی الوطی باقي وي. ددې وجې مونږ وایو چه په دواړو کښې تفریق یا په ترك وطی باندې عزم ضروري دې. چه قدرت علی الوطی پورته شي. او آخري وطی متعین شي.

**په مبتوته اومتوفی عنها زوجها باندې غم کول**

| |
|---|
| وَعَلَى الْمَبْتُوتَةِ چه د کومې ښځې د خپل خاوند نه قطعي جدائي اوشوه.( که په یو طلاق،اوکه په درې طلاقو اوکه په خلع) وَالْمُتَوَفَّى عَنْهَا زَوْجُهَا اود کومې ښځې چه خاوند مرشی إِذَا كَانَتْ بَالِغَةً مُسْلِمَةً الْحِدَادُ نو په دې باندې غم کول واجب دي کله چه دا بالغه مسلمانه وي |

**تعریح**> وړاندې نفس وجوب دعدت اوکیفیت دوجوب عدت بیان کړي شو.اوچه په کومو ښځو عدت واجب دې.اوپه کومو واجب نه دې.ددې بیان اوشو. په دې فصل کښې مصنف دهغه څیزونو ذکر کوي کوم چه په معتداتو باندې واجب وي.اودکوم نه کول چه واجب دي. نوفرمائي چه مبتوته یعنی هغه ښځه چه دهغې نه حق د رجعت منقطع شوې وي. برابره ده چه په درې طلاقو سره وي اوکه په یو طلاق بائن سره وي.یا په خلع سره وي اوهغه ښځه چه دهغې خاوند وفات شوې وي. که دامسلمانه او بالغه وي نو په دې باندې غم واجب دې.([1])

**دلیل احداد المتوفی عنها زوجها**> په متوفی عنها زوجها باندې دغم په وجوب کښې نبی ﷺ فرمائیلي دي لَا يَحِلُّ لِامْرَأَةٍ تُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ تُحِدَّ عَلَى مَيِّتٍ فَوْقَ ثَلَاثِ أَيَّامٍ إِلَّا عَلَى زَوْجِهَا أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ وَعَشْرًا[2]

(( چه کومه ښځه چه په الله ﷻ اوپه ورځ د آخرت ایمان راوړي دهغې دپاره مړي باندې د درې ورځو نه زیات غم کول حلال نه دي.سوا د خاوند نه ځکه چه خپل خاوند باندې څلور میاشتې اولس ورځې غم

---

[1] مسلک الشافعي:- دامام شافعی رحمه الله په نیزغم کول دخاوند په مرګ باندې کولې شي. چا چه دخپل مرګه پورې معاهده پوره کړې وي.حالانکه دې کس د بائنه کولو په وجه دا په ویره کښې واچوله. نو ددې نالائقه په مرګ غم کول نه دي پکار.

[2]) من حدیث ام عطیة رضی الله عنها اخرجه البخاری فی الحیض باب ۱۲ ومسلم فی الطلاق رقم ۶۶ وابوداود فی الطلاق باب ۴۶ رقم ۲۳۰۲ والنسائی فی الطلاق باب ۶۴ رقم ۳۳۰۸ وابن ماجه فی الطلاق باب ۳۵ رقم ۲۰۸۷ والدارمی فی الطلاق باب ۱۳ ،احمد فی المسند ۸۵\۵)۔

کولي شي.

**دلائله** ① دلیل دادي چه نبي کریم ﷺ معتده ښځه د نکریزو داستعمال نه منع کړې ده او فرمائیلي يې دي چه نکریزې خوشبوئي ده. دحدیث راویه سلمه رضی الله عنها ده. او په دې حدیث کښې د معتده وفات او غیر وفات څه تفصیل نشته دې.نو معلومه شوه چه مطلقًا په معتده باندې غم کول واجب دي که معتده دوفات وي اوکه د غیر وفات وي. (۱)

② عقلي دلیل دادې چه مبتوته دمتوفی عنها زوجها پورې لاحقه کړې شي. اوداسې تقریر اوکړې شي چه په متوفی عنها زوجها په غم کولو باندې نص وارد دي لکه څنګه چه اوس حدیث تیرشو. اودغم ښکاره کولو وجوب وجه دنکاح دنعمت په فوت کیدو باندې دافسوس اظهار کول دي. څوك چه ددې ښځې دحفاظت اوکفالت سبب وو. او بینونت واقع کیدل دښځې حق دخاوند دوفات نه زیات قطع کوونکی دې. ځکه چه دنکاح حکم د وفات نه پس دعدت تیریدو پورې باقي وي هم دا وجه ده چه ښځه خپل مړ خاوند ته دبائنه کولو نه وراندې غسل ورکولي شي. خو چه بائنه شي نو ددې نه پس که خاوند مړشو . دا ورته غسل نه شي ورکولي. نوهرکله چه مبتوته دمتوفی عنها زوجها سره لاحقه کړې شوه. نو چه کوم حکم دمتوفی عنها زوجها وي هم هغه حکم به دمبتوته وي.یعنی په دواړو باندې غم کول واجب دي.

**دحداد مصداق**

| |
|---|
| وَالْحِدَادُ او حداد أَنْ تَتْرُكَ الطِّيبَ وَالزِّينَةَ وَالدُّهْنَ وَالْكُحْلَ ( دادي چه) ښځه خوشبو لګول، او زینت کول، او تیل لګول رانجه لګول، ، إِلَّا مِنْ عُذْرٍ مګرد عذر په وجه ( استعمالول جائز دي). |

**حل اللغة** ① **الكحل**:رانجه ② **الدهن**: تیل

**تشریح** حداد په معنی دغم کولو دویم لغت احداد دې. اول دباب نصر اوضرب څنې دې. اودویم دباب افعال څنې دې. دښځې غم کول دادي چه دا خوشبوئي لګول زینت کول، رانجه لګول، تیل لګول که خوشبودار وي اوکه غیر خوشبودار وي. داټول څیزونه پریږدي. البته که څه غذر وي اود جامع صغیر د بیان مطابق که درد وغیره وي نو ددې څیزونو په استعمال کښې څه قباحت نشته دې.

**دلائل احداد المعتدة** ① او په طریقه د صحت سره ثابته ده چه یوې معتدې دنبی ﷺ نه د رانجو لګولو اجازت اوغوښتلو. نو نبی ﷺ ورته اجازت ورنکړو. (۲)

② او دام سلمه رضی الله عنها نه روایت دې چه (انها قالت امرأة جاءت الى رسول الله ﷺ وقالت ان زوج ابنتي توفي وقد اشتكت عينها افتكحلها فقال رسول الله ﷺ لا مرتين اوثلاثا). حضرت ام سلمه رضی الله عنها فرمائي چه یو ښځه رسول الله ﷺ لره راغله او عرض ئې اوکړو یارسو الله ﷺ الله ﷺ زما د لور خاوند وفات شوې دې. او دهغې سترګو ته تکلیف دې. آیا زه دهغې په سترګوکښې رانجه واچوم.نو نبی ﷺ ورته اوفرمائیل نه. داکلمه

---

۱) تقدم تخریجه فی جنایات الحج)

(۲) أما المنع عن الإکتحال ففي حدیث ام سلمة رضی الله عنها أخرجه البخاری فی الطلاق باب ٤٧ ومسلم فی الطلاق رقم ٦٠ وأبوداؤد فی الطلاق باب ٣٤ رقم ٢٢٩٩ والترمذی فی الطلاق باب ١٨ رقم ١١٩٧ والنسائی فی الطلاق باب ٦٤ رقم ٣٣٠٧ وابن ماجه فی الطلاق باب ٨٥ رقم ٢٠٨٤)

نبي ﷺ دوه خله يا درې خله اوفرمائيله. د دې حديث نه هم معلوميږي چه معتده به دا څيزونه نه استعمالوي.

| |
|---|
| إِلَّا مِنْ عُذْرٍ مگر د وجې د عذر نه (كه عذر وي بيا احداد كولې شي) |

تشريح> المراد من العذر> د قدوري قول (الا من عذر) مطلب دادې چه د معتده د پاره درانجو او تيلو استعمال ، د دوائي په طور استعمال جائز دی. د زيب اوزينت په طور جائز نه دی. اوكه ښځه د تېلو لګولو عادتي وي اوپه دې ويريږي كه تيل اونه لګوی نو په سر به ئې درد راشي.نو په دې صورت كښې كه غالب ګمان داوی. چه د تيلو د نه لګولو په وجه به بيماره شي نو غالب ګمان به دواقع كيدو پشان اوګرځولې شي او د دې اجازت به وركړی شي ګني نه.

| |
|---|
| وَلَا تَخْتَضِبُ بِالْحِنَّاءِ اود حناء رنګ به نه استعمالوي. |

تشريح> امام قدوري رحمه الله فرمائي چه د نكريزو رنګ به هم نه استعمالوي.

دليله> او د ام سلمه رضي الله عنها نه روايت دې چه (انها قالت امرأة جاءت إلى رسول الله ﷺ وقالت ان زوج ابنتي توفي وقد اشتكت عينها افنكحلها فقال رسول الله ﷺ لا مرتين اوثلاثا). حضرت ام سلمه رضي الله عنها فرمائي چه يو ښځه رسول الله ﷺ له راغله او عرض ئې اوكړو يارسو الله ﷺ الله ﷺ زما د لور خاوند وفات شوې دې. او دهغې سترګو ته تكليف دې. آيا زه دهغې په سترګوكښې رانجه واچوم.نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل نه. داكلمه نبي ﷺ دوه خله يا درې خله اوفرمائيله. د دې حديث نه هم معلوميږي چه معتده به دا څيزونه نه استعمالوي.

| |
|---|
| وَلَا تَلْبَسُ ثَوْبًا مَصْبُوغًا بِعُصْفُرٍ وَلَا بِزَعْفَرَانٍ اونه به داسې كپړه اغوندي.چه په كسم ( يوقسم سورګل) يا زعفران سره رنګ كړې شوې وي |

تشريح> اومعتده به په كس او زعفرانو كښې رنګ شوې جامې نه اغوندي

دليله> ځكه چه ددې نه هم يو قسم خوشبوئي څي. ددې تائيد ددې روايت نه هم كيږي چه كوم امام مالك، نسائي، ابوداود نقل كړې دې. (عن ام سلمه رضي الله عنها قالت قال النبي ﷺ لا تلبس المتوفى عنها زوجها المعصفر من الثياب ولا الممشقة ولا الحلي ولا تختضب ولا تكتحل) سلمه رضي الله عنها فرمائي چه نبي كريم ﷺ فرمائيلي دي چه متوفى عنها زوجها به په معصفر(يوقسم خوشبو داررنګ) كښې رنګ شوې جامې نه اغوندي.اونه به د(ږيړو رنګ)جامې اغوندي . اونه به كالي اچوي. اونه به رانجه لګوي.

**په كافر باندې غم كول نشته دې**

| |
|---|
| وَلَا حِدَادَ عَلَى كَافِرَةٍ چه په كافره ښځې باندې غم نشته |

تشريح> په دې عبارت كښې دهغه معتداتو ذكر دې چه په چا باندې غم كول واجب نه دی فرمائي. چه په كافره ښځه باندې غم كول واجب نه دې. (۱)

---

(۱) مسلك الامامين:- البته امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائي چه په كافره ښځه باندې هم غم كول واجب دې.

**دليله** > دليل دادي چه کافره دالله ﷻ دحقوقو مخاطبه نه ده. او غم کول دالله ﷻ په حقوقو کښې دي.
دنبي کريم ﷺ په دې حديث (لايحل لامراة تؤمن بالله واليوم الاخر) کښې دې طرف ته اشاره ده.

| |
|---|
| **وَلَاصَغِيرَةٍ** او په صغيره باندې هم سوګ نشته. |

**تشريح** > په ماشومه باندې غم کول نشته دي.
**دليله** > ځکه چه دالله ﷻ خطاب ددې نه پورته شوې دې. يعنى داپه خطاب الهى کښې داخله نه ده. او دامام شافعي او امام مالك رحمهما الله په نيز په دې باندې هم غم کول واجب دي.

| |
|---|
| **وَعَلَى الْأَمَةِ الْإِحْدَادُ** او په وينځه باندې غم کول واجب دي |

**تشريح** > وينځه که په عدت وفات يا طلاق بائن کښې وى نو په دې هم غم کول واجب دي.
**دليله** > ځکه چه وينځه د شريعت په هغه تولو حقوقو مخاطبه ده په کومو چه د مولى حق نه باطليږى. او غم کول داسې څيز دې چه په دې باندې دمولى حق نه باطليږى.

**په ام ولد اونکاح فاسد کښې دغم کولو حکم**

| |
|---|
| **وَلَيْسَ فِي عِدَّةِ النِّكَاحِ الْفَاسِدِ وَلَا فِي عِدَّةِ أُمِّ الْوَلَدِ إِحْدَادٌ** او د نکاح فاسد په عدت کښې او د ام ولد په عدت کښې احداد نشته |

**حل اللغة** > ① **احداد**: د خاوند په مرګ باندې د زينت پريخودل

**تشريح** > که دام ولد مولى ام ولد آزاده کړه اوهغه مړشو نو په ام ولد باندې دهغه په وجه غم کول واجب نه دي او که يوه ښځه په نکاح فاسده کښې جدا شوه نوددې په عدت کښې هم دغم کول نشته دې.
**دليله** > دليل دادي چه غم کول واجب وى د نکاح دنعمت په زوال باندې اودلته په دې ښځو کښې دچانکاح نه ده زائله شوې. چه په غم کولو سره دهغې اظهار اوکړى. اواصل دادې چه ښځه خپل ځان ښائسته ساتى يعنى غم نه کوى نو ځکه به (ددې ښځو په حق) کښې حکم په خپل ځائې اصل باقى وى.

**معتده ته دنکاح پيغام ليږل**

| |
|---|
| **وَلَا يَنْبَغِي أَنْ تُخْطَبَ الْمُعْتَدَّةُ** اومعتدې ته د کوېږدن پيغام ورکول مناسب نه دي **وَلَا بَأْسَ بِالتَّعْرِيضِ فِي الْخِطْبَةِ** اود کوېږدن په تعريض (اشاره) کولو کښې هيڅ باك نشته. **لِقَوْلِهِ تَعَالَى {وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَاءِ} إِلَى أَنْ قَالَ** ځکه د الله تعالى ارشاد دي. **(وَلَا جُنَاحَ...الآية)** تاسو باندې هيڅ ګناه نشته. چه (دې ذکر شوى) ښځو ته د (نکاح) پيغام ورکولو باره کښې څه خبره اشارةً اوکړئ. يا پخپل زړه کښې (اراده د نکاح) پټه اوساتئ. الله تعالى ته دا خبره معلوم ده. چه تاسو به ددې ښځو (ضرور) بيان شوې ذکر کوئ **{وَلَٰكِنْ لَا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا}** خو ددوى سره دنکاح وعده (او ګفتګو) مه کوئ. **{إِلَّا أَنْ تَقُولُوا قَوْلًا مَعْرُوفًا}** مګر دا چه کومه خبره د قاعدې موافق اوکړئ. **وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ {السِّرُّ النِّكَاحُ}** (١) نبى کريم ﷺ فرمانيلى دى. چه معنى د (سر) نکاح ده |

**حل اللغة** > ① **التعريض**: کنايه او اشارې سره د يوې خبرې اظهار کول

۷۲) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب واخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه .. عن الشعبي في قوله تعالى ولكن لاتواعدوهن سرا، لا يأخذ عليها عهداً وميثاقاً ان لا تتزوج غيره (نصب: ۳\۲۸۱)۔

**تعریح** امام ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائي چه معتده ښځو ته دنکاح پیغام ورکول مناسب نه دی

**دلیله** ځکه چه دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿وَلَا تَعْزِمُوْا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتّٰى يَبْلُغَ الْكِتٰبُ اَجَلَهٗ﴾ یعنی(معتده ښځو ته) دنکاح په اراده مه ورځئ تر دې چه دعدت زمانه ختمه شي. اود پیغام لیږلو په تعریض کښې څه قباحت نشته .دلیل دالله ﷻ قول دې چه ﴿وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا عَرَّضْتُمْ بِهٖ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ اَوْ اَكْنَنْتُمْ فِيْۤ اَنْفُسِكُمْ﴾ د آیت ترجمه دعبارت په ترجمه کښې تیره شوې ده.

**المراد من التعریض** تعریض دادې چه څه داسې څیز ذکر کړې شی چه په هغې سره په بل څیز دلالت کیدې شی .

**دلیله** حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائیلي دی چه تعریض دادې چه زه نکاح کول غواړم. یا اووائي چه زه غواړم چه ماته یوه نیکه بی بی ملاؤ شی.(۱)

**دمطلقه رجعیه اومبتوته اومتوفی عنها زوجها دپاره د کور نه دوتلو احکام**

| |
|---|
| وَلَا يَجُوْزُ لِلْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ وَالْمَبْتُوتَةِ الْخُرُوْجُ مِنْ بَيْتِهَا لَيْلًا وَلَا نَهَارًا او کومې ښځې ته چه طلاق رجعی ورکړې شو.یا بائنه ورکړې شو.( دې له) د خپل کور نه وتل په شپه یا ورځ کښې جائز نه دی |

**حل اللغة** ① **المبتوتة**: په طلاق بائن سره جدا شوې ښځه

**تعریح** مسئله داده چه کومې ښځې ته طلاق رجعي یا بائن ورکړې شوې وی نوهغه دې د ورځې یا د شپې دهغه کور نه بهرنه اوځی په کوم کښې چه دمفارقت په وخت کښې دا اوسیدله. البته که داپه وتلو باندې مجبوره شی لکه دکور پریوتلو ویره وی یا دخپل خان یا مال دلوټ کیدو ویره وی یامالك مکان دا اوباسی ځکه چه دا په کرایه باندې اوسیږی او اوس ئې د کرایه ورکولو طاقت نه کیږی نو څه خبره نه ده.

| |
|---|
| وَالْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا تَخْرُجُ نَهَارًا وَبَعْضَ اللَّيْلِ .او دچا چه خاوند مرشوې وی.هغه تولـه ورځ اوڅه د شپې پورې وتلې شی وَلَا تَبِيْتُ فِيْ غَيْرِ مَنْزِلِهَا .(لیکن) د خپل کور نه علاوه کښې به شپه نه تیره وی |

**تعریح** اودمتوفی عنها زوجها دپاره په توله ورځ کښې اودشپې په څه حصه کښې دکور نه دوتلو اجازت په شریعت کښې شته دې البته داده چه دعدت شپې به هم په خپل کور کښې تیروی په بل ځائي کښې به نه تیروی.

**دلیل احداد المطلقة** دمطلقه ښځې دپاره دکور نه دبهر وتلو دلیل دالله ﷻ ارشاد دې چه ﴿يٰۤاَيُّهَا النَّبِيُّ اِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوْهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَاَحْصُوا الْعِدَّةَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ رَبَّكُمْ ۚ لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُيُوْتِهِنَّ وَلَا يَخْرُجْنَ اِلَّاۤ اَنْ يَّاْتِيْنَ بِفَاحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ﴾ یعنی تاسو دالله ﷻ نه ویریږئ چه ستاسو رب دې او تاسو دابنځې د اوسیدو دکورونو نه مه اوباسئ(ځکه چه سکنی د مطلقه دمنکوحه پشان واجب ده) او نه دې دغه ښځې په خپله اوځی البته دا چه په ښکاره بې حیایئ راتگ اوکړی نودا بیله خبره ده. مثلا زنا ئې کړې وی یا دغلا دسزا دپاره بهر ته اوویستلې شی یادبعضې عالمانو د وینا مطابق ژبه ئې اوږده وی او هر وخت غم اوجګړې کوی.نوددې ویستل جائز دی (بیان القرآن).

(۷۳) اخرجه البخاری فی النکاح باب ۳٤ ) بلفظ إنی أرید التزویج ،ولوددت انه تیسر لی إمراة صالحة)–

**دلیل احداد المتوفي عنها>** دمتوفی عنها زوجها په ورځ کښې او دشپې په څه حصه کښې دکور نه د وتلو په اجازت باندې دلیل دا دې.چه متوفی عنها زوجها دپاره نفقه نه وی. نوځکه دطلب معاش په غرض ددې دپاره دکور نه دوتلو ضرورت پېښیږی.اوبعضې وخت په کارکولو کښې شپه شی. او څه حصه تیره شی نو ځکه ورته د ورځې سره دشپې په څه حصه کښې دبهر ایساریدو اجازت ورکړې شوې دې.

**په فرقت واقع کیدونکی کور کښې عدت تیرول**

| |
|---|
| وَعَلَى الْمُعْتَدَّةِ أَنْ تَعْتَدَّ فِي الْمَنْزِلِ او په معتده باندې واجب دی.چه په هغه کورکښې عدت تیر کړی الَّذِي يُضَافُ إِلَيْهَا بِالسُّكْنَىٰ حَالَ وُقُوعِ الْفُرْقَةِ کوم چه ددې طرف ته په اوسیدو سره منسوب کولې شی.د جدایئ په وخت |

**حل اللغة>** ① المنزل:کور ② الفرقة:جدائی ]

**تشریح>** مسئله داده چه معتده ښځه چه د خاوند دمرګ په وخت کښې اود فرقت واقع کیدو په وخت کښې په کوم کور کښې اوسیدله نو هم په هغې کښې به عدت تیروی.

**دلائله>** ① دلیل دادې چه الله ﷻ فرمائی ﴿لَا تُخْرِجُوهُنَّ مِنْ بُيُوتِهِنَّ﴾ اودښځې کور هغه دې په کوم کښې چه اوسیږی.اوسکنی یعنی اوسیدل عام دی.که په طریقه دملکیت وی او که په استعاره وی اوکه په کرایه وی. هم دا وجه ده که ښځه خپلې مور کره تلې وی او خاوند هم هلته دې ته طلاق ورکړلو نو په دې ښځه واجب دی چه واپس خپل کور ته راشی اوعدت په هغې کښې تیرکړی.② اونبی کریم ﷺ هغه ښځې ته چه خاوند ئې شهید شوې وو. اوفرمائیل ﴿اُسْكُنِي فِي بَيْتِكِ حَتَّى يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ﴾ (۱) چه ته هم خپل دې کور کښې اوسیږه تردې چه الله ﷻ د حکم مطابق ستا عدت پوره شی.

**دوارثانو ښځې لره دکور نه ویستل**

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ نَصِيبُهَا مِنْ دَارِ الْمَيِّتِ لَا يَكْفِيهَا اوکه د مرشوی خاوند په کورکښې ددې ښځې حصه ددې دپاره ناکافی وی وَأَخْرَجَهَا الْوَرَثَةُ مِنْ نَصِيبِهِمْ او وارثان دا د خپلې حصې نه اوباسی انْتَقَلَتْ نودا ښځه دې منتقل شی |

**حل اللغة>** ① نصیب:حصه

**تشریح>** مسئله داده چه دخاوند په کورکښې دښځې دمیراث حصه دومره وی چه دا په هغې کښې اوسیدې نشی.او نور واراثان هم خپله حصه کښې د اوسیدو اجازت نه ورکوی. نو په دې صورت کښې دا ښځه بل کورته منتقل کیدېشی.

**دلیله>** دلیل دادې چه ددې وتل دعذر په وجه دی.اوپه عباداتو کښې عذر متعبر دې . نوځکه دلته هم عذر معتبر دې. اوپه دې باندې یودلیل دا دې.چه د حضرت عمر فاروق ؓ دشهادت نه پس حضرت علی ؓ خپله لور ام کلثوم ؓ دعدت دکور نه منتقل کړې وه. او دا ئې اوفرمائیل چه حضرت عمر فاروق ؓ دخلیفه کیدو په وجه په سرکاری کور کښې اوسیدلو او د دوئ د وفات نه پس داکور د دویم خلیفه حضرت عثمان ؓ په استعمال کښې راغلو.ددې وجې دحضرت ام کلثوم ؓ (زوجه عمر فاروق ؓ ) دده کور نه دوتلو ضرورت پیښ شو. (عینی شرح هدایه).

---

(۱) من حدیث فریعة بنت مالک بن سنان اخرجه ابوداود فی الطلاق باب ٤٤ رقم ٢٣٠٠ والترمذی فی الطلاق باب ٣٢ رقم ١٢٠٤ والنسائی فی الطلاق باب ٦٠ رقم ١٣٠ وابن ماجه فی الطلاق باب ٨ رقم ١٣٠٢ والدارمی فی الطلاق باب ٤١).

وَلَا یَجُوْزُ اَنْ یُّسَافِرَ بِالْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِیَّةِ اوجائز نه دی چه سفر اوکړی په مطلقې رجعیې باندې

**تشریح** خاوند خپل ځان سره مطلقه رجعیه باندې سفرنشی کولی.

**دلیله** دلیل دا دې چه الله تعالی فرمائیلی دی. (لَا تُخْرِجُوْهُنَّ مِنْ بُیُوْتِهِنَّ) ددې آیت په باره کښې د تفسیر داامامانونه منقول دی.چه دا د مطلقه رجعیه په باره کښې نازل شوې دې.ترجمه به دا شی.چه مه اوباسئ هغه ښځې چه طلاق رجعی مو ورته ورکړې وی.دهغوی دکورونونه،نوددې آیت نه ثابته شوه.چه دخاوند دپاره دوی لره دکور نه وېستل جائزنه دی.

**د طلاق بائن نه پس دوباره نکاح او د دخول نه وړاندې طلاق ورکول**

وَاِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ طَلَاقًا بَائِنًا اوکه سړی خپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړو ثُمَّ تَزَوَّجَهَا فِی عِدَّتِهَا بیا ئې ددې په عدت کښې ددې سره نکاح اوکړله وَطَلَّقَهَا قَبْلَ اَنْ یَّدْخُلَ بِهَا او ددې سره ددخول نه وړاندې ئې دې ته طلاق ورکړو فَعَلَیْهِ مَهْرٌ کَامِلٌ وَعَلَیْهَا عِدَّةٌ مُّسْتَقْبَلَةٌ [1] نو په خاوند باندې (ددې) پوره مهر او په ښځه باندې مستقلاً (جدا) عدت واجب دې

**تشریح** صورت د مسئلې دادې چه سړی خپلې ښځې ته طلاق بائن ورکړلو او بیا ئې ورسره دهغې په عدت کښې دوباره نکاح اوکړله. دوطی او خلوت صحیحه نه وړاندې ئې ورته بیا طلاق ورکړلو نو په دې باره کښې دشیخینو رحمهما الله په نیز د دویمې نکاح په وجه په خاوند باندې پوره مهر اوپه ښځه باندې مستقل دویم عدت واجب دې.

**دلیلهما** د شیخینو رحمهما الله دلیل دادې چه دا ښځه په حقیقت کښې د اولنۍ وطی په وجه دخپل خاوند په لاس کښې مقبوضه ده.او تر اوسه پورې داولنۍ وطی اثر یعنی عدت هم باقی دې. نو هرکله چه خاوند دعدت په زمانه کښې تجدید دنکاح اوکړلو.حالانکه دا ښځه په اولنۍ نکاح کښې د دخول په وجه مقبوضه وه. نوهغه قبضه چه په اولنۍ نکاح کښې ددخول په وجه وه دا به ددې دویمې نکاح د قبضه واجبه قائمقام شی نو هرکله چه ورته ده طلاق ورکړو نو داسې شوه. لکه چه ده په دویمه نکاح کښې هم د دخول نه پس طلاق ورکړو. ددې وجې به په خاوند باندې پوره مهر اوپه ښځه باندې مستقل دویم عدت واجب وی.

**نظیره** ددې نظیر دادې چه غاصب دمالك نه هغه مغصوب څیز واخستلو. کوم چه دغاصب په قبضه کښې وو نو په دې صورت کښې غاصب صرف د بیع دعقد په وجه قبضه کونکې شو . د نوې قبضې ضرورت نشته دې. څکه چه کومه قبضه په حالت د غصب کښې وه هم ددې قائمقام شوه کومه چه په بیع باندې واجب شوه. نو ثابته شوه چه ددویمې نکاح نه پس طلاق بعد الدخول شو قبل الدخول نشو.

**مسلك محمد** د امام محمد رحمه الله په نیز خاوند باندې نیم مهر واجب دې اوپه ښځه باندې بیخی عدت واجب نه دې نه اولنی او نه دویم.

**دلیله** دامام محمد رحمه الله دلیل دادې چه دویمه نکاح کښې کوم طلاق ورکړې شوې وی هغه دوطی او خلوت صحیحه نه وړاندې ورکړې شوې وی. او په طلاق قبل الوطی او قبل الخلوت کښې نه په خاوند باندې پوره مهر واجبیږی اونه په ښځه باندې عدت واجبیږی نو په خاوند باندې به نیم مهر واجبیږی

[1] القول الراجح هو قول الشیخین رحمهما الله کذا فی ردالمحتار(۲\۶۶۶) والبحرالرائق (۱۴\۱۴۸) والعنایة (۱۴\۱۵۶)نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۷۲)-

پوره نه او په ښځه به دنوی عدت پوره کول واجب نه وي بلکه اولني عدت پوره کول واجب وي.
مسلک زفر> امام زفر رحمه الله فرمائي چه عدت هډو شته نه او دليل دا بيانوي چه د دويمي نکاح په وجه اولني عدت ساقط شو نو هغه واپس نه واجبيږي
دليله> ځکه چه قاعده ده (الساقط لا يعود) او دويم عدت نه واجبيږي. ځکه چه طلاق قبل الدخول واقع شوي دي.اودطلاق قبل الدخول په وجه په ښځه باندې عدت واجب نه وي. دامام زفر رحمه الله د دليل جواب وړاندې تير شوي دي. هغه اوګورئ.

## د مطلقه رجعيه د دوه کاله پس پيداشوي بچي نسب

| |
|---|
| وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُطَلَّقَةِ الرَّجْعِيَّةِ چه کومې ښځې ته طلاق رجعي ورکړې شو.ددې د بچي نسب به ثابت وي. إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِسَنَتَيْنِ أَوْ أَكْثَرَ په دې شرط چه دې بچي دوه کاله يا ددوه کالونه په زياتې کښې راوړلې وي ( پيداشوې وي). مَا لَمْ تُقِرَّ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا چه ترکومې پورې ښځې دخپل عدت تيريدلو اقرار نه وي کړې. |

تشريح> صورت د مسئلې دادې.چه يوسړي خپلې ښځې ته طلاق رجعي ورکړلو.بيا ددې ښځې د طلاق د وخت نه دوه کاله پس بچي پيدا شو.نودا خاوند به ددې بچي نسب ثابت وي.په دې شرط چه ښځې دعدت تيريدلو اقرار نه وي کړې.
دليله> دليل دادې.چه کيدلې شي.دا ښځه ممتده طهر والاوي.اود طهر اوګديدلو په وجه ددې عدت اوګد شوي وي.او خاوند دعدت په زمانه کښې وطی کړې وي.ځکه چه د معتده رجعيه ښځې سره وطی حلال ده.نو په دې سره به رجعت هم ثابت شي.اود بچي نسب به هم ثابت وي.

| |
|---|
| وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ اوکه دې ښځې د دوه کالو نه په کم کښې بچي راوړلې وي بَانَتْ مِنْ زَوْجِهَا نودا به د خپل خاوند نه بائنه وي. |

تشريح> اوکه د دوه کاله نه په کمه موده کښې ماشوم پيدا شو.نو ښځه به په خپل خاوند باندې بائنه شي.او ددې بچي نسب به ددې د خاوند نه ثابت شي.
دليله> بائنه به ځکه شي.چه د وضع حمل په وجه بائنه کيږي.

| |
|---|
| وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَكْثَرَ مِنْ سَنَتَيْنِ .اوکه دې ښځې د دوه کالو نه په زيات کښې بچي راوړ ړو ثبت نسبه او نسب ئې ثابت شو وَكَانَتْ رَجْعَةً .نو دا به رجعت وي |

تشريح> اوکه بچي د طلاق د وخت نه د دوه کاله مودې نه زيات کښې پيدا شو.نو بلاشبه به رجعت ثابت وي. ځکه چه په دې صورت کښې به علوق يقيناً د طلاق نه پس وي.
دليله> ځکه چه د حمل اکثره موده دوه کاله ده. اوښکاره حال هم دادې.چه دا علوق به هم ددې سړي نه شوې وي.ځکه چه د ښځې دطرفه نکاح منتفي ده.نو هرکله چه د عدت په زمانه کښې د مطلقه رجعيه سره وطی شوې وي.نودا کس به ددې وطی په وجه مراجعت کونکې شمارلې شي.

## دطلاق بائن يا درې طلاق واقع کيدلونه پس د دوه کاله نه په کمه موده کښې بچي پيدا کيدل

| |
|---|
| وَالْمَبْتُوتَةُ يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا اوکومې ښځې ته چه طلاق بائن ورکړې شو.ددې د بچي نسب به ( دخاوند) نه ثابتيږي. إِذَا جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سَنَتَيْنِ چه کله دې د دوه کاله نه په کم کښې راوړلې وي |

**حل اللغة** > ① سنتين:تثنيه د سنة، کال

**تشريح** > مسئله داده.که يوې ښځې ته يوطلاق بائن يا درې طلاقه رجعي ورکړې شو.او بيا د فرقت د وخت نه دوه کاله نه کمه موده کښې بچې پيداشو.نو ددې بچي نسب به ددې مطلقه بائنه د خاوند نه ثابت وي.

**دليله** > دليل دادې.چه دا احتمال موجود دې.چه د طلاق په وخت د بچي نطفه جوړه شوې وي.نو ددې خبرې يقين نشته.چه د نطفې جوړيدلو نه وړاندې د ښځې فراش صحيح کيدل زائل شوى وو.نو احتياطاً به نسب ثابت وي.

| |
|---|
| واذاجاءَتْ بِهِ لِتَمامِ سَنَتَيْنِ مِنْ يومِ الفُرْقَةِ اوکه چې د ښځې د فرقت د ورځ نه پوره په دوه کاله باندې بچي راوړلو لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ نو نسب به نه ثابتيږي |

**تشريح** > که د فرقت د وخت نه په پوره دوه کاله باندې بچې پيدا شو.نونسب به نه ثابتيږي.ځکه چه په دې صورت کښې حمل باليقين د طلاق نه پس پيدا شوې دې.

**دليله** > ځکه که د طلاق نه مخکښې دحمل پيدا کيدل اومنلې شي.نود حمل موده به دوه کالو نه زياته شي.حالانکه دا باطل دې.نو هرکله چه حمل بعد الطلاق پيدا شو.اود سړي مطلقه بائنه سره وطى کول حرام دى.نوثابته شوه.چه دا حمل ددې سړي د نطفې نه نه دې پيدا شوې.اوهرکله چه حمل دده دنطفې نه نه دې.نو دده به نسب هم ثابت نه وي.

| |
|---|
| إِلَّاأَنْ يَدَّعِيَهُ الزَّوْجُ البته که دا( خاوند) ددې مدعى وي |

**تشريح** > که دا کس ددې دعوى کوي.چه دا بچې هم زما د نطفې نه پيدا شوې دې.نو دده نه به نسب ثابت شي.اګرچه بچې د فرقت د وخت نه دوه کاله نه زياته موده کښې پيدا شوې وي.

**دليله** > دليل دادې.چه دې سړي ددې بچي نسب پخپله خپله ذمه باندې لازم کړې دې.او ددې يوه شرعي توجيه دا هم کيدلې شي.چه دې سړي د عدت په زمانه کښې دحلال په خيال سره دې معتده بائنه سره وطى کړې وي.اوچونکه د نسب په ثبوت کښې احتياط کولې شي.په دې وجه په دې صورت کښې هم نسب ثابتيږي.والله اعلم بالصواب

**د کمندې ښځې په دوه کاله کښې د پيدا شوي بچي نسب**

| |
|---|
| وَيَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِ الْمُتَوَفّٰى عَنْهَا زَوْجُهَا مَا بَيْنَ الْوَفَاةِ وَبَيْنَ سَنَتَيْنِ اود ،،متوفى عنها زوجها،، د بچي نسب به د وفات ( د وخت) نه په دوه کاله کښې دننه ثابتيږي |

**تشريح** > صورت د مسئلې دادې.چه دکومې ښځې خاوند مړشو.که دا صغيره وي.نو ددې دبچي نسب به ثابت وي.په دې شرط چه د لسومياشتو اود لسو ورځو نه په کم کښې پيدا شوې وي.او که ددې نه په زياته موده کښې پيداشو.نود طرفينو رحمهما الله په نيز به نسب نه ثابتيږي.البته د امام ابويوسف رحمه الله په نيز ثابتيږي.اوکه ،،متوفى عنها زوجها،، صغيره وي.نو ددې د بچي نسب به د خاوند د وفات نه دوه کاله کښې ثابتيږي.

**د معتده د عدت تيريدلو اقرارنه د شپږ مياشتو نه**
**په کمه موده کښې د پيداشوي بچي نسب**

| |
|---|
| وَإِذَااعْتَرَفَتِ الْمُعْتَدَّةُ بِانْقِضَاءِ عِدَّتِهَا اوهرکله چه معتده دخپل عدت تيريدلو اقرار اوکړو ثُمَّ جَاءَتْ بِوَلَدٍ |

**وَلِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ** بيا دي (د اقرار د وخت نه) د شپږ میاشتو نه په کم کښې بچې راوړو **ثَبَتَ نَسَبُهُ** نو ددې بچې نسب به ثابت وي

**حل اللغة** ① **النسبة:** پوره کیدل

**تشریح** صورت د مسئلې دادې.چه معتدې او وئیل.زما عدت تیرشو.بیا ددې د اقرار د وخت نه د شپږ میاشتو نه په کمه موده کښې بچې پیدا شو.نو ددې بچې نسب به ثابت وي.

**دلیله** دلیل دادې.چه هرکله د اقرار د وخت نه د شپږ میاشتو نه په کمه موده کښې بچې پیداشو.نو معلومه شوه.چه د اقرار په وخت دا معتده حامله وه.اوچونکه د حامله عدت وضع د حمل وي.په دې وجه به دا معتده د عدت تیریدلو په اقرارکښې دروغژنه وي.نوچه په اقرار کښې دروغژنه ده.نو اقرار به باطل وي.او هرکله چه د عدت په تیریدلو کښې اقرار باطل شو.نود بچې نسب به ثابت وي.

**وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ** اوکه دې په شپږ میاشتو کښې بچې راوړو. **لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ** نو نسب به نه ثابتیږي

**تشریح** او که د اقرار د وخت نه پوره شپږ میاشتوکښې بچې پیدا شو.نو په دې وجه به د اقرار د بطلان یقین نه کیږي.

**دلیله** ځکه چه د اقرار باطلیدو مونږ ته علم نشته. ځکه چه د اقرار نه پس د حمل پیداکیدلو احتمال دې

## د معتده بچې پیدا کیدل اوددې نسب

**وَإِذَا وَلَدَتِ الْمُعْتَدَّةُ وَلَدًا** اوکله چه یوې معتدې بچې راوړو **لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ** نو ددې نسب به نه ثابتیږي **عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله (١) د ابوحنیفه رحمه الله په نیز **إِلَّا أَنْ يَشْهَدَ بِوِلَادَتِهَا رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ** مگر داچه ددې (بچې) د پیدا کیدو دوه سړي یا یوسړې او دوه ښځې گواهي ورکړي **إِلَّا أَنْ يَكُونَ هُنَاكَ حَبَلٌ ظَاهِرٌ أَوِ اعْتِرَافٌ مِنْ قِبَلِ الزَّوْجِ** خوکه حمل ښکاره وي.یا د خاوند د طرفه اقرار بیاموندې شي **فَيَثْبُتُ النَّسَبُ مِنْ غَيْرِ شَهَادَةٍ** نود گواهۍ نه بغیر به هم نسب ثابتیږي

**حل اللغة** ① **حبل:** امید،په رحم کښې بچې

**تشریح** **مسلک ابي حنیفة** صورت د مسئلې دادې.که د معتده ښځې بچې پیدا شو.او حمل مخکښې نه ښکاره وو.یا خاوند د حمل اقرار کړې وو.نو په دواړه صورتونوکښې به بغیر د شهادت نه نسب ثابت وي.او که د معتده ښځې بچې پیدا شو.او خاوند د پیدائش انکار اوکړلو.نود امام اعظم رحمه الله په نیز به نسب هغه وخت ثابتیږي.چه کله د بچې په پیدائش باندې دوه سړي یا یو سړې او دوه ښځې گواهي ورکړي.

**دلیله** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دادې.چه هرکله ښځې د وضع حمل اقرار اوکړلو.نو ددې عدت تیرشو.او کوم څیز چه تیر شي.هغه حجت نشي کیدلې.حجت خو هغه وي.چه کوم موجود وي.نو د نوي سر نه د نسب ثابتولو ضرورت پیدا شو.په دې وجه د شهادت تامه کیدل به ضروري وي.او شهادت

---

(١) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٢\٢٧٤) وردالمحتار(٢\٦٨٠) والهندية (١\٥٣٨) والبحرالرائق (٤\١٦٠) نقلا عن القول الراجح (١\٣٧٦)-

تامه دادي.چه دوه سړي ګواهي ورکړي.یا یو سړی او دوه ښځې ګواهي ورکړي.خوکه حمل ښکاره شو.یا خاوند د حمل اقرار اوکړو.نود کامل شهادت شرط نه دی.ځکه چه په دې صورت کښې خو نسب د پیدائش نه وړاندې ثابت شو.او پاتې شوه داچه دا بچې ددې ښځې نه پیدا شوې دې.نودا خبره د یوې ښځې په ګواهۍ سره ثابتیږي.

**الاشکال**> د حضرت امام صاحب رحمه الله په مذهب باندې دا اشکال کیدلې شي.چه د نسب د اثبات دپاره د سړي شهادت شرط ګرځول.ځنګه درست دی.حالانکه د سړي ښځې طرف ته کتل حرام دي؟

**الجواب عنه**> نوجواب دادې.چه کتل ضروري نه دي.بلکه بغیر د کتلو نه هم ګواهي ورکول ممکن دی.په دې طریقه چه دا ښځه د دوه ګواهانو مخکښې یې کمرې ته داخل شوه.او ګواهانو ته ددې خبرې علم دې.چه په دې کمره کښې ددې ښځې نه سوا بل څوك نشته.بیا دا ښځه د یوماشوم سره راؤ وتله.نود شهادت اداکولو دپاره دومره قدرې هم کافي ده.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ رحمهما الله.او صاحبین رحمهما الله فرمائي يَثْبُتُ فِي الْجَمِيعِ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ چه په ټولو صورتونو کښې د یوې ښځې په ګواهۍ سره نسب ثابتیږي |

**تشریح**> **مسلك الصاحبین**> صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه په ټولوصورتونوکښې د یوې آزادې مسلمانې عادلې ښځې په ګواهۍ باندې نسب ثابتیږي.که د مخکښې نه حمل ښکاره وي.او که نه.او خاوند دحمل اقرار کړې وي.او که نه.امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.اود امام شافعي رحمه الله په نیز دڅلورو ښځو ګواهي شرط ده.اود امام مالك اود ابن ابي لیلی رحمهما الله په نیز د دوه ښځو په ګواهۍ باندې نسب ثابتیږي.

**دلیلهما**> د دوی دلیل دادې.چه دعدت موجود کیدلو په وجه ښځه دخپل خاوند فراش دې.او فراش کیدل نسب لازم کوي.نود نسب ثابتولو هیڅ ضرورت پاتې نشو.البته دا ضرورت شته.چه دا بچې هم ددې ښځې نه پیدا شوې دې.نودا خبره د یوې ښځې په ګواهۍ سره ثابتیږي.لکه چه د نکاح قائمیدلو په صورت کښې بالاتفاق د یوې ښځې په ګواهۍ سره د ولد تعین کیږي.

## د نکاح نه شپږ میاشتې نه په کمه موده کښې د پیدا شوي بچي نسب

| |
|---|
| وَإِذَا تَزَوَّجَ الرَّجُلُ امْرَأَةً اوکه سړي یوې ښځې سره نکاح اوکړله فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مُنْذُ يَوْمِ تَزَوَّجَهَا نود نکاح د ورځ نه د شپږ میاشت نه په کم کښې دې بچې راؤړو لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ نو ددې ( بچي) نسب به ثابت نه وي |

**تشریح**> صورت د مسئلې دادې.که یو سړي د یوې ښځې سره نکاح اوکړله.نود نکاح د وخت نه د شپږ میاشتو نه په کمه موده کښې ددې ښځې بچې پیدا شو.نو ددې بچي نسب به ددې سړي نه ثابت نه وي.

**دلیله**> دلیل دادې.چه د حمل کم ازکم موده شپږ میاشتې ده.او بچې د شپږ میاشتو نه په کمه موده کښې پیدا شو.نو معلومه شوه.چه نطفه د نکاح نه وړاندې پیدا شوې وه.نو ثابته شوه.چه دا نطفه ددې خاوند نه نه ده.او هرکله چه نطفه ددې سړي نه نه ده.نو په دې سره به نسب هم نه ثابتیږي.او که د نکاح د وخت نه د شپږ میاشتو نه په زیاته موده کښې بچې پیدا شو.نو ددې بچي نسب به دده نه ثابت وي.که خاوند ددې بچي اقرار اوکړي.او که خاموش پاتې شي.ځکه چه د ښځې فراش کیدل ثابت دې.اود حمل موده هم پوره ده.

| |
|---|
| وَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِسِتَّةِ أَشْهُرٍ فَصَاعِدًا اوکه ( د نکاح دوخت نه) په شپږو میاشتو باندې یا ( ددې نه ) په |

زیاتو باندې ئې بچې راوړو يَثْبُتُ نَسَبُهُ نود خاوند به ددې نسب ثابت وی إِنْ اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ أَوْسَكَتَ که خاوند ددې اقرار اوکړی.اوکه خاموش پاتې شی

تعریح> که بچې په شپږ میاشتو یا ددې نه په زیاته موده کښې پیدا شو.خو خاوند د بچی پیدا کیدلو انکار اوکړلو.نو که یوه ښځه د بچی پیدا کیدلو گواهی ورکړی.نو ددې په شهادت سره به پیدائش ثابت شی. تردې که خاوند ددې بچی نفی اوکړله.او وې وئیل.چه دا بچې زما د نطفې نه نه دې پیدا.نو خاوند به خپلې ښځې سره لعان کوی.

دلیله> دلیل دادې.چه د ښځې د فراش کیدلو په وجه د بچی نسب ثابت شو.او پاتې شو د پیدائش انکار،نودا دیوې ښځې په گواهئ سره ثابت شو.

فَإِنْ جَحَدَ الْوِلَادَةَ بیا که خاوند د ولادت انکار اوکړو يَثْبُتُ بِشَهَادَةِ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ تَشْهَدُ بِالْوِلَادَةِ نو( ولادت به) ثابتیږی.د یوې ښځې په گواهئ سره کومه چه د ولادت شاهده وی

تعریح> مسئله ښکاره ده

**د حمل کم نه کم اود زیات نه زیاته موده**

وَأَكْثَرُ مُدَّةِ الْحَمْلِ سَنَتَانِ چه دحمل اکثره موده دوه کاله ده

تعریح> د حمل زیات نه زیاته موده دوه کاله ده.

دلیله> دلیل دادې.چه د حضرت عائشه رضي الله عنها قول دې.فرمائی.چه بچې د مور په خیټه کښې دوه کاله نه زیات نه پاتې کیږی.اگرچه د میچن د لاسکی د سوری په اندازه وی.(۱) او ښکاره هم داده.چه حضرت عائشه رضي الله عنها دا د نبی کریم ﷺ نه اوریدلی وی.او بیان کړې ئې وی.

وَأَقَلُّهُ سِتَّةُ أَشْهُرٍ اود حمل کم ازکم موده شپږ میاشتې ده.

تعریح> اود حمل کم نه کمه موده بالاتفاق شپږ میاشتې ده. (۱)

دلیله> دلیل د قرآن آیت ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ دې.یعنی په حمل کښې د پاتې کیدلو اود پیو پریخودلو موده دیرش میاشتې ده.بیا الله تعالی فرمائی ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ یعنی د بچی پئ پریخودل په دوه کاله کښې کیږی.نود حمل موده شپږ میاشتې پاتې شوه.

د علامه مرغینانی رحمه الله په کلام کښې تناقض دې.په دې طریقه چه په کتاب الرضاع کښې د امام صاحب رحمه الله دلیل بیانولوکښې بیان شوی وو.چه په حمل او فصال دواړو کښې د هریو موده دیرش میاشتې ده.خود حمل په موده کښې منقص موجود دې.یعنی د عائشه رضي الله عنها حدیث چه(الولد لایبقی فی البطن أكثر من سنتين) یعنی هلته کښې ئې دا موده په دواړو باندې نه وه تقسیم کړې.بلکه په دواړو کښې د هریو موده دیرش میاشتې مقرر کړې شوې وې.اود عائشه رضي الله عنها په حدیث سره د حمل په موده کښې کمې کړې شوې وو.او دلته کښې ئې چه هم هغه آیت پیش کړلو.نو په حمل اوفصال دواړو ئې دا موده

(۱) اخرجه الدارقطني في سننه (۳۲۲۳) رقم ۰۸۲ والبيهقي في السنن الكبرى (۷۸۲۷) رقم (۲۵۵۵۱)-

(۱) مسلك الائمه:- د امام شافعی او امام مالک رحمه الله په نیز د حمل زیاته موده څلور کاله دی.

تقسیم کړله.په دې طریقه چه شلېرېشت میاشتې ئې د فصال موده مقرر کړې ده.دآیت ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ په وجه.او باقي شپږ میاشتې ئې د حمل اقله موده ګرځولې ده.
په اصل کښې د حمل اقله موده بیانولوکښې علامه مرغیناني رحمه الله چه ددې مسئلې په تشریح کښې په هدایه کښې کومه طریقه اختیار کړې ده.دا دابن عباس رضي الله عنهما تاویل دې.لکه چه نقل دی.چه (أن رجلا تزوج امرأة فولدت لستة أشهر فهم عثمان برجمها فقال ابن عباس رضي الله عنهما أما انها لو خاصمتكم بكتاب الله تعالى لخصمتكم قال الله تعالى ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ وقال ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ (فلم يبق للحمل إلا ستة أشهر فدرأ عثمان الحد عنها)(فتح القدير) یو سړی د یوې ښځې سره نکاح اوکړله.په شپږمه میاشت ددې ښځې بچې پیدا شو.نو حضرت عثمان رضي الله عنه دده د سنګسار کولو اراده اوکړله.نو ابن عباس رضي الله عنهما اوفرمائیل.که دا ښځه تاسو سره د کتاب الله په ذریعه جګړه کوی.نو زه هم تاسو سره جګړه کوم.الله تعالی فرمائی. ﴿وَحَمْلُهُ وَفِصَالُهُ ثَلَاثُونَ شَهْرًا﴾ او فرمائی. ﴿وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ﴾ نو حمل موده صرف شپږ میاشتې پاتې شوه.حضرت عثمان رضي الله عنه (چه دا واوریدل) نو ددې ښځې نه ئې حدلرې کړلو.نود حضرت عثمان رضي الله عنه حد دفع کول،اود هیڅ یو صحابي مخالفت نه کول،د اجماع دلیل دې.بهرحال که د ابن عباس رضي الله عنهما د تاویل مطابق استدلال اوکړې شی.لکه څنګه چه دلته کښې شوې دې.نو په ،،کتاب الرضاع،، چه کومه طریقه اختیارشوې ده.هغه به باطل شی.حاصل داچه په مصنف رحمه الله باندې د تناقض اشکال ختم نشو.

**د ذمي ذمیه ته طلاق ورکولو باندې دعدت حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا طَلَّقَ الذِّمِّيُّ الذِّمِّيَّةَ اوکه ذمي ذمیه ته طلاق ورکړو فَلَا عِدَّةَ عَلَيْهَا .نو په ذمیه ښځه باندې عدت نشته |

**تشریح**> په دې عبارت کښې فرمائي چه ذمي خپلې ښځې ته طلاق ورکړو. نو دامام ابو حنیفه رحمه الله په نیز ښځه باندې عدت واجب نه دې.که ښځه نکاح کوی نوشرعًا صحیح ده. خوکه دا ښځه حامله وی نو نکاح صحیح نه ده.

**مسلک الصاحبین**> صاحبین رحمهما الله فرمائی چه په دې کښې په ښځه باندې عدت واجب دې.
صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی چه په ذمیه ښځه باندې دعدت په وجوب او عدم وجوب کښې دامام ابو حنیفه رحمه الله او صاحبینو رحمهما الله په نیز اختلاف داسې دې لکه څنګه چه په نکاح کښې وو. او دا اختلاف د دلائلو سره په (باب نكاح اهل الشرك) کښې تیر شوې دې.دا خیال ساتنی چه دامام ابو حنیفه رحمه الله قول په هغه صورت کښې دې چه د ذمیه اعتقاد داوی چه په ذمیه مطلقه باندې عدت نشته دې.

**د زنا حاملې ښځې سره د نکاح حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ تَزَوَّجَتِ الْحَامِلُ مِنَ الزِّنَا جَازَ النِّكَاحُ که نکاح ئې او کړو دَ زنا نه دَ حامله شوې ښځې سره نو جائز دې نکاح، وَلَا يَطَؤُهَا حَتَّى تَضَعَ حَمْلَهَا ()او وطئ به ورسره نه کوی ترحمل پیدا کیدو پورې، |

**تشریح**> په زنا سره که ښځه حامله شوې وی.نونود طرفینو رحمهما الله په نیز دې سره نکاح جائز ده.خو د وضع

---

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٣١٦/٢) ومجمع الأنهر(٣٢٩/١) نقلاً عن القول الراجح (٢٤٦/١)

حمل پورې وطی کول درست نه دي. (۱)

**دلیلهما** د طرفینو رحمهما الله دلیل دادې.چه ،حامله من الزنا، د محللاتو څنې ده.اود نص یعنی [وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ] نه ثابت ده.څکه چه ،حامله من الزنا،ذکر د محرماتو په بیان کښې اونکړې شو.اوکوم چه د محللاتو څنې وی.هغې سره نکاح جائز ده.نود ،حامله من الزنا،سره به هم نکاح جائز وی.خوکه تاسو ته دا اشکال پیدا شي.چه د ،حامله ثابت النسب، ذکر هم په محرماتوکښې نشته.نو څه وجه ده.چه داد [وَأُحِلَّ لَكُم مَّا وَرَاءَ ذَٰلِكُمْ] په حکم کښې داخل نکړې شوه.او،حامله ثابت النسب، سره نکاح جائز اونه گرځولې شوه.

**جواب** ،حامله ثابت النسب،د الله تعالی په قول [وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَابُ أَجَلَهُ] کښې داخل ده..یعنی اراده مه کوئ د نکاح،تردې چه خپل مقررعدت آخره پورې اورسي، مطلب دادې.که یوه ښځه د خاوند نه جدا شي.نو ترکومه پورې چه په عدت کښې وی.د هیڅ چا دپاره جائز نه ده.چه ددې سره نکاح اوکړی.او دا ښکاره ده.چه د حامله عدت وضع د حمل ده.نود وضع حمل نه مخکښې به نکاح نه کوی.(عینی شرح هدایه)

**الاشکال** خو سوال دادې.چه ،حامله من الزنا، چه هرکله د محللاتو څنې ده.نو بیا د نکاح واقع کیدلو نه پس وطی ولې حرام کړې شوه؟

**الجواب** وطی په دې وجه حرام کړې شوه.چه په خپلو اوبوسره د بل پټې اوبه کول، لازم نشی.څکه چه دا حرام دی.د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.[من کان یؤمن بالله والیوم الآخر فلا یسقی ماءه زرع غیره] یعنی کوم کس چه په الله اود آخرت په ورځ باندې ایمان لری.په خپلو اوبو سره دې د بل پټې نه اوبه کوی.مراد دادې.چه د حاملو سره دې وطی نه کوی.

**مسلک ابی یوسف** د امام ابویوسف رحمه الله په نیز د سره نکاح درست نه ده.اوکه حمل ،ثابت النسب، وی.مثلاً حامله، معتدة الغیر،ده.نو په دې صورت کښې نکاح په اتفاق سره باطل ده.اوکه یو کس د یوې ښځې سره زنا اوکړه.اودا ښځه په دې سره حامله شوه.بیا هم دې زانی ددې سره نکاح اوکړه.نو نکاح هم جائز ده.او وطی هم بالاتفاق حلال ده

**دلیله** د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دادې.چه حمل که ،ثابت النسب، وی.نود نکاح عدم جواز د حمل د احترام په وجه دې.او، حمل من الزنا، هم محترم دې.څکه چه د حمل د طرفه هیڅ جنایت نشته.جنایت چه څه هم دې.د زانی او مزنیه د طرفه دې.هم دغه وجه ده.چه حمل ساقطول ناجائز دی.البته زمونږ په زمانه کښې ساقطول جائز دی.(حاشیه هدایه)نو هرکله چه په اصل، یعنی په مقیس علیه کښې چه د نکاح دعدم جوازکوم علت دې.هم دغه علت په فرع یعنی په مقیس کښې هم موجود دې.نو بیا به په مقیس کښې هم د مقیس علیه حکم لګولې شي.یعنی د نکاح د عدم جواز علت مشترکه د حمل احترام دې.

---

۱ ،مسلک الشافعی:- امام شافعی رحمه الله د نکاح اود وطی د دواړو د جواز قائل دې.

# كِتَابُ النَّفَقَات

**ترجمه >** (دا) باب (د) نفقه (د وجوب په بيان كښې) دې .

**تشريح >** نفقه اسم دې.د اتفاق په معنى كښې دې.او په اصطلاح كښې نفقه د روزمره هغه خوراك دې.چه دا دژوند اوسيدلو دپاره برابر جارى پاتې شى.اود نفقه وجوب په څو سببونو باندې كيږى.من جمله د هغې نه زوجيت دې،نسب دې، ملك دې.د هر يو بيان په ترتيب سره ذكر كيږى.

**مفهوم النفقة >** په مخكينى باب كښې مصنف رحمه الله د بچى د پرورش حق بيان كړلو.اوهغه كسان ئې بيان كړل.چا دپاره چه د پرورش حق حاصل وى.ددې نه د فارغيدلو نه پس اوس په دې باب كښې د نفقه احكام،او په كوم كس چه نفقه واجب وى.هغه بيانوى.

**په خاوند باندې د نفقه وجوب**

| |
|---|
| اَلنَّفَقَةُ وَاجِبَةٌ لِلزَّوْجَةِ عَلٰى زَوْجِهَا چه د ښځې دپاره ددې په خاوند باندې نفقه واجب ده مُسْلِمَةً كَانَتْ كه دا ښځه مسلمانه وى أَوْ كَافِرَةً او كه كافره وى إِذَا سَلَّمَتْ نَفْسَهَا فِى مَنْزِلِهِ خوچه كله دا ښځه خپل ذات د خاوند په كور فَعَلَيْهِ نَفَقَتُهَا وَكِسْوَتُهَا وَسُكْنَاهَا نو په خاوند باندې ددې نفقه، لباس، او سكنى واجب ده |

**حل اللغة >** ① **كسوة:** جامې

**تشريح >** مسئله:د ښځې نفقه ددې په خاوند باندې واجب ده.كه ښځه مسلمانه وى.او كه كتابيه وى.په دې شرط چه دا خپل ځان د خاوند كورته اوسپارى.نو په خاوند باندې ددې نفقه، ددې كپړې،او ددې سكونت واجب دې.

**دلائله >** ① د نفقه په وجوب دليل دادې.چه الله تعالى فرمائيلى دى. ﴿لِيُنْفِقْ ذُوْ سَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ﴾ په آيت كښې امر بالاتفاق دې.او امر دوجوب دپاره راځى.او په دويم آيت كښې ئې حكم اوفرمائيلو. ﴿وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ﴾ په دې آيت كښې ،،على،، د الزام دپاره دې.

② د عرفه په ورځ د حجة الوداع په طويله خطبه كښې نبى كريم صلى الله عليه وسلم اوفرمائيل. (فاتقوا الله فى النساء فانهن عوان عندكم اخذتموهن بامانة الله واستحللتم فروجهن بكلمة الله ولكن عليهن ان لايوطئن فرشكم احدا تكرهونه فان فعلن فاضربوهن ضربا غير مبرح ولهن عليكم رزقهن وكسوتهن بالمعروف)(١) د ښځو په باره كښې د الله نه اوويريږئ.ځكه چه دوى تاسو سره قيد دى.تاسو دوى د الله تعالى په امانت سره اخستې دى.او تاسو ددوى شرمگاهونه د الله له حكم سره حلال كړى دى.اوستاسو دپاره په دوى واجب دى.چه ستاسو بسترې په يو داسې سړى باندې پائمال نكړى.چه تاسو ئې نه خوښوئ.كه دوى داسې اوكړل.نو دوى رو اووهئ.او ددوى دپاره په تاسو باندې ددوى خوراك،كپړه، د اعتدال په طريقه واجب دى.

③ عقلى دليل دادې.چه نفقه د محبوس كيدلو عوض دې.نوځوك چه د بل كس د مقصودى حق په وجه محبوس(قيد) شو.نو نفقه به هم په ده باندې واجب وى.نوچونكه ښځه هم د خپل خاوند دپاره محبوسه ده.نود ښځې نفقه به هم په خاوند باندې واجب وى.او ددې اصل قاضى دې.اوكوم كس چه د زكاة دپاره

---

٨٥) تقدم تخريجه فى الحج فى حديث جابر الطويل۔

عامل وي.ځکه چه دا دواړه د خپل ذات دپاره هيڅ کار نه کوي.بلکه د مسلمانانو مصالح پوره کوي.نود مسلمانانود عام حق، يعني د بيت المال نه د كفايت په اندازه وركول واجب دي.اوهم دا حكم د مفتي، او د وقف د متولي،اود وصي د وصيت، اوكافرانو سره د جنګ كونكي مسلمان دې.او چونكه په دې دلائلو كښې هيڅ تفصيل نشته.په دې وجه په نفقه كښې مسلمانه ښځه او كتابيه ټول برابر دي.

**الاشكال**> دلته كښې يوسوال كيدې شي.هغه داچه تاسو اوفرمائيل.د محبوس نفقه په ده واجب ده.چه ددې د حق په وجه دا محبوس شوې دې.حالانكه داسې نه ده.ځكه چه د رهن نفقه په راهن باندې واجب ده.حالانكه رهن د مرتهن د حق په وجه محبوس دې؟

**الجواب**> جواب دادې.چه مونږ دا منو.چه رهن د مرتهن سره محبوس دې. خودا نه منو.چه داصرف د مرتهن د حق په وجه محبوس دې.بلكه ځنګه چه د مرتهن مقصود حاصليږي .دغه شان د راهن مقصود هم حاصليږي.كه دين هلاك شي.نو راهن به د رهن په ذريعه دين ادا كوي.په دې وجه نفقه په مرتهن باندې واجب نه كړې شوه.

## نفقه او ددې مقدار

وَيُعْتَبَرُ ذٰلِكَ بِحَالِهِمَا جَمِيعًا اود نفقې په مقدار كښې به د خاوند اود ښځې د دواړو د حال اعتبار كولې شي مُوسِرًا كَانَ الزَّوْجُ أَوْ مُعْسِرًا برابره ده كه خاوند ئې مالدار وي او كه غريب وي مُعْسِرَةً او كه ښځه غريبه وي وَالزَّوْجُ مُوسِرًا او خاوند مالدار وي فَنَفَقَتُهَا دُونَ نَفَقَةِ الْمُوسِرَاتِ وَفَوْقَ نَفَقَةِ الْمُعْسِرَاتِ نود غريبې ښځې نه زيات اود مالداره ښځې نه كمه نفقه به واجب وي

**تشريح**> په دې عبارت كښې مصنف رحمه الله ددې مسئلې وضاحت كوي.چه په نفقه او ددې په مقدار كښې به په ښځه خاوند كښې د كوم يوكس حال معتبر وي؟ امام قدوري رحمه الله فرمائي.چه په ښځه خاوند كښې به د دواړوحال معتبر وي.صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه د امام خصاف رحمه الله غوره مذهب هم دا دې. او په دې باندې فتوى ده.

**توضيح قول خصاف**> اود امام خصاف رحمه الله د قول تفسير دادې.چه په دې كښې عقلي طورڅلور قسمونه دي.ځكه چه ښځه اوخاوند به دواړه مالداره وي.يا به دواړه غريبانان وي.او يا به خاوند مالداره وي. او ښځه به تنګدسته وي.يا به ددې په عكس وي.يعني خاوند به غريب وي.او ښځه به مالداره وي.په رومبي قسم كښې به د مالدارئ نفقه واجب وي.او په دويم قسم كښې به د غريبئ نفقه واجب وي.او په دريم اوڅلورقسم كښې به دښځې دپاره درميانه درجې نفقه واجب وي. يعني د مالداره ښځو د نفقه نه كمتر،اود غريبو ښځو د نفقه نه به زياته وي.

**دليله**> د امام خصاف د قول وجه هغه حديث دې.كوم چه امام بخاري رحمه الله روايت كړې دې.حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي. (ان هندا بنت عتبة (امراة ابي سفيان) قالت يا رسول الله ﷺ ان ابا سفيان رجل شحيح لايعطيني مايكفيني وولدي الا ما اخذت منه وهو لايعلم فقال خذي من مال زوجك يكفيك وولدك بالمعروف) ([1]) يعني هنده بنت عتبه ( د ابوسفيان ښځې) اووئيل.اې د الله رسوله ﷺ ! ابوسفيان ډير بخيل سړې دې.دې ماله دومره نه راكوي.چه زما او زما د اولاد كفايت اوكړي.مګر داچه زه بغير وئيلو واخلم؟ نو نبي كريم ﷺ

[1] ) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه البخاري وابوداود في البيوع ومسلم والنسائي في القضاء وابن ماجه في الأحكام (نصب:٣٩٨\٣)_

اوفرمائیل.چه ته د خپل خاوند د مال نه دومره قدري اخله.چه دا تاته اوستا اولاد ته د اعتدال په طور کفایت اوکړي.ددې واقعه نه معلومیږي.چه نبی کریم ﷺ د ښځې د حال اعتبار کړې دې.اود سجه خبره هم داده.چه د ښځې د حال اعتبار اوکړې شي.ځکه چه نفقه خو دکفایت په طور واجبیږي.اوکومه ښځه چه غریبه وي.دې ته د مالدارې ښځې کفایت پکار نه دې.نود زیاتوالي هیڅ فائده نشته.او ابوسفیان مالداره سړې وو.نوکه د سړي اعتبار کیدلې.نود فراغت د مقدار اخستلو حکم به نې ورکړې وو.

**القول الثاني** امام کرخی ﷫ فرمائي. چه د خاوند د حال اعتبار به کولې شي.د امام شافعي ﷫ هم دا قول دې.د امام کرخی ﷫ دلیل د الله تعالی [لِيُنْفِقْ ذُوْسَعَةٍ مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَمَنْ قُدِرَ عَلَيْهِ رِزْقُهٗ فَلْيُنْفِقْ مِمَّآ اٰتٰىهُ اللهُ ؕ] (سورة الطلاق) دې. یعنی مالداره به د خپل طاقت مطابق خرچ کوي.او تنګدست به د هغه مال نه خرچ کوي.کوم چه الله تعالی ده ته ورکړې دې.الله تعالی په دواړه حالتونوکښې د سړي د حال اعتبار کړې دې.اوده ته ئې د خرچ کولوحکم ورکړې دې.

**د ښځې نفقې حاصلولو دپاره خپل خاوند منع کول**

| |
|---|
| وَاِنِ امْتَنَعَتْ مِنْ تَسْلِيْمِ نَفْسِهَا اوکه ښځې د خپل ذات سپارلو نه انکار اوکړو حَتّٰى يُعْطِيَهَا مَهْرَهَا تردې چه خاوند دې ته ددې مهر ورکړي فَلَهَا النَّفَقَةُ نود ښځې دپاره نفقه واجب ده |

**حل اللغة** ① **تسليم**:سپارل،حواله کول

**تشريح** مسئله دا ده.که ښځې خپل ځان خاوند ته د سپارلو نه بند کړلو.تردې چه خاوند ددې مهرمعجل ادا کړي.نو په دې صورت کښې به د ښځې نفقه نه ساقطیږي.بلکه په خاوند به واجب وي.

**دليله** دلیل دادې.چه د ښځې خپل ځان منع کول، د خپل حق په وجه دی.نود احتباس فوت کیدل، په داسې وجه دی.چه د خاوند د طرفه پیدا شوې دې.نودا داسې شوه.لکه چه احتباس فوت نشو.او هرکله چه د ښځې د طرفه احتباس فوت نشو.نو ددې نفقه به هم نه ساقطیږي.

**د نافرمانه او سرکښې ښځې نفقه**

| |
|---|
| وَاِنْ نَشَزَتْ اوکه ښځې نافرماني او بغاوت اوکړو فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو ددې دپاره به نفقه نه وي حَتّٰى تَعُوْدَ اِلٰى مَنْزِلِهٖ تردې چه دا خپل خاوند کور ته واپس شي |

**حل اللغة** ① **نشزت**:د نشوز نه دې یعنی که ښځه د خاوند نافرماني کوي

**تشريح** مسئله داده.که ښځې نافرماني او سرکشي اوکړله.نو ددې دپاره به نفقه نه وي.تردې پورې چه دا سرکشي پریږدي.اود خاوند کور ته واپس راشي.

**دليله** ځکه چه دې خپل ځان محبوس کول د خپل ځان نه لرې کړې دې.یعنی نفقه ددې د احتباس په وجه واجب وه.اوکله چه دې احتباس پخپله ختم کړلو.نو نفقه به هم ساقط وي.

**د صغيره دپاره نفقه**

| |
|---|
| وَاِنْ كَانَتْ صَغِيْرَةً اوکه صغیره وي لَا يُسْتَمْتَعُ بِهَا چه دې سره جماع نشی کیدلې فَلَا نَفَقَةَ لَهَا نو ددې دپاره نفقه نشته. وَاِنْ سَلَّمَتْ اِلَيْهِ نَفْسَهَا اګرچې سپارلي ئې وي هغه ته نفس خپل |

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.که ښځه دومره صغیره وي.چه دې سره جماع نشی کیدلې.نو ددې دپاره به په خاوند باندې نفقه واجب نه وي.که دا د خاوند په کورکښې وي.اوکه د خاوند په کور کښې

نه وي.تردې چه د جماع قابله شي. (١)

**دليله** دليل دادې.چه د جماع ممتنع كيدل په داسې وجه سره دي.كوم چه په ښځه كښې موجود دې.يعنې د صغيره خپل ځان خاوند ته نه سپارل، نو صغيره داسې شوه.لكه ناشزه (نافرمانه) او كوم احتباس چه نفقه واجبوي.هغه دادې.چه د نكاح د مقصود(جماع يا دواعي د جماع) حاصلولو وسيله وي.او داسې احتباس موجود نشو.په دې وجه د صغيره دپاره په دې خاوند باندې نفقه هم واجب نه ده.په خلاف د بيمارې ښځې. چه ددې نفقه نه ساقطيږي.ددې تفصيل به عنقريب بيان كړې شي.ان شاءالله

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ الزَّوْجُ صَغِيرًا او كه خاوند صغير وي لَا يَقْدِرُ عَلَى الْوَطْءِ چه په جماع قادر نه وي وَالْمَرْأَةُ كَبِيرَةٌ حال داچه ښځه بالغ ده فَلَهَا النَّفَقَةُ مِنْ مَالِهِ نو ددې دپاره د خاوند په مال كښې نفقه واجب ده |

**تشريح** كه خاوند نابالغه وي.په جماع قدرت نشي لرلې.او دده ښځه بالغه وي.نود خاوند د مال نه ددې دپاره نفقه واجب ده.

**دليله** ځكه چه د ښځې د طرفه خپل ځان سپارل موجود شو.او عجز صرف د خاوند د طرفه دې.نو لكه څنګه چه د مقطوع الذكر اود نامرد د ښځې نفقه واجب وي.دغه شان به ددې نابالغ د ښځې نفقه هم واجب وي.او كه ښځه خاوند دواړه نابالغ وي.چه په جماع قادر نه وي.نو په اجماع سره به دښځې نفقه واجب نه وي.(الذخيره)

## د فرقت نه پس د نفقه اوسكنى احكام

| |
|---|
| وَإِذَا طَلَّقَ الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ او كله چه سړى خپلې ښځې ته طلاق وركړو فَلَهَا النَّفَقَةُ وَالسُّكْنَى فِي عِدَّتِهَا نو دښځې دپاره به ددې په عدت كښې نفقه اوسكونت واجب وي رَجْعِيًّا كَانَ أَوْ بَائِنًا (كه طلاق) رجعي وي اوكه بائن وي |

**حل اللغة** ① **السكنى**:استوګنه

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.كه يوكس خپلې ښځې ته طلاق وركړو.كه طلاق رجعي نې وركړې وي.اوكه طلاق بائن نې وركړې وي.نود ښځې په عدت كښې به ددې دپاره نفقه اوسكنى واجب وي. (٢)

**دليله** دليل دادې.چه ښځې ته نفقه وركول،دا خپل ځان سره د بندولو عوض دې.لكه څنګه چه مونږ د باب النفقه په شروع كښې بيان كړى دى.اودا احتباس( بندول) د نكاح په مقصود، يعنې د بچي په حق كښې اوس هم موجود دې.ځكه چه عدت په دې وجه واجب وي.چه د بچي حفاظت اوكړې شي.او هركله چه احتباس موجود دې.نود ښځې دپاره به نفقه هم واجب وي.او هم ددې احتباس په وجه د مطلقه بائنه

---

[1] **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه د صغيره دپاره نفقه واجب ده.

[2] **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه كومه ښځه قطعي طور باندې جداكړې شوې وي.مثلاً يوطلاق بائن يا درې طلاقونه نې وركړې وي.يا نې خلع كړې وي.نو ددې دپاره نفقه نشته.امام مالك اوامام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دى.خوكه دا ښځه حامله وي.نو بالاجماع به ددې دپاره نفقه واجب وي.بهرحال د طلاق رجعي په صورت كښې د عدت تيريدلو پورې د ښځې دپاره بالاتفاق نفقه او سكنى واجب ده.

دپاره بالاجماع سکنی واجب ده.اودا داسې صورت شو.لکه چه دا حامله ښځه وی.

**د ښځې دپاره د عدت په موده کښې د نفقه عدم وجوب**

| |
|---|
| وَلَانَفَقَةَلِلْمُتَوَفّٰى عَنْهَازَوْجُهَا اود،، متوفی عنها زوجها،، دپاره نفقه نشته. |

**تشریح>** مسئله: که دیوې ښځې خاوند مړشو.نو ددې ښځې دپاره د عدت نفقه نشته.امام احمد رحمه الله ددې قائل دې.اود امام شافعي رحمه الله هم یو قول دادې.

**دلائل>** ① د ،متوفی عنها زوجها،دپاره د نفقه د عدم وجوب دلیل دادې.چه د ښځې خپل خان بندول د خاوند په حق کښې ذکر دی.دا د ،متوفی عنها زوجها،د طرفه عبادت دې.نود رحم پاکوالې معلومول، د ،،متوفی عنها زوجها،، په عدت کښې ملحوظ نه دی.تردې چه په دې عدت کښې حیض هم شرط نه دې. که د څلورمیاشتو او لس ورځو پورې هیڅ حیض رانشی.نو بیا به هم عدت تیرشی. نو په دې عدت کښې به په متوفی خاوند باندې نفقه واجب نه وی. ② دویم دلیل دادې.چه نفقه په لږه لږه واجبیږی.اود مرګ نه پس د خاوند ملك پاتې نشو.نو د وارثانو په ملك کښې نفقه واجبیدل ممکن نه دی.

**که ښځه د فرقت سبب وی نو ددې نفقه**

| |
|---|
| وَكُلُّ فُرْقَةٍجَاءَتْ مِنْ قِبَلِ الْمَرْاَةِ بِمَعْصِيَةٍ او هره جدائی چه د معصیت په وجه د ښځې د طرفه راغلې وی فَلَانَفَقَةَلَهَا نو ددې دپاره به نفقه نه وی |

**حل اللغة >** ① **معصية:** ګناه

**تشریح> مسئله>** که د ښځې د طرفه د معصیت په وجه فرقت پیدا شو.مثلاً ښځه د اسلام نه واوړیدله. یادې په شهوت سره دخپل خاوند ځوې ښکل کړلو.نو دې دپاره به نفقه نه وی.

**دلیله>** ځکه چه دا خپل حق په ناحقه بندونکې ده.نودا داسې شوه.لکه چه دې نافرمانی کړې وی.اود کور نه بهر وتلې وی.

مصنف رحمه الله په عبارت کښې نفقه ذکر کړې ده.ځکه چه سکنی ددې معتدې دپاره هم واجب وی. ځکه چه د معتدې دپاره په کور کښې اوسیدل واجب دی.نود ښځې په معصیت سره سکنی نه ساقطیږی. په مبسوط کښې دی.چه د مرتدې نفقه خاص د ردت په وجه نه ساقطیږی. بلکه په دې وجه ساقطیږی.چه د ردت په وجه به دا قیده او بندولې شی.او ،،محبوسه بحقه،، (چه په خپل حق کښې ګرفتاره شوې وی) د نکاح د قیام په حالت کښې د نفقه مستحقه نه وی.نو هم دغه شان به په عدت کښې هم د نفقه مستحقه نه وی.تردې که ښځه مرتده شوه.او قیده نکړې شوه.بلکه د خاوند په کور کښې وی.نو ددې دپاره به نفقه واجب وی.ځکه چه حبس او قیدکول موجود نشو.(عینی،عنایه)

**وجوب المهر>** په خلاف ددې که ښځه د وطی نه پس مرتده شوه.نو ددې مهربه ساقط نه وی.ځکه چه مهر د ملك بضع عوض وی.اود ښځې د طرفه په وطی سره د بضع سپارل موجود شو.په دې وجه به د خاوند د ذمې نه مهر نه ساقطیږی.

**صورة الفرقة من غير معصية المرأة>** ددې په خلاف که دښځې د طرفه فرقت د معصیت نه بغیر پیدا شو.مثلاً په خیار عتق،اود خیار بلوغ په وجه ښځې تفریق کړې دې.یا د کفوء نه کیدلو په وجه تفریق شوې وی.نود عدت په زمانه کښې به ددې ښځې دپاره نفقه واجب وی.دغه شان کومې ښځې چه لعان اوکړو.اود لعان په وجه تفریق اوشو.نو ددې دپاره به هم نفقه او سکنی واجب وی.او دغه شان که د خلع او ایلاء په وجه بائنه شوه.نو بیا به هم ددې دپاره نفقه او سکنی وی.دلیل دادې.چه په دې

صورتونو كښې ښځې خپل خان په حق سره بند كړې دې.او داسې بندول نفقه نه ساقطوي.لكه مثلاً دې خپل خان خاوند ته د تللو نه په دې وجه بند كړلو.چه خپل مهرمعجل وصول كړي.نو نفقه قائم پاتې كيدل نه ساقطيږي.

## د طلاق نه پس د ښځې مرتد كيدل او ددې نفقه

وَإِنْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا اوكه خاوند (خپلې ښځې ته) درې طلاقه وركړل ثُمَّ ارْتَدَّتْ ددې نه پس دا مرتده شوه سَقَطَتْ نَفَقَتُهَا .نو ددې نفقه ساقط شوه ؛

تعريح> مسئله داده.كه خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه وركړل.ددې نه پس ښځه العياذ بالله مرتده شوه.نوددې ښځې نفقه ساقط شوه.

وَإِنْ مَكَّنَتْ ابْنَ زَوْجِهَا مِنْ نَفْسِهَا اوكه دې د خپل خاوند خوى ته پخپل نفس باندې قابو وركړله فَإِنْ كَانَ بَعْدَ الطَّلَاقِ فَلَهَا النَّفَقَةُ نو كه د طلاق نه پس و نو ددې دپاره به نفقه وي وَإِنْ كَانَ قَبْلَ الطلاق فَلَا نَفَقَةَ لَهَا اوكه د طلاق نه وړاندې وي د دې د پاره به نفقه نه وي

تعريح> كه د درې طلاقونو نه پس ښځې د خپل خاوند خوى ته (چه د مخكينۍ ښځې نه پيدا شوې وي) پخپل خان باندې قابو وركړلو.يعنې ده سره ئې خپل مخ توركړلو. نو ددې دپاره به نفقه واجب وي.

الفرق بينهما> ددې دواړو مسئلو په مينځ كښې فرق دادې.چه په دواړه صورتونو كښې فرقت په درې طلاقونو سره ثابت شوې دې.او په مرتد كيدلو،اود ابن زوج سره وطې كولو ته دې فرقت كښې هيڅ دخل نشته.خو دومره خبره ده.چه كومه ښځه مرتده شي.هغه قيد كولې شي.تردې چه توبه اوباسي.اود داسې قيدې ښځې دپاره نفقه نه وي.او كومې ښځې چه دخاوند خوى سره وطې اوكړله.نودا نشي قيد كولې.په دې وجه ددې دپاره نفقه وي.په دې وجه دې دواړو مسئلوكښې فرق اوشو.

## په قرض كښې د قيدې ښځې نفقه

وَإِذَا حُبِسَتِ الْمَرْأَةُ فِي دَيْنٍ اوكه ښځه د دين په وجه قيد كړې

تعريح> صورت د مسئلې دادې.كه ښځه د قرض او دين په وجه قيدې شوه.نو ددې دپاره به نفقه واجب نه وي.لكه څنگه چې به د راروان متن يعنى ((اوحجت مع محرم فلانفقة لها))نه معلومه شي.

دليله> دليل دادې.چه په دې صورت كښې احتباس زائل كيدل د ښځې د طرفه متحقق شوې دې.څكه چه ده په قرض اداكولوكښې ټال مټول كړې دې.چه ددې په وجه دا قيدې شوه.نودا داسې شوه.لكه چه دې خپل خان خاوند ته د سپارلو نه منع كړلو.او كومه ښځه چه بلاوجه خپل خان خاوند ته نه حواله كوي.هغه ناشزه (نافرمانه) وي.اوچونكه د ناشزه نفقه ساقطيږي.په دې وجه به ددې ښځې نفقه هم ساقطيږي.اوكه احتباس زائل كول د ښځې د طرفه نه وي.په دې طريقه چه دا د قرضې اداكولو نه عاجزه وي.بيا هم دخاوند د طرفه نه دې.نود خاوند نه به د نفقه مطالبه نشي كولې.

أَوْ غَصَبَهَا رَجُلٌ كُرْهًا اويو كس دا ښځې په زور سره غصب كړه فَذَهَبَ بِهَا او وې تختوله

تعريح> كه سړى په زبردستۍ سره ښځه غصب كړي.او بوڼې خې.نو بياهم دا حكم دې.چه دې دپاره به نفقه نه وي.دا ظاهرالروايت دې. لكه څنگه چې به د راروان متن يعنى ((اوحجت مع محرم فلانفقة لها))نه معلومه شي.

**مثله>** څکه چه احتباس زائل کول، د خاوند د طرفه نه دی.چه اوونیلی شی.چه احتباس حکماً باقی دې.حاصل داچه د ښځې نفقه ددې خبرې عوض دې.چه ښځه خپل ځان دخاوند په کورکښې محبوس کړی.نوکه احتباس زائل کول، دخاوند د طرفه نه وی.نو احتباس حکماً هم نشی کرځولې. او چونکه بغیر د احتباس نه د ښځې دپاره نفقه واجب نه وی.په دې وجه به په دې صورت کښې نفقه نه وی.

| |
|---|
| **ولوحجت مع محرم** اویا ښځې خپل محرم سره حج اوکړو **فلا نفقة لها** نوهغې دپاره نفقه نشته |

**تشریح>** که ښځې د خاوند نه بغیر خپل محرم سره حج اوکړلو.نو بیا به هم ددې دپاره نفقه واجب نه وی.څکه چه په دې صورت کښې احتباس زائل کول د ښځې د طرفه دی.

**مثله>** دلیل دادې.چه په خاوند باندې دحضر نفقه واجب شوې ده.څکه چه په آیت او روایت دواړو کښې ددې نفقې حکم ورکړې شوې دې.چه دا د ،،**معروف**،، په قید سره مقید دې.اود معروف نه مراد دا دی.چه نه په دې کښې اسراف وی.او نه تنګی وی.او چونکه په سفرکښې هرڅیز په ګران قیمت کښې ملاویږی.په دې وجه د سفر په نفقه کښې اسراف دې.نود سفر نفقه معروف ( د اعتدال په طور) نه ده.او هرکله چه معروف نه ده.نو واجب به هم نه وی.

**د بیمارې ښځې نفقه**

| |
|---|
| **واذا مرضت في منزل الزوج** اوکه ښځه د خپل خاوند په کورکښې بیماره شوه **فلها النفقة** [1] نو ددې دپاره به نفقه واجب وی |

**تشریح>** مسئله داده.چه ښځه د خاوند په کورکښې اوسیدله.اوبیماره شوه.نو ددې دپاره نفقه واجب ده. بیماری که د جماع نه مانع وه.او که نه وه.اود قیاس تقاضا داده.که بیماری د جماع مانع وی. نود ښځې دپاره نفقه واجب نه وی.څکه چه د جماع دپاره کوم احتباس وو.د بیمارئ په وجه هغه فوت شو.او چونکه نفقه د احتباس عوض دې.په دې وجه د احتباس فوت کیدلو په وجه به نفقه هم ساقطیږی.

**وجهه>** د استحسان وجه داده.چه احتباس اوس هم موجود دې.څکه چه خاوند د بیمارې ښځې سره خوشحاله وی.او ددې په ښکلولو سره مزه اخلی.اود کورحفاظت کوی.اود وطی مانع د عارض په وجه دې. نو دا بیماری د حیض مشابه شوه.چه لکه څنګه حیض د وطی مانع وی.خو د حیض په موده کښې د ښځې دپاره نفقه واجب وی.دغه بیماری اګرچه د وطی مانع ده.خود بیمارئ په زمانه کښې به دښځې دپاره نفقه واجب وی.

**رواية عن ابي يوسف>** د امام ابویوسف رحمه الله نه روایت دې.که ښځې وړاندې نه خپل ځان د خاوند حواله کړې وی.بیا بیماره شوې وی.نو ددې دپاره به نفقه واجب وی.او که وړاندې بیماره شوې وی.او بیا ئې ځان سپارلې وی.نو نفقه به واجب نه وی.وجه د فرق داده.چه په رومبی صورت کښې دښځې د طرفه خپل ځان سپارل موجودشو.او په دویم صورت کښې د مرض په وجه سپارل صحیح نشو.او زمونږ مشائخ وائی. چه دا تفصیل مناسب دې.اود قدوری عبارت هم دې طرف ته اشاره کوی.

[1] ) القول الراجح هو ظاهرالرواية كذا في ردالمحتار(۲\۱۰۷) والبحرالرائق (۴\۱۸۳) ومجمع الأنهر(۱\۴۹۸) والهندية (۱\۵۴۶) نقلاً عن القول الراجح (۱\۳۸۱)-

د ښځې او ددې د نوکر نفقه

وَتُفْرَضُ عَلَى الزَّوْجِ چه فرض کولې به شي په خاوند باندې نَفَقَةُ خَادِمِهَا نفقه د خادم ددې إِذَا كَانَ مُوسِرًا په دې شرط چې دې مالدار وی

تشریح> مسئله داده.که خاوند مالداره وی.نو په ده به ده د ښځې اود ښځې د خادم (نوکر) نفقه هم واجب وی.په ښکاره دا عبارت د ښځې د نفقه په باره مکرر دې. په دې وجه مصنف رحمه الله عذر اوکړلو. او وې فرمائیل.چه دلته کښې د ښځې د خادم نفقه بیانول مقصود دی.د ښځې نفقه بیانول مقصود نه دی.په دې وجه د قدوری په بعضو نسخوکښې عبارت داسې دې. (وتفرض على الزوج اذا كان موسرا نفقة خادمها)

دلیله> د خادم د نفقه دوجوب وجه داده.چه په خاوند باندې د ښځې کفایت(کافی کیدل) واجب دی.او دښځې پوره کفایت به داوی.چه د ښځې د خادم نفقه هم ضروری کړې شي.په دې وجه دښځې دپاره ددې د خادم نفقه هم واجب ده.خادم که غلام وی.او که وینځه وی.

پاتې شوه داخبره چه د ښځې که خادم نه وی.نودا به پخپله کار کولو باندې مجبورولې شي.او که نه؟ نو ددې حکم دادې.که ښځه د کار کولو نه انکار اوکړي. نودا به په دې باندې نشي مجبورولې.ځکه چه په ښځه باندې صرف خاوند له په خپل ځان باندې قدرت واجب دی.دا کارونه واجب نه دی.ددې په خلاف که خادم د خدمت نه انکار اوکړلو.نودې به د نفقه مستحق نه وی.

د ښځې د یو نه د زیاتو نوکرانو نفقه

وَلَا تُفْرَضُ لِأَكْثَرَ مِنْ نَفَقَةِ خَادِمٍ وَاحِدٍ اود یوخادم نه د زیات نفقه به نشي فرض کولې

تشریح> مسلک الطرفین> مسئله داده.چه په خاوند باندې د ښځې د یوخادم نه د زیاتو نفقه واجب نه ده.داحکم د طرفینو رحمهما الله په نیز دې.اوهم دا قول د جمهورو عالمانو،اود امام مالك،امام شافعی اود امام احمد رحمهم الله دې.

دلیلهما> دلیل دادې.چه یوخادم په کور کښې دننه اود بهر ټول کار پوره کولې شي.نود دوه خادمانو هیڅ ضرورت نشته.دویم دلیل دادې.که خاوند پخپله د ښځې دکارونو خیال اوساتی.نو کافی کیږي.هم دغه شان که خاوند د خپل ځان په ځائې یوکس مقررکړي.نوهم کافی ده.

مسلک ابي یوسف> امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه په خاوند باندې د دوه خادمانو نفقه فرض ده.

دلیله> دلیل دادې.چه د دوه خادمانو ضرورت وی.ځکه چه یوخادم به په کور کښې دننه کار کوی.او دویم به د کورنه د بهر کار کوی.اود امام ابویوسف رحمه الله نه دویم روایت دې.که ښځه ډیره مالداره وی.چه ددې سره په جهیزکښې ډیرې خادمانې راغلې وی.نود ټولوخادمانو نفقه به واجب وی.هم دا هشام د امام محمد رحمه الله نه روایت کړې دې.اوهم دا امام طحاوی رحمه الله اختیارکړې دې.

د سکنی احکام

وَعَلَيْهِ او په خاوند باندې واجب دی أَنْ يُسْكِنَهَا فِي دَارٍ چه ښځه په جداکور کښې آباده کړی مُفْرَدَةٍ لَيْسَ فِيهَا أَحَدٌ مِنْ أَهْلِهِ .چه په هغې کښې د خاوند د اهل ځنې هیڅ څوك نه وی إِلَّا أَنْ تَخْتَارَ ذَلِكَ البته که ښځه پخپله دا خوښه کړی

**تشریح**> د ښځې د نفقه بیانولو نه پس اوس د سکنی احکام بیانوی. فرمائی. په خاوند باندې واجب دی. چه دې خپله ښځه په خانله بیل کور کښې آباده کړی. چه په دې کښې د خاوند د کور د خلقو نه هیڅ څوك نه اوسیږی. خو که ښځه د خاوند د کورد خلقوسره او سیدل خوښوی. نو دې ته اختیار شته.
**دلیله**> دلیل دادې. چه د ښځې د ضروریاتو څنې سکونت (اوسیدل) هم دې. نود نفقه پشان به دا هم په خاوند باندې واجب وی. اود ابن مسعود رضی الله عنه په قرات کښې دی. (أسكنوهن من حيث سكنتم وأنفقوا عليهن من وجدكم) یعنی تاسو خپلو ښځو ته د خپل طاقت مطابق د اوسیدلو دپاره کور ورکړئ. کوم خائې کښې چه تاسو اوسیږئ. او دوې ته نفقه ورکوئ. په دې آیت کښې الله تعالی د نفقه سره یوځائې سکنی هم واجب کړې ده. نو ثابته شوه. چه د نفقه پشان سکنی هم په خاوند باندې واجب ده.

**د ښځې رشته داران ملاویدلونه منع کول**

| |
|---|
| وَلِلزَّوْجِ او خاوند ته اختیار دې دې أَنْ يَمْنَعَ وَالِدَيْهَا وَوَلَدَهَا مِنْ غَيْرِهِ چه د ښځې مورپلار، او ددې خامن کوم چه د مخکنی خاوند نه (پیدا) دی وَأَهْلَهَا مِنَ الدُّخُولِ عَلَيْهَا او ددې د کور خلق ددې خواته راتللو نه منع کړی |

**حل اللغة**> ① **يمنع**: منع کوی

**تشریح**> مسئله> خاوند ته دا اختیار شته. چه دې د خپلې مور اوپلار، او ددې هغه خوې چه د مخکینی خاوند نه پیدا شوې وی. دوی او ددې نور رشته داران دې ته د راتللو نه منع کړی.
**دلیله**> دلیل دادې. چه دا کورخود خاوند ذاتی ملك دې. نو ده ته پخپل ملك کښې د راتللو نه د منع کولو اختیار حاصل دې.

| |
|---|
| وَلَا يَمْنَعُهُمْ مِنَ النَّظَرِ إِلَيْهَا وَلَا مِنْ كَلَامِهِمْ فِي أَيِّ وَقْتٍ اخْتَارُوا اود ښځې مورپلار وغیره چه کله دوی اوغواړی. چه دې ښځې طرف ته اوگوری او ددې سره خبرې اوکړی. منع نکړی |

**تشریح**> اوکه د ښځې مورپلار وغیره دا کتل غواړی. یا خبرې کول غواړی. نو خاوند دا ښځه د کتلو اود خبروکولو نه نشی منع کولې.
**دلیله**> څکه چه په دې کښې قطع رحمی لازمیږی. او قطع رحمی حرام ده. څکه نقل دی. چه (عن جبير بن مطعم أنه سمع النبي ﷺ يقول لا يدخل الجنة قاطع) یعنی د جبیربن مطعم رضی الله عنه نه نقل دی. چه دوی د نبی کریم ﷺ نه دا واوریدل. چه قطعی رحمی کونکې به جنت ته نه داخلیږی. او ښځې طرف ته په کتلواو خبروکولو سره د خاوند په حق کښې هیڅ ضرر نه راځی.

**خاوند د نفقه نه عاجزه کیدل**

| |
|---|
| وَمَنْ أَعْسَرَ بِنَفَقَةِ امْرَأَتِهِ او کوم خاوند چه د خپلې ښځې د نفقې نه غریب شو لَمْ يُفَرَّقْ بَيْنَهُمَا نو په دې دواړوکښې به جدائی نشی کولې. وَيُقَالُ لَهَا (بلکه) قاضی به دې ښځې ته وائی اسْتَدِينِي عَلَيْهِ چه دخپل خاوند (په ذمه) باندې قرض واخله |

**حل اللغة**> ① **اعسر**: غریب شو

**تشریح**> مسئله داده. که خاوند د خپلې ښځې د نفقه نه عاجزه شو. نو په دې وجه به په دواړوکښې تفریق نشی کولې. بلکه قاضی به ښځې ته وائی. چه د خپل خاوند په ذمه باندې قرض واخله. یعنی په دې شرط د خوراك سامان قرض واخله. چه ددې قیمت به ددې خاوند اداکوی. یاد خاوند په مالداره کیدلو

باندې به دده د مال نه دا قرضه اداکولې شي.امام زهري، عطاء، بن يسار،حسن بصري، سفيان ثوري، ابن ابي ليلي، ابن شبرمه، او حماد بن سلميان رحمهم الله هم ددې قائل دی. (١)

**دلائله**> ① دليل د الله تعالى قول ﴿وَإِنْ كَانَ ذُوعُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ﴾ دې.وجه د استدلال دا ده.چه نفقه آخرکار دخاوند په ذمه قرض وی.او خاوند غريب شو.اود قرآن په نص دا حکم دې.چه کله مديون غريب شي.نو دائن يعني قرض غوښتونکې به ده ته د مالداره کيدلو پورې مهلت ورکوی.نو ثابته شوه.چه د خاوند د غريب کيدلو په وجه به تفريق نشی کولې.بلکه ښځه به ده ته مهلت ورکوی.

② او عقلي دليل دادې.که تفريق اوکړې شي.نود خاوند حق به بالکليه باطل شي.اود ښځې حق داسې دې.چه په دې کښې تاخير کيدلې شي.ځکه چه هرکله قاضي نفقه مقرر کړی.نودا د خاوند په ذمه قرض وی.نو ښځه به ئې د خاوند نه په راروانه زمانه کښې وصول کوی.اود خاوند حق بالکليه باطلول په ضررکښې ډير زيات دې.نود اعلی ضرر لرې کولو دپاره به ادنی ضرر برداشت کولې شي.

**د غائب سړی په مال کښې د هغه د ښځې نفقه اداکول**

| |
|---|
| وَإِذَا غَابَ الرَّجُلُ او که سړې غائب شو .وَلَهُ مَالٌ فِي يَدِ رَجُلٍ او دده مال د يو کس په قبضه کښې دې يَعْتَرِفُ بِهِ چه ددې اقرار کوی وَبِالزَّوْجِيَّةِ او( دا اقرار هم کوی.چه دا ښځه ددې غائب سړی) بی بی ده فَرَضَ الْقَاضِي فِي ذٰلِكَ الْمَالِ نَفَقَةَ زَوْجَةِ الْغَائِبِ وَأَوْلَادِهِ الصِّغَارِ وَوَالِدَيْهِ نو قاضي به په دې مال کښې ددې غائب سړی د ښځې،دده د نابالغه اولاد او دده دموريلار نفقه مقرر کوی |

**حل اللغة**> ① يعترف:اقرار کوی ② الزوجية: وادهٔ توب

**توضيح**> مسئله داده.که خاوند په سفرکښې لاړلو.او دده څه مال د يوسړی مثلا د حامد په قبضه کښې دې.چه دې ددې امانت اقرار کوی.اودا اقرار هم کوی.چه دا ښځه ددې غائب سړی ښځه ده.نوقاضي به ددې مال نه ددې غائب سړی د ښځې او دده د نابالغ اولاد ،او دده د موريلار نفقه مقررکوی.

**دليله**> دليل دادې.چه هرکله حامد د زوجيت اود امانت دواړو اقرار اوکړلو.نوده دا هم اقرار اوکړلو.چه ښځې ته ددې مال نه د اخستلو حق شته. ځکه چه ښځې ته اختيار وی.چه د خاوند د رضامندئ نه بغير دده د مال نه دضرورت په اندازه واخلي.او په دې دليل هغه حديث دې.چه د ابوسفيان رضي الله عنه ښځې هنده ته نبي کريم ﷺ اوفرمائيل. (خذي من مال زوجك مايكفيك وولدك بالمعروف)

**الاشكال**> دلته کښې يواشکال کيږی.هغه دا که قرض غوښتونکی د غائب د مودع (امانت دار) ياد قرض داری نه د خپلې قرضې مطالبه اوکړله.په داسې حال کښې چه مودع او قرضدار دواړه ددې خبرې اقرار کوی.چه ددې قرض غوښتونکی د غائب په ذمه قرض دې.او مونږ سره د غائب سړی مال هم شته.نو قاضي ددې امانت اود قرض مال نه دې غائب ته د قرض ورکولو حکم نشی ورکولې. حالانکه د ښځې اود بچو پشان د قرض غوښتونکی قرض اداکول هم په غائب باندې واجب دی.

**الجواب**> جواب دادې.چه دغائب په حق کښې قاضي د هغه څيز حکم ورکولې شي.چه کوم دده حق کښې فائده مند وی.او په کوم څيز کښې چه په غائب باندې شفقت نه وی.د هغې په باره کښې قاضي

---

١) **مسلک الشافعي**:- حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په دواړو کښې به تفريق کولې شي.امام مالك او امام احمد رحمهما الله ددې قائل دی.هم دا اختلاف هغه وخت دې.چه کله خاوند د ښځې دپاره د کپړې اود اود اوسيدلو دپاره د کور ورکولو نه عاجزه شي.اودا تفريق د امام شافعي اود امام احمد رحمهما الله په نيز فسخ د نکاح ده.اود امام مالك رحمه الله په نيز طلاق دې.

ته د حكم وركولو اجازت نشته.نود ښځې اوبچو دپاره د نفقه حكم په وركولوكښې په غائب سرې باندې شفقت دې.ځكه چه دده ملك به باقي پاتې وى.اود قرض په اداكولوكښې دده ملك باقي كيدل نشته.بلكه د يو اجنبي (غير)كس په ونيلو سره دده په خلاف حكم كول دى.نود فرق په وجه قاضى د ښځې اود بچو دپاره د نفقه حكم كولې شي.خود قرض اداكولوحكم نشى كولې.

**د ښځې نه د قاضى ضامن اخستل**

| |
|---|
| وَيَأْخُذُ مِنْهَا كَفِيلًا بِهَا (١) او قاضى به ددې ښځې نه كفيل اخلى |

**حل اللغة** ﴿١﴾ **كفيل**:ذمه وار

**تشريح**﴾ صورت د مسئلې دادې.چه قاضى به ددې ښځې نه كفيل اخلى.يعنى يوكس به ذمه وار وى.كه دا ښځه د نفقه مستحق نه وى.نود غائب مال به واپس اخستلې شى.چه د غائب سړى دمال ساتونكې شى. امام سرخسى رحمه الله فرمائى.چه د ښځې نه كفيل اخستل غوره دى.او كه واپې نه خستلو.نوهم جائز دى. او صدرالشهيد فرمائى.چه د غائب خاوند د رعايت په خاطر كفيل اخستل صحيح دى.خوقاضى به اول ددې ښځې نه په دې خبره باندې قسم اخلى.چه ددې خاوند دې ته نفقه نه ده وركړې.ځكه كيدې شى.چه خاوند په سفركښې د تللونه وراندې دې ښځې ته نفقه وركړې وى.اودا ښځه په قاضى باندې معامله مشتبه كوى.او دوباره نفقه اخلى.نو هركله چه دې ښځې قسم اوخوړلو.نو قاضى به دې ښځې ته نفقه وركوى.اودده نه به كفيل (ذمه وار) اخلى.

**دليله**﴾ دليل دادې.چه ممكن ده.دې ښځې د خپل خاوند نه خپله نفقه د وراندې وصول كړې وى.يا خاوند دې ته طلاق وركړې وى.او عدت ئې تير شوې وى.نودا ښځه به د نفقه مستحق نه وى.په دې وجه به د خاوند د رعايت په لحاظ ددې نه كفيل اخستلې شى.

**د غائب سړى د مال نه قاضى له د نفقه وركولو اختيار**

| |
|---|
| وَلَا يَقْضِي بِنَفَقَةٍ فِي مَالِ غَائِبٍ قاضى به د چا په مال كښې د چا د نفقې حكم نه وركوى إِلَّا لِهَؤُلَاءِ سوا د هغه خلقو |

**تشريح**﴾ مسئله داده.چه قاضى د غائب په مال كښې صرف ددې ذكرشوى خلقو دپاره د نفقه حكم وركولې شى.يعنى د ښځې، د ورونچو،اود مورپلار دپاره ياچه څوك ددوى په حكم كښې وى.لكه بالغ اولاد چه ګډ شل وى.يا ښځې وى.او ددوى نه علاوه د نورو محارمو(لكه رور، تره، او نور رشته داران) دپاره قاضى د غائب په مال كښې د نفقه حكم نشى وركولې.

**وجه الفرق**﴾ په دې دواړه صورتونو كښې وجه د فرق داده.چه د ښځې وغيره ذكر شوى خلقو دپاره نفقه د قاضى د حكم نه وراندې هم واجب وه.په دې وجه دې خلقو دپاره جائز دى.چه د قاضى د حكم نه وراندې خپله نفقه وصول كړى.خود غائب په مال باندې قابض دوى له نه وركوى.په دې وجه د قاضى حكم دې خلقو دپاره اعانت (مدد) شو.

---

[1] ) القول الراجح هو قول أبي يوسف رحمه الله توضحه قال ابن الهمام امرأة قال كان زوجي يطيل الغيبة عني فطلبت كفيلا بالنفقة قال ابوحنيفة ليس لها ذلك وقال ابويوسف اخذا كفيلا بنفقة شهر واحد استحسانا وعليه الفتوى كذا في فتح القدير(٤\٢١٢) و ردالمحتار( ٢\٧٠٢) وخلاصة الفتاوى (٢\٦٢) والبحرالرائق (٤\١٩٧) والهندية (١\٥٥٣) نقلاً عن القول الراجح(١\٣٨٦)-

**حکم المحارم الاخری>** پاتې شو نور محارم چه ددوی نفقه د محتاجۍ په وجه ددې سړي په ذمه لازم وي.نودا نفقه به هغه وخت واجب وي.چه کله قاضی حکم ورکړي.ځکه چه دا مسئله مختلف فیه ده.ځکه چه امام شافعي رحمه الله دغیر محارم دپاره د نفقه د وجوب قائل نه دې.نو چونکه د غیرمحارم نفقه د قاضي په حکم سره واجبیږي .او زمونږ په نیز ،،قضاء علی الغائب،، جائز نه ده.په دې وجه قاضی د غائب په مال کښې ددوی دپاره د نفقه حکم نشي ورکولې.

## په غریبۍ او مالدارۍ کښې د نفقه کیفیت

| |
|---|
| وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لَهَا بِنَفَقَةِ الْإِعْسَارِ اوکه قاضی د ښځې دپاره د غریبۍ نفقه مقرر کړله.بیا ثُمَّ أَيْسَرَ (دې خاوند) مالداره شو فَخَاصَمَتْهُ نو ښځې ددې سره مخاصمت اوکړو تَمَّمَ لَهَا نَفَقَةَ الْمُوسِرِ نو قاضي به ددې دپاره د مالدارۍ نفقه پوره کوی |

**تشریح>** مسئله داده.که قاضی د یوې ښځې دپاره په خپل ځان باندې د غریبۍ او فقیرۍ نفقه فرض کړله.بیا ددې خاوند مالداره شو.نو ښځې قاضي ته د مالدارۍ د نفقه دعوه اوراندې کړله.نو قاضی به ددې دپاره (دمالدارۍ) نفقه مقرر کوی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه د مالدارۍ اوغریبۍ موافق نفقه بدلیږي رابدلیږي.ځکه چه نفقه د ټول عمر دپاره په یوځل نه واجبیږي.بلکه روزانه په لږه لږه واجبیږي.په دې وجه به روزانه د ښځې د خاوند اود ښځې د حال اعتبارکولې شي.

## د تیرشوي وخت نه ادا شوي نفقې حکم

| |
|---|
| وَإِذَا مَضَتْ مُدَّةٌ اوکه یوه موده تیره شوه لَمْ يُنْفِقِ الزَّوْجُ عَلَيْهَا چه خاوند ښځې ته نفقه نه ده ورکړې وَطَالَبَتْهُ بِذَلِكَ بیا ښځې ددې نه دتیرې شوې نفقې مطالبه اوکړله فَلَا شَيْءَ لَهَا نود ښځې دپاره به هیڅ نه وی إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْقَاضِي فَرَضَ لَهَا النَّفَقَةَ مګردا چه قاضی ددې دپاره د نفقې (څه مقدار) فرض کړې وی أَوْ صَالَحَتِ الزَّوْجَ عَلَى مِقْدَارِهَا یا دې خپل خاوند سره په څه مقدار باندې صلح کړې وی فَيَقْضِي لَهَا بِنَفَقَةِ مَا مَضَى نو (هم په دې حساب) قاضی ددې دپاره د تیرې شوې نفقې حکم ورکولې شي |

**تشریح>** مسئله داده.که یوه موده تیره شوه.او خاوند خپلې ښځې ته نفقه ورنکړه.بیا دې ښځې د خپل خاوند نه ددې مودې د نفقه مطالبه اوکړله.نو زمونږ په نیز به ښځې ته هیڅ نه ملاویږي.ځکه چه د وخت تیریدلو په وجه نفقه د خاوند په ذمه نه قرض کیږي.او هرکله چه د تیرې شوې مودې نفقه د خاوند په ذمه قرض نشو.نوقاضی د تیرې شوې نفقې حکم هم نشي ورکولې.خو دوه صورتونه ددې حکم نه مستثنی دی.یودا چه قاضی د ښځې دپاره د نفقه څه مقدار مقررکړې وی.دویم داچه ښځې خپل خاوند سره د نفقې په څه مقدار باندې صلح کړې وی.په دې دواړو صورتونوکښې به قاضي هم په دې حساب سره دښځې دپاره د تیرې شوې نفقې حکم ورکوی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه نفقه عطیه ده.او زمونږ په نیز دملك عوض نه وی.لکه چه وراندې تیرشوی دی.نود نفقه وجوب مستحکم او مضبوط نشو.خوچه کله د قاضی حکم اوشي.لکه د هبه په صورت کښې د ،،موهوب له،، دپاره ملك هغه وخت ثابتیږي.چه کله مضبوطونکې څیز یعنی قبضه موجود شي.دغه شان د نفقه وجوب د قاضي په حکم سره مستحکم او مضبوطیږي.

**دلیل صورة الصلح>** اود خاوند خپلې ښځې سره په څه څیز باندې صلح کول داسې دی.لکه د قاضی حکم کول.ځکه چه د خاوند ولایت په خپل ځان باندې د قاضی د ولایت نه زیات دې. ځکه چه د نفقه کوم

مقدار قاضي مقرر کړي دي.که خاوند اوښځه په یو څه مقدار راضي شي.نو ددي د زیاتي التزام کولي شي.نو صلح په منزله د قضاء د قاضي شوه.بلکه ددي نه هم زیاته مستحکم ده.په خلاف دمهر،ځکه چه دا دملك بضع عوض وي.په دي وجه داد قاضي د حکم نه بغیر لازمیږي.

**د خاوند په مرګ باندي د نفقه سقوط**

**فَإِنْ مَاتَ الزَّوْجُ** او که خاوند مرشو **بَعْدَمَا قَضَى عَلَيْهِ بِالنَّفَقَةِ** پس ددي نه چه قاضي په ده باندي د نفقي حکم ورکړو **وَمَضَتْ شُهُورٌ** او څو میاشتي تیري شوي **سَقَطَتْ النَّفَقَةُ** نو( ددي ) نفقه ساقط شوه

**تشریح>** مسئله داده.که خاوند ته د نفقه ورکولوحکم ورکړي شو.خوقاضي ښځي ته د قرضه اخستلو حکم ورنکړو.بیا خاوند مړشو.او څومیاشتي تیري شوي.نو نفقه به ساقط وي.دغه شان که ښځه مړه شوه.نو هم به ساقطیږي. (۱)

**دلیله>** دلیل دادي.چه نفقه یوه عطیه ده.او داسي عطیات د مرګ په وجه ساقطیږي.لکه مثلاً یوکس څه څیز هبه کړلو.اود ،،موهوب له،، د قبضه نه وړاندي هبه کونکي مړشو.یا موهوب له مړشو.نو هبه باطلیږي.او امام شافعي ﷺ فرمائي.چه د قاضي د حکم نه وړاندي هم نفقه د خاوند په ذمه باندي قرض کیږي.اود خاوند په مرګ باندي نه ساقطیږي.بلکه د خاوند د ترکه نه به ني ښځه وصول کوي.

**د پیشګي(ایډوانس) نفقه نه پس د خاوند فوت کیدل**

**وَإِنْ أَسْلَفَهَا نَفَقَةَ السَّنَةِ** او که خاوند خپلي ښځي ته د یو کال نفقه ورکړله (یعني پیشګي ني ورکړله **ثُمَّ مَاتَ** بیا خاوند مړشو **لَمْ يُسْتَرْجَعْ مِنْهَا شَيْءٌ** نود ښځي نه به هیڅ واپس نشي اخستي اودا د امام ابوحنیفه اود ابویوسف ﷺ په نیز دي

**حل اللغة >** ① **اسلف:** وړاندي ورکول

**تشریح>** مسئله داده.که خاوند خپلي ښځي ته د یوکال نفقه ایډوانس (په یوځل) ورکړله.بیا ددي مودي تیریدلو نه مخکښي خاوند مړشو.یا دده ښځه مړه شوه.نوددي ښځي نه یا دده د ترکه نه به هیڅ واپس نشي اخستلي.دا د شیخینو ﷺ مذهب دي. (۲)

**دلیلهما>** دلیل دادي.چه نفقه یوعطیه ده.حالانکه دا د ښځي په قبضه کښي راغلي ده.او عطیات د مرګ نه پس واپس نشي ورکولي کیدلي.ځکه چه ددي حکم پوره کیږي.لکه څنګه چه په هبه کښي حکم دي.او هم په دي وجه دا نفقه که د ښځي د هلاکولو نه بغیر ضائع شوه.نو بالاجماع به ددي نه هیڅ واپس نشي اخستلي.

**وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللّٰهُ** او امام محمد ﷺ فرمائي **يُحْتَسَبُ لَهَا نَفَقَةُ مَا مَضَى** چه څومره زمانه تیره شوه.ددي نفقه به حساب کړي شي.دا به د ښځي دپاره شي **وَمَا بَقِيَ لِلزَّوْجِ** او باقي به د خاوند دپاره

---

۱) **مسلك الشافعي:-** دامام شافعي ﷺ په نیز نفقه د ملك بضع عوض دي.نودا به په نورو قرضونو باندي قیاس کولي شي.چه لکه څنګه دیون، د مدیون په مرګ سره نه ساقطیږي.دغه شان د خاوند په مرګ سره دښځي نفقه هم نه ساقطیږي.

۲) القول الراجع هو قول الشيخين ﷺ كذا في فتح القدير(۲۰۵\۴) وردالمحتار(۷۱۷\۲) والخانية (۱۹۸\۱) والبحرالرائق (۱۹۱\۴)وخلاصة الفتاوى (۵۷\۲) نقلاً عن القول الراجع (۳۸۴\۱)-

وی

**تشریح** مسلک محمد امام محمد رحمه الله فرمائي.چه څومره زمانه تیره شوې ده.ددې په حساب نفقه به ښځې ته پریخودلې شي.او باقي به خاوند ته واپس کولې شي.اوکه ښځې دا هلاك كړلو.نو ددې نه به ددې د حق نه علاوه قیمت اخستلې شي.داد امام شافعي رحمه الله قول دې. امام احمد رحمه الله هم ددې قائل دې.اوهم دا اختلاف په لباس کښې هم دې.

**دلیله** دلیل دادې.چه د خاوند په بندولو چه د کوم څیز استحقاق دې ته په خاوند باندې حاصل وو.دې د ورانديې نه د عوض په طور واخستلو.اود خاوند په مرګ باندې دا استحقاق باطل شو.نو ددې په حساب به عوض هم باطل وی.لکه مثلاً قاضي د ورانديې نه د يوې مودې روزانه نفقه واخستله. اوبیا د مودې پوره کیدلو نه ورانديې د قاضي انتقال اوشو.نوحساب به کولې شي.اود باقي مودې د ورځو نفقه به د قاضي د ترکه نه واپس اخستلې شي.او لکه مثلاً د مجاهدينو عطيه که دوی د يوې مودې عطيه او رزق د ورانديې واخستلو.بیا ددې موده پوره کیدلو نه ورانديې دوی مړه شول.نود باقي مودې رزق به ددوی نه واپس اخستلې شي.

**الروایة الثانیة عن محمد** د امام محمد رحمه الله نه دویم روایت دادې.که ښځې د يوې میاشت یا د کم نفقه وصول کړله.نود خاوند په مرکیدلو به ددې نه هیڅ واپس نشی اخستلې.ځکه چه دا یومعمولي څیز دې.نوګویا چه د في الحال نفقه به وی.یعنی لکه څنګه چه ښځې د في الحال واجب نفقه واخستله.نود مرګ په وجه واپس نشی اخستلې.دغه شان که ئې د یومیاشت نفقه واخستله.نود مرګ په وجه به په دې صورت کښې هم واپس نشی اخستلې.والله اعلم

**د مولا په اجازت سره آزادې ښځې سره د غلام**
**واده کولو نه پس ددې ښځې د نفقې حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا تَزَوَّجَ الْعَبْدُ حُرَّةً او که غلام يوې آزادې ښځې سره نکاح اوکړله فَنَفَقَتُهَا دَيْنٌ عَلَيْهِ نو ددې نفقه به په غلام باندې قرض وی يُبَاعُ فِيهَا چه دا به په نفقه کښې خرخولې شي. |

**تشریح** مسئله داده.که غلام د مولا په اجازت سره يوې آزادې ښځې سره نکاح اوکړله.نو ددې ښځې نفقه به په غلام باندې قرض وی.اودا غلام به د خپلې ښځې په نفقه کښې خرخولې شي.

**دلیله** دلیل دادې.چه نفقه یوقرض دې.چه دا د غلام په ذمه واجب دې.ځکه چه د نفقه د وجوب سببه یعنی عقد د نکاح موجود شو.او نفقه واجب کیدل، دده د مولا په حق کښې هم ښکاره شو.ځکه چه مولا په رضا مندئ سره اجازت ورکړې وو.نوګویا چه مولا هم د نفقه په وجوب باندې راضي دې.په دې وجه به دا قرضه د غلام د ذمې سره متعلق وی.لکه مثلاً یوتاجر غلام ته مولا د تجارت اجازت ورکړلو.بیا ده په قرضو معامله اوکړله.او په خپل ذمې باندې ئې قبضه اوکړله.نودا غلام به په قرضه کښې خرخولې شي.

**خیار المولی** خو مولا ته دا اختیارشته.چه دې ددې فدیه ورکړی.دلیل دادې.چه د ښځې حق په نفقه کښې دې.د غلام په ذمه کښې نه دې.نو هرکله چه مولا د ښځې نفقه اداکړله.نو ددې نه پس په نفقه کښې د ښځې حق باقي پاتې نشو.په دې وجه د فدیه ورکولو نه پس به د ښځې په نفقه کښې غلام نشی خرخولې.

وينځې سره د آزاد سړي د نكاح نه پس ددې ښځې د نفقې حكم

| |
|---|
| وَإِنْ تَزَوَّجَ الرجل أَمَةً او كه آزاد سړي (د يوبل كس) وينځې سره نكاح اوكړله فَبَوَّأَهَا مَوْلَاهَا مَعَهُ مَنْزِلًا او مولا خپله وينځه دده سره د شپې جدا اوسولو اجازت وركړو فَعَلَيْهِ النَّفَقَةُ نو په ده به نفقه واجب وي. وَإِنْ لَمْ يُبَوِّئْهَا فَلَا نَفَقَةَ لَهَا او كه مولا د جدا اوسيدلو اجازت ورنكړو.نو په خاوند به نفقه واجب نه وي |

تشريح> مسئله داده.كه آزاد سړي د يوكس د وينځې سره نكاح اوكړله.او مولا خپلې وينځې ته ددې خاوند سره د شپې د جدا اوسيدلو اجازت وركړلو.نوپه خاوند به ددې نفقه واجب وي.ځكه چه د ښځې د طرفه احتباس موجود شو.او نفقه د احتباس بدل دې.او كه مولا د جدا اوسيدلو اجازت ورنكړو.نو په خاوند به نفقه واجب نه وي.

دليله> ځكه چه احتباس اوموندې شو.بلكه چې كله هم خاوند غواړي خپل حاجت پوره كولې شي

مفهوم التبويت> او ،،تبويه،، يعنى د شپې جدا اوسيدلو اود ديره كيدلو نه مراد دادى.چه مولا خپلې وينځې ته د خاوند په كوركښې د اوسيدلو اجازت وركړي.اود وينځې نه خپل خدمت نه اخلي.اوكه مولا اول د اوسيدلو اجازت وركړلو.بيا ئې خپل خدمت دپاره راوستله.نو نفقه به ساقط وي.ځكه احتباس چه موجب د نفقه دې.دا فوت شو.په دې وجه به په خاوند باندې نفقه هم واجب نه وي.او په مولا باندې اوسول،او ديره كول لازم نه دى.لكه څنګه چه په ،، باب نكاح الرقيق،، كښې تيرشوى دى.

د اولاد نفقه

| |
|---|
| وَنَفَقَةُ الْأَوْلَادِ الصِّغَارِ عَلَى الْأَبِ اود نابالغ اولاد نفقه په پلار باندې واجب ده لَا يُشَارِكُهُ فِيهَا أَحَدٌ په دې كښې به پلار سره په نفقه كښې هيڅ څوك نه شريكيږي كَمَا لَا يُشَارِكُهُ فِي نَفَقَةِ الزَّوْجَةِ أَحَدٌ لكه چه دښځې په نفقه كښې هيڅ څوك نه شريكيږي |

تشريح> د ښځې د نفقه نه د فارغ كيدلو نه پس په دې فصل كښې د اولاد نفقه بيانوي.فرمائي.چه د نا بالغ اولاد نفقه صرف ددوى په پلار باندې واجب وي.په دې كښې پلار سره هيڅ څوك شريك نه وي.لكه څنګه چه دده د ښځې په نفقه كښې هيڅ څوك شريك نه وي.داحكم د ظاهرالرواية مطابق دې.او په دې باندې د څلورو امامانو اتفاق دې.

دليله> دليل د الله تعالى قول .﴿وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ﴾ دې.يعنى ،،ددې ښځو رزق په مولولود له باندې واجب دې،، اومولود له پلار دې.ددې آيت نه استدلال داسې دې.چه د مياندو رزق په پلار باندې د ولد په وجه دې.نو هركله چه د ولد په وجه په پلار باندې د مياندو رزق واجب دې.نو په ده به د ولد رزق په درجه اولى واجب وي.او په عدم اشتراك باندې دليل دادې.چه په موركيدلو،او په ولد كيدلو دواړوكښې هيڅ يوهم شراكت نه قبلوى.يعنى دا نشى كيدلې.چه ښځه دې په يو وخت كښې د دوه سړو منكوحه وي.اونه دا كيدلې شي.چه بچې د دوه پلارانو خوې وي.نو هم دغه شان كومه نفقه چه دې دواړو دپاره ثابت ده.دا هم شركت نه قبلوي.

الرواية عن ابي حنيفة> د امام ابوحنيفه رحمه الله نه يو روايت دادې.چه د بچې نفقه د ميراث مطابق په دريوكښې دوه حصې په پلار، اويوه حصه په مور باندې واجب ده.امام طحاوى رحمه الله بيان كړى دى.چه بالغ اولاد كه محتاجه وي. نو په دوى كښې به د مؤنث په نفقه باندې مجبورولې شي.د مذكر په نفقه به نشي مجبوركولې.خوكه بالغ اولاد معذوره وي.مثلاً نابينا(روند) وي. يا ګډ وي.يا ئې خپې لاسونه شل وي.نو ددوى په نفقه به هم پلار مجبورولې شي.

په مور باندې بچی له د پیو ورکولو عدم وجوب

وَإِنْ كَانَ الصَّغِيرُ رَضِيعًا اوکه ماشوم بچې يې ځکی فَلَيْسَ عَلَى أُمِّهِ أَنْ تُرْضِعَهُ نو ددې په مور باندې ده ته يې ورکول واجب نه دی

**حل اللغة >** ① رضيع: تې رودونکې ماشوم

**تشريح >** مسئله:که صغير يې ځکونکې بچې وی.نو قضاءً ددې په مور باندې دې بچی ته يې ورکول واجب نه دی.

**دلائله >** ① ځکه د بچی پالنه په پلار باندې واجب ده.په دې کښې بل څوك شريك نشته.اود پيو ځکلو مزدوری د نفقه پشان ده.نو لکه څنګه چه په پلار باندې د پيوځکونکی نفقه واجب ده.دغه شان په ده باندې دا هم واجب دی.چه دې د بچی دپاره پيو ځکونکې ښځه په اجرت باندې اونيسی.نو ثابته شوه.چه د نفقه پشان د پيوځکلو اجرت هم په پلار باندې واجب دې. ② دېره ممکنه ده.چه د بچی مور دڅه عذر په وجه ده ته په پيو ورکولو قادره نه وی. نودبچی مور په پيو ورکولو باندې دمجبورولو هيڅ معنی نشته.اود الله تعالی قول ﴿لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُودٌ لَّهُۥ بِوَلَدِهِۦ﴾ يعنی ،،هيڅ يوې مورته به تکليف نشی رسولې.ددې د بچی په وجه.اونه به پلار ته تکليف رسولې شی.دده د بچی په وجه،، ددې په تفسير کښې ونيلې شوی دی.چه په دې به يې ورکول نشی لازمولې.چه کله دا کار په دې باندې ګران وی.لکه چه حضرت اقدس تهانوی رحمه الله ليکلی دی.چه د بچی موريلار به خپل مينځ کښې په څه خبره باندې ضدبازی نه کوی.که مور ته په څه وجه عذر نه وی.نو ددې په ذمه دياتناً يعنی عندالله واجب دی.چه بچی له يې ورکړی.چه کله دا منکوحه وی. يا په عدت کښې وی.او اجرت اخستل صحيح نه دی.

مور دپاره د پيو ورکولو مزدوری

وَإِنِ اسْتَأْجَرَهَا اوکه ده (پلار) د بچی مور په اجرت باندې اونيولوهِيَ زَوْجَتُهُ حالانکه دا دده ښځه ده أَوْ مُعْتَدَّتُهُ يا دده معتده ده لِتُرْضِعَ وَلَدَهَا چې دې بچی ته يې ورکړی لَمْ يَجُزْ نوجائز نه دی

**تشريح >** مسئله:که خاوند د خپل بچی مور د پيو ورکولو دپاره په اجرت باندې اونيوله.حالانکه دا دده ښځه ده.يعنی په نکاح کښې موجود ده.يا دده د طلاق په عدت کښې ده.نودا په اجرت باندې اخستل جائز نه دی.

**دليله >** ځکه چه دياتناً په دې ښځه باندې يې ورکول پخپله واجب دی.لکه چه د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ﴾ يعنی ،، ميانديې دې خپلو بچو ته يې ورکوی،، په آيت کښې ﴿يُرْضِعْنَ﴾ خبر دې.د امر په معنی کښې دې.لکه څنګه چه په ﴿وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ﴾ کښې ﴿يَتَرَبَّصْنَ﴾ خبر دې.اود امرپه معنی کښې دې.خودا دعجز د احتمال په وجه معذوره ګرځولې شوې وه.نو هرکله چه دا په اجرت سره پيو ورکولو ته وراندې شوه.نو ښکاره شوه.چه دا په پيو ورکولو قادره ده.نود الله ﷻ د حکم موافق په دې باندې يې ورکول واجب شو.نو په دې کار باندې به ددې دپاره اجرت اخستل جائز نه وی.

د نکاح زائل کیدلو نه پس بچی له د پیو ورکولو دپاره په اجرت باندې نیول

وَإِنِ انْقَضَتْ عِدَّتُهَا اوکه د معتده عدت تيرشو فَاسْتَأْجَرَهَا عَلَى إِرْضَاعِهِ جَازَ بيا د خپل بچی دپاره کوم چه هم ددې ښځې نه پيدا دې.په اجاره باندې مقررشوه جَازَ نو جائز دی.

**حل اللغة >** ① الارضاع: يې ورکول

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې چه د معتده عدت تیر شو. بیا خاوند خپل بچي ته د پیو ورکولو دپاره کوم چه هم ددې (معتده) ښځې نه پیدا دې دا ئې په اجرت باندې اونیوله. نودا اجاره جائز ده.
**دلیله>** دلیل دادې چه هرکله عدت تیرشو. نو نکاح بالکلیه زائل شوه. اودا ښځه د اجنبیه ښځو پشان شوه. نو لکه څنګه چه اجنبیه ښځه په اجرت باندې اخستل جائز دی. دغه شان دا هم په اجرت باندې اخستل صحیح دی.

## د پیو په ورکولوکښې د بچي مورته ترجیح ورکول

**وَإِنْ قَالَ الْأَبُ** بیا که (د بچي) پلار اوونیل **لَا أَسْتَأْجِرُهَا** چه زه به د بچي مور په اجرت باندې نه نیسم **وَجَاءَ بِغَيْرِهَا** (بلکه) د بچي د مورنه علاوه ئې بل څوك پیئ ورکونکې راوستله **فَرَضِيَتْ الْأُمُّ بِمِثْلِ أَجْرِ الْأَجْنَبِيَّةِ** بیاد اجنبیه د اجرت په مثل باندې (د بچي) مور راضي شوه **كَانَتِ الْأُمُّ أَحَقَّ** نوهم دا به مستحق وی.

**تشریح>** مسئله داده. که دبچي پلار اوونیل. چه زه به دده مور په اجرت باندې نه نیسم. بلکه ددې نه علاوه ئې بل څوك په اجرت باندې راوستل. بیا چه څومره اجرت اجنبیه ښځې غوښتلو. په هم دغه اندازه اجرت باندې یا د اجرت نه بغیر پخپله د بچي مور راضي شوه. نو په دې صورت کښې به دبچي مور مستحقه وی.
**دلیله>** دلیل دادې چه مور په خپل بچي باندې زیاته مهربانه وی. نو هم دې ته په سپارلوکښې د بچي په حق کښې بهتری ده او که د بچي مور د اجنبیه ښځې داجرت نه زیات غوښتلو. نو خاوند یعنی د بچي پلار به په زیاتی باندې نشي مجبوروليی چه دده نه ضرر لرې شي.

**وَإِنِ الْتَمَسَتْ زِيَادَةً** اوکه د بچي مور داجنبیه ښځې د اجرت نه زیاته غوښتله **لَمْ يُجْبَرِ الزَّوْجُ عَلَيْهَا** نو خاوند به په زیات ورکولو باندې نشي مجبوره کولې

**تشریح>** دلیل دادې چه مور په خپل بچي باندې زیاته مهربانه وی. نو هم دې ته په سپارلوکښې د بچي په حق کښې بهتری ده. او که د بچي مور د اجنبیه ښځې داجرت نه زیات غوښتلو. نو خاوند یعنی د بچي پلار به په زیاتی باندې نشي مجبوروليی.
**دلیله>** دده د نه مجبوره کولو وجه دا ده چې په مجبوره کولو کښې ده ته ضرر او نقصان دې او شریعت چا ته نقصان نه رسوی.

## په پلار باندې د صغیر د نفقه وجوب

**وَنَفَقَةُ الصَّغِيرِ وَاجِبَةٌ عَلَى أَبِيهِ** اود صغیر بچي نفقه دده په پلار باندې واجب ده **وَإِنْ خَالَفَهُ فِي دِينِهِ** اګرچه پلار دده سره په دین کښې مخالف وی **كَمَا تَجِبُ نَفَقَةُ الزَّوْجَةِ عَلَى الزَّوْجِ** لکه څنګه چه په خاوند باندې د ښځې نفقه واجب ده. **وَإِنْ خَالَفَتْهُ فِي دِينِهِ** اګرچه خاوند په دین کښې مخالف وی

**تشریح>** فرماني. چه د صغیر نفقه دده په پلار باندې واجب ده. اګرچه پلار دده سره په دین کښې مخالف وی. مثلاً صغیر اسلام قبول کړلو. او پلار کافر دې. یا پلار مسلمان وی. او بچي مرتد شو. یاد ساتئ چه د پوهه ماشوم اسلام او مرتدکیدل صحیح دی. دغه شان د ښځې نفقه په خاوند باندې واجب ده. اګرچه دا په دین کښې د خاوند مخالفه وی. مثلاً یهودیه وی. یا نصرانیه وی.
**دلیل وجوب نفقة الولد>** د بچي په نفقه واجبیدلو باندې دلیل هغه آیت دې. کوم چه مونږ وراندې تلاوت کړلو. یعنی **(وَعَلَى الْمَوْلُودِ لَهُ رِزْقُهُنَّ)**. دا آیت د ښځو په نفقه کښې عبارة النص دې. اود اولاد د نفقه په

باره کښې دلالة النص دې.لکه وړاندې بيان شو.او چونکه آيت مطلق دې.په دې وجه مطلقا د صغير نفقه دده په پلار باندې واجب ده.که د دواړو دين يو وي.او که مختلف وي. او دويم دليل دادې.چه بچې د خپل پلار جزء وي.نودا به د خپل ذات په حکم کښې وي.اوچونکه د خپل ذات نفقه فرض وي.په دې وجه به د خپل جزء يعنی د اولاد نفقه به هم فرض وي

**دليل نفقة الزوجة>** د ښځې نفقه نو ددې دليل دادې.چه د ښځې د نفقه سبب نکاح صحيح ده.ځکه چه د نکاح په وجه ښځه خپل ځان دخاوند دپاره پابند کوي.او ددې په مقابله کښې نفقه واجب وي.اودا خبره ښکاره ده.چه د کتابيه کافرې اود مسلمان سړی په مينځ کښې نکاح صحيح وي.لکه چه د الله تعالی قول ﴿وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ﴾ دې.نوهرکله چه ددې دواړو په مينځ کښې نکاح صحيح شوه.نو په دې نکاح به احتباس ( بندول) مرتب کيږي.او هرکله چه په دې نکاح باندې احتباس مرتب شو.نو په خاوند به نفقه هم واجب وي.

**ملحوظة>** واضحه دې وي.چه څومره صورتونه مونږ ذکرکړل.په ټولوصورتونوکښې په پلار باندې د اولاد نفقه هغه وخت واجب وي.چه کله صغير سره دده څه ذاتی مال نه وي.او که د صغير بچی سره دده څه ذاتی مال وي.نو دده نفقه به ددې مال نه پوره کولې شي.ځکه اصل دادی.چه دسړی نفقه پخپل مال کښې وي.که دې صغير وي.او که کبير وي.

د صغيردپاره د مال کيدلو صورت دادې.چه دده دچانه ميراث حاصل کړې وي.يا ده ته چا هبه ورکړې وي.او که د صغير سره زمکه، يا کپړې، يا څاروی وغيره وي.او دده د نفقه دپاره ددې ضرورت پيداشي.نو پلار به متولی وي.چه دا ټول خرڅ کړي.او دده په نفقه کښې ئې خرچ کړي. (عينی شرح هدايه)

## د جدائۍ په صورت کښې د بچی حقدار

| |
|---|
| وَإِذَا وَقَعَتِ الْفُرْقَةُ بَيْنَ الزَّوْجَيْنِ اوهرکله چه دښځې او خاوند په منځ کښې جدائی واقع شی فَالأُمُّ أَحَقُّ بِالْوَلَدِ نود بچی زيات حقدار ددې موردہ. |

**حل اللغة >** ① **الفرقة**: جدائی

**تعريح>** مسئله:که د خاوند اودده د ښځې په مينځ کښې جدائی واقع شوه.نود بچی زيات حقدار دده موردہ.

**دلائله>** ① دليل هغه حديث دې.چه عمرو بن شعيب د خپل پلار نه روايت کړې دې.چه يوه ښځه نبی کريم ﷺ ته راغله.او وې وئيل.چه دا زما ځوې دې.چه دده دپاره زما خيټه لوخې(مسکن) وو.او زما غيګه دده دپاره خيمه وه.او زما سينې دده دپاره ډولونه وو.او اوس دده پلار وائی.چه دې به دا زمانه اخلی.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل. أَنْتِ أَحَقُّ بِهِ مَا لَمْ تَنْكِحِي [1] (چه هم ته ددې بچی زياته حقداره ئې.چه ترکومه پورې ته نکاح اونکړې.

② دويم دليل دادې.چه په بچی باندې مور زياته مهربانه وي.ځکه بچې د مور حقيقی جزء دې.ځکه چه بچی په قينچئ باندې کټ کولې شی.اود مورنه جداکولې شی.او مور د بچی په ښه طريقه پرورش کولې شی.نو مورته سپارل د بچی په حق کښې بهتر دی.

---

١) من حديث عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده عبدالله بن عمرو ﷺ اخرجه ابوداود فی الطلاق باب ٣٥ رقم (٢٢٧٦).

دې طرف ته ابوبکر صدیق ﷺ اشاره کړې ده.نقل دی.چه حضرت عمر ﷺ د ابوبکر ﷺ په وړاندې خپلې ښځې ام عاصم سره جګړه اوکړله.چه حضرت عمر ﷺ د خپلې ښځې نه عاصم په زور واخلی.نو حضرت عمر ﷺ ته حضرت صدیق ﷺ اوفرمائیل.ای عمر ﷺ! دې بچی ته ستاد مصفاشهدو څکلونه ددې مور توکانړی څکل زیات خوښ دی.دا واقعه د هغه وخت ده.چه حضرت عمر ﷺ ام عاصم ﷺ ته طلاق ورکړې وو.اودا واقعه د ډیرو صحابو ﷺ په موجودګئ کښې راپیښه شوې وه.او هیڅ چا د صدیق اکبر ﷺ په فیصله باندې څه نکیر اونکړلو.نودا یوقسم اجماع منعقد شوه.والله اعلم.

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لَهُ أُمٌّ بیا که ددې( بچی) مور نه وی فَأُمُّ الْأُمِّ أَوْلَى نود مور مور( نیا) زیاته حقداره ده مِنْ أُمِّ الْأَبِ په نسبت د پلار مور( نیا)

**تعریح**> اوکه د بچی مور نه وی.په دې شان چه دا مړه شوې وی.یا کوم اجنبی سړی سره ئې نکاح کړې وی.نود مور مور( نیا) به د بچی زیاته حقداره وی.په نسبت د پلارمور( نیا) اګرچه د پورته درجې وی.یعنی پر نیا(د پلار،یاد مور نیا) یا ددې نه هم بره وی.

**دلیله**> دلیل دادې.چه دا ولایت میاندو طرف ته ددوی د شفقت په وجه مستفاد ده.نوکومه ښځه چه مور ته زیاته نیزدې وی.هغه به دهغه ښځه نه زیاته حقداره وی.کومه چه پلارته نیزدې وی.او په دې حکم کښې مسلمانه اوکافره ښځه دواړه برابر دی.ځکه چه دپرورش کولوحق د شفقت په وجه وی.اوشفقت د دین په اختلاف سره نه مختلف کیږی.

فَإِذَا لَمْ تَكُنْ لَهُ أُمُّ الْأُمِّ نوکه د ده د مور مور نه وی فَأُمُّ الْأَبِ أَوْلَى نود پلار مور به زیاته حقداره وی مِنَ الْأَخَوَاتِ ( په نسبت ) د خویندو

**تعریح**> اوکه د بچی د مورمور(نیا) او پرنیا هم نه وی.نود خویندو په مقابله کښې د بچی زیاته حقداره د پلار مور(نیا) ده.

**دلائله**> ① ځکه چه د پلار مورهم مور وی.هم دا وجه ده.چه د پلارمورته د میاندو میراث یعنی شپږمه حصه ملاویږی.حاصل داچه لکه څنګه د مړی په ترکه کښې د مړی مورته شپږمه حصه ملاویږی.په دې شرط چه د مړی د یونه زیات وروڼه خویندې وی.

② د پلارد مور(نیا) شفقت د پیدائښې قرابت په وجه ډیر زیات دې.اودا ولایت په شفقت باندې مبنی دی.په دې وجه به هم د پلار مور د بچی دپرورش زیاته حقداره وی.

فَإِنْ لَمْ تَكُنْ جَدَّةٌ بیا که د پلار مور( نیا) هم نه وی فَالْأَخَوَاتُ أَوْلَى مِنَ الْعَمَّاتِ وَالْخَالَاتِ نود ترورپانو ( یعنی د مورپلار د خویندو په نسبت) خویندې زیات مستحق دی

**تعریح**> او که د بچی د پلار مورنه وی.نود ترورپانو(یعنی دمورپلار د خویندو) په نسبت خپلې خویندې زیاتې حقدارې دی.

**دلیله**> ځکه چه دوی ددې بچی د مورپلار لوڼه دی.هم دا وجه ده.چه خویندې په میراث کښې مقدم دی.دا په مبسوط کښې د ،،کتاب النکاح،، روایت دې.په دې کښې د قرابت د نیزدیکت رعایت ساتلې شوې دې.ځکه چه خور د ترور په مقابله کښې زیاته نیزدې وی.ځکه چه خور ددې بچی د پلار لور ده.او ترور ددې بچی د نیا لور ده.

## په قرابت داروښځو د ترجیح مدارج

وَتُقَدَّمُ الْأُخْتُ مِنَ الْأَبِ وَالْأُمِّ اوکومه خور چه د پلار او مور دواړو طرفه وی.هغه به په نورو خویندو باندې مقدم وی لَمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأُمِّ بیا (هغه خور زیاته حقداره ده) کومه چه صرف د مور دطرفه وی.ثُمَّ الْأُخْتُ مِنَ الْأَبِ بیا کومه خور چه صرف د پلار د طرفه وی

**تشریح>** مسئله داده.چه کومې ښځې سره دوه قسمه قرابت وی.نودا د یو قرابت والا ښځې نه زیاته حقداره ده.لکه فرمائی.چه حقیقی خوریعنی چه د پلار او مور دواړو طرفه وی.هغه د نورو خویندو نه زیاته حقداره ده.چه صرف د مور یاد پلار د طرفه خور وی.یعنی پلار شریك یا مور شریکه وی په دې وجه دې ته ترجیح ورکړې شوه.بیا به مور شریکې خورته په پلار شریکه خور باندې ترجیح ورکولې شی.ځکه چه خویندو ته د پرورش کولوحق د مور د طرفه دې.په دې وجه به مورشریکې خور ته په پلار شریکه خورباندې ترجیح ورکولې شی.

ثُمَّ الْخَالَاتُ أَوْلَى مِنَ الْعَمَّاتِ بیا تروریانې( د مورخویندې) په نسبت دپلاردخویندو مقدم دی.
وَيَنْزِلْنَ بیا به تروریانې درجه په درجه راکوزیکی كَمَا نَزَلَتِ الْأَخَوَاتُ لکه څنګه چه مونږ خویندې راښکته کړې لَمَّ الْعَمَّاتُ يَنْزِلْنَ كَذَلِكَ بیا د مور خویندوپه شان به د پلارخویندې هم راښکته کیږی.

**حل اللغة>** ① **الخالات**: جمع د **خالة**: ترور ② **العمات**:جمع د **عمة**: ترور یعنی د پلارخور

**تشریح>** بیا د مور خویندې دپلار په خویندو باندې مقدم دی.

**دلیله>** ځکه چه د مور خور ته دمور سره قرابت حاصل دې.د پلارخور ته نه دې حاصل.او په پرورش کولوکښې د مور قرابت ته ترجیح ورکولې شی.د پلار قرابت ته نشی ورکولې.بیا د مورخویندې دغه شان درجه په درجه حقداره دی.لکه څنګه چه مونږ خویندې بیان کړلې.یعنی د بچی د مورخور،ددې دمور حقیقی خور(چه د یومور پلار نه پیدا وی) دا زیات حقدار دی.بیا ددې بچی د مورخورچه صرف مور شریکه وی.بیا هغه چه صرف پلار شریکه وی.حاصل داچه دوه قرابت والو ته به ترجیح ورکولې شی.بیا به د مور قرابت ته د پلار په قرابت باندې ترجیح ورکولې شی.بیا دغه شان درجه په درجه د پلار خویندې دی.یعنی د پلار حقیقی خور مقدم ده.بیا د پلار مور شریکه خور، بیا د پلار، پلار شریکه خور ده.

## د نکاح په وجه د پرورش د حق سقوط

وَكُلُّ مَنْ تَزَوَّجَتْ مِنْ هَؤُلَاءِ او په دې ښځوکښې هرهغه ښځه کومې چه خپله نکاح کړې وی. سَقَطَ حَقُّهَا فِي الْحَضَانَةِ د هغې حق به په حضانت کښې ساقطیږی

**تشریح>** مسئله داده.چه کومو ښځو ته د بچی د پرورش حق حاصل دې.په دوی کښې که چا نکاح اوکړله. نو د دې د پرورش حق به ساقط وی.

**دلائله>** ① دلیل هغه حدیث دې.کوم چه وراندې روایت شوې دې.یعنی نبی کریم ﷺ د بچی مور ته اوفرمائیل. (انت احق به مالم تزوجی ) ته د بچی زیاته حقداره یې چه ترڅو ته نکاح اونکړې. ② ددې بچی د مور خاوند چه کله اجنبی سړې وی.نو دې بچی ته به لږ ځیز ورکوی.او په ورانو سترګو به ورته ګوری.(یعنی غصه به کوی) مطلب داچه دا سړې به دې بچی طرف ته کمه توجه ورکوی.نو بچې دده په پرورش کښې ورکول،د بچی په حق کښې د شفقت خیال نه ساتل دی.

| |
|---|
| اِلَّا الْجَدَّةَ بغير د نيا( د مور مور) نه اِذَا كَانَ زَوْجُهَا الْجَدَّ چه كله ددې ( نيا ) خاوند ددې (بچي) نيكه وی |

**تشريح**> خو كه ددې بچي د مور مور خپله نكاح ددې بچي د پلار پلار سره اوكړله.يا ددې بچي د پلارمور خپله نكاح ددې بچي د مورپلار سره اوكړله.نو( په نكاح سره) ددې نياګانو د پرورش حق نه ساقطيږي.

**دليله**> ځكه چه نيكه (يعني د پلار پلار،ياد مور پلار) ددې بچي د پلار قائم مقام دې.نو ددوی شفقت به باقي پاتې وی.هم دا حال د هغه خاوند دې.چه هغه ددې بچي ،،ذو رحم محرم،، وی.ځكه چه د قرابت قريبه په وجه شفقت باقي پاتې وی.

**د بنځو په غيرموجودګئ كښې د پرورش حقدار**

| |
|---|
| فَإِنْ لَمْ تَكُنْ لِلصَّبِيِّ امْرَأَةٌ مِنْ أَهْلِهِ كه د بچي پرورش كونكې دده په خاندان كښې څوك ښځه نه وی فَاخْتَصَمَ فِيهِ الرِّجَالُ نو دده په پرورش كښې سړو جګړه اوكړله فَأَوْلَاهُمْ بِهِ أَقْرَبُهُمْ نو په دې سړو كښې د ماشوم د تربيت دپاره د ټولو نه زيات مستحق هغه سړې دې تَعْصِيبًا چه په عصبه كيدلو كښې د ټولو نه زيات نيزدې وی |

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.كه د بچي(ماشوم) د پرورش كولو، دده په خاندان او قبيله كښې هيڅ ښځه نه وه.بيا سړو ددې بچي په پرورش كولوكښې اختلاف اوكړلو.نو په دې سړوكښې د پرورش كولو ټولو نه زيات مستحق هغه دې.چه په عصبه كيدلوكښې دې بچي ته په ټولوكښې زيات نيزدې وی.

**دليله**> ځكه چه د ولايت حق زيات قرابت والا ته وی.اود عصبياتو ترتيب خپل ځائې كښې معلوم شوې دې.يعني د ،،ميراث اود نكاح كولو د ولايت په باب كښې،، او ترتيب دادې.چه اول پلار دې.بيا نيكه (د پلار پلار) بيا پرنيكه(د پلار نيكه) بيا هغه څوك دې.چه ددې نه اوچت وی.بيا حقيقي رور دې.بيا پلار شريك رور دې.بيا د حقيقي رور خوې، بيا د پلار شريك رور خوې، بيا هغه تره چه د پلار حقيقي رور وی.بيا هغه تره چه د پلار پلار شريك رور وی.او پاتې شو د تره اولاد ،نود دوی په پرورش كښې هلك وركولې شي.او په دوی كښې به ترتيب دا وی.چه اول به دهغه تره خوې مستحق وی.چه هغه ددې بچي د پلار حقيقي رور وی.بيا د هغه تره خوې،چه هغه ددې بچي د پلار پلار شريك رور وی.او جينئ به د تره اولاد په پرورش كښې نشي وركولې.ځكه چه د جينئ د تره اولاد ددې غيرمحرم دی.

اوكه د ماشومې هيڅ عصبه ولي نه وی.نودا ماشومه به د مورشريك رور په ترتيبت وركولې شي.او كه دا هم نه وی.نو دده خوې ولي دې.او كه دا هم نه وی.نوددې ماشومې ولي به هغه تره وی.چه ددې د پلار، مورشريك رور وی.او كه داهم نه وی.نو ددې ماشومې ولي به ددې حقيقي ماما وی. (يعني ددې ماشومې د مور حقيقي رور) بيا ددې ماشومې د مور پلارشريك رور، بيا ددې ماشومې د مور مورشريك رور،

**ملحوظة**> دا خبره دې ښكاره وی.چه دغيرعصبياتو دپاره د ولايت حق د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.اوچونكه مولا عتاقه اخري عصبه دې.په دې وجه كه هيڅ څوك ولي نه وی.نو هلك به د مولا عتاقه په ترتيبت كښې وركولې شي.خو جينئ به د هيڅ غير محرم عصبه په تربيت كښې نشي وركولې.لكه د تره خوې،او مولا عتاقه.ځكه چه په دې كښې د فتنې خطره ده.

او كه د يويچې څو رونړه وی.نو په دوی كښې چه كوم زيات نيك عمله او متقي وی.ددې بچي د پرورش زيات حقدار دې.او كه په نيكئ او تقوی كښې ټول برابر وی.نو په دوی كښې چه په عمر كښې د ټولو نه لوی وی.هغه به زيات حقدار وی.

**دماشوم هلک د پرورش دپاره د مور اونیا دحق موده**

**وَالْاُمُّ وَالْجَدَّةُ اَحَقُّ بِالْغُلَامِ** موراو نیا( د مورمور) د هلك زیات حقدار دی **حَتّٰی یَاْکُلَ وَحْدَهٗ** تردې چه دې بواځې ( جدا) اوخری **وَیَشْرَبَ وَحْدَهٗ** او خانله اوڅکی. **وَیَلْبَسَ وَحْدَهٗ** او خانله واغوندی **وَیَسْتَنْجِیَ وَحْدَهٗ** او خانله استنجا اوکړی

**حل اللغة** ① **یستنجی**:استنجاء کوی

**تشریح** مسئله داده.چه مور،اود مورمور(نیا) د بچی د پرورش زیاته حقداره هغه وخته پورې وی.چه ترکومه وخته پورې بچې پخپله خوراك شروع کړی.او خانله څکلې شی.او پخپله کپړې اغوستلې شی.او پخپله استنجاء کولې شی.

**روایة جامع الصغیر** حضرت امام محمدرحمه الله په جامع صغیر کښې ذکرکړی دی.چه مور او نیا د هلك زیات حقدار هغه وخته پورې دی.چه بچی مستغنی شی.چه دې خانله خوراك کولې شی.خانله څکلې شی. او خانله کپړې اغوستلې شی.په دواړه روایتونوکښې دا فرق دې.چه په قدوری کښې استنجاء ذکر ده. مستغنی کیدل ذکر نه دی.اوپه جامع صغیر کښې ددې په عکس ذکر دی. حاصل د دواړه روایتونو یو دې.څکه چه پوره مستغنی کیدل هغه وخت کیږی.چه کله بچې په استنجاء قدرت لرلې شی.او په استنجاء باندې قدرت دادې.چه په شروع کښې پرتوګ پرانستلو باندې قدرت لری.او د فراغت نه پس په ترلو باندې قادر شی.

**دلیله** د استغناء ذکر کولو وجه دا ده.چه کله بچې مستغنی شی.نودې د سرو د آداب اواخلاق زده کولو محتاج وی.اود بچی په مؤدب جوړولوکښې پلار ته زیات قدرت حاصل وی.نواوس به دې د مور د تربیت نه اوخی.او د پلار په تربیت کښې به داخلیږی.امام ابوبکر خصافرحمه الله د مستغنی کیدلو اندازه اووه کاله خودلې ده.څکه ماشوم د اووه کاله په عمرکښې عام طور د مور د پرورش نه مستغنی کیږی.اودې خانله په استنجاء کولوباندې قادرکیږی.فتوی هم په دې ده.

**دماشومې جینۍ د پرورش دپاره د مور اونیا د حق موده**

**وَبِالْجَارِیَةِ** او مور اونیا( د مورمور) د جینۍ په پرورش کښې زیات مستحق دی. **حَتّٰی تَحِیْضَ** تردې چه دې ته حیض راشی

**حل اللغة** ① **الجاریة**:جینۍ

**تشریح** امام قدوریرحمه الله فرمائی.چه جینۍ به د حیض راتللو وخت پورې د مور او نیا په پرورش کښې وی.

**دلیله** څکه چه د پرورش نه د مستغنی کیدلو نه پس دې ته د ښځو آداب زده کولوحاجت وی.مثلاً کاتنا (مالوچ داندت کول) ګنډل، خوراك پخول،کپړې وینځل، او ښځه په نسبت د سړو په دې څیزونو باندې زیات قدرت لری.څکه که جینۍ د پلار حواله شوه.نود سړو د مخلوط اوسیدلو په وجه سره به ددې شرم اوحیا کمه شی.حالانکه حیاء د ښځو دپاره زینت دې.اود بالغ کیدلو نه پس، ددې د نکاح په ذریعه د محصنه کولو، اود زنا نه د حفاظت کولو ضرورت دې.او پلار ته په دې کار باندې زیات قدرت حاصل دې.اودې کار طرف ته زیاته راهنمائی حاصل ده.په دې وجه د بالغ کیدلو نه پس د جینۍ زیات حقدار پلار دې.

**روایة عن محمد** هشام د امام محمدرحمه الله نه روایت کړې دې.چه جینۍ هرکله د شهوت حد ته

اورسی.نورپلارته به حواله کولې شي. (1)

**فائده**> څکه چه اوس ددې دحفاظت ضرورت دې.اود شهوت په حد کښې د فقهاؤ اختلاف دې.د بعضومذهب دادې.چه یوولس کاله عمر د شهوت دې.او فقیه ابواللیث رحمه الله فرمائي.چه نه کاله عمر د شهوت حد دې.او یوقول د شپږ کالو په باره کښې دې.او یو د اووه کاله. او یو د اته کالو په باره کښې دې. والله اعلم

**د صغیرې دپاره د مور او نیاګانو علاوه د نوروخلقو سره د اوسیدلو موده**

| |
|---|
| وَمَنْ سِوَى الْأُمِّ وَالْجَدَّةِ أَحَقُّ بِالْجَارِيَةِ اود مور او نیا( د مورمون) نه علاوه ( باقي ښځې) د صغیره جینۍ په پرورش کښې دې حده پورې حقداره دی حَتّٰى تَبْلُغَ حَدًّا الْمُشْتَهٰى چه جینۍ د سړو د خواهش قابله شي |

**تشریح**> شیخ قدوري رحمه الله فرمائي.چه صغیره د مور او نیاګانو نه علاوه، نورو ښځوسره د شهوت د حده پورې ساتلې شي.

**روایة جامع الصغیر**> امام محمد رحمه الله په جامع صغیرکښې فرمائیلي دي.چه صغیره به د مور او نیاګانو نه علاوه نورو خلقو سره دومره مودې پورې ساتلې شي.چه دا صغیره دچا د مدد محتاجه پاتې نشي.یعني خانله خوراك کولې شي.او خانله اغوستلې شي.

**فائده**> څکه چه صغیره اګرچه د ښځو د آدابو زده کولومحتاج ده.خو په آدابو خودلوکښې د صغیرې نه یوقسم خدمت هم اخستلې شي.اود مور اونیاګانو نه علاوه نورو خلقو ته شرعاً د خدمت اخستلوحق نشته‌هم دا وجه ده.چه جینۍ د خدمت د پاره په اجرت باندې ورکول ممنوع دی.نوکه د شهوت حد ته د رسیدلو نه پس د مور او نیاګانو نه علاوه ( بل چا) سره پریخودلې شوه. نو په دې سره به مقصود(آداب زده کول) نه حاصلیږي.

**د وینځې او ام ولد آزادیدلو نه پس په بچي ددوی د پرورش مرتبه**

| |
|---|
| وَالْأَمَةُ إِذَا أَعْتَقَهَا مَوْلَاهَا وینځه چه کله ددې مولا آزاده کړله وَأُمُّ الْوَلَدِ إِذَا أُعْتِقَتْ او ام ولد چه کله آزاده کړې شوه فَهِيَ فِي الْوَلَدِ كَالْحُرَّةِ نودوی د بچي په حق کښې د آزادې ښځې پشان دی |

**تشریح**> مسئله داده.که وینځه ددې مولا آزاده کړله.او هرکله چه ام ولد آزاده کړې شوه.نود بچي په پرورش کښې ددې حق هم د آزادې ښځې پشان دې.ددې صورت دادې.چه مولا د خپلې وینځې یو سړی سره نکاح اوکړله.دهغه نه ئې بچي پیدا شو.بیا مولا دا آزاده کړله.نو ددې بچي د پرورش حقداره به هم دا مور وي.

**فائده**> دلیل دادې.چه د پرورش کولو د حق ثابتولو په وخت دا دواړه آزاد دی.نود خپل مولا په مقابله کښې به دا دواړه د بچي د پرورش زیات حقدار وي.اود آزادیدلو نه وړاندې د وینځې اود ام ولد د پاره د بچي په پرورش کښې هیڅ حق نشته.څکه چه دا دواړه د مولا په خدمت کښې د مشغولیدلو په وجه د بچي د پرورش کولو نه عاجزه دی.د امام شافعي اوامام احمد رحمهما الله هم دا قول دې.

| |
|---|
| وَلَيْسَ لِلأمة وام الولد قَبْلَ الْعِتْقِ حَقٌّ فِي الْوَلَدِ اود آزادیدو نه وړاندې دوینځې او ام ولد دواړو د بچي |

(1) القول الراجح هو قول محمد رحمه الله كذا في فتح القدير(٤\١٨٨) والبحرالرائق (٤\١٧٠) وردالمحتار(٢\٦٩٦) وتبيين الحقائق (٣\٤٩) ومجمع الأنهر(١\٤٩٠) والهندية (١\٥٤٣) نقلاً عن القول الراجح (١\٣٨٠)-

| |
|---|
| پرورش کښي هيڅ حق نشته |

**تشریح**> نفس مسئله اسانه ده

**دلیله**> دلیل دادي.چه د پرورش کولو د حق ثابتولو په وخت دا دواړه آزاد دي.نود خپل مولا په مقابله کښې به دا دواړه د بچی د پرورش زیات حقدار وی.اود آزادېدلو نه وړاندې د وینځې اود ام ولد د پاره د بچی په پرورش کښې هیڅ حق نشته.ځکه چه دا دواړه د مولا په خدمت کښې د مشغولیدلو په وجه د بچی د پرورش کولو نه عاجزه دی.د امام شافعي اوامام احمد رحمهما الله هم دا قول دې.

**د ذمیه کتابیه ښځې پخپل مسلمان بچي د پرورش حق**

| |
|---|
| وَالذِّمِّيَّةُ أَحَقُّ بِوَلَدِهَا الْمُسْلِمِ او ذمیه ښځه د خپل مسلمان بچي زیاته حقداره ده مَا لَمْ يَعْقِلِ الْأَدْيَانَ تر هغه وخته پورې چه بچې دینونه نه پیژنی أَوْ يُخَافُ أَنْ يَأْلَفَ الْكُفْرَ یا دا یره نه وی.چه دا به کفرسره مینه اوکړی |

**تشریح**> مسئله که یومسلمان سړی د یوې ذمیه کتابیه ښځې سره نکاح اوکړله.بیا ددې نه بچې پیدا شو. نو دابچې به د (خیرالأبوین دیناً)تابع وی.یعنی د مسلمان پلار تابع به وی.او مسلمان به وی.خوددې بچی د پرورش کولو زیات مستحق به ددې ذمیه مور وی.خودا استحقاق به د ذمیه دپاره ترهغه وخته پورې وی.چه ترکومه وخته پورې په ده کښې د دین سمجه (پوهه) نه وی.اود بچی په کفر باندې د متاثره کیدلو ویره نه وی.او هرکله چه بچې په دین او مذهب باندې پوهه شی.یا د بچی په کفر سره د متاثره کیدلو خطره وی.نو په داسې حالت کښې به د بچی د پرورش کولو مستحق ذمیه ښځه نه وی.

**دلیله**> دلیل دادي.چه ددې حالت نه وړاندې بچې د ذمیه په سپارلوکښې په ده باندې شفقت دې.او ددې حالت نه پس د ضرر احتمال دې.په دې وجه چه کله بچې په دین باندې پوهه شی.نودا به د ذمیه نه اخستلې شی. او مسلمان پلار ته به ورکولې شی.

**د مطلقه ښځې دپاره د خپل بچي د ښار نه د ویستلو اختیار**

| |
|---|
| وَإِذَا أَرَادَتِ الْمُطَلَّقَةُ که مطلقه ښځې اوغوښتل أَنْ تُخْرِجَ بِوَلَدِهَا مِنَ الْمِصْرِ چه خپل بچې ددې ښارنه بهر بوخي فَلَيْسَ لَهَا ذَلِكَ نودې ته دا اختیار نشته. |

**تشریح**> مسئله داده.چه د عدت پوره کیدلو نه پس که مطلقه ښځه اوغواړی.چه خپل بچې ددې ښار نه بهر بوخي.نودې ته دا اختیار نشته.

**دلیله**> ځکه چه په داسې کولوکښې پلار ته د خپل بچی په جدایئ کښې تکلیف وی.

| |
|---|
| إِلَّا أَنْ تُخْرِجَهُ إِلَى وَطَنِهَا البته دا خپل وطن ته بوتلې شی وَقَدْ كَانَ الزَّوْجُ تَزَوَّجَهَا فِيهِ او حال داچه خاوند دې ښځې سره هم په دغه مقام کښې نکاح کړې وی |

**تشریح**> خوکه دا بچې خپل وطن ته بوتلل اوغواړی. په داسې حال کښې چه خاوند دې ښځې سره هم په دې مقام کښې نکاح کړې وی.نو ښځې ته ددې اختیار شته. (چه هلته کښې ئې بوځی)

**دلیله**> دلیل داد ی.چه د ښځې په وطن کښې نکاح کولوسره عرفاً اوشرعاً هلته کښې قیام کول په خپل ځان باندې لازم کړې وو.عرفاً ځکه چه خاوند عادةً په هغه ښار کښې قیام کوی.په کوم ښارکښې چه

نکاح اوکړي.او شرعاً ځکه چه نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. (من تأهل ببلد فهو منهم) (۲)یعنی کوم سړی چه په کوم ښارکښې نکاح اوکړله.نودې هم د هغوی څخه دې. او ابن ابی شیبهؒ په خپل مصنف کښې د حضرت عثمان ﷺ نه روایت نقل کړی دی.چه دوی په منی کښې پوره څلور رکعته مونځ اوکړو.بیا ئې اوفرمائیل. (قال رسول الله ﷺ من تأهل في بلد فهو من أهلها يصلي بصلاة المقيم وإني تأهلت منذ قدمت مكة) یعنی رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه کوم کس په کوم ښار کښې نکاح اوکړله.نودې هم هغه ښار والوکښې شمارلی شی.چه دې د مقیم مونځ اوکړی.اوزه چه کوم وخت مکې ته داخل شوم.نو ما یوې ښځې سره نکاح اوکړله.او په یو روایت کښې دی. (سمعت رسول الله ﷺ يقول من تأهل في بلد فليصل بصلاة المقيم) ځکه چه په دې کښې د بچی په حق کښې بهتری ده.چه دې د ښار دخلقو اخلاق زده کړی.او په دې کښې د پلار په حق کښې هم څه ضررنشته.اوکه ددې په عکس د ښار نه بهر کلی ته بوتلل اوغواړی.نود بچی په حق کښې ضرر دې.ځکه چه د بانډیچیانو اخلاق به زده کړی.نو ښځې ته د داسې کولو اختیار نشته.

**د مور پلار اود نیا.او نیکه د نفقه احکام**

| |
|---|
| وَعَلَى الرَّجُلِ په سړی باندې واجب دی أَنْ يُنْفِقَ عَلَى أَبَوَيْهِ وَأَجْدَادِهِ وَجَدَّاتِهِ چه خپل مورپلار ،نیکونو او نیاگانو ته نفقه ورکړی إِذَا كَانُوا فُقَرَاءَ که دوی محتاج وی وَإِنْ خَالَفُوهُ فِي دِينِهِ اگرچه په دین کښې ددوی مخالف وی |

**تشریح**﴾ د اولاد نفقه نه د فارغ کیدلو نه پس په دې تفصیل کښې د مورپلار ،او(د پلار د طرفه) د نیا نیکه، نفقه ده.کله چه دوی محتاجه وی.اگرچه په دین کښې دده نه مخالف وی.

**دلیل وجوب نفقة الابوین**﴾ د مورپلار په نفقه کښې دلیل د الله تعالی قول ﴿ وَإِنْ جَاهَدَاكَ عَلَى أَنْ تُشْرِكَ بِي مَا لَيْسَ لَكَ بِهِ عِلْمٌ فَلَا تُطِعْهُمَا وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا وَاتَّبِعْ سَبِيلَ مَنْ أَنَابَ إِلَيَّ ﴾ دې.یعنی که دوی دواړه په تا باندې ددې خبرې زور راوړی.چه ماسره داسې څیز شریك جوړکړه.چه دهغې تاسره څه دلیل نه وی.نو دوی خبره مه منه.او په دنیاکښې ددوی سره ښه وخت تیره وه.اود هغه کس په لاره روان اوسه.څوك چه ما طرف ته رجوع کوی.(سورة لقمان) دا آیت د سعدبن ابی وقاص په باره کښې نازل شوی دی.دا پخپله مسلمان شوې وو.او دده مور جمیله کافره وه.او د سعد د اسلام راوړلو په وجه خوراك څکاك هم پریخودې وو.نو حضرت سعد ﷺ د نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشو.نودا آیت نازل شو.ددې حاصل دادې.چه د دین په معامله کښې ددوی اطاعت مه کوه.البته په دنیاوی معاملاتوکښې ددوی سره په معروف طریقه (رواج مطابق) چلیږه.په معروف طریقه اوسیدل دا نه دی.چه په خپله خو د الله تعالی په نعمتونوکښې عیش (مزې) کوی.او مورپلار پریږدی.چه دوی د اولگې مره شی.ددې آیت نه ښکاره شوه.که مورپلار محتاج وی.نو په خوی باندې ددوی نفقه واجب ده.اگرچه په دین کښې د دواړو اختلاف ولې نه وی.

**ملحوظة**﴾ یاد ساتی:چه د آیت ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا﴾ مصداق غیرحربی مورپلار دی.او که مورپلار حربی وی.نو ددې تفصیل روستو راروان دې

٢) من حديث عبدالله بن عبدالرحمن بن الحارث بن أبي ذئاب عن أبيه أخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه (نصب:٣/١٩٥)

**دليل وجوب نفقة الاجداد والجدات>** د مورپلار نه علاوه (د پلار د طرفه) نیا نیکه دپاره د نفقه دوجوب دلیل دادې.چه دوی هم د پلارانو او میاندوخنې دی.هم دا وجه ده.که پلار نه وی.نو نیکه دده قائم مقام وی. دویم دلیل دادې.چه نیا اونیکه هم د سرې د ژوندی اوسیدلو سبب دی.نو هم په دې سرې باندې د خپل ژوند استحقاق لری.لکه څنګه چه په مورپلار کښې دی.

**شرطية الفقر>** د محتاجه کیدلو شرط ئې په دې وجه لګولې دې.چه پلار که مالداره وی.نو دده نفقه په خپل مال کښې واجبیدل غوره دی.په نسبت سره دغیر په مال کښې د واجبیدلو نه.نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی. (کل من کد يمينك وعرق جبينك) یعنی د خپل لاس اود وینې خولې په محنت سره خوره.

**وجه عدم الفرق في اختلاف الدين>** او پاتې شو د دین اختلاف،نوداً د نفقه واجبیدلو نه مانع نه جوړیږی.دلیل آیت ﴿وَصَاحِبْهُمَا فِي الدُّنْيَا مَعْرُوفًا﴾ دی.دا آیت دلالت کوی.چه مورپلار که مؤمن وی.او که کافر وی.دوی سره د اعتدال سلوك کوئ. امام مالك او امام شافعی رحمهما الله هم ددې قائل دی.

## په دینی اختلاف سره د نفقه عدم وجوب

| |
|---|
| وَلَا تَجِبُ النَّفَقَةُ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّينِ او په دینی اختلاف سره دچا نفقه نه واجبیږی إِلَّا لِلزَّوْجَةِ وَالْأَبَوَيْنِ وَالْأَجْدَادِ وَالْجَدَّاتِ وَالْوَلَدِ وَوَلَدِ الْوَلَدِ سوا د ښځې نه.اود مورپلار، نیکونو، نیاګانو،او خامن، او نمسو نه، |

**تشريح>** مسئله داده.چه د دینی اختلاف په موجودګئ کښې د هیڅ چا نفقه نه واجبیږی.سوا د ښځې ،د مور پلار،او (د پلار د طرفه) د نیا نیکه،اود خوی اود نمسی.

**دليل وجوب النفقة للزوج>** د دینی اختلاف باوجود د ښځې نفقه ددې په خاوند باندې په دې وجه واجب ده.چه د ښځې دپاره نفقه د نکاح د عقد په وجه واجبیږی.ځکه چه ښځې خپل ځان د خاوند مقصودی حق یعنی د وطی وغیره دپاره محبوس ساتلې دې.او په دې کښې د زوجینو دینی اعتبار سره د متحد کیدلو هیڅ دخل نشته.

**دليل وجوب غير الزوجة من المذكورين>** د ښځې نه علاوه د باقی خلقو نفقه په دې وجه لازم ده.چه جزئیت ثابت دې.د ولد جزء کیدل خو ښکاره دی.او ددې نه علاوه د مورپلار،او نیا نیکونو وغیره (جزئیت) ځکه دې.چه دوی ته د اولاد رشته شامل ده.بهرحال په دې ټولو کښې د جزئیت معنی موجود ده.اود سرې جزء دده د ذات په حکم کښې وی.نو لکه څنګه چه سرې دخپل ذات نفقه د خپل کفر په وجه نه منع کوی.نوهم دغه شان دچا سره چه دده دجزءیت علاقه وی.دهغوی نفقه هم نشی بندولې.

**صورة الاستثناء>** که دوی محتاج وی.نوددوی نفقه به واجب وی اګرچه دې خلقو امان اخستې وی.او په داراسلام کښې داخل شوې وی.ځکه چه څوك مونږ سره د دین په باره کښې جنګ کوی.که هرڅوك وی.مونږ ددوی سره د احسان کولو نه منع شوی یو.ارشاد دې.﴿لَا يَنْهَاكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ لَمْ يُقَاتِلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَلَمْ يُخْرِجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْهُمْ وَتُقْسِطُوْٓا اِلَيْهِمْ ۚ اِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِيْنَ ﴿۸﴾ اِنَّمَا يَنْهٰىكُمُ اللهُ عَنِ الَّذِيْنَ قٰتَلُوْكُمْ فِي الدِّيْنِ وَاَخْرَجُوْكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ وَظٰهَرُوْا عَلٰٓى اِخْرَاجِكُمْ اَنْ تَوَلَّوْهُمْ ۚ وَمَنْ يَّتَوَلَّهُمْ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۹﴾﴾ د آیت ترجمه په رومبئ مسئله کښې تیره شوې ده.هلته کښې ئې اوګورئ.حاصل داچه ددې خلقو نفقه که کافر وی.نو په مسلمان به هغه وخت واجب وی.چه دا خلق په داراسلام کښې مطیع وی.ګنی واجب نه ده.

## په غریب مورپلار باندې د مالداره اولاد نفقه

| |
|---|
| وَلَا يُشَارِكُ الْوَلَدَ فِي نَفَقَةِ أَبَوَيْهِ أَحَدٌ اود مورپلار په نفقه کښې به څوی سره هیڅ څوك نه شریکیږی |

**تشريح**> مسئله داده.كه موريلار غريبانان وي.او ددوى بچي مالداره وي.نوددوى نفقه به خاصكر هم په ده باندې واجب وي.ده سره به په نفقه وركولوكښې بل څوك شريك نه وي.

**دلائله**> ① څكه چه موريلار د بچي په مال كښې د حديث (أنت ومالك لأبيك) (۹۰)په وجه تاويل كولې شي.اود غير په مال كښې تاويل نشي كولې.نوداً دواړه به دخپل څوى د مال په وجه مالداره شمارلې شي.اود مالدار نفقه په غير باندې واجب نه وي.نو ددوى دواړو په نفقه كښې به غيرولد شريك نه وي.

②دويم دليل دادې.چه نفقه يوه عطيه ده.چه دا د قرابت په وجه واجبيږي.نوڅوك چه موريلار ته زيات نيزدې وي.هم دې به د نفقه وركولو زيات مستحق وي.او چونكه بچي خپل موريلار ته زيات نيزدې وي.په نسبت سره د نوروخلقو،په دې وجه به د موريلار نفقه صرف هم په ده باندې واجب وي.

**تسوية الذكور والاناث**> د موريلار په نفقه كښې جينئ او هلك دواړه برابر دى.داحكم د ظاهرالروايه دې.اوهم دا صحيح ده.تردې كه پلار محتاج وي.او دده يو هلك او يوه جينئ ( يعنى لور او څوي) مالداره وي.نو په دې دواړو باندې به نفقه نيمه نيمه ( برابر) واجب وي.څكه چه د نفقه د وجوب سبب، يعنى ولادت دواړو ته يوشان (برابر) شامل دې.ددې په خلاف كه د يومحتاج سړي يو رور او خور مالداره وي.نو په دوى به دده نفقه اثلاثاً واجب وي.يعنى په درې حصوكښې به دوه حصې په رور باندې او يوه حصه به په خورباندې واجب وي.لكه څنګه چه په ميراث كښې په دريو حصوكښې دوه حصې رور ته او يوه حصه خور ته ملاويږي.څكه چه په دې صورت كښې د نفقه د وجوب سبب ميراث دې.

**د ذي رحم محرم دپاره د نفقه وجوب**

| |
|---|
| وَالنَّفَقَةُ وَاجِبَةٌ لِكُلِّ ذِي رَحِمٍ مَّحْرَمٍ مِّنْهُ او نفقه د هرذي رحم محرم دپاره واجبيږي إِذَا كَانَ صَغِيرًا فَقِيرًا چه دوى صغير محتاج وي أَوْ كَانَتِ امْرَأَةً بَالِغَةً فَقِيرَةً يا ښځه بالغه محتاجه وي. أَوْ كَانَ ذَكَرًا فَقِيرًا زَمِنًا يا سړې محتاج شل أَوْ أَعْمَى فقيرا يا ړوند او فقير وي |

**تشريح**> مسئله داده.چه ذى رحم محرم كه نا بالغه محتاج وي.يا ښځه بالغه محتاجه وي.يا سړې بالغ محتاج،ګډشل يا ړوند وي.نو ددوى دپاره نفقه واجبيږي.ذي رحم محرم هغه دې.چه دده سره ، ،على التابيد ،نكاح حرام وي.اود ذى رحم محرم قيد په دې وجه لګولې شوې دې.كه رحم اومونډې شي.او محرم اونه مونډې شي.لكه د تره څوې، يا محرم وي.او رحم نه وي.لكه رضاعى رور يا خور.يا رحم او محرم دواړه اومونډې شي.خود قرابت نه بغير وي.لكه د تره څوې،چه رضاعى رور هم وي.نو ددوى دپاره به نفقه واجب نه وي.بهرحال ذى رحم محرم كه نابالغه محتاج وي.يا ښځه بالغه محتاجه وي.يا سړې بالغ محتاج، شل يا ړوند وي.

**دليله**> ددوى دپاره د نفقه د وجوب دليل دادې.چه احسان كول په قرابت قريبه كښې واجبيږي.او په قرابت بعيده كښې نه واجبيږي.الله تعالى فرمائى. ﴿وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذَٰلِكَ﴾ يعنى په وارث باندې ددې مثل واجبيږي.اود عبدالله بن مسعود رضى الله عنهما په قرات كښې دى. (وعلى الوارث ذى الرحم المحرم مثل ذالك) يعنى ، ،په هر داسې وارث باندې چه دده رشته دائمى حرام شوې وي.ددې مثل واجب دې، ، اوپه قرابت قريبه او بعيده كښې فاصل دادې.كه ذى رحم محرم وي.نو قرابت قريبه دې.اوكه دا نه وي.نو قرابت بعيده دې.

---

۹۰) بشوال حديث انت ومالك لأبيك وسيأتى تخريجه فى الحدود.

**شرطية وجوه الاعلام المذكورة>** د نفقه د وجوب دپاره محتاج کيدل ضروري دی.يعنی د نفقه د وجوب دپاره محتاج کيدل شرط دی.او نابالغ کيدل، يا ښځه کيدل،يا ګډشل کيدل يا نابينا (روند) کيدل،د محتاج کيدلو دليل دې.ځکه چه په دې صورتونوکښې د کمائی (مزدورئ) نه عاجزه کيدل متحقق کيږی.ځکه چه کوم کس مزدوری کولې شی.هغه د خپلې مزدورئ په وجه محتاجه نشی کيدلې.بلکه غنی وی.

**وجه الفرق بين الابوين والمحارم>** ددې په خلاف موريلار دی.که دوی مزدوری کولې شی.بيا هم ددوی نفقه په اولاد باندې واجب وی.دليل دادې.چه په مزدوری کولوسره به په موريلار ته مشقت (تکليف) رسيږی.حالانکه اولاد ته حکم ورکړې شوې دې.چه د موريلار نه ضرر لرې کړی.نو که موريلار ته د مزدورئ طاقت هم وی.نو بيا هم ددوی نفقه په اولاد باندې واجب ده.

**د ميراث په مقدار د نفقه وجوب**

| |
|---|
| **وَيَجِبُ ذٰلِكَ عَلٰى مِقْدَارِ الْمِيرَاثِ** چه نفقه به دميراث په مقدار واجب وی |

**تشريح>** مسئله: نفقه د ميراث په مقدار واجبيږی.يعنی څومره قدرې چه ميراث ملاويږی.هم دومره قدرې به په ده باندې نفقه واجب وی.اود نفقه په دې مقدار باندې به دې مجبوره کولې شی.

**دلائله>** ① دليل دادې.چه په آيت (وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ) کښې وارث ته صراحت کول په دې خبره باندې خبردارې دې.چه په نفقه کښې د ميراث د مقدار معتبر دې.

② د حاصلاتو په اندازه سرې تاوان برداشت کوی.يعنی څومره قدرې چه ده ته ميراث ملاويږی.هم په دې حساب سره به بالفعل مورث ته نفقه ورکوی.او پاتې شو دده مجبوره کول،نودا ځکه دی.چه کوم حق په ده باندې واجب دې.چه هغه اداکړی.

**د بالغې جينئ اود شل هلك دپاره د نفقه مقدار**

| |
|---|
| **وَتَجِبُ نَفَقَةُ الْاِبْنَةِ الْبَالِغَةِ وَالْاِبْنِ الزَّمِنِ عَلٰى اَبَوَيْهِ اَثْلَاثًا** چه د بالغې جينئ او شل هلك نفقه به په موريلار باندې درې حصې کولې شی **عَلَى الْاَبِ الثُّلُثَانِ** دوه حصې په پلار باندې **وَعَلَى الْاُمِّ الثُّلُثُ** اويوه حصه به په مور باندې واجب وی. |

**تشريح>** مسئله:د بالغې جينئ نفقه، اود بالغ شل هلك نفقه به ددوی په موريلار باندې درې حصې کولې شی.دوه حصې به پلار باندې او يوه حصه به په مورباندې واجب وی.

**دليله>** دليل دادې.که پلار د خپل خوی ياد لور وارث شی.نو ده ته هم په دې حساب سره ميراث ملاويږی. نو په دوی به نفقه هم ددې مقدار مطابق واجبيږی.

مصنف د هدايه رحمه الله فرمائيلی دی.چه د قدوری دا ذکر کول،د امام خصاف اود حسن رحمه الله روايت دی.امام شافعی رحمه الله هم ددې قائل دې.

**د دين د اختلاف په وجه د ميراث بطلان او نفقه**

| |
|---|
| **وَلَا تَجِبُ نَفَقَتُهُمْ مَعَ اخْتِلَافِ الدِّيْنِ** اود ذورحم محارمو نفقه په دينی اختلاف سره نه واجبيږی |

**تشريح>** ددې باوجود که په دين کښې اختلاف وی.نو نفقه به واجب نه وی.

**دليله>** ځکه چه د دين د اختلاف په صورت کښې د ميراث لياقت باطل دې.حالانکه د نفقه د وجوب دپاره ددې اعتبار ضروری دې.

## په محتاج باندې د نفقه عدم وجوب

| |
|---|
| وَلَا تَجِبُ عَلَى الْفَقِيرِ او نفقه په محتاج باندې نه واجبيږي |

**تشريح**> مسئله داده.چه دا نفقه په محتاج باندې نه واجبيږي.

**دليله**> دليل دادې.چه نفقه د صله رحمئ په طور باندې واجبيږي.حالانکه محتاجه پخپله ددې مستحق دې. چه بل څوك په ده باندې احسان اوكړي.نو په ده به نفقه څنګه واجبولې شي.

## د غائب څوی په مال کښې د مورپلار نفقه

| |
|---|
| وَإِذَا كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ اوکه دغائب څوی سره مال دې قُضِيَ عَلَيْهِ بِنَفَقَةِ أَبَوَيْهِ نو په دې مال کښې به د مورپلار د نفقې حکم ورکولې شي |

**تشريح**> صورت د مسئلې او دليل دواړه ښکاره دی.

## د خپل غائب څوی سامان خرڅول

| |
|---|
| وَإِذَا بَاعَ أَبُوهُ مَتَاعَهُ فِي نَفَقَتِهَا اوکه پلار د خپل غائب څوی سامان( پخپله) نفقه کښې خرڅ کړو جَازَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ تَعَالَى .نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز جائز دی وَإِنْ بَاعَ الْعَقَارَ که پلار دده زمکه خرڅه کړه لَمْ يَجُزْ نوجائز نه ده |

**تشريح**> مسئله داده.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز پلار له د خپل غائب څوی سامان په خپله نفقه کښې خرڅول جائز دی.اودا حکم استحسانی دې.او که پلار د خپل غائب څوی زمکه يا کور(جائيداد غير منقوله) خرڅ کړلو.نو جائز نه دی.

**دليله**> د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه پلار ته د غائب څوی په مال کښې دحفاظت ولايت حاصل دې. لکه چه د حفاظت په خاطر وصی ته دا ولايت حاصل دې.چه د غائب بالغ وارث سامان خرڅ کړي.نو هرکله چه وصی ته اختيار حاصل دې.نو پلار ته به په درجه اولی حاصل وی.ځکه چه د پلار شفقت زيات دې.او،مال متقوم،، خرڅول د حفاظت د اقسامو څنې دې.او په غيرمنقوله مال کښې دا خبره نشته.ځکه چه دا پخپله محفوظ وی.اود پلار نه علاوه نورو قرابتدارو (رشته دارو) ته دا اختيارنشته.ځکه چه دوی ته هيڅ قسمه ولايت حاصل نه دې.نه دوی ته دده په ماشوموالی کښې د تصرف اختيار وو.اونه د بالغ کيدلو نه پس د حفاظت ولايت شته.

**مسلك الصاحبين**> د صاحبينو رحمهما الله په نيز جائيداد منقوله اوغيرمنقوله هيڅ څه خرڅول جائز نه دی.او قياس هم دادې.

**دليلهما**> دليل دادې.چه پلار ته په دې باندې ولايت نشته.ځکه چه د بالغ کيدلو په وجه په ده باندې ولايت منقطع شوې دې.په دې وجه که څوی حاضر وی.نو پلار ته دخپل څوی مال خرڅولو اختيار نشته.اود نفقه نه علاوه ئې د بل هيڅ قرضه دپاره نشی خرڅولې.او هم دغه شان نورجائيداد په نفقه کښې نشی خرڅولې.

## د غائب څوی د مال نه خپله نفقه اخستل

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ لِلِابْنِ الْغَائِبِ مَالٌ فِي يَدِ أَبَوَيْهِ اوکه د غائب څوی مال دده د مورپلار په قبضه کښې دې وَأَنْفَقَا مِنْهُ او مورپلار ددې نه نفقه واخستله لَمْ يَضْمَنَا نو ضامن به نه وی |

**تشريح**> مسئله داده.که څوی په سفر لاړلو.او دده مال د مورپلار په قبضه کښې وی.اومحتاج مورپلار ددې نه خپله نفقه واخستله.نو دوی به ضامن نه وی.

**دلیله>** دلیل دادي.چه دوی دوارو خپل حق حاصل کړلو.ځکه چه د قاضی دحکم نه وراندې ددوی نفقه واجب ده.لکه چه وراندې د (ولا یقضی بالنفقة فی مال الغائب الا لهؤلاء) په تشریح کښې بیان شو.او دوی دوارو د خپل حق د جنس څنې اخستې دي.په دې وجه به هم ضامن نه وی.

**د غائب د مال نه د هغه موریلار له نفقه ورکول**

وَإِنْ كَانَ لَهُ مَالٌ فِي يَدِ أَجْنَبِيٍّ اوکه د غائب خوی مال د یو اجنبی کس په قبضه کښې وی فَأَنْفَقَ عَلَيْهِمَا بِغَيْرِ إِذْنِ الْقَاضِي ده دده په موریلار باندې د قاضی دحکم نه بغیر خرچ کړو ضَمِنَ نو دې به ضامن وی

**تشریح>** مسئله داده.چه خوې غائب وی.او دده مال د یو اجنبی کس په قبضه کښې وی.اوده دده موریلار ته د قاضی د اجازت نه بغیر ددې نه نفقه ورکړله.نودا اجنبی کس به ضامن وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه دې اجنبی کس د غیر په مال کښې د ولایت نه بغیر تصرف کړې دې.ځکه چه دې صرف دحفاظت نائب دې.بل څه اختیار ده ته نشته.

**د تیرشوی وخت د نفقه سقوط**

وَإِذَا قَضَى الْقَاضِي لِلْوَلَدِ وَالْوَالِدَيْنِ وَذَوِي الْأَرْحَامِ بِالنَّفَقَةِ او کله چه قاضی د خوی دپاره،اود موریلار دپاره،اود ذوی الارحام دپاره د نفقې حکم ورکړو فَمَضَتْ مُدَّةٌ بیا یوه موده تیره شوه سَقَطَتْ نو(ددې مودې نفقه) ساقط شوه.

**تشریح>** مسئله داده.چه هرکله قاضی په یوسړی باندې دده د بچو،د موریلار، اود نورو قرابت دارو نفقه مقرر کړله.بیا د نفقه ورکولو نه بغیر څه موده تیره شوه.نو ددې مودې نفقه به ساقط وی.امام شافعی او امام احمد رحمهما الله هم ددې قائل دی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه ددې خلقو نفقه د ضرورت پوره کولو دپاره واجبیږی .تردې که دا خلق مالداره وو.نو ددوی دپاره به نه واجب کیدلې.اود دومره مودې تیریدلو سره ددې مودې کفایت شوې دې.په دې وجه ددې مودې نفقه ساقطیږی.

إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُمُ الْقَاضِي فِي الْإِسْتِدَانَةِ عَلَيْهِ مګرداچه قاضی په ده باندې د قرضه اخستلو حکم ورکړی

**تشریح>** امام قدوری رحمه الله فرمائی.که قاضی د غائب سړی په ذمه باندې د قرض اخستلو حکم کړې وی.نود مودې په تیریدلو سره به ددوی نفقه نه ساقطیږی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه قاضی ته ولایت عامه حاصل دې.نود قاضی حکم ورکول داسې شو.لکه چه غائب سړی په خپله اجازت ورکړې وی.چه زما په ذمه قرض اخله.نودا قرض پخپله دده په ذمه شو.نود مودې په تیریدلو سره به نه ساقطیږی.

**د غلام او وینځې نفقه**

وَعَلَى الْمَوْلَى: په مولا واجب دی. أَنْ يُنْفِقَ عَلَى عَبْدِهِ وَأَمَتِهِ چه خپلې وینځې او غلام ته نفقه ورکړی

**تشریح>** په دې فصل کښې د مملوك او غیرمملوك حیواناتو وغیره دنفقه حکم دې.

مسئله داده.په آقا باندې واجب ده.چه دې خپل غلام او وینځې ته نفقه ورکړی.

**فائده** > څکه چه نبی کریم ﷺ د مملوکو(غلامانو) په حق کښې فرمائیلی دی. «انهم إخوانكم جعلهم الله تعالى تحت أيديكم أطعموهم مما تأكلون وألبسوهم مما تلبسون ولا تعذبوا عباد الله» (۱) یعنی ، ،دا خلق ستاسو رونړه دی.الله تعالی دوی تاسوته د لاس لاندې ( په قبضه کښې) درکړی دی.نو څه چه پخپله خورئ.د هغې نه په دوی هم خوراك کوئ.اوڅه چه تاسو اغوندئ.د هغې نه دوی ته هم اغوندئ.اود الله تعالی بنده ګانو ته تکلیف مه ورکوئ. ، ددې حدیث نه معلومه شوه.چه په آقا باندې دده د غلام نفقه او کسوه(لباس) واجب دی.خو په حدیث کښې د خوراك اولباس جنس مراد دې.یعنی دوی ته نفقه ورکوئ.او کپړه ورکوئ.دا مراد نه دې.چه څنګه تاسو خورئ.هم هغه شان دوی باندې هم خورئ.او چه څنګه تاسو اغوندئ.هم هغه شان دوی ته هم اغوندئ.نوکه مولا خپل غلام ته سوچه کپړه ورکړله.او پخپله ددې نه ښه اغوندی.نو صحیح ده.

| |
|---|
| فَإِنْ امْتَنَعَ مِن ذالك نو که مولا د نفقه ورکولو نه منع شو وَكَانَ لَهُمَا كَسْبٌ او غلام او وینځې ته د ګټلو صلاحیت شته اكْتَسَبَا نو مزدوری دې کوی وَأَنْفَقَا منه او د هغې نه دې خوري |

**تشریح** > بیا که مولا دوی ته د نفقه ورکولونه انکار اوکړلو.نو که وینځه اوغلام د مزدورئ صلاحیت لرلې شی. نومزدوری به کوی.او خپله ګزاره به کوی.

**فائده** > څکه چه په دې کښې دواړه طرف ته رعایت دې.د مملوك (غلام) رعایت خو دا دې.چه که مزدوری کوی.او خوری.نو ژوندې به وی.اود مولا رعایت دادې.چه دده ملك به باقی پاتې وی.چه کله غواړی.خرڅ به ئې کړی.

| |
|---|
| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا كَسْبٌ اوکه په دې دواړوکښې د ګټې کولو لیاقت نه وی أُجْبِرَ الْمَوْلٰى عَلٰى بَيْعِهِمَا نو مولا به ددې دواړو په خرڅولو باندې مجبوره کولې شی |

**تشریح** > که دوی دواړه د مزدورئ صلاحیت نه لری.مثلاً غلام ګډشل دې.یا وینځه داسې وی.چه دا څوك په اجرت باندې نه اخلی.نو په دې صورت کښې به مولا مجبورولې شی.چه دا خرڅ کړی.

**فائده** > څکه چه دا دواړه د نفقه مستحق دی.اود استحقاق اهلیت هم لری.او په خرڅولو کښې به ددوی دواړو حق هم اداشی.اود مولا د حق خلیفه یعنی د مملوك قیمت به ده ته حاصل شی.

# كِتَابُ الْعِتَاق

**ترجمه** > (دا) کتاب د ازادئ (د احکامو په بیان کښې) دې .

**تشریح** > **الربط بما قبله** > د آزادئ او طلاق په مینځ کښې مناسبت دادې.چه په دې دواړوکښې هر یو د اسقاط د قبیلې څخه دې.خودومره خبره ده.چه اعتاق ملك د رقبه ساقطوی.اوطلاق ملك د منافع ساقطوی.دویم مناسبت دادې.چه په دې دواړو کښې هریوکښې لزوم دې.لکه څنګه چه عتق فسخ نه قبلوی.دغه شان طلاق هم فسخ نه قبلوی.طلاق اګرچه غیرمندوب دې.خو ددې باوجود مقدم کړې شو.چه د نکاح په مقابله کښې ذکرشی.د اسقاطاتو یوځولسمونه دی. ، ،اسقاط حق عن الرق، ، عتق

(۱) من حدیث ابی ذر رضی الله عنه اخرجه البخاری العتق باب ۱۲ ومسلم فی الایمان والنذور رقم ۳۸ وابوداود فی الادب باب ۱۲٤ رقم ۵۱۵۷).

دي.او ،،اسقاط حق عن البضع ،،طلاق دي.اوکوم څیزچه دچا په ذمه وي.هغه ساقطول ابراء ده.او ،،اسقاط حق عن القصاص والجراحات ،، عفو ده.

**تعریف العتق لغة** په لغت کښې د ،،عتق،، معنی قوت دي.،،عتق الفرخ،، هغه وخت ونیلې شي.چه کله د مرغۍ بچې طاقتور شي.او په خپلو وزرو باندې والوځي.او ،،فرس عتیق،، هغه اس ته ونیلې شي.چه په منډه کښې د ټولو نه وړاندې شي.او ښکاره خبره ده.چه دا کار د قوت او طاقت نه بغیر نه کیږي.او ،،بیت عتیق،، کعبه ته هم په دې وجه ونیلې شي.چه دا د الله تعالی د قوت په وجه پخپل خان باندې هرحمله کونکې، او مالکانه قبضه کونکې دفع کوي.او په شریعت کښې عتق هغه شرعي قوت ته ونیلې شي.چه ددې په وجه انسان د شهادت، ولایت، اود قضاء اهل جوړیږي.

**مفهوم العتق** عتق (آزادي) مملوك حکماً ژوندې کول دی.څکه چه مملوك جماداتو سره ملحق کیږي.نو هرکله چه دې آزاد کړې شو.نود بشري کرامتونو اهل شو.مثلاً د آزادۍ نه پس دده ګواهي قبلولې شي.او ده ته د ولایت حق حاصلیږي.اود آزادۍ نه پس ددې صفاتو حاصلیدل کوم چه د آزادۍ نه وړاندې حاصل نه وو.په حقیقت کښې ده ته ژوند ورکول دي.

**سبب** بیا د عتق سبب په دوه قسمه دې. ①اول داچه د سړي په ذمه واجب وي.لکه په کفاره او نذر وغیره کښې آزادول واجب وي.

②دویم داچه واجب نه وي..نو په دې کښې یو اختیاري وي.او بل غیر اختیاري وي. اختیاري دادې.چه یوکس د ثواب په نیت سره غلام آزادکړلو.او غیر اختیاري دادې.چه خپل قرابتي ئې واخستلو.نودې دده مالك جوړشو.اودې آزاد شو.

**شرطه** اود عتق شرط دادې.چه آزادونکې پخپله آزاد وي.او عاقل بالغ وي.اود مملوك مالك وي.که سړې وي. اوکه ښځه وي.او دعتق رکن هغه دې.چه په هغې سره آزادي ثابت شي.او ددې حکم رقیت اوملك د محل نه زائل کیدل دي.

**اقسامه** بیا د آزادولو څلورقسمونه دي. ①اول مرسل: یعنی في الحال د څه شرط نه بغیر آزادول.② دویم معلق:یعنی که تا داسې اوکړل.یا ماداسې اوکړل.نو ته دې آزاد ئې.

③ دریم: د خپل مرګ نه پس ته آزادي منسوب کول.بیا به په دې کښې هر یو یا په عوض(بدل) سره وي.یا به د عوض نه بغیر وي.(عنایه، فتح القدیر)

**د اعتاق د صحت شرائط**

| |
|---|
| **العتق تصح من الحر البالغ العاقل في ملكه** چه آزادول عاقل ، بالغ، آزاد سړي دطرفه ( دده) پخپل ملك کښې صحیح دي |

**تشریح** په عبارت کښې د عتق نه مراد اعتاق (آزادول) دی.قدوري د اعتاق د صحت دپاره څلورشرطونه بیان کړي دی.اول داچه آزادونکې پخپله آزاد وي.دویم داچه آزادونکې عاقل وي.دریم داچه بالغ وي.څلورم داچه غلام د آزادونکي په ملك کښې وي.لکه چه فرمائی.چه غلام آزادول صحیح نه دی.مګر د آزاد عاقل بالغ د طرفه. په دې شرط چه غلام دده په ملك کښې وي.

**دلیل شرطیة الحریة** د آزادونکي پخپله آزادیدل څکه ضروري دي.چه اعتاق (آزادول) صرف پخپل ملك کښې صحیح کیږي.او څوك چه پخپله مملوك وي.د هغه هیڅ ملك نه وي.په دې وجه مملوك څوك آزادولې هم نشي.او بالغ کیدل څکه شرط دي.چه په نابالغه کښې د آزادولو لیاقت نشته.څکه چه آزادول په ښکاره ضرر وي. په دې وجه د نابالغه ولي او وصي ته د نابالغه د طرفه د آزادولوشرعاً اجازت نشته.اود عاقل کیدلوشرط په دې وجه لګولې شوې دي.چه لیوني او مجنون ته د هیڅ تصرف

لیاقت نه وي.او چونکه نابالغه د تصرف اهل نه وي.په دې وجه که بالغ سړی اوونیل.چه ما داخپل غلام په داسې حالت کښې آزادکړې وو.چه کله زه پخپله نابالغه ووم.نوددهٔ قول به معتبر وي.اوغلام به آزاد نه وي.ځکه چه دهٔ آزادول داسې حالت طرف ته منسوب کړی دی.کوم حالت ( یعنی د عدم بلوغ حالت) چه د اعتاق منافی دې.نو ددهٔ دا قول ددهٔ د طرفه د اعتاق صحیح کیدلو نه انکار کول دی.اود منکر قول قبلولې شی.په دې وجه به ددهٔ قول قبلولې شي.

**شرطیة البلوغ** > چونکه د آزادونکی عاقل کیدل شرط دی.په دې وجه که آزادونکی اوونیل.چه مادا خپل غلام په داسې حالت کښې آزادکړې وو.چه زه لیونې ووم.او حال دا چه ددې سړی جنون په خلقوکښې ښکاره وو.نو بیابه هم ددهٔ قول معتبر وی.ددې دلیل هم دادې.چه دې سړی اعتاق داسې حالت طرف ته منسوب کړلو.کوم چه د حالت اعتقا منافی دې.نو ګویا دا کس د اعتاق منکر دې.اود منکر قول معتبر وی.په دې وجه به ددهٔ قول معتبر وی.

**شرطیة العقل** > هم دغه شان به آزادول صحیح نه وی.چه کله نابالغ سړی اووائی.چه هرمملوك چه زهٔ ئې مالك یم.دا هغه وخت آزاد دې.کله چه زه بالغ شم.دلیل دادې.چه نابالغه سړی ته دا لیاقت نشته.چه داسې خبره اوکړی.چه هغه په دهٔ لازم شی.ځکه چه نابالغه دداسې خبرو نه شرعاً منع کړې شوې دې.

**شرطیة کون العبد في ملکه** > بیا دا ضروری دهٔ.چه کوم غلام آزادول غواړی.هغه ددهٔ په ملك کښې وی.تردې که یوکس د بل کس غلام آزاد کړلو.نودا به نافذ نه وی.د جمهورعالمانو هم دا مذهب دې.امام مالك رحمه الله فرمائی. چه د خپل نابالغه بچی غلام آزادولې شی.خود بالغ اولاد غلام آزادول صحیح نه دی.دجمهور په مسلك باندې دلیل د نبی کریم ﷺ فرمان (لاعتق فیمالایملکه ابن آدم) ، سړې چه د کوم (غلام) مالك نه وی.د هغه آزادول صحیح نه دی، ، علامه مرغینانی رحمه الله فرمائیلی دی.که د بل کس غلام ئې آزادکړلو.نودا آزادی به نافذ نه وی.او دائې او نه وئیل.چه صحیح به نه وی.ځکه چه غیر مملوك آزادول صحیح خودی.خو نفاذ به ئې د مالك په اجازت سره کیږی.د مالك د اجازت نه بغیر نفاذ نه کیږی.

## د نیت نه بغیر په صریح الفاظوسره آزادېدل

| |
|---|
| فَإِذَا قَالَ لِعَبْدِهِ أَوْ أَمَتِهِ او که آقا خپل غلام یا وینځې ته اوونیل أَنْتَ حُرٌّ چه ته آزاد ئې أَوْ مُعْتَقٌ أَوْ عَتِيقٌ یا عتیق ئې أَوْ مُحَرَّرٌ یا محررئې أَوْ حَرَّرْتُكَ یا ته ما محررکړې أَوْ قَدْ أَعْتَقْتُكَ یا ته ما آزاد کړې فَقَدْ عَتَقَ نو دا آزاد شو. نَوَى الْمَوْلَى الْعِتْقَ أَوْ لَمْ يَنْوِ که مولی په دې لفظ سره د آزادولو نیت کړې وی.اوکه نه وی کړې |

**تصریح** > مسئله دادهٔ.که آقا خپل غلام یا وینځې ته اوونیل. (أنت حر،یاأنت معتق،یاأنت عتیق،یاأنت محرر، یاقدحررتك،یاقدأعتقتك) نودا به آزاد وی.که په دې الفاظوسره آقا د آزادولو نیت کړې وی.او که نه ئې وی کړې.

**دلیله** > ځکه چه دا الفاظ د آزادولو په معنی کښې بالاتفاق صریح دی.او شرعاً او عرفاً هم په دې معنی کښې مستعمل دی.او صریحی الفاظ په عمل کولوکښې د نیت محتاج نه وی.په دې وجه په دې الفاظو کښې په یو لفظ سره آزادول د نیت محتاج نه دی.

په اصل وضع کښې اګرچه دا الفاظ د اخبار په معنی کښې وو.خوپه شرعی تصرفاتو کښې د ضرورت په وجه د انشاء په معنی کښې شوی دی.لکه څنګه چه په طلاق او بیع وغیره کښې کیږی.مثلاً (أنت طالق) د اصل وضع په اعتبار سره خبر دې.خود ضرورت په وجه دا د انشاء په معنی کښې اخستې

شوي دي.او هم دغه شان ، ،بعت، ، او ، ،اشتريت، ، په اصل وضع کښې خبر دی.خود انشاء معنی طرف ته ضرورة نقل کړشې شوی دی.

### د بدن داسې اندام له آزادی منسوب کول چه ټول بدن ترې مراد کيدی شي

وَكَذَا اِذَا قَالَ او دغه شان کله چې اوواتی ( مملوك) ته رَأْسُكَ حُرٌّ چه ستا سر آزاد دي اَوْرَقَبَتُكَ اَوْبَدَنُكَ يا ستا سټ يا ستا بدن ( آزاد دي) اَوْقَالَ لِأَمَتِهٖ يا ئې خپلې وينځې ته اوونيل فَرْجُكِ حُرٌّ چه ستا شرمګاه آزاد دي

حل اللغة ◄ ① وجهه: مخ ② رقبة: څټ

تشريح ◄ مسئله:که مولا خپل مملوك ته اوونيل. (رأسك حر) يا ئې اوونيل. (وجهك حر) يا ئې اوونيل. (رقبتك حر) يا ئې اوونيل. (بدنك حر) يا ئې خپلې وينځې ته اوونيل. (فرجك حر) نو په دې ټولو الفاظو سره مملوك آزاديږي.

دليله ◄ دليل دادې.چه دا ټول الفاظ داسې دی.چه په دې سره ټول بدن تعبير کولې شي.او په کتاب الطلاق کښې دا بيان تيرشوي دي.هلته کښې ئې اوګورئ.

### دآزادئ په کنائی الفاظوکښې د نيت ضرورت

وَاِنْ قَالَ اوکه ( مملوك) ته اوواتی لَامِلْكَ لِي عَلَيْكَ زما په تاباندې هيڅ ملك نشته وَنَوٰى بِذٰلِكَ الْحُرِّيَّةَ او په دې سره ئې د آزادولو نيت اوکړو عَتَقَ نو دی به آزاد وی وَاِنْ لَمْ يَنْوِ اوکه نيت ئې اونکړو لَمْ يُعْتَقْ نو نه به آزاديږي.

تشريح ◄ صورت دمسئلې دادې.که مولا خپل مملوك ته اوونيل.(لاملك لى عليك) او په دې کلام سره ئې د آزادولو نيت اوکړلو.نودا مملوك به آزاد وی.اوکه د آزادولو نيت ئې نه وی کړې.نو آزادی به نه واقع کيږي.

دليله ◄ دليل دادې.چه داکلام دکنائی الفاظو څنې دی.څکه چه په دې کښې دوه احتماله دی.يو داچه زما ملك په تا باندې په دې وجه نشته.چه تا ما خرڅ کړې ئې.او دويم احتمال دادې.چه ملك څکه نشته.چه ته ما آزادکړلې.نو ثابته شوه.چه داکلام د آزادولو په معنی کښې صريح نه دې.بلکه کنائی دې.او کنائی الفاظ په عمل کښې دنيت محتاج وی.د نيت نه بغير ددې هيڅ احتمال نه متعين کيږي. او آزادی به نه واقع کيږي.

### په کنائی الفاظوسره د آزادئ نيت کول

وَكَذٰلِكَ جَمِيْعُ كِنَايَاتُ الْعِتْقِ هم دغه شان حکم د عتق د کناياتو د ټولو الفاظو دی

تشريح ◄ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائي.چه هم دا حال د آزادولو د کنائی الفاظو دی.يعنی په کنائی الفاظوسره ئې که د آزادولو نيت کړې وی.نو آزادی به واقع کيږي.ګنی نه به واقع کيږي.دکنائی الفاظ مثال، لکه چه خپل غلام ته اوواتی، ، ته زما د ملك نه اووتلې، ، يا وينځې ته اوواتی،،ته زما دملك نه اووتلې، ،او يا مثلا داسې اوواتی.چه ،،زما دپاره په تا باندې هيڅ لاره نشته، ،يا ، ، په تاباندې زما رقيت نشته، ، يا ، ،ما ستالاره خالی پريخودې ده، ،

دليله ◄ دليل دادې.چه په دې ټولو الفاظوکښې دآزادئ نه علاوه د نورو معانو احتمال هم شته.څکه چه لکه څنګه دا معنی ده.چه ما آزاد کړې.يا په دې وجه ته زما د ملك نه اووتلې. يا زما د آزادولو په وجه زما ملك په تاباندې پاتې نشو.وغيره ذالك.دغه شان دا احتمال هم شته.چه ته ما خرڅ کړې ئې.يا

مکاتب کړي ئي.په دې وجه ته زما د ملك نه اووتلې.يا زما ملك په تا پاتې نشو.نود يو احتمال متعين کولو دپاره نيت کول ضروري دی.او که نيت اونه موندې شو.نو آزادي به نه واقع کيږي.

**د آزادۍ او غلامۍ مختلف الفاظو حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ قَالَ اوکه ( مولا) اووئيل لَاسُلْطَانَ لِي عَلَيْكَ په تا باندې زما سلطنت دې وَنَوَى بِهِ الْعِتْقَ اوپه دې سره ئي د آزادۍ نيت اوکړو . لَمْ يُعْتَقْ نو نه به آزاديږي |

**حل اللغة** ﴾ ① **سلطان**: بادشاه

**تشريح** ﴾ فوائد :د مصنف رحمه الله په عبارت(السلطان عبارة عن اليد) کښې تسامح ده.

**عليه** ﴾ ځکه چه سلطان قبضې ته نه وائي.بلکه صاحب د قبضه ته وائي.(عينی شرح هدايه)

**مملوك ته په خوئ وئيلو سره د آزادۍ ثبوت**

| |
|---|
| وَإِذَا قَالَ اوکله چې مولا ( خپل مملوك ته) اووئيل هٰذَا ابْنِي چه دا زما خوئ دې وَثَبَتَ عَلَى ذٰلِكَ اوهم په دې خبره باندې ټينګ ولاړ وو |

**تشريح** ﴾ صورت دمسئلې دادې.که مولا خپل مملوك طرف ته اشاره اوکړله.او وې وئيل.چه (هذا ابني) او هم په دې خبره باندې ټينګ پاتې شو.نودا مملوك به آزاد وی.علامه بدرالدين عينی رحمه الله ليکلی دی.چه د (ثبت على ذالك) قيد اتفاقی دې.

**عليه** ﴾ ځکه چه په ،،ينابيع،، کښې ذکر دی.چه په دې خبره باندې ټينګيدل لازم نه دی.هم دا وجه ده.چه په ،،مبسوط،،کښې دا قيد ذکر نه دې.او علامه فخرالاسلام بزدوی رحمه الله فرمائي.چه په دې خبره باندې ټينګ پاتې کيدل د نسب د ثبوت دپاره شرط دی.د آزادۍ دپاره شرط نه دی.نوکه د (هذا ابني) نه روسته ني دا اووئيل.چه ما غلط وئيلی وو.يا ماته وهم شوې وو.نودا مملوك به بيا هم آزاد وی.او دده تصديق به نشی کولې.

**توضيح صاحب الهداية** ﴾ صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه کښې فرمائي.چه ددې مسئلې نه مراد دادې.چه کوم کس ته ني خوئ اووئيل.چه دده عمر دومره قدرې وی.چه د مولا نه ني پيدا کيدل ممکن وی.اوکه غلام داسې وی.چه د مولا نه نشی پيدا کيدلې.مثلاً د مولا عمرشل کاله وی.اود غلام عمرپنځيشت کاله وی.نودا مسئله روسته راتلونکې ده.لږ شان انتظار اوکړئ.

**غلام ته په مولا وئيلو سره د آزادۍ ثبوت**

| |
|---|
| وَلَوْ قَالَ هٰذَا مَوْلَايَ اوکه ( مالك) اووئيل.د زما مولا دې. أَوْ يَا مَوْلَايَ يا ني اووئيل.چه اې مولا عَتَقَ نودا به آزاد وی |

**تشريح** ﴾ صورت د مسئلې دادې.که مولا خپل غلام طرف ته اشاره اوکړه.او وې وئيل.چه (هذا مولاي) يائي ورته آواز اوکړلو.چه (يا مولاي) نو د نيت نه بغير به غلام آزاد وی.

**دليل الصورة الاولى** ﴾ نود اول يعنی د (هذا مولاي) وئيلو په صورت کښې دليل دادې.چه لفظ د مولی اګرچه په ډيرو معانوکښې مشترك دې.

**معاني المولى** ﴾ ① ځکه چه لفظ د مولا د ناصر(مددګار) په معنی کښې هم راځی. ② اود تره د خوئ په معنی کښې هم مستعمل دې.③ اود دينی موالاتو په معنی کښې هم استعمال شوې دې.د موالات صورت دادې.چه آزاد عاقل بالغ مسلمان يو اجنبی کس ته اووائی. ته زما مولا ئي.که زه مرشوم.نو ته

به زما وارث ني.او كه زه جنايت اوكړم.نو ته به زما عاقله ني.او زما د طرفه به تاوان وركوې.دويم اوونيل. (الملت) نودا قبلونكي به دده مولا وى.كه دي مرشو،نو وارث به وى.او كه دي څه جنايت اوكړي.نو تاوان به وركوى.او لفظ د مولا د معتق يعنى د آزادولو په معنى كښې هم مستعمل دي.اود معتق يعنى د آزاد كړې شوى په معنى كښې هم راځى.

**المراد هينا** خو دلته كښې صرف د (أسفل في العتاقه) يعنى د آزاد كړې شوى غلام معنى متعين ده.نود مولا لفظ آزاد شوى غلام سره د اسم خاص پشان شو.پاتې شوه داخبره چه لفظ د مولا آزاد شوى غلام سره ولې خاص دې؟

**وجوه عدم مراد معاني الاخرى** نو ددې وجه داده.چه دلته كښې د مولا نه د ناصر اومددګار معنى نشى مراد كيدلې.ځكه چه مولا عام طورخپل مملوك نه مدد نه طلب كوى.او چونكه دغلام نسب معلوم او مشهور دې.په دې وجه د مولا لفظ دلته كښې د تره د خوى په معنى باندې محمول كول هم صحيح نه دى.او دينى موالات مجازى معنى ده.ځكه چه مولا د ،،ولى،، نه مشتق دې.چه ددې معنى د نيزدې كيدلو ده.اوهغه سرې چه په دوى كښې يوكس د مشرق اوسيدونكې دې.اوبل د مغرب اوسيدونكې دې.په دوى كښې هيڅ نيزديكت نشته.نه حقيقتاً نيزديكت شته.اونه د نسب په اعتبارسره،او نه د مكان په اعتبار سره قرب شته.نو دينى قرب متعين شو.حاصل داچه دينى موالا مجازى دى.حالانكه دلته كښې خبره په حقيقى معنى كښې ده.په دې وجه دا معنى هم مراد نشى اخستلې كيدلې.اوچونكه دې كس غلام ته مولا ونيلى دى.په دې وجه د آزاديدلو په معنى كښې هم نشى كيدلې. ځكه چه ،، نسبت الى العبد ،، دده د معتق كيدلو منافى دى.نو هركله چه په دې كښې يوه معنى هم مراد نه ده.نود آزاد كړې شوى معنى متعين شوه.او لفظ د مولا د آزاد شوى غلام په معنى كښې د صريح پشان دې.او صريحى لفظ د نيت محتاج نه وى.په دې وجه د (هذا مولاى) په كلام سره د نيت نه بغير غلام آزاد يږى.

**خپل غلام تا رور يا خوى ونيل**

| |
|---|
| **وَلَوْقَالَ** اوكه مولا اوونيل **يَاابْنِي** اى زما خويه **أَوْيَاأَخِي** يا اى زما روره، **لَمْ يَعْتِقْ** نودا به آزاد نه وى |

**تشريح** مسئله داده.كه مولا خپل مملوك ته اوونيل،،يا ابنى،، يا ئې اوونيل ،،يا اخي،،نودا مملوك به نه آزاديږى.او وراندې تيرشو.چه مالك كه خپل غلام ته په ،،ياحر،، ونيلو سره آواز اوكړلو.نودا غلام به آزاد وى.وجه د فرق داده.چه آواز كول هركله په يوداسې وصف سره وى.چه ددې ثابتول د رابلونكى د طرفه ممكن وى.(نو په منادى كښې به هم دا وصف ثابت ګرځولې شى.يعنى دا به ونيلې شى.چه رابلونكى په منادى كښې دا وصف ثابت كړې دې. چه منادى هم په دې خاص وصف سره خپلې مخې ته حاضركړى)، مثلاً وې ونيل.چه ياحر، يعنى اى آزاد.نو حريت (آزادى) يوداسې وصف دې.چه ددې ثابتول د رابلونكى د طرفه ممكن دى.نودا به ونيلى شى.چه مولا په منادى يعنى په غلام كښې د حريت وصف ثابت كړې دې .چه دا غلام په دې خاص وصف سره د مولا مخې ته حاضرشى.او ددې مسئلې پوره تحقيق په تيره شوې مسئله كښې بيان شوې دې.

**القاعدة** او هركله چه آواز كول په داسې وصف سره وى.چه ددې ثابتول د رابلونكى د طرفه ناممكن وى.نودا آواز كول به صرف د منادى خبرولو دپاره وى.او په منادى كښې دا وصف ثابتول مقصود نه وى.ځكه چه دا وصف ثابتول ممكن نه دى.او په ذكرشوې مسئله كښې خوې كيدل داسې وصف دې.چه د رابلونكى په حالت كښې د رابلونكى دطرفه نشى ثابتيدلې.ځكه كه دې دغير د نطفه نه پيدا

شوې وي.نودا غلام ددې رابلونکي په رابللوسره خوې نشي کيدلې.نودا رابلل به صرف د خبرورکولو دپاره وي.داحکم د ظاهرالروايت مطابق دې.

**رواية عن ابي حنيفة**> اود امام ابوحنيفه رحمه الله نه د حسن رحمه الله په واسطې سره يو شاذ روايت دا دې.چه په دواړه صورتونو (يعنی په يا بني،او په ، يا اخي) کښې دې آزاد يږي.

حاصل دا چه د نداء په ذريعه آزادی په درې لفظونوسره واقع کيږي.يعنی په ياحر، يا عتيق، او په يامولای سره.هم دا ظاهرالروايت دې.اود حسن په روايت کښې په پنځه لفظونوسره د نداء په ذريعه آزادي واقع کيږي.ذکر شوی درې لفظونه، او په يا ابني، او يا اخي سره.خو اعتماد په ظاهرالروايه دې.والله اعلم بالصواب

.....

## مشرغلام ته خوی وئيلو سره آوازکول

| |
|---|
| **وَإِنْ قَالَ لِغُلَامٍ** اوکه داسې غلام ته ئې اووئيل **لَا يُوْلَدُ مِثْلُهُ لِمِثْلِهِ** چه دده مثل دده نه نشی پيدا کيدې **هٰذَا ابْنِي** چه دا زما خوې دې **عَتَقَ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ** نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به آزاد وي |

**تشريح**> مسئله داده.که مولا خپل غلام ته اووئيل،،هذا ابنی،، په داسې حال کښې چه دا غلام دده نه په عمر کښې زيات وي.يعنی دداسې قسمه غلام دداسې عمر والا مولا نه پيدا کيدل ناممکن وي.نو په دې صورت کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا غلام آزاديږي.

**دلائله**> ① دليل دادې.چه دا کلام اگرچه د خپلې حقيقی معنی (بنوت) په اعتبار سره محال دې.خود مجازی معنی (حريت) په اعتبار سره صحيح دې.ځکه چه مولا ددې خبرې خبر ورکړې دې.چه کله زه ددې غلام مالك شوې يم.دا آزاد دې.او دا په دې وجه دې.چه د مملوك خوې کيدل، دده د آزادئ سبب دې.يعنی د مملوك دپاره د خوی کيدلو ثبوت هغه وخت کيدلې شی.کله چه دې آزاد وي.حاصل داچه خوې کيدل د آزادئ سبب دې.يا خود اجماع د دليل په وجه،او يا د قرابت د صله په وجه.په دې وجه بنوت (خوې کيدل) صله رحمی واجب کوی.او آزادې ددې صله ده.نو بنوت آزادی واجب کوی.نو دلته کښې سبب يعنی بنوت وئيلې شوې دې.او مسبب يعنی آزادې ترې مراد اخستې شوې ده.او سبب وئيل، او مسبب مراد اخستل مجاز دې.په دې وجه داکلام د خپلې مجازی معنی په اعتبار سره صحيح دې.② دويم دليل دادې.چه په مملوك کښې د خوی کيدلو دپاره آزادی لازم ده. ځکه چه خوې د خپل پلار مملوك نشی کيدلې.نو خوې کيدل ملزوم، او آزادې ددې لازم شو.او په لازم وصف سره تشبيه ورکول هم يوقسم مجاز دې.نوکلام د لغو کولو نه د بچ کولو دپاره په مجازی معنی باندې محمول کولې شی.يعنی په ملزوم ،،هذا ابنی،، سره به ددې لازم يعنی ،،هذا حر،، مراد اخستلې شی.

| |
|---|
| **وَعِنْدَهُمَا لَا يَعْتِقُ** اود صاحبينو رحمهما الله په نيز نه آزاديږي |

**تشريح**> **مسلك الصاحبين**> په مذکوره مسئله کښې د صاحبينو په نيز غلام نه آزاديږي.

**دليلهما**> د صاحبينو دليل دادې.چه ددې کلام په حقيقی معنی باندې محمول کول محال دی.نودا کلام به مردود او لغو وي.لکه داسې وئيل.چه زما د پيدا کيدلو نه وړاندې ته ما آزاد کړې وې.نودا کلام لغو دې.دغه شان د خپل ځان نه زيات عمر والا غلام ته ،،هذا ابنی،، وئيل هم لغو دی.پاتې شو دا اعتراض چه دا کلام که په حقيقی معنی، يعنی په ،،بنوت،، باندې محمول کول محال دی.نو په مجازی معنی يعنی په حريت باندې دې محمول کړې شی.او ښکاره خبره ده.چه په دې صورت کښې هم

غلام آزادیږي؟ جواب دادې.که په حقيقي معنی باندې عمل كول محال وي.نو مجازي معنی هم نه ثابتيږي.ځکه مجاز د حقیقت خلیفه دې.نو هرکله چه په اصل یعنی په حقیقت باندې حکم لګول ممکن نه دی.نو په خلیفه باندې به هم حکم لګول ممکن نه وي.او هرکله چه حقیقت او مجاز دواړه ممکن الحکم نه دی.نودا کلام به لغو وي.او بېکاره ده.چه د کلام لغو کولو په صورت کښې آزادی نه واقع کیږي.

**الجواب عنه>** دا صورت(اعتقتك قبل أن أخلق يا قبل أن تخلق) دا په شهادت کښې پیش کول درست نه دی.ځکه چه د پیدا کیدلونه وړاندې آزادی ممکن نه ده.په دې وجه دې کلام کښې د مجازهیڅ وجه نشته.نودا کلام لغو دې.اود استشهاد قابل نه دې.

**په کنائی الفاظو سره د آزادولو نیت کول**

| |
|---|
| وَإِنْ قَالَ لِأَمَتِهِ اوکه مالك خپلې وینځې ته اوونیل أَنْتِ طَالِقٌ چه ته طالقه ئې أَوْبَائِنٌ یا بائنه ئې وَنَوَى بِهِ الْعِتْقَ او په دې سره ئې د آزادولو نیت اوکړو لَمْ تُعْتَقْ نودا به نه آزادیږي |

**تشریح>** مسئله داده.که مولا خپلې وینځې ته اوونیل.،انت طالق،،یا ،،انت بائن،، او په دې سره ئې د آزادولو نیت اوکړلو.نودا وینځه نه آزادیږي. (1)

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه مولا په ،،انت طالق،،یا ،،بائن،،یا د طلاق په نورو الفاظوسره داسې معنی مراد واخستله.چه دا الفاظ ددې معنی احتمال نه لري.یعنی د طلاق او اعتاق په مینځ کښې هیڅ مناسبت نشته.ځکه چه په لغت کښې د اعتاق معنی قوت ورکول دی.اود طلاق معنی د نکاح قید ختمول دی.اود اعتاق معنی د ،،قوت ثبوت،، ځکه ده.چه کوم کس مملوك او غلام شي.دې په منزله د جماداتو شي.اود آزادیدلو وجه ژوندې کیږي.او طاقت او قوت پیدا کیږي.اود منکوحه ښځې دا حال نه دې.ځکه چه دا په هرتصرف باندې قادره وي.خود نکاح قید دا د تصرف کولو نه منع کوي.نوهرکله چه ئې دې ته طلاق ورکړو.نودا مانع ختم شو.اود مانع په ختمیدلو سره ددې قوت ښکاره کیږي.اودا خبره ،،اظهر من الشمس،، ده.چه اعتاق اقوی دې.او طلاق ادنی دې.او قاعده ده.چه ادنی د اعلی دپاره مستعارنشي اخستلې.په دې وجه د طلاق لفظ مجازا د آزادیدلو په معنی کښې نه استعمالیږي. ② دویم دلیل دا دې.چه ملك رقبه په نسبت د ملك نکاح زیات وي.ځکه چه ملك یمین ملك نکاح ته مستلزم وي.خوملك د نکاح ملك یمین ته مستلزم نه وي.نوهرکله چه ملك یمین اقوی دې.نو ددې ساقطول به هم اقوی وي.ځکه چه کوم څیز اقوی وي.د هغې اسقاط هم اقوی وي.اولفظ د خپل حقيقت نه د کمتر دپاره مجاز وي.خود خپل حقیقت نه د زیات دپاره مجاز نه وي.نو ثابته شوه.چه په مختلف فیه مسئله کښې په ،،انت طالق،، ونیلو سره مجازاً آزادي مراد نشي اخستلې.البته ددې په عکس جائز دې. یعنی ښځې ته ،،انت حرة،، ونیلو سره مجازاً طلاق مراد اخستلې شي.والله اعلم بالصواب

(1) **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.که نیت اوکړي.نو آزادیږي.هم دا اختلاف د طلاق په ټولو الفاظوکښې دې.که صریح وي.او که کنائي وي.لکه چه شافعي مشائخو رحمهم الله بیان کړي دي.مثلاً خپلې وینځې ته اووائي. (انت مطلقة، طلقتك، لاسبيل لي عليك، انت بريئة، انت علية) وغیره.د امام احمد رحمه الله نه دوه روایتونه دي.یو یو کښې د احنافو رحمهم الله سره دې.او په یوکښې د شوافعو رحمهم الله سره دې.

## د آزادئ مشابه کولوسره د آزادئ نیت کول

| |
|---|
| وَإِذَاقَالَ لِعَبْدِهِ او که خپل غلام ته ئې اووئیل أَنْتَ مِثْلُ الْحُرِّ چه ته د آزاد مثل ئې لَمْ يُعْتَقْ نو آزاد به نه وی |

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.که مولا خپل غلام ته اوونیل. ،انت مثل الحر ، ، نو غلام نه آزادیږی.
**دلیله>** دلیل دادې.چه لفظ د ، ،مثل ، ، په عرف عام کښې په بعض اوصافوکښې مشترك کیدلو دپاره راځي.نو معلومه نه ده.چه غلام آزاد سره په کوم وصف کښې تشبیه ورکړې شوې ده.په دې وجه په آزادیدلوکښې شك شو .اود شك په وجه آزادي نه واقع کیږی.په دې وجه دې کلام سره غلام نه آزادیږی.که د آزادولو نیت ئې کړې وی.او که نه ئې وی کړې.او په مبسوط کښې ذکر دی.که نیت ئې نه وی کړې.بیا خو نه آزادیږی.خو که د آزادیدلو نیت ئې کړې وی.نو غلام آزادیږی.ځکه چه د آزادئ نه واقع کیدل د شك په وجه وو.خوچه کله ئې د آزادیدلو نیت اوکړلو.نو شك ختم شو.

| |
|---|
| وَلَوْقَالَ: مَاأَنْتَ إِلَّاحُرٌّ عَتَقَ اوکه وې وئیل.ته نه ئې مگر آزاد ،نودا به آزاد وی |

**تشریح>** او که مولا خپل غلام ته اووئیل. ، ، ما انت الا حر ، ،نو غلام آزادیږی.
**دلیله>** ځکه چه د نفی نه استثناء کول د تاکید په طور اثبات وی.لکه څنګه چه په کلمه شهادت (لاإله إلا الله) کښې دې.یعنې د (لاإله إلا الله) معنی داده.چه د ، ،الوهیت ، ، والا دې.دغه شان د ، ، ما انت الا حر ، ،معنی ده.چه ته ضرور آزاد ئې.او که مولا اووئیل. ، ،راسك راس ، ، د جر په اضافت سره.نودا نه آزادیږی.ځکه چه د حرف تشبیه په حذف کولوسره دا تشبیه ده.اصل عبارت داسې وو. ، ، راسك كراس ، ،او په رومبئ مسئله کښې به هم نه آزادیږی

## د ذی رحم محرم مالك کیدلو سره آزادي

| |
|---|
| وَإِذَامَلَكَ الرَّجُلُ ذَارَحِمٍ مَحْرَمٍ عَتَقَ اوکله چې يوکس چه دخپل ذی رحم محرم مالك شو عَتَقَ عَلَيْهِ نوهغه په ده باندې آزادیږی |

**تشریح>** مصنف رحمه الله وراندې اعتاق اختیاری بیان کړلو.اوس هغه اعتاق بیانوی.چه بغیر د اختیاره ثابتیږی.لکه مثلاً څوك قرابتی اخستل، او هغه غلام چه مسلمان شي.اود دارحرب نه داراسلام ته راشي. قدوری مسئله بیان کړله.چه څوك د خپل ذی رحم محرم مالك شي.نودا ذی رحم محرم په ده باندې آزادیږی.

**دلائله>** ① د قدوری داعبارت د نبی کریم ﷺ نه نقل دې.د نبی کریم ﷺ ارشاد دې. (من ملك ذارحم محرم منه فهوحر) [1] قدوری چه د حدیث کوم الفاظ ذکر کړی دی.دا امام نسائی رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنه نه روایت کړی دی.اود (فهوحر) په الفاظوسره چه کوم حدیث علامه مرغینانی رحمه الله ذکر کړې دې.دا اصحاب د سنن اربعه د حضرت سمره رضی الله عنه نه روایت کړې دې.په حدیث کښې دوه لفظونه ، ،رحم او محرم ، ، قابل ذکر دی.رحم په حقیقت کښې د مور په خیټه کښې د بچی دپاره ظرف (لوخې) وی.بیا د ولادت د قرابت او تعلق په وجه ددې نوم رحم کیخودلې شو.او ذوالرحم هم ددې ځنې دې.اومحرم دادې.که یو سړې وی.او بله ښځه وی.نو په دوی کښې نکاح جائز نه وی.(عنایه ص ۱۲)

---

[1]) من حدیث ابن عمر رضی الله عنه اخرجه النسائی فی السنن الکبری (۳\۱۷۳) رقم ۴۸۹۷۶ــ

الاستدلال> د حدیث الفاظ عام دی.دا هرهغه قرابت دار ته شامل دی.چه دې سره دائمی حرمت وی.که د ولادت په طریقه وی.او که د ولادت د طریقې نه بغیر وی.د ولادت په صورت کښې دادې.چه خوېږ یا لور، د خپل مورپلار یا د نیا نیکه مالکان شو.یا دا خلقه د خپل خوی، لور یا د نمسو مالکان شو.اود ولادت نه غیر صورت دادې.چه سړې د خپل رور خور یا ددوی د اولاد مالك شی.یا ددې په عکس وی.

۲ دویم دلیل دادې.چه کله داکس د خپل قرابت دار مالك شو.دکوم کس قرابت چه په دائمی حرمت کښې موثر وی.نودا په ده باندې آزادیږی.او په اصل یعنی د ولادت په قرابت کښې د محرمیت قرابت موثر دې.اود ولادت هیڅ اثر نشته.حاصل داچه شارع ﷺ د هغه قرابت اعتبار کړې دې.کوم چه په دائمی حرمت کښې موثر وی.فرمائی.چه په (من ملك ذا رحم محرم منه عتق علیه)کښې د رحم نه مراد قرابت،اود محرم نه مراد حرمت د نکاح دې.لکه چه نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.چه کوم کس د داسې قریب مالك شو.د کوم کس سره چه نکاح دائمی طور باندې حرام ده.نودا په ده باندې آزادیږی.که د ولادت تعلق اوموندې شی.او که اونه اوموندې شی.نو ثابته شوه.چه د ولادت په قرابت کښې هم د آزادئ په ثابتولوکښې د قریب محرم مالك کیدل موثر دی.او په آزادی واقع کیدلوکښې د ولادت قرابت هیڅ دخل نشته.ځکه چه دمحرمیت قرابت یو داسې څیز دې.چه ددې وصل (جوړ ساتل) فرض دی.او ددې قطع (پریکول) حرام ده.تردې چه د قریب محرم نفقه واجب ده.او دې سره نکاح حرام ده.

## د غلام بعض حصه آزادول

| |
|---|
| وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى بَعْضَ عَبْدِهِ اوکه مولا د خپل غلام څه حصه آزاده کړله عَتَقَ ذَٰلِكَ الْبَعْضُ وَيَسْعَى فِي بَقِيَّةِ قِيمَتِهِ لِمَوْلَاهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ نود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز به هم دومره حصه آزاده وی.اود باقی قیمت به مزدوری کوی.او خپل مولا ته به ئې ورکوی |

توضیح> صورت د مسئلې دادې.که مولا د خپل غلام څه حصه آزاده کړله.نود امام ابوحنیفه ﷫ په نیز هم دومره قدرې حصه آزادیږی.اود باقی حصې قیمت دپاره به مزدوری کوی.اومولا ته به ورکوی. او صاحبین ﷭ فرمائی.چه پوره غلام آزادیږی.اود اختلاف بنیادی وجه داده.چه د حضرت امام ابوحنیفه ﷫ په نیز باندې اعتاق تکړې کیدلې شی.نو مولا چه څومره قدرې حصه آزاده کړله.هم دومره قدرې به آزدیږی.

فلیله> د امام ابوحنیفه ﷫ دلیل دادې.چه د اعتاق معنې د ملك لرې کولو په ذریعه عتق ثابتول دی.یا اعتاق ددې ملك لرې کولو نوم دې.ځکه چه ملك د آزادونکی حق دې.او رقیت د شریعت حق دې.ځکه چه کافرکله د ، ،عبدالله، ، یعنی د الله تعالی د غلام کیدلو نه انکار اوکړو.نو الله تعالی ده ته په دې طریقه بدله ورکړله.چه د خپل بنده غلام ئې جوړکړو.رقیت د عامو خلقو حق دې.ځکه چه مجاهدین ځنګه د رقیق نه علاوه سامان تقسیموی.دغه شان به رقیق هم تقسیموی.اود تصرف حکم هم دومره وی.څومره چه د تصرف کونکی په قابو او قدرت کښې وی.او هغه دادې.چه خپل حق لرې کړی.د غیرحق لرې نکړی. یعنی مولا صرف ملك لرې کولې شی.رقیت نشی لرې کولې.او ملك تجزی (تکړې) دې.نو اعتاق به هم متجزی وی.او خبره په اصل کښې داده.چه تصرف دومره حده پورې وی.څومره پورې چه ددې نسبت کړې شوې وی.او ددې حد نه علاوه طرف ته تجاوز کول په دې ضرورت سره کیدلې شی.چه ددې تجزی اونکړې شی.او دلته کښې چه کوم ملك د مولا حق دې.ددې تجزی کیدلې شی.لکه ځنګه چه په بیع او هبه کښې بهکاره ده.یعنی مثلاً نیم غلام ئې خرڅ کړلو.یا ئې هبه کړلو.نو بالاتفاق جائز دی.نود اعتاق تصرف به هم خپل اصل باندې باقی پاتې وی.یعنی که نیم ئې آزاد کړو.نوجائز دې.هم نیم به آزاد وی.

وَقَالَا: يَعْتِقُ كُلُّهُ او صاحبينو رحمهما الله فرمائيلي دي.چه پوره غلام به آزادولي شي

**تعريح** د مسلك الصاحبين د صاحبينو رحمهما الله په نيز باندې اعتاق نه تکړې کيږي. او د کوم څيزچه تکړې نه کيږي.دا يوې حصې اوجزء طرف ته منسوب کول داسې دي.لکه کل طرف ته منسوب کول .نو اعتاق د غلام يوې حصې طرف ته منسوب کول، کل طرف ته منسوب کول شو.په دې وجه دې صورت کښې پوره غلام آزادیږی.

**اصل الاختلاف** د امام صاحب اود صاحبينو رحمهم الله په مينځ کښې د اختلاف حاصل دادې.چه نيم غلام آزاد کړې شو.نو رقيت به د پوره غلام نه زائل کيږي.او که نه؟ نود امام صاحب رحمه الله په نيز به رقيت نه زائل کيږي.بلکه پوره غلام به رقيق وی.البته د آزادئ په مقدار سره به د غلام نه د مولا ملك زائل شي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز د پوره غلام نه رقيت زائل کيږي.

**دليلهما** دصاحبينو دليل دادې. چه د اعتاق معنى عتق ثابتول دي.او عتق د قوت حکميه نوم دې.يعنى د شريعت په حکم کښې ده ته د تصرفاتو قوت حاصليږی.حاصل داچه اعتاق د قوت حکميه ثابتولونوم دې.او ددې قوت ثابتول داسې کيږی.چه کوم څيز ددې ضد دې.هغه لرې کړې شي.او ددې ضد رقيت دې.يعنى مملوکيت،چه دا حکمى کمزوری ده.او ددې دواړو څيزونو يعنى د قوت حکمى (عتق) اود ضعف حکمى (رقيت) تکړې نشى کيدلې.په دې وجه د اعتاق تکړې هم نشى کيدلې.نو اعتاق په عدم تجزى کښې ميده شوې دې.لکه طلاق ورکول،قصاص معاف کول، ام ولد جوړول، مثلاً دا نشى کيدلې. چه نيمې ښځې ته طلاق ورکړې شي.او نيمې ته ورنکړې شي.او نيم قصاص معاف کړې.او نيم نه.دغه شان دا نشى کيدلې. چه نيمه وينځه ام ولد جوړه کړې شي.او نيمه نه.نو لکه څنګه چه په دې کښې بالاتفاق يو هم نشى تکړې کيدلې.دغه شان د اعتاق هم تکړې نشى کيدلې.

**وجوب السعي على العبد** په غلام باندې د باقى حصې دپاره مزدوری واجب کيدل، نودا څکه دی.چه د باقى تکړې ماليت دې غلام سره بند دې.نو دده نه به وصولولې شي.او په کوم غلام چه مزدوری کول، او ددې اداکولو واجب دی.دا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مکاتب پشان دې.

**دليله** څکه چه کله د اعتاق نسبت د غلام يوجزء طرف ته اوشو.نو په دې اعتبار سره دا لازم شو.چه په پوره غلام کښې ده ته ملکيت حاصل وی.يعنى چه غلام د خپل پوره ذات مالك شي.څکه چه عتق نه متجزى کيږی.اود مولا ملك په يوه حصه کښې باقى پاتې کيدل د رقيت په اعتبار سره ددې خبرې تقاضاکوی.چه دې د پوره ذات مالك نه وی.څکه چه رقيت هم نه متجزى کيږی.حاصل داچه دلته کښې دوه خبرې جمع شوې.يودا چه غلام د خپل پوره ذات مالك وی.دويم داچه د غلام په پوره ذات کښې د مولا ملك باقى پاتې وی.او چونکه په دواړه دليلونو باندې عمل کول ممکن دی.په دې وجه مونږ په دواړه دليلونو باندې عمل اوکړو.اودا غلام مو مکاتب اوګرځولو.څکه چه مکاتب يداً مالك وی.او رقبةً مملوك وی.نو هم دغه شان به دې هم د خپلې ګټې مالك وی.اود خپل ذات مالك به نه وی.

## په شريکانو کښې د يوکس خپله حصه آزادول

وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ او که يوغلام په دوه شريکانوکښې ( مشترك) وو فَأَعْتَقَ أَحَدُهُمَا نَصِيبَهُ نو په دې دواړو کښې يوکس خپله حصه آزاده کړله عَتَقَ نو دده حصه به آزاده وی فَإِنْ كَانَ مُوسِرًا بيا که آزادونکې سړې مالدار وی فَشَرِيكُهُ بِالْخِيَارِ نو دده شريك ته اختيار دې إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ که غواړی نو خپله حصه دې هم آزاده کړی وَإِنْ شَاءَ او که غواړی ضَمَّنَ شَرِيكَهُ قِيمَةَ نَصِيبِهِ د خپل شريك آزادونکی نه د خپلې حصې قيمت، تاوان واخلى. وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ او که

غواړي.په غلام دې مزدوري اوکړي.(او وصول کړي وَإِنْ كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا اوکه آزادونکې غریب وی فَالشَّرِيكُ بِالْخِيَارِ نو شريك ته هم دا اختيار دې إِنْ شَاءَ أَعْتَقَ كه غواړي.نو خپله حصه آزاده کړي وَإِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ اوكه غواړي.په غلام باندې مزدوري اوکړي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ اودا د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دی . وَقَالَ:ابويوسف ومحمد لَيْسَ لَهُ إِلَّا الضَّمَانُ مَعَ الْيَسَارِ او صاحبين رحمهما الله فرمائي چه شريك ته صرف دا اختيار دې وَالسِّعَايَةُ مَعَ الْإِعْسَارِ كه (آزادونكې)مالدار وی.نو دده نه تاوان واخلی

**حل اللغة** ﴿۱﴾ **المعسر**:غريب ﴿۲﴾ **الموسر**: مالدار ﴿۳﴾ **استسعى**: مزدوري اوكړه ﴿۴﴾ **الاعسار**:تاواني كول]

**تشريح** ﴿ صاحب دهدايه رحمه الله په هدايه كښې فرمائي.چه دا مسئله يعني د آزادونكی خپل شريك ته ضمان اداكولو نه پس د غلام نه واپس اخستل يا نه اخستل، په دوه اصولو باندې مبنی دی.

**الاصل الاول** ﴿ رومبې اصل دادې.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز اعتاق تكړې كيږي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق نه تكړې كيږي.لكه څنګه چه د باب په شروع كښې بيان كړې شو.

**الاصل الثاني** ﴿ دويم اصل دادې.چه كله آزادونكې مالداره وی.نو دده مالداری د امام صاحب رحمه الله په نيز د غلام د مزدورئ مانع نه جوړيږي.اود صاحبينو رحمهما الله په نيز مانع دې.د رومبی اصل دلائل وړاندې تيرشوی دی.

**دليلهما في الاصل الثاني** ﴿ په دويم اصل كښې د صاحبينو رحمهما الله د دليل حاصل دادې.چه په دې مسئله كښې د قياس مقتضی په دوه امورو كښې يو دې.يودا چه آزادونكې مالداره وی.او كه غريب وی.په دواړه صورتونو كښې په آزادونكی باندې د خپل شريك دپاره ضمان واجب وی.څكه چه ده د خپلې حصې آزادولو په وجه د خپل شريك حصه خرابه كړله.څكه چه دده دپاره خپل ملك باقی ساتل او پخپله حصه كښې تصرف كول متعذر دی.اود افساد ضمان د مالدارئ او غريبئ په وجه نه مختلف كيږي.

دويم امر دادې.چه په آزادونكی باندې بالكل ضمان واجب نه وی.څكه چه آزادونكی په خپله حصه كښې تصرف كړې دې.او په خپله حصه كښې تصرف كونكې نه متعدی وی.اونه په ده باندې ضمان واجبيږي.اګرچه دده د تصرف ضرر د بل ملك ته متجاوز شی.لكه مثلاً يوكس په خپله زمكه كښې د فصل كټ كولو نه پس باقی پاتې كيا،بهوس وغيره اوسوزول.خو په دې سره د ګاوندی په ملك كښې هم څه لږشان اوسوزيدل.نو په ده به د ګاوندی دپاره څه ضمان واجب نه وی.دا دواړه قياسونه چونكه متضاد دی.په دې وجه صاحبينو رحمهما الله دا دواړه پريخودل.او په هغه حديث باندې ئې عمل اوكړو.كوم چه ائمه صحاح سته د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت كړې دې.يعني نبی كريم صلى الله عليه وسلم دداسې كس په حق كښې(څوك چه خپله حصه آزاده كړی) ارشاد اوفرمائيلو. ان كان غنيا وان كان فقيرا سعى في حصة الآخر الحديث[1]

(دا آزادونكې مالداره وی.نود خپل شريكوال د حصې به ضامن وی.اوكه فقير وی.نود شريك دحصې دپاره به غلام مزدوري كوی،په دې حديث كښې د الله تعالى پاك رسول صلى الله عليه وسلم تقسيم اوفرمائيلو .او تقسيم د شركت منافی دې.يعنی كه آزادونكې مالداره وی.نو صرف دې به ضامن وی.او په غلام

١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاري في الشركة باب ٥ ومسلم في العتق رقم ٣ وأبوداود في العتق باب ٥ رقم ٣٩٣٧ والترمذی في الأحكام باب ١٤ وابن ماجه في العتق باب ٧ رقم ٢٥٢٧ وأحمد في المسند(٢\٢٥٥)۔

باندې نې سعايه يعنې مزدوري مقرر نکره.اوکه دې فقير وي.نو صرف په غلام باندې مزدوري ده.نو ددې نه معلومه شوه.چه د آزادونکي مالداره کيدل د غلام د مزدورئ نه مانع دي.(عنايه)

**دليله في الاصل الثاني>** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د شريك د حصې ماليت دې غلام سره بند شو.نوشريك ته اختيار دې.چه دده نه د خپل مال ضمان واخلي.يعنې په غلام باندې مزدوري اوکړي.اودا داسې ده. لکه مثلاً يوکس کپړې هوا يوسي.اود بل کس د رنګك په کړې (بالټۍ) کښې نې واچوی.او کپړې رنګينې شي.يعنې کپړې رنګك رانيکي، اوجذب نې کړي.نود کپړې په مالك باندې واجب دي.چه د رنګريز د رنګك قيمت اداکړي.که د کپړو والا مالداره وي.او که غريب وي.ځکه چه د کپړو والا سره دده رنګك بند شوې دې.نوهغه له تاوان اخستل جائز دي.نودغه شان حکم دلته کښې هم دې.خو دومره قدرې خبره ده.که غلام بالکل فقير وي.نودې به په غلام مزدوري کوي.اودا به وصول کوي.

**خپل ځوئ د بل کس سره شريك اخستل**

| |
|---|
| **وَاِذَا اشْتَرَى الرَّجُلَانِ** اوکه دوه سړو( داسې غلام) واخستلو **ابْنَ اَحَدِهِمَا** چه دا به دې دواړو کښې د يوکس ځوئ دې **عَتَقَ نَصِيْبُ الْاَبِ** نود پلار حصه به آزاده وي |

**تشريح>** صورت د مسئلې دادې.چه پلار او يوبل کس ملاؤ شو.او په شريکه نې خپل ځوئ واخستلو. نود پلار حصه به آزاده وي.

**دليله>** ځکه چه دې د خپل قرابت دار دجزء مالك شو.او قرابتي اخستل آزادول دي.لکه څنګه چه په ،،فصل من ملك ذا رحم محرم،، کښې تير شو.

| |
|---|
| **وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ** .او په پلار به تاوان واجب نه وي. |

**تشريح>** او په پلار به ضمان واجب نه وي.که شريك ته دا پته وي.چه دا زما ځوئ دې.اوکه دا پته نه وي.

| |
|---|
| **وَكَذٰلِكَ اِذَا وَرِثَاهُ** اوهم دغه شان که دې دواړو ته دا غلام په ميراث کښې ملاؤ شو **وَالشَّرِيْكُ بِالْخِيَارِ** اوشريك ته دا اختيارشته **اِنْ شَاءَ اَعْتَقَ نَصِيْبَهٗ** که غواړي.نو خپله حصه آزاده کړي **وَاِنْ شَاءَ اسْتَسْعَى الْعَبْدَ** .او که غواړي په غلام باندې مزدوري اوکړي |

**تشريح>** او هم دا حکم هغه وخت دې.هرکله چه دې دواړو دا غلام په ميراث کښې حاصل کړو.يعنې د پلار حصه به آزاده شي. ددې صورت به دا وي.چه يوې ښځې د خپل خاوند ځوئ واخستلو.بيا دا ښځه مړه شوه.او دې خپل خاوند او رور پريخودل.نوددې غلام نصف به د خاوند دپاره وي.او په ده به آزاد وي.بيا د پلار نه علاوه نورو شريکانو ته دا اختيار دې.که غواړي نو خپله حصه دې آزاده کړي.او که غواړي په غلام دې مزدوري کوي.او خپل قيمت دې واخلي.دا د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.

**دليله>** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه شريك آخر په خپله حصه خرابولو باندې راضي وو.او رضامندئ سره ظلم نه جمع کيږي.نودې د پلار نه تاوان نشي اخستلې.لکه مثلاً يو شريکوال بل شريکوال ته دده د حصې آزادولو صريح اجازت ورکړي.اود شريك آخر د خپلې حصې په خرابولو باندې د رضامندئ دليل دادې.چه شريك د غلام د پلار سره په داسې څيز کښې شرکت کړې دې. کوم چه د آزادېدلو علت دې.يعنې اخستل.ځکه چه د قريبي رشته دار اخستل آزادول دي.

**مسلك الصاحبين>** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه د ميراث په صورت کښې خو هم داحکم دې.خود اخستلو په صورت کښې که پلار مالداره وي.نود ځوئ د نيم قيمت به د شريك دپاره ضامن وي.او که پلار غريب وي.نو ځوئ په مزدوري کوي.اوخپل نيم قيمت به ادا کوي.اوهم دا اختلاف په دې صورت کښې دې.چه

كله پلار او بل كس ددې غلام د هبه په طور مالكان شي.په دې طريقه چه يو سړي ددې دواړو دپاره دا غلام صدقه كړلو.يا ئې د وصيت په طور مالكان شو.په دې طريقه چه يوسړي ددې دواړو دپاره ددې غلام وصيت اوكړو.

**فلهما**> صاحبينو رحمهما الله دليل دادې.چه پلار خپل حصه آزاده كړله.نود خپل ملكرى حصه ئې باطله كړله.ځكه چه د قريبي رشته دار اخستل آزادول دى.اودا داسې صورت شو.لكه مثلاً يو غلام د دوه اجنبي كسانو په مينځ كښې مشترك وى.بيا په دې دواړو كښې يوكس خپله حصه آزاده كړى.نو چونكه د صاحبينو رحمهما الله په نيز اعتاق نه متجزى كيږى.په دې وجه كه آزادونكې سړې مالداره وى.نود خپل ملګرى د حصې به ضامن وى.اوكه غريب وى.نو غلام به مزدورى كوى.اوخپل نيم قيمت به ادا كوى.

**شريكانو په يو بل باندې د غلام آزادولو اقرار كول**

| |
|---|
| وَإِذَا شَهِدَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشَّرِيكَيْنِ عَلَى الْآخَرِ بِالْحُرِّيَّةِ اوكله چې په دوه شريكانو كښې هريو خپل ملګرى باندې ( د غلام) آزادولوګواهي وركړله سَعَى الْعَبْدُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَصِيبِهِ نو غلام به په دې دواړوكښې د هر يو دپاره دده په حصه كښې مزدورى كوى مُوسِرَيْنِ كَانَا أَوْمُعْسِرَيْنِ كه دواړه مالدار وى. اوكه غريبانان وى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ( دا) د ابوحنيفه رحمه الله په نيز دى |

**تشريح**> صورت د مسئلې دادې.چه په دواړه شريكانو كښې هر يوكس په بل باندې دا اقرار اوكړى. چه ده غلام آزاد كړې دې.نو په دې صورت كښې په غلام واجب دى.چه د هريوكس د حصې دپاره مزدورى كوى.او ادا ئې كړى.كه دواړه مالداره وى.او كه غريب وى.دا دحضرت امام صاحب رحمه الله مذهب دې.اوهم دا حكم هغه وخت دې.چه كله په دواړو كښې يو مالدار وى.او بل غريب وى.

**فلهٔ**> دليل دادې.چه په دواړه شريكانو كښې د هريو كس دا خيال دې.چه دده دويم شريكوال خپله حصه آزاده كړې ده.نو دده د خيال مطابق دا غلام مكاتب شو.لكه څنګه چه د امام ابوحنيفه رحمه الله قول دې.اوس په ده باندې دا غلام رقيق جوړول حرام شو.نود شريك ګمان اګرچه د دويم شريكوال په حق كښې صحيح نه وى.خو پخپله به دده په حق كښې تصديق كولې شي.په دې وجه به ددې نه منع كولې شي.چه دې خپل دا غلام رقيق جوړ نكړى.بلكه په ده باندې مزدورى اوكړى.ځكه چه مونږ ته دا يقين دې.چه ده ته د مزدورئ كولوحق دې.كه دې په خپل قول كښې رشتونې وى.او كه دروغژن وى.ځكه كه دا سړې په خپل قول كښې رشتونې وى.نو غلام به مكاتب وى.او كه دروغژن وى.نو غلام به مملوك وى.اود مملوك كمائى دده د مولا دپاره وى.نو په دې وجه غلام يا مكاتب دې.يا مملوك دې.بهرحال په دواړه شريكانو كښې هر يو په ده باندې مزدورى كولې شي.

**عدم الفرق بين الاعسار واليسار**> دا حكم د غريبئ اود مالدارئ په وجه نه مختلف كيږى.ځكه چه كوم كس په دويم شريكوال باندې د خپلې حصې آزادولو دعوى كړې ده.په دواړه صورتونوكښې په دوه خبروكښې يوه ده.يعنى د مالدارئ په صورت كښې تاوان اخستل.يا مزدورى كول.

**فلهٔ**> ځكه چه د آزادونكې مالدارى د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز ددې خبرې نه منع كوى.چه په غلام باندې مزدورى اوكړى.او دلته كښې تاوان اخستل هم نامكن دى.ځكه چه دا شريكوال د آزادولو نه منكر دې.بلكه التبه مدعى دې.چه دده شريكوال غلام آزاد كړې دې.نو هركله چه تاوان اخستل نامكن شو.نو اوس دويمه خبره پاتې شوه.يعنى هم دا اختيار پاتې شو.چه په غلام باندې مزدورى اوكړى.

| |
|---|
| وَقَالَا رَحِمَهُمَا اللّٰهُ او صاحبين رحمهما الله فرمائى إِنْ كَانَا مُعْسِرَيْنِ . كه دواړه شريكان فقيران وى سَعَى لَهُمَا نو غلام به د دواړو دپاره مزدورى كوى |

**تعريح>** صاحبين فرمائي که دواړه شريکان غريبانان وي.نو غلام به د دواړو دپاره مزدوري کوي.

**دليلهما>** ځکه چه هر يو شريکوال په دې غلام باندې د مزدورئ مدعي دی.که دې رشتوني وي.او که دروغژن وي.ځکه چه غلام باندې د مزدورئ وجوب يقيني دی.ځکه چه آزادونکې غريب دی.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمَا مُوسِرًا وَالْآخَرُ مُعْسِرًا او که په دې دواړو کښې يومالدار او دويم فقير وي سَعَى لِلْمُوسِرِ نود مالدار دپاره به مزدوري کوي |

**تعريح>** که په دواړو کښې يو مالداره وي.او بل غريب وي.نو غلام به د مالداره دپاره مزدوري کوي.

**دليله>** ځکه چه دې په خپل شريکوال باندې ده د غريبئ په وجه د ضمان دعوی نه کوي. بلکه په غلام باندې د مزدورئ دعوی کوي.نو غلام به د مزدورئ کولو نه بری کيږي.

| |
|---|
| وَلَمْ يَسْعَ لِلْمُعْسِرِ اود فقير شريك دپاره به غلام هم مزدوري نه کوي |

**تعريح>** اود مفلس شريك دپاره به غلام هم مزدوري نه کوي.ځکه چه دې پخپل شريکوال باندې د تاوان دعوی کوي.

**دليله>** ځکه چه ده شريك مالداره دی.غريب غلام د مزدورئ کولو نه بری کړې دی.

### د الله دپاره غلام آزادول

| |
|---|
| وَمَنْ أَعْتَقَ عَبْدًا لِوَجْهِ اللهِ تَعَالَى اوکوم کس چه خپل غلام د الله تعالی د رضا( حاصلولو دپاره) آزاد کړو أَوْلِلشَّيْطَانِ يا د شيطان دپاره أَوْلِلصَّنَمِ يا د بت دپاره عَتَقَ نو غلام به ( په هرصورت کښې) آزاد وي |

**حل اللغة >** ① صنم: بت ]

**تعريح>** مسئله:کوم کس چه خپل غلام د الله دپاره آزاد کړلو.يا ئې د شيطان دپاره، يا نې د بت دپاره آزاد کړلو.نو په هرصورت کښې غلام آزاديږي.

**دليله>** دليل دادې.چه رکن د اعتاق يعنی لفظ اعتاق دخپل اهل نه او پخپل محل کښې اوموندې شو.ځکه چه آزادونکې پخپله عاقل، بالغ، اود غلام مالك دی. اوغلام دده مملوك دی.او په ړومبی صورت کښې د الله دپاره ونيل ضروري نه دی.بلکه دا يو زياتی ځيز دی.نود شيطان يا د بت په صورت کښې ددې نه کيدل څه مضر نه دی.خو په دې دواړه صورتونوکښې به آزادونکې گناهگار وي.اگرچه غلام به آزاد شي.ځکه چه د شيطان اود بت په صورت کښې زيات نه زيات د قرابت اود ثواب نفی کيږي.خود قرابت نفی د آزادئ نفی ته مستلزم نه ده.

### په غلام آزادولو باندې مجبوره کول

| |
|---|
| وَعِتْقُ الْمُكْرَهِ اوکوم کس چه په غلام آزادولو باندې مجبوره کړې شو وَالسَّكْرَانِ وَاقِعٌ (دده آزادول) اود نشې نه د مست سړی آزادول واقع دي |

**حل اللغة >** ① المكره: مجبوره کړې شوې ② السكران: نشته ]

**تعريح>** مسئله داده.چه يوسړې د خپل غلام په آزادولو باندې مجبوره کړې شو.نو ده آزاد کړلو.يا په نشه کښې مست سړی خپل غلام آزاد کړلو.نودا غلام آزاديږي.

**دليله>** ځکه چه د آزادېدلو رکن هم ددې د اهل يعنی د عاقل بالغ نه صادر شوې دی.اومنسوب شوې هم محل طرف ته دی.ځکه چه دا غلام مملوك دی.لکه څنگه چه دا مسئله په ،،کتاب الطلاق،، کښې په تفصيل سره بيان شوې ده.

## آزادی ملکیت طرف ته منسوب کول

وَإِنْ أَضَافَ الْعِتْقَ إِلَى مِلْكٍ أَوْ شَرْطٍ او که یوکس آزادول مالك کیدو طرف ته منسوب کړل صَحَّ نو صحیح دی كَمَا يَصِحُّ فِي الطَّلَاقِ لکه څنګه چه په طلاق کښې (صحیح) دی

**تشریح**> مسئله داده.که یوکس آزادی ملکیت طرف ته منسوب کړی.مثلا اووائی. (ان ملکتك فانت حر) ،،که زه ستا مالك شوم نوته آزاد ئې،، یا ئې شرط طرف ته نسبت اوکړی.مثلاً اووائی. (ان دخلت الدار فانت حر)،،که ته کورته داخل شوې نو ته آزاد ئې،،نودا صحیح ده.لکه څنګه چه طلاق ملك یا شرط طرف ته منسوب کول صحیح دی.اود دې مسئلې تفصیل په کتاب الطلاق کښې تیرشوې دې.هلته ئې اوګورئ.

## داراسلام ته د غلام راتلل او اسلام راوړل

وَإِذَا خَرَجَ عَبْدُ الْحَرْبِيِّ مِنْ دَارِ الْحَرْبِ او هرکله چه د یوحربی کافرغلام مسلمان شو إِلَيْنَا مُسْلِمًا او زمونږ طرف ته دارالاسلام کښې) راغئ عَتَقَ نودا آزاد شو

**تشریح**> که د حربی کافر غلام مسلمان شي.او داراسلام ته راشي.نو آزادیږی.

**دلائل**> ① دلیل دادې.چه کوم وخت د طائف غلامان(چه ددوی تعداد۲۳ وو) مسلمانان شو.اود نبی کریم ﷺ په خدمت کښې حاضرشول.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل. (هم عتقاء الله)[1] یعنی دا الله تعالی آزاد کړي دی.

② دویم دلیل دادې.چه دې غلام د اسلام په حالت کښې خپل ځان په داراسلام کښې محفوظ کړې دې.او په ابتداء کښې هیڅ یومسلمان غلام نشي جوړیدلې.په دې وجه به دې آزاد وی.

## د حاملې وینځې په آزادولوسره د حمل آزادېدل

وَإِنْ أَعْتَقَ جَارِيَةً حَامِلًا او که یوکس حامله وینځه آزاده کړله عَتَقَتْ وَعَتَقَ حَمْلُهَا نود وینځې تابع به ددې حمل هم آزاد وی.

**تشریح**> مسئله داده.که مالك خپله حامله وینځه آزاده کړله.نوحمل به هم ددې حامله وینځې تابع وی.او آزاد به وی.

**دلیل**> ځکه چه دا حمل دوینځې جزء دې.لکه څنګه چه نور اجزاء دی.نولکه څنګه چه د وینځې په آزادولوسره ددې ټول اجزاء او اندامونه آزادیږی.دغه شان ددې حمل هم آزادیږی.

وَإِنْ أَعْتَقَ الْحَمْلَ خَاصَّةً اوکه ده صرف حمل آزاد کړو عَتَقَ نو صرف حمل به آزادیږی وَلَمْ تَعْتِقِ الْأُمُّ اومور نه آزادیږی

**تشریح**> اوکه صرف حمل ئې آزاد کړې وی.نو صرف حمل به آزاد وی.ددې مور یعنی وینځه به نه آزادیږی.

**دلیل**> دلیل دا دې.چه د وینځې د آزادولو هیڅ صورت نشته.ځکه چه د وینځې د آزادولو دوه

---

(۱) من حدیث علی رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الجهاد باب ۱۲۶رقم ۲۷۰۰ والترمذی فی مناقب علی (رضی الله عنه)

صورتونه دی.یو دا چه د وینځې آزادول بالقصد وی.دویم داچه د وینځې آزادول ددې د حمل تابع شی.خودا دواړه صورتونه ممکن نه دی.اول خو په دې وجه چه آزادول د وینځې طرف ته نه دی منسوب شوی.او دویم صورت ځکه ممکن نه دې.چه په دې کښې قلب د موضوع لازمیږی.ځکه حمل چه تابع دې.دا به متبوع شی.او ددې مور چه متبوع ده.دا به تابع شی.

| |
|---|
| وَاِذَا اَعْتَقَ عَبْدَهٗ عَلٰی مَالٍ که یو کس خپل غلام د مال په عوض سره ازاد کړلو فَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام دا قبول هم کړلو عَتَقَ نو دې به هغه وخت [ فی الحال] ازاد وی فَاِذَا قَبِلَ صَارَ حُرًّا وَلَزِمَهُ الْمَالُ کله چې ده قبول کړو عتق نو آزاد شو او لازمیږی په ده باندې مال |

تشریح> کله چه مولی خپل غلام دمال په عوض کښې آزاد کړی.اوغلام دا آزادی قبوله کړی.نوآزاد یږی.اوپه ده باندې مال لازمیږی

دلیله> ځکه چه دلته معاوضه د مال [چه غلام دې] ده.په هغه ځیزکوم چه مال نه دې.ځکه چه دمال په بدله کښې غلام ته آزادی ملاویږی.خوغلام د څه مالك نه دې.چه هغه ځیز ورکړی اوخپل ځان آزاد کړی.حالانکه معاوضه دا تقاضا کوی.چه حکم [دملکیت] دې هله ثابت شی.چه عوض فی الحال قبض شی.لکه څنګه چه په بیع کښې ملکیت هله ثابتیږی.چه قبضه راشی.

**په عوض پوری د آزادئ تعلیق کول**

| |
|---|
| وَلَوْقَالَ اوکه چرته وې وئیل اِنْ اَدَّیْتَ اِلَیَّ اَلْفًا فَاَنْتَ حُرٌّ صح که تا راکړې ماته زر روپئ نوته دې آزاد نې نودا صحیح ده وَلَزِمَهُ الْمَالُ او لازمیږی په ده باندې مال وَصَارَ مَاْذُونًا اودې ماذون اوګرځیدلو |

تشریح> ددې مسئلې دوه ارخونه دی.په ابتداء کښې تعلیق د عتاق دې.اوپه آخرکښې چه دې زر روپئ ورکړی.نوپه دې کښې عتق واقع شو خوپه معاوضه باندې.

دلیله> چونکه الفاظ په تعلیق کښې صریحی دی.نوځکه مونږ وایو.چه دا غلام آزادیږی.چه کله شرط موجود شی.یعنی زر روپئ ورکړی.

**د غلام دمال پیش کولوله پس مولی دمال په قبض کولوباندې مجبوره کول**

| |
|---|
| فَاِنْ اَحْضَرَ الْمَالَ اوکه غلام حاضرکړلومال [مولی ته] اَجْبَرَ الْحَاکِمُ الْمَوْلٰی عَلٰی قَبْضِهٖ نومجبوره به نې کړی حاکم په قبض کولودمال وَعَتَقَ الْعَبْدُ اوآزاد به شی غلام |

حل اللغة > ① الاجبار: مجبوره کول

تشریح> (ومعنی الاجبار فیه) په باب دعتق اوتولوحقوق العباد لکه بیع وغیره کښې په قبض کولوباندې د مجبوره کولومطلب دا دې.چه په کوم ځیزعقد منعقدشوې وی.هغه قابض ته په داسې حالت کښې پریږدی.که هغه نې قبض کول اواخستل غواړی.نوڅه ممانعت او رکاوټ په کښې نه وی.مثلاً زیدپه عمروباندې په سل روپئ کتاب خرڅ کړلو.اوعمرو ورته په دوکان کښې سل روپئ کیخودلې.او روان شو . نو دا دده په دوکان کښې سل روپئ پریخودل تخلیه ده.ځکه چه عمرودخپل دوکان نه دغه سل روپئ بغیرد څه رکاوټ نه اخستلې شی.البته دا ضروری ده.چه تخلیه به هله معتبره وی.چه کوم بدل ورته ورکوی.هغه صحیح وی.اوکه هغه شان نه وی څنګه چه د فریقینوپه مینځ کښې په عقد کښې ذکرشوې وی.نوبیا صرف تخلیه قبض نشی تصور کولی.مثلا په ذکرشوی مثال زیدعمروته سل روپئ په دوکان کښې کیخودلې .خوهغه جعلې وی.نودا تخلیه معتبره نه ده.اوپه دې باندې دعمروقبضه نشی منلې.

| |
|---|
| وَوَلَدُ الْاَمَةِ مِنْ مَوْلَاهَا حُرٌّ بچې د وینځې د خپل مولی نه آزاد دې |

**تشريح>** مالك دخپلې وينځې سره جماع اوکړه او د هغې نه بچې پيدا شو.نو دغه بچې به آزاد وي

**دليله>** دليل دا دې چې دا ماشوم د يو آزاد کس د نطفې نه پيدا شوې دې اوچې د آزاد نه پيدا وي هغه نه وي مګر آزاد نو دا بچې به هم آزاد وي.

## د وينځې د بچي حکم

| |
|---|
| وَوَلَدُهَا مِنْ زَوْجِهَا اوکه د وينځې بچې ددې د خاوند نه پيدا شوې وي دې مَمْلُوكٌ لِسَيِّدِهَا نودا به د وينځې د مالك مملوك وي |

**تشريح>** مسئله داده.که د وينځې بچې ددې د خاوند نه پيدا شوې وي.نودا به د وينځې د مالك مملوك وي

**دليله>** .دليل دادې.چه دا تعارض موجود دې.ځکه چه منافات ثابت دې.او منافات ځکه ثابت دې.چه بچې د مور اود پلار د دواړو د نطفې نه پيدا شوې دې.نو په دې صورت کښې که د مور د طرف اعتبار اوکړې شي.نو بچې به د وينځې د مولا مملوك وي.او که د پلار د طرف اعتبار اوکړې شي.نو بچې به د وينځې يعنې ددې د مور د مولا مملوك نه وي.نوچونکه په دواړه صورتونو کښې منافات متحقق شوې دې.په دې وجه به د ترجيح لاره اختيارولې شي.او په څو وجوهو سره د مور طرف ته ترجيح حاصل ده.

**وجوه الترجيح>** ① خوځکه چه د پرورش حق مور ته حاصل دې. ② دويم داچه د خاوند نطفه د وينځې يعنې د ښځې په نطفه کښې ملاؤ شوې ده.او هلاکه شوې ده.ځکه چه د ښځې نطفه پخپل ځائې برقرار ده.اود خاوند نطفه پخپل ځائې برقراره نه ده.بلکه منتقل شوې ده.اود ښځې په رحم کښې راغلې ده.

③ دريم داچه بچې ترکوم وخته پورې د مور په خيټه کښې د جنين په صورت کښې دې.نودا حساً او شرعاً د ښځې د يو اندام پشان دې.لکه څنګه چه ددې لاس او خپه اندامونه دي.حساً په دې وجه اندام دې.چه جنين د خپلې مور په ساه اخستلو سره ساه اخلي.او ددې په منتقل کيدلو سره منتقل کيږي.تردې چه د ولادت په وخت په قينچۍ سره کټ کولې شي.اودا دخپلې مور نه جدا کولې شي.اوشرعاً ځکه د اندام پشان دې.چه دوينځې په آزادولو سره جنين يعنې ددې د خيټې بچې هم آزاديږي.څلورم داچه حقيقتاً اوحکماً دواړه شان د مور د نطفې نه پيدا کيږي.اود پلار د نطفې نه صرف حکماً پيدا شوې دې.نود ترجيح په دې وجوه سره د مور طرف ته ترجيح ورکړې شوې ده.او مور طرف ته د ترجيح ورکولو نتيجه به دا وي.چه مور د کوم کس مملوکه وي.ددې بچې به هم دهغه کس مملوکه وي.

## د غلام د آزادې ښځې د بچي حکم

| |
|---|
| وَوَلَدُ الْحُرَّةِ مِنَ الْعَبْدِ حُرٌّ اود آزادې ښځې بچې آزاد دې |

**تشريح>** مسئله داده.چه د آزادې ښځې بچې په هرحال کښې آزاد وي.که ددې خاوند آزاد وي.اوکه غلام وي.

**دليله>** دليل دادې.چه وراندې تير شوي دي.چه د ښځې طرف ته ترجيح ورکولې شي.په دې وجه به ددې بچې هم په آزادېدلو کښې ددې تابع وي.يعنې د مور د آزادکيدلو په وجه به ددې بچې هم آزاد وي.

**نظائره>** ① لکه څنګه چه دمور په مملوك او مرقوق کيدلو سره بچې هم مملوك او رقيق وي.

② دغه شان که مولا د خپلې ام ولد يو سرې سره نکاح اوکړله.يا ئې د خپلې مکاتبې نکاح اوکړله.نو بچې به د خپلې مور په حکم کښې وي.په (عيني شرح هدايه) کښې ليکلي دي.چه علامه کاکي رحمه الله فرمائي. چه مملوکيت او مرقوقيت دواړه ئې ځکه ذکر کړل.چه په دې دواړو کښې تغاير دې.ځکه چه په

مدبر او ام ولد کښي ملك کامل وی.او رقيت ناقص وی.او په مکاتب کښي ملك ناقص وی.او رقيت کامل وی.

# بَابُ التَّدْبِيْرِ

**ترجمه>** دا باب د مدبر کولو په بيان کښي دي.

**د مدبر تعريف**

| |
|---|
| إِذَا قَالَ الْمَوْلٰى لِمَمْلُوْكِهٖ إِذَا مِتُّ کله چه اووائی مولی خپل غلام ته کله چه زه مړ شم فَأَنْتَ حُرٌّ نو ته آزاد ئې أَوْ أَنْتَ حُرٌّ عَنْ دُبُرٍ مِّنِّیْ ياته دې آزاد ئې ورستو زما [دمرګ] نه أَوْ أَنْتِ مُدَبَّرٌ يا ته مدبر ئې أَوْ قَدْ دَبَّرْتُكَ يا مامدبر کړې ته فَقَدْ صَارَ مُدَبَّرًا نو او ګرځيدلو [دې] مدبر |

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.

**فائده>** دتدبير الفاظ په درې قسمه دی.① هغه الفاظ چه په اضافت د عتق دلالت کوی لکه(أعتقتها حررتك) وغيره

② هغه الفاظ چه په تعليق د عتق دلالت کوی لکه (ان مت فأنت حر) وغيره

③ هغه الفاظ چه په وصيت باندې دلالت کوی لکه (وصيت لك) وغيره په دې ټولو الفاظ باندې تدبير واقع کيږی.

**مفهوم التدبير>** د تدبير مفهوم دا دي.چه ددې الفاظو نه روسته فی الحال غلام د مولی په ملکيت کښي وی.اګرچه ده آزادی ورکړې ده.خو هغه آزادی ئې دمرګ نه پس وخت پورې مقيد کړې ده.نو آزادی به ورته ملاويږی.خو دمرګ نه پس.نو په دې صورتونو کښي د مولی نيت ته ضرورت نشته.

**په تدبير باندې مرتب احکام**

| |
|---|
| ثُمَّ لَا يَجُوْزُ بَيْعُهٗ بيا جائز نه دی خرخول ده[غلام] وَلَا هِبَتُهٗ او نه هبه کول ده |

**تشريح>** دتدبير نه پس په مدبر غلام کښي تصرفات کول لکه خرخول هبه کول دجمهور و عالمانو ؒ په نيز باندې جائز نه دی.

**فائده>** ځکه چه دمولی دمرګه پس دې آزاديږی.او ده د آزادئ سبب ددې نه سوا بل نه وی.چه دې مولی په خپل ژوند کښي مدبر کړې وو.ددې نه دا معلومه شوه.چه د آزادئ سبب هم په هغه وخت کښي موجود شوې وو.کله چه ورته دتدبير الفاظ وئيلی وو.البته ترمرګه پورې په دغه سبب باندې فائده نه مرتب کيدله.اوداځکه که چرته مونږ فی الحال آزادی واقع نکړو.او وقوع د آزادئ دمرګ نه ورستو وخت ته منسوب کړو.نو دمرګ نه پس خو په مولی کښي د آزادولو اهليت نه پاتې کيږی.نو ځکه به دې د تدبير اهل شی.ددې وجې مونږ به خامخا دا وايو.چه آزادی فی الحال واقع شوې ده.البته ظهور ئې د مولی مرګه پورې روستو شوې دې.

**په مدبر کښي کوم قسم تصرفات جائز دی؟**

| |
|---|
| وَلِلْمَوْلٰى أَنْ يَّسْتَخْدِمَهٗ اوجائز دی دمولی دپاره چه خدمت واخلی د مدبر نه وَيُؤَاجِرَهٗ او په اجرت ئې ورکړې [چاته] وَإِنْ كَانَتْ أَمَةً او که وينځه وی فَلَهٗ أَنْ يَّطَأَهَا ده دپاره جائز دی چې وطی ئې کړی وَلَهٗ أَنْ يُّزَوِّجَهَا او جائز دی چه په نکاح سره ورکړی دا چاته |

تشریح> چونکه په مدبر کښې ملکیت باقي دې نو ددې وجې مالک ته دده نه د خدمت اخستلو اختیار حاصل دې دغه شان که بل چاته ئې د مزدورئ کولو دپاره لیږی نو لیږلې شی او که وینځه وی نو دهغې سره صحبت کول ورله هم جائز دی او ددې بل چا سره واده کول ورته هم جائز دی.

**تدبیر په دریمه حصه مال کښې وي.**

| |
|---|
| وَإِذَا مَاتَ الْمَوْلَى عَتَقَ الْمُدَبَّرُ مِنْ ثُلُثِ مَالِهِ [کله چه مړشی مولی آزادیږی مدبر په دریمه حصه د مال د مړی کښې ان خرج من الثلث که چرته هغه د دریمې حصې نه وتلې شي |

تشریح> کله چې مولی مړ شی نو مدبر به آزاد شی خود ده آزادی به د ثلث څخه کیږی. که د مدبر قیمت د ثلث نه زیات وو.نو بیا دې نشی آزادیدې.

فلیله> څکه چه دمړی ټول مال صرف دا غلام دې.نودا غلام به په درې حصو تقسیمولې شي.په یوه حصه کښې به دې د تدبیرپه وجه آزاد شي.اوباقی دوه حصې چونکه د وارثانو دی.نوکټه به کوی.اوهغوی ته به دوه حصې ورکوی.چه پوره آزاد شی

| |
|---|
| فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ مَالٌ غَيْرُهُ که چرته نه وی د مولی دپاره مال سوا د دغه غلام نه [اکوم چه نې مدبرکړې وی] يَسْعَى فِي ثُلُثَيْ قِيمَتِهِ نوکوشش به کوی په آزادولو د دوؤ حصو قیمت خپلو کښې |

تشریح> که د مولی د مرګ نه پس اوکتلې شو نو د هغه نه صرف او صرف دا یو مدبر غلام په میراث کښې پاتې شو.نو ورانديې تیرشوچې دې نشی آزادیدې.نو اوس به مدبر د خپلې آزادئ دپاره سعی او کوشش کوی.اوخپل قیمت به وارثانو ته ادا کوی چې آزاد شی.

فلیله> دا کوشش به د دې دپاره کوی چې نورو وارثانو ته خپله حصه پوره ملاؤ شی.د ده د تدبیر په وجه د هغوی په حصه کښې کمې رانشی.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَوْلَى دَيْنٌ اوکه چرته وی په مولی باندې قرض [نوپه دې صورت کښې به مدبرغلام د دریمې حصې نه نه آزادیږی يَسْعَى فِي جَمِيعِ قِيمَتِهِ لغرمائه مزدوری به کوی په ټول قیمت د هغه کښې |

تشریح> نفس مسئله آسانه ده.

فلیله> څکه چه ورانديې دې [پوره کول] د قرض د وصیت په جاری کولو باندې [یعنی که یوکس وصیت کړې وی.اوپه ده باندې قرض هم وی.نودده دمرګه پس به دټولونه اول قرض خلاصولې شی.دهغې نه پس که څه پاتې شی.هغه به په درې حصو تقسیمولې شی.یوه حصه به د وصیت اوتدبیرپوره کولوته ویستلې شی.اوکه څوك دا اووائی.چه هرکله د مولی ددې غلام نه سوا نورمال نشته.نود غلام آزادی دې باطله کړې شی.نوداسې څکه نشی کیدې چې د عتق ربنتیا او توقې په دواړو حکم مرتب کیږی.

| |
|---|
| وَوَلَدُ الْمُدَبَّرَةِ مُدَبَّرٌ ] اودمدبره وینځې بچې به مدبر وی.[نوکوم احکام چه د مدبرغلام وی.هم هغه احکام به د مدبره ښځې د بچی هم وی] |

تشریح> د مدبر بچې به هم مدبر وی.لکه څنګه چې دغلام بچی هم غلام وی.

**فائده>** په دې باندې د حضرات صحابه کرامو اجماع نقل شوي دی [1]

| |
|---|
| فَإِنْ عَلَّقَ التَّدْبِيْرَ بِمَوْتِهِ که تدبير ئې په خپل مرګ پورې معلق کړو عَلٰى صِفَةٍ په داسې طريقه مِثْلَ أَنْ يَقُوْلَ چې اووائي إِنْ مُتُّ مِنْ مَرَضِيْ هٰذَا که زه د خپل دې بيمارئ نه مړ شوم أَوْفِيْ سَفَرِيْ هٰذَا يا که زه په خپل دې سفر کښې مړ شوم أَوْمِنْ مَرَضٍ كَذَا يا که زه د فلانئ بيمارئ نه مړ شوم فَلَيْسَ بِمُدَبَّرٍ نو دې مدبر نه دی وَيَجُوْزُ بَيْعُهُ او جائز دی خرخول د ده |

**تشريح>** که آقا د غلام تدبير په خپل مرګ پورې معلق کړو. او په دې کښې ئې څه زياتې صفت ذکر کړو. مثلا چې داسې ئې اووئيل که زه په خپله دې بيمارئ کښې مړ شوم نو ته آزاد يې نو غلام به في الحال نه آزاديږي. بلکه دده خرخول به جائز وی باقی تفصيل په دې متن کښې تير شوې دې «وأذا اعتق المولى بعد عبده الخ»

....

| |
|---|
| فَإِنْ مَاتَ الْمَوْلٰى عَلَى الصِّفَةِ الَّتِيْ ذَكَرَهَا عِتْقَ كَمَا يُعْتَقُ الْمُدَبَّرُ که مالك په هغه طريقه مړ شوکومه چې هغه بيان کړې وه نو(غلام) آزاديږي لکه څنګه چې مدبر آزاديږي. |

**تشريح>** که آقا هم په هغه سبب سره مړ شو په کوم سبب چې ئې غلام ته د آزادئ خبره کړې وه نو دا غلام به د مالک د دريمې حصې مال څخه آزاديږي.

# بَابُ الْاِسْتِيْلَادِ

**ترجمه>** دا باب د ام ولد جوړولو په بيان کښې دې.

**داستيلاد لغوي او شرعي معنی اواحکام**

**تشريح> تعريف الاستيلاد>** مالك د خپلې وينځې نکاح د چا سره اوکړه برابره ده که هغه سړې آزاد وو او که غلام دهغه نه د دې وينځې بچې پيدا شو. نوهغه بچې به د خپلې مور تابع وی اود مالك غلام به وی

**فائده>** د نبی کريم صلی الله عليه وسلم ارشاد دې أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا [2] چې د دې بچی دا آزا ده کړه. په دليل کښې وئيلې شوی وو. چه وطی د بچی په واسطه باندې سبب د جزئيت دې. هم دا وجه ده. چه دوارو يعنی مور او پلار کښې هريو ته په پوره نسبت سره دده نسبت کولې شی. او د ضرورت نه بغير په جزء باندې استمتاع اخستل حرام دی.

| |
|---|
| وَإِذَا وَلَدَتِ الْأَمَةُ مِنْ مَوْلَاهَا او کله چې وينځه د خپل مالك نه بچې اوزيږوی فَقَدْ صَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ نو دا د هغه ام ولد شوه لَا يَجُوْزُ لَهُ بَيْعُهَا د دې خرخول جائز نه دی وَلَا تَمْلِيْكُهَا او نه په دې باندې ملکيت راوستل جائز دی |

1) كذا في مصنف عبدالرزاق (٩/ ١٤٤) رقم ١٦٦٨٣)_

2) من حديث ابن عباس((اخرجه ابن ماجه باب ٢ رقم ٢٥١٦) والمستدرك ١٩/٢)_

**تشریح** کله چې وینځه د خپل مالك د جماع نه امیدواره شي او بیا زیږول اوکړي نو دا ام ولد اوګرځیده د دې خرڅول جائز نه دي.اونه مالك دا د بل چا په ملکیت کښې په هبې کولو وغیره سره داخلولې شي.

**دلیله** نبی کریم ﷺ د ام ولد د خرڅولو نه منع فرمائیلې ده

| |
|---|
| وَلَهُ جائزدي د مولی دپاره وَطْؤُهَا د [استیلادنه پس] دام ولد سره وطی کول وَاسْتِخْدَامُهَا اوددې نه خدمت اخستل وَإِجَارَتُهَا اودغه شان دغه چاته په اجاره ورکول وَتَزْوِيجُهَا اوچا سره ئې نکاح کول [دا ټول تصرفات]. |

**تشریح** مطلب دترجمه اواضافي قیوداتونه واضح دي.

**دلیله** ځکه چه ددې تصرفاتودپاره ملکیت شرط دې] اودمولی ملك په ام ولد کښې قائم دې نودمدبره وینځې سره مشابه شو.[نولکه څنګه چه په مدبره وینځه کښې دا تصرفات جائزدي دغه شان په ام ولدکښې هم جائزدي]

| |
|---|
| وَلَا يَثْبُتُ نَسَبُ وَلَدِهَا اود ام ولدنه چه کوم ماشوم پیدا شي.دمولی نه دهغه نسب نه ثابتیږي إِلَّا أَنْ يَعْتَرِفَ بِهِ الْمَوْلَى البته دا چه مولی ددې اقرار اوکړي.[چه دا زما بچې دې] |

**تشریح** کله چه د مولی د وینځې بچې پیدا شي.نودده نسب د مولی نه هله ثابتیږي.چه مولی اقراراوکړي.چه آو دا زما بچې دې.

**دلیله** ځکه چه دا هم ممکن ده.چه دا وینځه ددې مولی نه وراندې دبل چا په ملکیت کښې وي.اوهغه ورسره وطی کړې وي.اودا ولد د هغه د منۍ نه پیدا شوې وي.ددې وجې د نسب د ثبوت دپاره د مولی دعوی ضروري ده.

| |
|---|
| فَإِنْ جَاءَتْ بَعْدَ ذَلِكَ بِوَلَدٍ که ددې نه پس [دویم] ماشوم پیدا شو ثَبَتَ نَسَبُهُ بِغَيْرِ إِقْرَارٍ نودمولی داقرار نه بغیرد دغه ماشوم نسب د مولی نه ثابتیږي |

**تشریح** که د وینځې ولد پیدا شو.اومولی دا اقرار اوکړلو.چه دا زما بچې دې.اوددې نه پس هم د دغه وینځې نه دویم ماشوم پیدا شو.نود دې دویم ماشوم د نسب د ثبوت دپاره د مولی د دعوی ضرورت نشته.بلکه خود بخود به دا ماشوم مولی ته منسوب وي.

**دلیله** ځکه چه عام طورځو په وینځې کښې د شهوت پوره کول مقصود وي.د دوی نه د اولاد پیدا کول مقصود نه وي.خوچه ددې مولی د اولنی بچي د نسب اقراراوکړلو.نومعلومه شوه.چه مولی دا وینځه خپل فراش جوړ کړې دې.لکه څنګه چه منکوحه دخاوند فراش وي.اود منکوحه د ولد ثبوت بغیرد دعوی نه کیږي.دغه شان به په دې صورت کښې د ام ولد د بچي دنسب ثبوت هم بغیرد دعوی نه کیږي.

| |
|---|
| وان نَفَاهُ اوکه دا مولی د ام ولدد بچي د نسب نه انکاراوکړي يَنْتَفِي بِقَوْلِهِ نود مولی په انکارسره تري دده نسب منتفي کیږي |

**تشریح** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ځکه چه د ام ولد فراش کمزورې دې هم دا وجه ده.چه مولی دخپل خان نه ددې ملکیت منتقل کولې شي چه بل چا سره د ام ولد نکاح اوکړي

**دام ولد د بچي د نسب نه دمولى انكارهول**

**وَإِنْ زَوَّجَهَا** اوكه مولى خپله ام ولد چاته په نكاح كړله **فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ** اودې ولد اوزېږلو **فَهُوَ فِي حُكْمِ أُمِّهِ** نودغه ماشوم به دخپلې مورپه حكم كښې وى.[چه څنګه ئې مور د مولى د مرګ نه پس ازادېږى.دغه شان به ددې بچي هم آزاد وى]

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دليله>** ځكه چه د آزادئ حق [دمورنه] ماشوم ته رسي.پشان د تدبير كه مورمدبره وى.نو ددې بچي به هم مدبروى] آيا ته نه ګورې چه د آزادې ښځې بچي آزاد وى اود وينځې بچي غلام وى

**د مولى دمرګ نه پس دام ولد آزادي**

**وَإِذَا مَاتَ الْمَوْلٰى** اوكله چه مولى مړشي **عَتَقَتْ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ** نوام ولد دتول مال نه آزادېږى

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلائله>** ① دسعيدبن المسيب [رح] دحديث د وجې چه نبى ﷺ د امهات الاولاد د آزادولوحكم كړې وو اوددې حكم ئې كړې وو.چه دوى دې په قرض كښې نشى خرڅولې اوپه دريمه حصه مال كښې دې نشى شمارلې (۱) ② اوبله دا چه د ولد حاجت اصلى دې نودا حاجت به د مړى دكفن كولوپه حق باندې مقدم كولې شى

**وَلَا تَلْزَمُهَا السِّعَايَةُ لِلْغُرَمَاءِ** اونشته كوشش د قرض خواهو دپاره په دې باندې دمولى دقرض په خلاصولو كښې په دې باندې كوشش نشته **إِنْ كَانَ عَلَى الْمَوْلٰى دَيْنٌ** كه چرته په مولى باندې قرض وى [چه دا به خوارى مزدورى كوى.اودخپل مولى قرض به خلاصوى]

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلائله>** ① دليل هغه حديث دې كوم چه مونږ روايت كړلو

② اوبله دا چه ام ولد مال متقوم نه دې هم دا وجه ده.كه چا ام ولد غصب كړله.نوپه مولى باندې د ابوحنيفه [رح] په نيزتاوان نشته.[چه دا به خوارى مزدورى كوى.اودمولى قرض به خلاصوى.نوچه مال متقوم نشو نوپه دې پورې به د قرضداروحق نه متعلق كيږى

**وَإِذَا وَطِئَ الرَّجُلُ أَمَةَ غَيْرِهِ بِنِكَاحٍ** اوچاچه وطي اوكړه دبل چا وينځې سره په نكاح سره [مثلاً زيدد بكرد وينځې سره نكاح كړې وه] **فَوَلَدَتْ مِنْهُ** اودهغې نه ئې بچي پيدا شو **ثُمَّ مَلَكَهَا** اوبيا دې [زيد] دهغې وينځې [چه دده منكوحه ده] مالك شو **صَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ** نودغه وينځه د ده [زيد] ام ولد شوه

**تشريح>** ① زيدد عمرود وينځې په ملك نكاح سره مالك شو.اوبيا ئې په ملك يمين سره مالك اوګرځى.په دې صورت كښې داحنافو [رح] په نيز د زيد دا منكوحه دده ام ولدګرځى.او د امام شافعى [رح] په نيزنه ګرځى.(۲)

---

۱) خرجه الزيلعى رحمه الله ثم نقل احاديث فى الباب منها حديث ابن عمر (( أن النبى ﷺ نهى عن بيع امهات الأولاد وقال لايبعن ولا يوهبن ولايورثن يستمتع بها سيدها ما دام حياً فإذا مات فهى حرة أخرجه الدارقطنى فى سننه ۱۳۵/٤)).

۲) **مسلك الشافعي:**- امام شافعى رحمه الله فرمائى چه دا وينځه د هغه[ زيد] ام ولدنه ګرځى

**دلیل>** کله چه د وینځې په رحم کښې دمولی د منۍ نه ماشوم پیدا شي. نو دغه ماشوم د موردبدن یوه حصه شوه.اوچونکه دا حمل آزاد دې.ځکه چه د آزاد سړې د نطفه نه پیدا شوې دې.نودغه شان به وینځه هم آزاده شي.ځکه چه جزء (چه حمل دې) دکل نه (چه مور ده ) مخالفت نه کوی]

| |
|---|
| **وَإِذَا وَطِئَ الْأَبُ جَارِيَةَ ابْنِهِ** چه یوکس د خپل خوئې د وینځې سره وطی اوکړی **فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ** ودهغې بچې پیدا شی **فَادَّعَاهُ** اودې دهغه دعوی اوکړی چه دا زما خوئې دې **ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ** نوددغه بچی نسب ددې پلار نه ثابتیږی **وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ** اودغه وینځه دپلار ام ولدشوه **وَعَلَيْهِ قِيمَتُهَا** اوپه پلار باندې دوینځې قیمت دې.[چه هغه به خپل خوئی ته ورکوی] **وَلَيْسَ عَلَيْهِ عُقْرُهَا** اوپه پلار باندې دهغې وینځې عقر نشته. **وَلَا قِيمَةُ وَلَدِهَا** اونه پرې دبچی قیمت شته |

**تشریح>** (عقرها) دعقرنه هغه مال مراد دې.کوم چه دمهر پشان په هغه وطی کښې لازمیږی.په کوم کښې چه حدزنا نه جاری کیږی.په زیربحث مسئله کښې هم زنا شته.خویه پلاریاندې حدزنا نه جاری کیږی.

**دلیل>** ځکه چه نبی ﷺ یوصحابی ﷺ ته اوفرمائیل. (أنت ومالك لأبيك) ته اوستا مال ستا دپلار دې.چونکه وینځه هم مال دې.نوددې حدیث نه په ظاهره دا معلومیږی.چه لکه څنګه پلار دخوئی په نورو مالونو کښې تصرف کولې شي.دغه شان به په وینځه کښې هم تصرف کولې شي.چونکه دا شبه موجود ده.ددې وجې په حد جاری کولوکښې قانون دا دې.که دجرم په ثبوت کښې شك اوشبه پیدا شوه.نوحد ساقطیږی.

| |
|---|
| **وَإِنْ وَطِئَ أَبُ الْأَبِ** اوکه نیکه [زید] دنمسی [بکر] وینځې سره وطی اوکړله **مَعَ بَقَاءِ الْأَبِ** اود بکرخپل پلار[خالد] موجود وو.[اونیکه دعوی اوکړله.چه دا بچې زما دې. **لَمْ يَثْبُتِ النَّسَبُ مِنْهُ** نو] دنیکه نه نسب نه ثابتیږی |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیل>** ځکه چه پلار موجود وی.نونیکه ته د نمسی په مال کښې د ولایت حق نشته

| |
|---|
| **وَإِنْ كَانَ الْأَبُ مَيِّتًا** البته که پلار[خالد] مړ وی **يَثْبُتُ مِنَ الْجَدِّ** نودنیکه [زید] نسب ثابتیږی. **كَمَا يَثْبُتُ النسب مِنَ الْأَبِ** لکه څنګه چه د دې بچی نسب د پلار نه ثابتیږی .[په هغه صورت کښې کوم چه ذکرشو] |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیل>** ځکه چه کله پلار[خالد] نه وی.نودنیکه [زید] ولایت ثابت دې

| |
|---|
| **وَإِنْ كَانَتِ الْجَارِيَةُ بَيْنَ شَرِيكَيْنِ** اوچه یوه وینځه د دووکسانوپه مینځ کښې شریکه وی **فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ** نودهغې بچې پیدا شو **فَادَّعَاهُ أَحَدُهُمَا** اوپه دې دوو شریکانوکښې یودهغه دنسب دعوی اوکړله.[چه دا بچې زما دې **ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ** نود دغه مدعی نه د بچی نسب ثابتیږی. |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیل>** ځکه چه په نصف بچی کښې نسب ثابت شو ځکه چه نیمه وینځه دده په ملکیت کښې ده نو [دبچی ] په باقی نیمه حصه کښې به خامخا نسب ثابتیږی )ځکه چه نسب نه تقسیمیږی[چه ماشوم یو

وی.اونیم نسب ئې د زید شي اونیم دعمرو] اونسب ځکه نه تقسیمیږی.چه د نسب سبب چه علوق دې هغه نه تقسیمیږی ځکه چه یو بچي د دووکسانود مینې نه پیدا کیږی

| |
|---|
| وَصَارَتْ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ اودغه وینځه د مدعی شریك ام ولد شوه |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**علیله>** ځکه چه استیلاد [چه وینځه ام ولد شي] دصاحبینو په نیز نه تقسیمیږی.[چه نیمه دې ام ولد وی اونیمه دې وینځه وی] داد صاحبینو مذهب دې.[یعنی دصاحبینو په نیز چه څنګه د وینځې بچي پیدا شو.اویوشریك دعوی د نسب اوکړله.نودغه وینځه په یوځل ام ولداوګرځیدله.د ام ولد ګرځیدو دپاره دوو مرحلوته ضرورت نشته]

| |
|---|
| وَعَلَيْهِ نِصْفُ عُقْرِهَا اوپه مدعی شریك باندې به د دغه موطوءه وینځې نیم عقرهم تاوان وی چه نیم عقربه خپل شریکوال ته ورکوی وَنِصْفُ قِيمَتِهَا اونیم قیمت د هغې وَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ مِنْ قِيمَةِ وَلَدِهَا اونشته څه څیز په هغه باندې د قیمت د بچي د هغې |

**حل اللغة>** ① **عقر:** مهر

**تشریح> القاعدة الاولی>** قاعده دا ده.که یوه وینځه د دووکسانوپه شریکه وی.نوپه دې دواړوکښې د یودپاره هم دې سره وطی کول جائز نه دی.ځکه چه اشتباه دنسب راځی.په زیربحث مسئله کښې چه د وینځې بچي پیدا شی.اویوکس ددې بچي دنسب دعوی هم اوکړی. نویکاردا ده.چه په ده باندې حدزنا جاری شوې وې.ځکه چه ده دپاره د مشترکه وینزې سره وطی کول حرام وو.البته دلته یوه شبه موجود وه.هغه دا چه وینځې سره وطی کول جائزدی.خودلته حرمت د شریك د وجې راغلې دې.نوددې شبه په وجه حد ساقط شو.خوچونکه دخپل شریکوال په ملکیت کښې تصرف شوې دې.نوهغه ته به د دې وطی تاوان ورکوی.چه عقرورته وئیلې شي.

**القاعدة الثانیة>** قاعده دا ده.چه وینځه هله ام ولد ګرځی.چه ددې مولی ورسره وطی اوکړی.اودا دهغه نه حملداره شي.په زیربحث مسئله کښې که وینزه د مدعی شریك ام ولدګرځی.نوددې دپاره ضروری ده.چه وینځه دهغه مملوکه وی.حالانکه دمدعی شریك ملکیت خوپه نیمه وینځه کښې دې.نوداسې هم نشی کیدې.چه نیمه وینځه ام ولد شي اونیمه شریکوال په ملکیت کښې پاتې شي.ځکه چه استیلاد تقسیم نه قبلوی.نوداستیلاد تقاضادا ده.چه ټوله وینزه دمدعی ملکیت وی.ددې وجې مونږ وایو.چه په نیمه وینځه خود مدعی ملکیت د وراندې نه قائم وو.اوداستیلاد د وجې په باقی نیمه وینځه باندې هم دده ملکیت ثابت شو.

**د دواړو مدعیانوله د نسب ثبوت**

| |
|---|
| فَإِنْ ادَّعَيَاهُ مَعًا اوکه دواړو شریکانوپه یوځائې دعوی اوکړله ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُمَا نود دواړو نه ئې نسب ثابتیږی |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلائله>** ① دحضرت عمر رضي الله عنه په فتوی باندې دې.د فتوی تفصیل دا دې.چه دوو کسانویوې وینځې سره په هغه وخت کښې وطی اوکړله.چه هغه د حیض نه پاکه شوې وه.اوددغه وطی نه دهغې ماشوم پیدا شو.دواړو کسانو دبچی د نسب دعوی اوکړله.چه دا زما بچي دې.دا مقدمه حضرت عمر رضي الله عنه ته پیش شوه.هغوی درې قافیه شناس راوغوښتل.درې واړو ددې خبرې ګواهی ورکړله.چه په ماشوم کښې

د دوارو مدعیانو سره مشابهت موجود دې.حضرت عمر رضي الله عنه په خپله هم قائفه شناس وو.نوهغوی اوفرمائیل.چه په سپي باندې تور،زیړاو برګ سپي خیژي.خوپه انسانانوکښي ما دا نه وو لیدلي.اوس مې دا هم اولیدل.ددې نه پس ئې حکم اوکړلو.چه دا ماشوم د دوارو مدعیانوبچي دې.اوددې دواړووارث به وي.اودا دواړه مدعیان به دده وارثان وي.اوپه دواړوکښي چه کوم ژوندې پاتې شو.دې به دهغه وي.ددې حکم نتیجه دا راوتله.چه د دې بچي دتربیت ټولې ذمه واریانې به په دواړو په شریکه وي. [۱]

(۲)او[د دوارونه د نسب ثابتیدوبل دلیل دا دې.چه] دا دواړه داستحقاق په سبب کښي برابر دی.[چه ملکیت دې] نوپه حق اخستلوکښي به هم برابر وي اونسب اګرچه تقسیم نه قبلوی.[یوماشوم ددوو کسانوخوني نشي کیدې.]خوپه نسب باندې داسي احکام مرتب کیږي.چه هغه تقسیم قبلوی نوکوم احکام چه تقسیم قبلوی[لکه میراث اوړل شو چه د خوی په مال کښي د پلارخومره حصه کیږي نوهغه به په دواړوشریکانوتقسیمولي شي اوچه کوم تقسیم نه قبلوی.[لکه نسب] نوهغه به د دواړو په مینځ کښي پوره پوره تقسیم کولي شي.داسي به وي چه هدو ده سره بل څوک شریک نشته [نوپه زیربحث مسئله کښي به هرمدعی د ماشوم پلاروي.دا نه چه نیم ماشوم به دیومدعی خوې وي.اونیم دبل]

**دخپل مکاتب د وینځي سره وطي کول**

| |
|---|
| وَإِذَاوَطِئَ الْمَوْلَى جَارِيَةَ مُكَاتَبِهِ کله چه مولی د خپل مکاتب وینځه وطی کړی فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ اودهغې بچي پیدا شی فَادَّعَاهُ. اومولی دهغه دعوی اوکړی.[چه دا بچي زما نه پیدا شوې دې]فَإِنْ صَدَّقَهُ الْمُكَاتَبُ که مکاتب دده تصدیق اوکړلو ثَبَتَ نَسَبُهُ مِنْهُ نودبچي نسب د مولی نه ثابتیږی. |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**فلیله>** د مکاتب د تصدیق په صورت کښي نسب ثابتیږی] اودا وجه په حقیقت کښي د دواړو مسئلوپه مینځ کښي فرق دې هغه دا چه مولی د خپل مکاتب په ګټه کښي د تصرف حقدار نه دې.[دې په کښي تصرف نشي کولې] هم دا وجه ده چه مولی دخپل مکاتب ګټه نشي خانته کولې اوپلار د خوی د مملوک څیزمالك جوړیدې شی نو[څکه] د خوی تصدیق ته څه اعتبار نشته.[که هغه د پلارتصدیق کوی اوکه نه کوی.دبچي نسب د مولی د پلارنه ثابتیږی.دغه شان دلته هم که مکاتب تصدیق کوی اوکه نه کوی.نسب ئې د مولی نه ثابتیږی]

| |
|---|
| وَكَانَ عَلَيْهِ عُقْرُهَا امام قدوری رحمه الله فرمائی.په مولی باندې د وینځي عقردې |

**تشریح>** په ظاهره خوکه ګوري نومولی د پردئ وینځي یعنی دمکاتب وینځي سره وطی کړې ده.ددې تقاضا خودا وه.چه په مولی باندې حدزنا جاری شوې وو.البته مولی په دې غلط فهمۍ کښي وو.چه چونکه دمکاتب ګټه دده دپاره ده.نوزما دپاره به د دې وینځي سره وطی کول هم جائز وي.حالانکه مسئله داسي نه ده.نوددې غلط فهمۍ په وجه یوه شبه پیدا شوه.اودهغه شبه د وجې حدزنا ساقط شو.البته مولی چونکه د مکاتب وینځه وطی کړې ده.نوددې وطی تاوان به ورته ورکوی.چه عقرورته وائی.

---

۱) قال الزيلعي رحمه الله اخرجه البيهقي بنقص يسير ثم نقل الواقعة نصب الراية۳/۴۴۳ـ

**دليله** ددې خبرې دليل چه په مولى باندې عقر واجبيږي.دا دې.چه په كوم وخت كښې مولى دخپل مكاتب وينځې سره وطى كوله.نوپه هغه وخت كښې دغه وينځه دمولى په ملكيت كښې نه وه.البته چونكه دا وينځه هم دده دمكاتب وينځه وه.نوپه دې وينځه كښې دمولى څه نا څه حق وو.اودغه حق ددې دپاره كافي وو.چه دا وينځه ام ولداوګرځي.

| |
|---|
| **وَقِيمَةُ وَلَدِهَا** اوپه مولى باندې د بچى قيمت لازم دې [چه مولى به خپل مكاتب ته دبچى قيمت وركوى] |

**تشريح** اوپه مولى باندې لازم دى.چه د ماشوم كوم قيمت كيږي.هغه خپل مكاتب ته وركړي.
**دليله** ځكه دغه بچې د ولدمغرور په حكم كښې شو.يعنى مولى په دې دهوكه شو.چه د مكاتب د وينځې سره به زما دپاره وطى كول جائزوى.ځكه چه دده ګټه هم زما دپاره ده.نو كوم ماشوم چه پيدا شو.هغه د ولدمغرور په حكم كښې دې.اوپه ولدمغرور كښې دا مسئله ده. چه نسب ئې د واطى نه ثابتيږى.خوچه د چا وينځه وى.هغه ته به ددغه ولد قيمت وركوى.

| |
|---|
| **وَلَا تَصِيرُ الْجَارِيَةُ أُمَّ وَلَدٍ لَهُ** اووينځه د مولى ام ولدنه ګرځي |

**تشريح** نفس مسئله آسانه ده
**دليله** ځكه چه په حقيقت كښې دمولى په وينځه باندې ملكيت نشته لكه څنګه چه په ولدمغروركښې ملكيت نه وى

| |
|---|
| **وَإِنْ كَذَّبَهُ الْمُكَاتَبُ فِي النَّسَبِ** اوكه مكاتب په نسب كښې دمولى تكذيب اوكړلو .[چه دا ماشوم ستا خوني نه دې] **لَمْ يَثْبُتْ نَسَبُهُ مِنْهُ** نو[دمكاتب دانكارپه صورت كښې] دماشوم نسب دمولى نه نه ثابتيږى |

**تشريح** نفس مسئله آسانه ده
**دليله** دليل وړاندې مونږ بيان كړوچه دمكاتب تصديق ضرورى دې

# كِتَابُ الْمُكَاتَبِ

**ترجمه** (دا) كتاب د مكاتب جوړولو(په بيان كې ) دې.

**تشريح الربط بما قبله** په قول د صاحب د نهايه رحمه الله دعقد اجاره نه روسته د عقد كتابت راوړلو مناسبت دادې.چه په دې كې هر يو داسې عقد دې.چه په دې سره د غير مال په مقابله كې مال په داسې طريقه حاصلولي شى.چه په هغې كې عوض ذكر كولو سره اصالةً د ايجاب او قبول حاجت هم وى.او علامه اتقانى رحمه الله صاحب دغاية البيان چې دا ليكلى دى.چه كتابت د عتاق نه روسته راوړل پكار وو.ځكه چې دكتابت مال ولاء دې.اود ولاء دمال احكام د عتق څنې دې،په دې وجه حاكم شهيد په كافى كې كتاب المكاتب او كتاب الولاء د كتاب العتاق نه روسته ذكركړى دى.دا مناسب نه دى.ځكه چې عتاق كې د غلام ذات د خپل ملك نه د عوض نه بغير اوبنكلې كيږى.او په كتابت كې دا خبره نشته. (لأنه لسبته الذاتيات أولى من لسبته العرضيات) پاتې شو د صاحب د كافى رحمه الله ولاء ذكركول، نو هغه عتاق سره د ولاء مناسبت بيانولو لپاره دى.عتاق سره د مكاتبت مناسبت بيانولو لپاره نه دې.
**تعريف المكاتب لغة** لفظ د مكاتب د كاتبه مكاتبة نه اسم مفعول دې.په دې معنى چې د مال معين ادا

کولو په شرط آزادول.او دا په اصل کې د کتب (ن) کتابة څخه دې.په معنی د جمع کولو سره.لکه چې د لښکر یو مجتمع ډلې ته کتیبه وائی.او هم ددې نه کتاب دې.چه دا د بابونو او فصلونو جامع وی. (د منه يقال كتب النعل و القربة) پیزار یا مشك ئې په بلې تسمې سره اوګنډلو.

**تعريفه الشرعي** په کافی او کفایه وغیره کې ددې شرعی او اصطلاحی تعریف داسې شوې دې. (الكتابة تحرير اليد في الحال و رقبة عند أداء المال) غلام د تصرف په لحاظ سره بالفعل او د رقبة په اعتبار سره د بدل کتابت ادا کولو نه روسته آزادولو ته کتابت وائی.یعنی د عقد کتابت نه روسته غلام د تصرف اعتبار سره د بدل کتابت ادا کولو نه روسته غلام آزادیږی.ګویا قبضه فی الوقت حاصلیږی.او ملك رقبه د انجام په اعتبار سره حاصلیږی.

**د مکاتب کولو احکام**

(وَإِذَا كَاتَبَ الْمَوْلَى عَبْدَهُ أَوْ أَمَتَهُ عَلَى مَالٍ شَرَطَهُ عَلَيْهِ کله ئې چې مکاتب کړو.خپل غلام یا وینځه د داسې مال په عوض چې هغه ئې په ده شرط کړې دې.وَقَبِلَ الْعَبْدُ او غلام دا قبول کړو.ذَلِكَ الْعَقْدَ صَارَ مُكَاتَبًا) نو هغه مکاتب شو.

**تشريح** علامه عینی رحمه الله فرمائی.چه ابو الحسین قدوری رحمه الله لفظ د کاتب د باب مفاعلت نه استعمال کړې دې.چه دا د دوو په منځ کې د اشتراك تقاضه کوی.څکه چې آقا د خپل ارخه عقد نامه لیکی.او غلام قسطونه اداکوی.په دې لحاظ سره اصل فعل کې دواړه مشترك دی.نو آقا مکاتب بالکسر دې.او غلام مکاتَب بالفتح دې.

**دلائله** ① دعقد کتابت د جواز دلیل د الله تعالی ارشاد دې. فَكَاتِبُوهُمْ إِنْ عَلِمْتُمْ فِيهِمْ خَيْرًا مطلب دادې.که د یوکس غلام یا وینځه اووائی.چه زه په دومره موده کې دومره مال ستا لپاره اوګټم.نو ته به ما آزاده وې.نو مالك له پکار دی.چه قبول ئې کړی.او اولیکی.کله چې هغه ته پته اولګی.چه واقعی ددې غلام یا وینځې په حق کې به آزادی ګټوره وی.د غلامۍ د قید نه خلاصیدلو نه روسته به غلګانې، بدکارئ، او قسم قسم بدمعاشیانې نه کوی.

② سعید بن منصور د حضرت ام سلمه رضی الله عنها نه روایت کړې دې. (أن النبي ﷺ قال إذا كان لأحد اكن مكاتب فملك ما يؤدى فلتحتجب منه وفيه أحاديث كثيرة سواه) او د کتابت په مشروعت باندې د امت اجماع ده.

**حكم الكتابة** په ذکر شوی آیت کې د(فَكَاتِبُوهُمْ) امر وجوب لپاره وی.او که د غیروجوب لپاره وی.په دواړو صورتونو کې د عقد کتابت په مشروعیت باندې دلالت موجود دې. آیت کې د(فَكَاتِبُوهُمْ) امر په اجماع د فقهاؤ، حسن، شعبی ، سفیان ثوری ، امام مالك، او د امام شافعی رحمهم الله وغیره په نیز حکم ایجابی نه دې.بلکه مستحب حکم دې.

**الاشكال** په دې باندې اشکال کیږی.چه صاحب دکشاف د ذکرشوی آیت په تفسیر کې وئیلی دی. (د هذا الأمر للندب عند عامة العلماء وعن الحسن ليس ذاك بعزم ان شاء كاتب وإن شاء لم يكاتب وعن عمر رضي الله عنه هي عزمة من عزمات الله وعن ابن سيرين مثله وهو مذهب داؤد). نو حضرت عمر رضی الله عنه چې دا په فقه او روایت کې د مشهور او جلیل القدر صحابی رضی الله عنه دې.او حضرت ابن سیرین رحمه الله کوم چې په خاصو تابعینو او اعلی درجې فقهاؤ کې دې.هرکله چې ددوی په نیز مذکوره امر د وجوب لپاره دې.نو د فقهاؤ د اجماع

دعوه څنګه صحيح کيدي شي ؟

**الجواب>** دادې.چه د کشاف ذکر شوې مضمون صرف په دې دلالت کوي.چه ددې امر د وجوب لپاره کيدل ددې حضراتو نه نقل دی.دا نه چې ددوی مقررمذهب دادې.چه کتابت واجب دې.

**قوله اشتراط قبول العبد>** د غلام د قبلولو شرط ددې لپاره دې.چه د کتابت په وجه به دده په ذمه مال نه لازميږی.نودا ضروری ده.چه هغه پخپله ذمه مال لازمول قبول کړی.آئمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دی.

**د عقد کتابت صورتونه**

| |
|---|
| (**ويجوز أن يشترط المال حالا**او دا جائز دی.چه شرط اولګولې شی د مال فی الحال ( فوراً)، **ويجوز مؤجلا ومنجما**)اوجائز دی نيته دار او په قسط وار هم. |

**تشريح>** د عقد کتابت دوې (دوه) صورتونه دی.کتابت حاله، او کتابت مؤجله.کتابت حاله دادې.چه غلام بدل کتابت فی الحال اداکړی. (**بأن يقول المولى كاتبتك على ألف درهم**)(عمرپه الولوالجية فتاواه) کتابت مؤجله دادې.چه بدل کتابت ميعادی ( نيته دار) او قسط وار وی. (**بأن يقول كاتبتك على ألف درهم إلى سنته يؤدی كل شهر من النجم كذا**)،، ما ته د يو کال په نيته د زر درهمو په عوض مکاتب کړې.چه هره مياشت دومره قسط اداکوه،،

په ظاهرالروايه کې د امام احمد رحمه الله په نيز دا دواړه صورتونه جائز دی.رويانی وغيره بعضو شوافعو هم دا اختيار کړې دې.او ابن التين په قول د امام مالك رحمه الله نه په دې اړه کې هيڅ نص نشته.په جواهر مالکيه کې دی. (**قال ابوبكر؛ ظاهر قول مالك أن التنجيم و التاجيل شرط فيه ثم قال وعلماؤنا يقولون أن الكتابة الحالة جائزة**) ([1])

**دلائل>** ① د آيت**فكاتبوهم** ظاهر دې.چه په دې کښې تنجيم او تاجيل يعنی د فی الحال يا قسط وار کيدلو شرط لګول نص باندې زياتوالې دې.چه دا يو دول له د نسخ په درجه کې وی.② دويم دليل دادې.چه کتابت هم يو عقد معاوضه ده.چه په دې کې عوض معقود به دی.چه مال ادا کولو سره به غلام ته د خپل نفس آزادی حاصليږی.نو په کتابت کې به دا مال داسې وی.لکه څنګه چې بيع کې ثمن وی.چه په دې کې قدرت کيدل شرط نه دی.په دې وجه د قبضه نه وړاندې ددې بدل اخستل جائز دی.اودا د ثمن کيدلو علامت دې.

**الاشکال>** د مکاتب ادا کولو نه عاجز کيدل د فسخ موجب وی.اودا د مبيع کيدلو علامت دې؟

**الجواب>** په بدل کتابت کې دوې (دوه) سببه دی.من وجه ثمن دی.او من وجه مبيع دې.نو مونږ په دواړو جهتونو باندې عمل کولو سره اونيل.چه د مبيع کيدلو په لحاظ سره به کتابت فسخ کيږی.اود ثمن کيدلو په لحاظ سره ادا کولو باندې قدرت کيدل شرط وی.په خلاف د سلم، چې په دې کې مسلم فيه معقود عليه وی.يعنی هرلحاظ سره مبيع وی.ترڅو چې د قبضې نه وړاندې ددې بدل اخستل جائز نه دی.نو په مسلم فيه به قدرت کيدل شرط وی.لکه څنګه چې مبيع کې وی.چه ددې د جواز لپاره د بائع په مبيع باندې قادر کيدل شرط نه دی. (**للإجماع على جواز الإعتاق من لا يملك الثمن**) دغه دول په کتابت کې به

[1] ) **مسلك الشافعي؛**- امام شافعی رحمه الله فرمانی.چه د فی الحال ادا کولو شرط جائز نه دې.بلکه قسط وار کيدل ضروری دی.

هم دا شرط نه وی.چه غلام ته په مال باندې قدرت حاصل وی.

## د صغیر غلام مکاتب جوړولو حکم

(وَتَجُوزُ كِتَابَةُ الْعَبْدِ الصَّغِيرِ إِذَا كَانَ يَعْقِلُ الشِّرَاءَ وَالْبَيْعَ)او جائز دی د کم عمره غلام مکاتب کول، چې هغه په اخستلو خرخولو پوهیږی.

**تشریح>** که یو غلام کم عمره وی.او اخستلو خرخولو باندې پوهیږی.چه شراء جالب ( نفع راخکونکې) ده.او بیع سالب ( ثمن واجبونکې) ده.نو د داسې صغیر غلام مکاتب کول جائز دی. (۱)

**دلیله>** ځکه چې دده د ارخه به د ایجاب او قبول تحقق اوشی.

## د کتابت نه روسته غلام باندې د قبضې حکم

(وَإِذَا صَحَّتِ الْكِتَابَةُ كله چې عقد کتابت صحیح شو.خَرَجَ الْمُكَاتَبُ عَنْ يَدِ الْمَوْلَى نو مکاتب د آقا د قبضې نه اووتلو.وَلَمْ يَخْرُجْ عَنْ مِلْكِهِ)او دده د ملك نه نه دې وتلې

**تشریح>** کله چې عقد کتابت صحیح شی.نو مکاتب د خپل آقا د قبضې نه اوځی.خو دده د ملکیت نه نه اوځی.

**دلائل عدم الخروج من القبضة>** ① د قبضې نه وتل خو ځکه دی.چه دکتابت معنی چې هغه ضم ( ملاوول) دی.هغه متحقق شی.گویا مکاتب خپله قبضه خپل ذاتی ملکیت ارخ ته ملاوهی.یعنی فی الحال ده ته د خپل لاس د مزدورئ اختیار او آخرکار د خپل ذات آزادی حاصلیږی.نود لاس اختیار دذات اختیار سره ملاویږی.

② یا د آقا د قبضې نه وتل ځکه دی.چه د کتابت کوم مقصد ( عوض اداکول) دی.هغه حاصل شی. نو مکاتب ته د اخستلو خرخولو، او په سفر کې د تللو اختیار حاصلیږی.( که سفر اوگد وی.او لنډ وی ). اگرچه آقا ده لره په سفر کې د تللو نه منع کړې وی.

**دلائل عدم الروج من ملکه>** ① دلیل دا حدیث دې. (المکاتب عبد ما بقی علیه درهم)

② کتابت یو عقد معاوضه ده.چه دا دواړو ارخه ته مساوات غواړی.حالانکه فی الحال د غلام په آزادېدلو سره دا خبره ختمه شوه.یعنی که هغه فی الحال آزاد شی.اود آقا د ملك نه اوځی.نو غلام ته به د خپل ذات عوض یعنی آزادی حاصله شی.حالانکه آقا ته لا اوس مال نه دې حاصل شوې.او یو ډول له دده په ذمه حق هم ثابت شو.

## مکاتب لپاره د بیع، شراء اود سفر اجازت

(وَيَجُوزُ لَهُ الْبَيْعُ وَالشِّرَاءُ وَالسَّفَرُ)جائز دی مکاتب لپاره اخستل، خرخول، او سفر.

**تشریح>** مکاتب لپاره اخستل، خرخول،او سفر کول جائز دی.

**دلیله>** ځکه چې د کتابت د لوازماتو ځنې دادی.چه غلام د تصرف په لحاظ سره آزادیږی.اودا هغه

---

(۱) امام شافعی رحمه الله په دې کې زمونږ؟؟ خلاف دې.ددوی په نیز د صغیر غلام مکاتب کولو جائز نه دی.ددوی دا اختلاف په هغه اختلافی مسئلې باندې مبنی دې.چه داسې ماشوم چې هغه په تجارت کې توپیر کولې شی.هغه ته د تجارت اجازت ورکول صحیح دی او که نه؟ نو زمونږ په نیز صحیح دی.ددوی په نیز صحیح نه دی.

وخت کیدې شي.کله چي دې مستقل طور باندې د هر داسې تصرف مالك وي.چه د هغې په ذريعه خپل مقصود ته اورسيږي.يعنی بدل کتابت اداکړي.او آزاد شي.او اخستل خرخول کول، او سفر کول هم ددې قبيلې څخه دي.په دې وجه به دا کارونه دده لپاره جائز وي.په يو قول کې امام مالك او امام شافعي ددې خلاف دي.

**مکاتب لپاره د څومو ضروریاتو پوره کولو اجازت دی ؟**

| |
|---|
| وَلَايَجُوْزُلَهُ التَّزَوُّجُ إِلَّا بِإِذْنِ الْمَوْلٰى)او نکاح به نه کوي.مګر د آقا په اجازت سره. |

**تشریح**> د احنافو او آئمه ثلاثه په نيز مکاتب ته د آقا د اجازت نه بغير د نکاح کولو اختيار نشته.( ابن ابي ليلي فرمائي.که د آقا د اړخه د نکاح نه کولو شرط وي.بيا خو اختيار نشته.او که ددې شرط نه وي.نو د آقا د اجازت نه بغير هم کولې شي.
**دلیله**> څکه د کتابت مطلب دادې.چه د آقا ملك قائميدو سره د تصرف ممانعت مات کړې شي.چه هغه مقصود ته د رسيدلو وسيله وي.او نکاح کول ددې مقصد وسيله نه ده.بلکه په دې کې نورهم خلل اچول دي.څکه چې هغه به په نکاح کولو د مهر په ادا کولو او د نان نفقة په چکر کې پريوځي.او د آقا په اجازت د نکاح اختيار څکه دې.چه په ده کې د آقا ملك قائم دې.

| |
|---|
| وَلَايَهَبُ وَلَايَتَصَدَّقُ اونه به هبه کوي.او نه به صدقه ورکوي. |

**تشریح**> مکاتب ته د هبه او صدقه کولو اختيار هم نشته.
**دلیله**> څکه چې دا د تبرعاتو(احساناتو) د قبيلې څخه دي.او مکاتب د تبرعاتو اجازت نشته.

| |
|---|
| إِلَّا بِالشَّيْءِ الْيَسِيْرِ)خود معمولي ( آرزان) څيز |

البته د معمولي معمولي څيزونو هبه کولو اجازت دې.
**دلیله**> څکه چې دا د تجارت د ضروریاتو څخه دي.څکه چې کله کله د معاملاتو د خلقو د ملمستيا ضرورت راپيښيږي.کله کله د سوارلۍ وغيره څه شئ عاريت ور کولو ضرورت راځي.چه سوداګرو سره د لين دين تعلقات قائم پاتې شي.

**د مکاتب د هبه او صدقه کولو حکم**

| |
|---|
| (وَلَايَتَكَفَّلُ)او نه به کفالت قبلوي. |

**تشریح**> مکاتب ته دا اختيار هم نشته.چه کفالت قبول کړي.که کفالت د نفس وي.اوکه د مال وي.اوکه د مکفول عنه په حکم سره وي.او که بغير د هغه د حکم وي.دغه دول د نقد مال د پور ور کولو اختيار نشته.
**دلیله**> څکه چې دا کار د قبيلې د تبرعاتو څخه دې.د تجارت د ضروریاتو څخه نه دې.او نه د مزدورۍ د توابع څخه دې.که مکاتب څه شئ د عوض په شرط هبه کړو.نودا به هم جائز نه وي.څکه چې ابتداء کې هبه هم احسان وي.او په عقد کتابت کې تبرع داخل نه ده.

| |
|---|
| (وَإِنْ وُلِدَلَهُ وَلَدٌ مِنْ أَمَتِهِ)که د مکاتب د وينځې نه دده بچې پيدا شو.دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ)نو هغه به دده په کتابت کې داخليږي. |

**تشریح**> که د مکاتب د وينځې نه دده بچې پيدا شو.نو بچې به دده په حکم کې داخليږي.په ذکر شوی
**دلیله**> دليل سره (أنه من أهل أن يكاتب وإن لم يكن من أهل الإعتاق) نو ددې بچې حکم به د مکاتب پشان

وي.ائمه ثلاثه رحمهم الله هم ددې قائل دي.ښکاره داده.چه دلته کې د مکاتب وینځې سره دده خوې آزاد یږي.

**السوال**> چې هرکله مکاتب ته نه د شب باشئ (وینځې سره د شپې تیرولو) اختیار دې.اونه ددې سره وطی کولې شي.نو د وینځې سره به دده بچې څنګه پیدا کیږي ؟ تردې چې هغه په کتابت کې داخل وي.

**الجواب**> د شب باشئ اختیار نه کیدلو مطلب دادې.چه دده لپاره خپلې وینځې سره وطی کول حلال نه دي.خود آزاد سړی پشان دده هم د مکاتبه په ملك کې یو ډول قبضه ده.اود دعوه په وخت د نسب د ثبوت لپاره دومره خبره کافي ده.نوکه ده وطي اوکړله.اود نسب دعوه ئې اوکړله.نو اګرچه وطی دده لپاره حلال نه ده.البته نسب ثابتیږي.لکه څنګه چې په مشترك وینځه کې دي.چه د یو شریك لپاره هم وطي حلال نه ده.خوکه اوکړي.اود بچي د زیږیدل نه روسته د نسب دعوه اوکړي.نو نسب ثابتیږي.دغه ډول که د خوی وینځې سره پلار وطي اوکړي.او د بچي دعوه ئې اوکړله.نو نسب ثابتیږي.

| |
|---|
| وَكَانَ حُكْمُهُ مِثْلَ حُكْمِ أَبِيهِ نو دده حکم پشان د حکم د پلار د ده دې چې مکاتب دې وَكَسْبُهُ لَهُ)او د بچي مزدوري به مکاتب لپاره وي. |

**تشريح**> اودا بچې چې کوم څه اوګټي.هغه به د مکاتب وي.

**فائده**> څکه چې ددې بچي مزدوری د مکاتب مزدوری ده.یعنی مکاتب دا بچې ګټلې دې.او بچي مال اوګټلو.بیا ترکومه پورې چې مکاتب دده د نسب دعوه نه وه کړې.هغه وخته پورې دده مزدوری د مکاتب وه.نود نسب دعوه کولو سره به هم د مزدورئ اختصاص نه منقطع کیږي.مطلب دادې.چه دا بچې د مکاتب د غلام په حکم کې دې.نو لکه څنګه چې د نسب د دعوه نه وړاندې دده مزدوري مکاتب لپاره وه.هم دغه ډول به د نسب د دعوه نه روسته هم دده وي.

| |
|---|
| (فَإِنْ تَزَوَّجَ الْمَوْلَى عَبْدًا لَهُ مِنْ أَمَتِهِ که یوکس دخپلې وینځې نکاح خپل غلام سره اوکړله.ثُمَّ كَاتَبَهُمَا بیا ئې دوی دواړه مکاتب کړل.فَوَلَدَتْ مِنْهُ وَلَدًا او وینځې دده نه بچې راوړلو.دَخَلَ فِي كِتَابَتِهَا نو دا بچې به د وینځې په کتابت کې داخل وي.وَكَانَ كَسْبُهُ لَهَا)او د بچي ګټه به دده د مور لپاره وي. |

**تشريح**> که آقا د خپلې وینځې واده خپل یو غلام سره اوکړله.بیا ئې دواړه مکاتب کړل.بیا ددې نه بچې پیدا شو.نو بچې به د مور په کتابت کې داخل وي.او ددې بچي مزدوري به هم مور ته ملاویږي.

**فائده**> څکه چې د مور تابع کیدلو تله درنه ده.په دې وجه بچې په آزادئ او غلامئ کې د مور تابع وي.یعنې که مور د یو کس په قبضه کې وي.نو بچې به هم دهغه په ملك کې وي.اګرچه پلار آزاد وي.او که مور آزاده ښځه وي.نو بچې به هم آزاد وي.اګرچه پلار د یوکس غلام وي.نو په آزادئ او غلامئ کې بچې د خپلې مور او په نسب کې د پلار تابع وي.

| |
|---|
| (وَإِنْ وَطِئَ الْمَوْلَى مُكَاتَبَتَهُ که آقا د خپلې مکاتبې وینځې سره جماع اوکړله.لَزِمَهُ الْعُقْرُ نو په ده عقر (مهر) لازم وي.وَإِنْ جَنَى عَلَيْهَا أَوْ عَلَى وَلَدِهَا اوکه په دې یا د دې په بچي ئې څه زیاتې اوکړو لَزِمَتْهُ الْجِنَايَةُ نو په ده به ئې تاوان لازمیږي وَإِنْ أَتْلَفَ مَالَهَا اوکه ددې مال ئې هلاک کړو غرمهٔ نو تاوان به پرې راځي |

**تشريح**> که مولی د خپلې وینځې سره وی اوکړه نو په ده به مهر .یا په دې یا د دې په بچي ئې جنایت اوکړو نو د جنایت نفس په صورت کښې به دیت اود جنایت مال په صورت کښې به مثل مال یا د مال قیمت په ده لازمیږي.

**علت** > ځکه چې مکاتب د ځان او د منافعو د تصرف په لحاظ سره د مولی د ملکیت نه اوځي اود جان او مال په باره کښې د اجنبی په شان شو.د دې وجې که مولی د مکاتب څه نقصان هم اوکړي د هغې تاوان به پرې لازمیږي.

## ذو رحم په اخستلو سره کتابت کښې داخلیږي اوکه نه؟

(وَاِنْ اشْتَرٰى ذَارَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ لَا وَلَاءَ لَهٗ که داسې ذی رحم محرم ئې واخستلو.چه دده سره د ولاء قرابت نشته لَمْ يَدْخُلْ فِیْ كِتَابَتِهٖ عِنْدَ اَبِیْ حَنِيْفَةَ رحمه الله نو هغه به دده په کتابت کې نه داخليږي.د امام ابوحنیفه په نیز.

**تشریح** > که مکاتب خپل یو داسې ذي رحم محرم واخستلو.چه هغه سره قرابت د ولاء نشته.لکه رور، خور، ترور وغیره.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به کتابت کې نه داخليږي.

**علت** > د امام ابوحنیفه رحمه الله رومبې دلیل دادې.چه مکاتب صرف په مزدورئ او کټه کولو باندې قادر وي.حقیقي ملك ده ته نه حاصليږي.ځکه چې رقیت کوم چې منافی د ملك دې.هغه موجود دې.په دې وجه هغه له د صدقې مال حلال دې.ګویا چې هغه سره د مزدورئ مال وي.او هغه د هبه کولو مالك نه وي.او که هغه خپله ښځه واخلي.نو دده د ښځې نکاح نه فاسدیږي.او صرف په مزدورئ باندې قادر کیدل په قرابت د ولاء کې صله رحمئ لپاره کافي دي.نو کوم سړې چې په مزدورئ باندې قادر وي.هغه ته دا حکم وي.چه هغه خپل پلار او اولاد ته نفقه ورکړي.خو د قرابت غیر ولاء لپاره کافي نه وي.تردې چې د سکه رور نفقه صرف په دې وجه واجبیږي.چه هغه توانګر وي.( په مزدورئ والا باندې نه واجبیږي ).معلومه شوه.چه په قرابت محرمه کې د صله رحمئ په لحاظ سره د ولادت او غیر ولادت فرق دې.

**مسلك الصاحبين** > د صاحبینو رحمهما الله په نیز به هغوی هم مکاتب کیږي.

**علتهما** > ځکه چې صله رحمی قرابت د ولاء او قرابت غیرولاء دواړو ته ګډ ده.هم دا وجه ده.که آزاد سړي خپل پلار یا خوئې واخستلو.چه هغه سره ئې قرابت د ولادت دې.نو لکه څنګه چې دې آزادیږي.هم دغه ډول که خپل سکه رور ئې واخستلو.نو هغه هم آزادیږي.نو لکه څنګه چې د آزاد په صورت کې په دې دواړو قرابتونو کې هیڅ توپیر نشته.دغه ډول د مکاتب په صورت کې به هم هیڅ توپیر نه وي.

## د مکاتب د عاجزیدلو په صورت کښې د مودې او مهلت بیان

(وَاِذَا عَجَزَ الْمُكَاتَبُ عَنْ نَجْمٍ کله چې مکاتب د یو قسط نه عاجزه شي.نَظَرَ الْحَاكِمُ فِیْ حَالِهٖ نو حاکم دې غور اوکړي.دده په حالت کې.فَاِنْ كَانَ لَهٗ دَيْنٌ يَقْبِضُهٗ نو که د هغه څه قرضه وي.چه هغه وصول کړي.اَوْ مَالٌ يَقْدُمُ عَلَيْهِ یا څه مال وي.چه هغه ده ته ملاؤ شي.لَمْ يُعَجِّلْ بِتَعْجِيْزِهٖ نو دده په عاجز کولو کې دې جلتي نه کوي.وَانْتَظَرَ عَلَيْهِ الْيَوْمَيْنِ اَوِ الثَّلَاثَةَ )بلکه دوې (دوه) درې ورځې دې انتظار اوکړي

**تشریح** > یوسړي خپل غلام په قسطونو سره په بدل کتابت ادا کولو باندې مکاتب کړو.هغه د یو قسط ادا کولو نه عاجزه شو.نو که هغه ته د یو ځائې نه د مال ملاویدو امید وي.نو حاکم به دهغه د عجز فیصله نه ورکوي.بلکه دوې (دوه) درې ورځې دې انتظار اوکړي.

**علت** > چه په دې کې د آقا اومکاتب رحمه الله دواړو رعایت دې.او د دریو ورځو موده یوه داسې موده ده.چه دا د عذرونو ښکاره کولو لپاره مقرر کړې شوې ده.چه د مدعی علیه د دعوې لرې کولو لپاره او قرضدار ته د یور ادا کولو لپاره درې ورځې موده ورکولې شي.او د خیار موده هم شرعاً درې ورځې ده.نو ددې

**تعريح**> يوسړی د بل كس په لاس باندې اسلام راوړلو.او نومسلمان دده سره موالات اوكړو.چه زما د مرګ نه روستـه بـه دې زمـا د كل مال وارث وی.اوكه زما نه څه جرم اوشی.نو دده د اړخه بـه هغـه ديت وركوی.يا نې د بل چا په لاس اسلام راوړلو.او بل مسلمان سره نې هم موالات اوكړو.نو زمونږ په نيز دا عقد صحيح دې.اوس ددې نومسلمه د مرګ نه روستـه بـه دا سړې وارث وی.كـه د هغـه څوك وارث نـه وی.اود جـرم كولـو پـه صـورت كـې بـه دهغـه د اړخـه تـاوان وركـوی. د حـضرت عمـر، حـضرت عثمـان، حضرت علی ، او د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه نه نقل دی.چه دې حضراتو موالات جائز ګرځولې دې.او ددې په سبب سره نې وراثت وركړې دې. ابراهيم نخعی ، سعيد بن المسيب حسن بصری ، مكحول، عمر بـن عبـدالعزيز، ربيعـه، يحـي بـن سـعد ، عطـار، زهـری ، حكـم، حمـاد ، امـام ابوحنيفـه او ددوی اصحاب رحمهم الله هم ددې قائل دی. ( [1] )

**دليله**> دليل دا آيت دې. ﴿وَالَّذِينَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَآتُوهُمْ نَصِيبَهُمْ﴾ په دې كې ﴿عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ﴾ په معنی د ،،حالفتم،، دې.لكه چې دويم آيت كې دی. ﴿يَوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ﴾،، ای نفسه،، چونكه كسب او عمل زيات په لاسونو سره كيږی.په دې وجه د عقد اضافت ايمان اړخ تـه اوكړې شـو.وجـه د اسـتدلال داده.چه آيت د عقد موالات په اړه كې نازل شوې دې.دې دليل سره د مخكنی آيت ﴿وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدَانِ وَالْأَقْرَبُونَ﴾ نه د وراثت په طور د برخو د استحقاق بيان مقصود وو.په ابتـدائی طـور باندې د قرابت او دنيكئ او د سلوك په طور وركول مقصود نه وو.نو هم دغه ډول كوم چې په دې باندې عطف دې.د هغې نه مراد به هم استحقاق په طريقه د ارث وی.څكه چې د معطوف او معطوف عليه حكم يو وی.په مبسوط د بكری كې دی.چه الله تعالی ولاء موالات علی الاطلاق د ارث سبب ګرځولې دې. ددې توپير نه بغير چې مړی لپاره بل څوك وارث وی.يا نـه وی.صرف دومره خبره ده.چه د چا بل څوك وارث وی. د هغه په حق كې دا په قول د الله تعالی ﴿وَأُولُوا الْأَرْحَامِ بَعْضُهُمْ أَوْلَىٰ بِبَعْضٍ﴾ سره منسوخ شوې دې. او د چا چې بل څوك وارث نه وی.د هغه په حق كې هيڅ ناسخ نشته.نو هغه به د آيت د ظاهر لاندې داخل وی.

**د وارث په موجودګئ كښې د موالات حكم**

| (وَإِنْ كَانَ لَهُ وَارِثٌ او كه دده څوك وارث وی. فَهُوَ أَوْلَىٰ مِنْهُ نود مولا سره به هغه زيات غوره وی. |
|---|

**تعريح**> كه ددې نومسلم موالات كونكی څوك وارث وی.نو هغـه بـه دده د مـولا نـه مقـدم وی.يعنی ميراث به هغه ته ملاويږی.مولا ته به نه ملاويږی.

**دليله**> څكه چې عقد موالات دوی دواړو پخپل طور باندې منعقد كړې دې.نو هغه بـه هـم ددوی لپاره وی.په نورو به نه لازميږی.يعنی هغوی په دې سره د نورو وارثانو حق نشی ختمولې.

| (وَلِلْمَوْلَىٰ أَنْ يَنْتَقِلَ عَنْهُ بِوَلَائِهِ إِلَىٰ غَيْرِهِ او مولا لپاره جائز دی.چه دده د موالات نـه اوګرځيږی.او بل اړخ ته منتقل شی. مَا لَمْ يَعْقِلْ عَنْهُ)تركومه پورې چې دده د اړخه عاقله كيدلو سره هيڅ نه وی وركړې. |
|---|

**تعريح**> د نومسلم موالات كونكی لپاره جائز دی.چه د چا سره هغه موالات كړې دې.د هغـه د مـوالات

---

[1] ) **مسلك الائمة**:- د ائمه ثلاثه او امام شعبی رحمهم الله په نيز موالات هيڅ شی نه دې.( يعنی داسې شی نه دې.چه هغه موجب د ارث او عقل وی.

نه اوګرځي.او بل سره موالات اوکړي.په دې شرط چې مولاتې اول دده د ارخه عاقله شوې نه وي.او څه نې ادا کړي نه وي.

**دلیله>** ځکه چې دا عقد په مرتبه د وصیت لازمی نه دې.ددې عدم لزوم په وجه مولاتې اعلی هم دده ولاء پرېښودې شي.په دې شرط چې دا ترك د بل په موجودګئ کې وي.لکه څنګه چې په قصد سره د وکیل په معزول کولو کې کیږي.

| |
|---|
| (فَإِذَا عَقَلَ عَنْهُ)او که هغه دده د ارخه عاقله جوړ شوې وي.( او جرمانه ورکړې وي ).(لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَتَحَوَّلَ بِوَلَائِهِ إِلَى غَيْرِهِ)نو دده دولاء سره به بل ارخ ته د منتقل کیدلو اختیار نه وي. |

**تشریح>** که مولاتې اول دده د ارخه عاقله شوې وي.او جرمانه نې ادا کړې وي.نو بیا دده د ولاء نه نشي ګرځیدلې.

**دلیله>** ځکه چې دده سره د غیر حق متعلق شوې دې.او قاضی دده مولا عاقله ګرځولې دې.او په ده باندې نې د دیت حکم کړې دې.

| |
|---|
| (وَلَيْسَ لِمَوْلَى الْعَتَاقَةِ أَنْ يُوَالِيَ أَحَدًا)او مولاتې عتاقه ته دا اختیار نشته.چه هغه چا سره موالات اوکړي. |

**تشریح>** اصل مسئله آسانه ده

**دلیله>** ځکه چې ولاء عتاقه لازم دې.او ددې په باقي پاتې کیدلو کې ادنی نشی ښکاره کیدلې.

## مکاتب لپاره خپل پلار یا خوی سره د عقد کتابت حکم

| |
|---|
| (وَإِذَا اشْتَرَى الْمُكَاتَبُ أَبَاهُ أَوْ ابْنَهُ که مکاتب واخستلو، خپل پلار، یا ځوئې، (دَخَلَ فِي كِتَابَتِهِ)نو هغه دده په کتابت کې داخليږي. |

**تشریح>** که مکاتب خپل اصول او فروع ( پلار، ځوې وغیره) واخستل.نو تبعاً به هغوې هم په کتابت کې داخلیږي. نو مکاتب چې آزادیږي.دوی به هم آزادیږي.ګنی مکاتب سره به د آقا غلامئ کې اوسیږي.

**دلیله>** وجه داده.چه مکاتب که د آزادولو اهل نه دې.نو لږترلږ د مکاتب کولو اهل دې.نو حتی الامکان به د صله رحمئ رعایت ساتلې شي.نو آزاد سرې چې کله د اعتاق مالك وي.او هغه پلار یا ځوې واخستلو.نو هغه به په ده باندې آزادیږي.

**فائده>** په متن کې بو خوخبرې د بیان قابل دی : ابو الحسین قدوری رحمه الله چې پلار په ځوی باندې مقدم ذکرکړې دې.دا د پلار د تعظیم په لحاظ سره دی.ګنی په کتابت کې د داخلیدلو په ترتیب کې ځوئې په پلار باندې مقدم دې.که هغه په کتابت کې پیدا شوې وی.یا هغه اخستې شوې وی.او مولود فی الکتابت ( د کتابت په مهال پیدا شوې) په اخستې شوی ځوی باندې مقدم دې.ځکه چې د مولود فی الکتابة په حق کې د کتابت واړه احکام په طریقه د تبعیت ښکاره کیږي.مثلاً د پلار په ژوند کې دده بیع حرام وی.دده نه بدل کتابت د پلار د قسطونو مطابق اخستلې شي.په خلاف د مشتری د ځوی چه په حالت د ژوند دده بیع حرام وی.خود پلار د مرګ نه روسته دده سره بدل کتابت د قسط نه بغیر فوری اخستلې شي.او د قسطونو مطابق مزدورئ کولو باندې قابو نشی ورکولې.چه د مولود فی الکتابت په نسبت دده د حالت نقصان ښکاره شي.پاتې شو پلار، نو دده د مکاتب خوی په ژوند کې دده بیع حرام وی.اود خوی د مرګ نه پس، دده نه بدل کتابت نشي قبلولې.نه وقتی طور ( یعنی فی الحال) او

نه غير وقتى طور باندې ( يعني روسته هم نه قبليږي)

**په کتابت کښې د ام ولد د بچي حکم**

(وَإِنِ اشْتَرَى أُمَّ وَلَدِهِ مَعَ وَلَدِهَا او که واخلي خستلو ام ولد ،د هغې د بچي سره دَخَلَ وَلَدُهَا فِي الْكِتَابَةِ نو دا خليږي.ددې بچې په کتابت کې ،وَلَمْ يَجُزْ بَيْعُهَا )او دده بيع جائز نه ده.

**تشريح**> که مکاتب خپله ام ولد واخستله.نو ددې بچې به مکاتب سره کتابت کې داخليږي.علامه مرغيناني رحمه الله فرمائيلي دي.چه دلته د ام ولد نه مراد مملوکه نه ده.بلکه د مکاتب ښځه مراد ده.کومه چې د غير وينځه اود مکاتب بی بی ده.چه ددې سره د مکاتب د نطفې نه بچې دې.بهرحال دلته کې دوې (دوه) حکمونه ذکر شوی دی.

① د ام ولد د اخستلو په صورت کې به بچې په کتابت کې داخليږي.

② دويم دا چې اوس مکاتب دده مور نشي خرڅولې.

**دليله**> د بچي په کتابت کې د داخليدلو وجه هم هغه ده.کومه چې د فصل په پيل کې تيره شوه. (انه من أهل أن يكاتب وإن لم يكن من أهل الإعتاق) او دده مور ځکه نشي خرڅولې.چه هغه د آزادئ په حق کې او د بيع په نه کيدلو کې د خوی تابع ده.ځکه نبی کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې دي. (أعتقها ولدها) ([1]) دا ددې بچي آزاده کړله. (وقد تقدم في الإستيلاد)

## كِتَابُ الْجِنَايَاتِ

**ترجمه**> ( دا) کتاب د جناياتو(د احکامو په بيان کښې) دې.

**تشريح**> **الربط بماقبله**> د دې نه وړاندې کتاب العتاق او د هغې متعلقات وو.په عتاق کښې آزادی او ژوند دې او دلته کتاب الجنايات دې په دې کښې مرګ او هلاکت دې.نو د دې دواړو په مينځ کښې د تضاد په اعتبار سره ربط دې دغه شان په عتاق کښې آزادی او ژوند دې او په قصاص کښې هم ژوند دې.نو په دې اعتبار سره هم د دواړو په مينځ کښې ربط دې.

**اقسام الجناية**> د جناياتو دوه قسمونه دی ① جنايت علی نفسه ② جنايت علی غيره،د رومبی قسم نه بحث کول دلته مقصود نه دی.

**الاقسام الاربعة للجناية علي الغير**> بيا د جنايت علی غيره څلور قسمونه دی. ① جنايت په نفس غير باندې وی. ② جنايت علی الغير دده په طرف وی. ③ جنايت علی الغير دده په عزت ( او آبرو) باندې وی. ④ جنايت علی الغير په مال باندې وی.

**اقسام الجناية علي نفس الغير**> بيا د رومبی څلور قسمونه دی ① قتل ② صلب ( په سولئ کول او پهانسی کول) ③ حرق ( سوزول) ④ غرق (ډوبول).

**اقسام الجناية علي طرف الغير**> او د دويم درې قسمونه دی ① قطع ( کټ کول) ② کسر ( ماتول) ③ شج ( زخمی کول) او هم ددې دواړو احکام دلته په کتاب الجنايات کښې بيانول مقصود دی.

**اقسام الجناية علي عزة النفس**> د دريم دوه قسمونه دی ① قذف ددې موجب حد دې.چه ددې تفصيل د دهداية په دويم جلد کښې تير شوې دې. ② غيبت ددې موجب اثم ( اوګناه) ده.او دا د آخرت د احکامو څخې دې.

**اقسام الجناية على مال الغير** ﴿ بيا د خلورم دري قسمونه دی ① غصب چه ددې احكام د دريم جلد په آخر كښې ذكر دي. ② جنايت ③ سرقه. [كذا في عقود الجواهر المنيفه، ص۱۹۳، ج۲]

**د قتل پنځه اقسام**

(الْقَتْلُ عَلَى خَمْسَةِ أَوْجُهٍ او قتل په پنځه قسمه دي عَمْدٌ، وَشِبْهُ عَمْدٍ، وَخَطَأٌ عمد، او شبه عمد، او خطاء، وَمَا أُجْرِيَ مُجْرَى الْخَطَإِ او كوم چه دَ خطاء قائم مقام وي وَالْقَتْلُ بِسَبَبٍ او قتل په سبب سره،

**تشريح** ﴿ امام قدوري رحمه الله فرمائي. چه د قتل اقسام ډير دي. خو دلته كښې مونږ صرف هغه اقسام بيانوو. چه هغې سره دا احكام متعلق كيږي. قصاص، ديت، كفاره، ميراث نه محروميدل، او دا پنځه قسمه قتلونه دي. كوم چه ذكر شو. چه ددې تفصيلي احكام راروان دی. مونږ په درس سراجي كښې اقسام د قتل په اختصار او جامعيت سره بيان كړی دی. خو هلته كښې د مناسبت په وجه قائم مقام د قتل خطاء جدا نه دې بيان كړې شوې. په دې وجه صرف څلور قسمونه بيان شوی دی.

**د قتل عمد تفصيل**

(فَالْعَمْدُ مَا تَعَمَّدَ نو قتل عمد دا دي. چه اراده اوكړې شی ضَرْبَهُ بِسِلَاحٍ د مقتول د وژلو په وسلې سره أَوْمَا أُجْرِيَ مُجْرَى السِّلَاحِ يا په داسې څيز سره كوم چه د وسلې قائم مقام وی. فی تفريق الاجزاء د اندامونو په ماتولو كښې كَالْمُحَدَّدِ مِنَ الْخَشَبِ لكه د سوكې والا لرګې، والحجر او كانړی والنار او اور، وَمُوجِبُ ذَلِكَ الْمَأْثَمُ او د قتل عمد موجب ګناه ده.

**حل اللغة** ﴿ ① **سلاح**: وسله ② **الخشب**: د سوكې لرګې كانړی]

**تشريح** ﴿ مخكښې امام قدوری رحمه الله د قتل پنځه اقسام بيان كړل. ددې ځائې نه د قتل عمد تفصيلي ذكر دې. نو وې فرمائيل. چه كله د يو انسان د وژلو اراده وی. او هغه دپاره داسې وسله استعمال كړې شي. چه هغه قتلونكې ده. نو دا قتل عمد دې. لكه توره، طمانچه، ټوپك، توپ وغيره، او لكه تيره لرګې، او تيره د بانړس پوستكې، او تيره كانړې، او لكه اور، وجه ددې دا ده. چه د قتل عمد دپاره د قتل اراده پكار ده. او اراده يو مخفي او پټ څيز دې. نو كله چه د قتل د ارادې دليل اوموندې شی. نو هم په دې به اكتفاء كولې شی. او دې ته به قتل عمد ونيلی شی. او كله چه قاتل داسې الات او وسله استعمال كړله. چه دې سره قتل واقع كيږي. نودا به د عمد دليل وی.

**حكمه** ﴿ د قتل عمد حكم دا دې. چه په دې كښې ديت او كفاره نه لازميږي. بلكه ګناه او قصاص لازميږي. هم دا مرغيناني رحمه الله فرمائيلی دی. چه د قتل عمد موجب ګناه ده. اوس فرمائي. چه قتل عمد ګناه ده. نو ددې دليل دا آيت دې. ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾ ددې آيت نه معلومه شوه. چه قتل د مؤمن ګناه ده. او د ډير حديثونو نه د قتل ګناه كيدل معلوميږي. او د قتل عمد په ګناه كيدو باندې د امت اجماع ده.

**قصاص په څوم قتل سره واجبيږي**

وَالْقَوَدُ او قصاص واجب دې

**تشريح** ﴿ د ګناه سره سره قتل عمد كښې قصاص هم واجبيږي.

**دليله** ﴿ ځكه چه د قرآن كريم دا آيت ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ په وجوب د قصاص باندې دلالت كوی.

**الاشكال** > كه څوك دااعتراض اوكړي چه آيت كښې خو د قتل عمد ذكر نشته.بلكه د مطلق قتل ذكر دې؟ نو مونږ وايو چه په يو حديث سره ئې ددې آيت تفسير فرمائيلې دې.چه دلته د قتل نه قتل عمد مراد دې.حديث كښې دى. (العمدقود)چه، ،قتل عمد قصاص دې، ،يعنى د قصاص سبب دې.

**الجواب** > او آيت كښې د قتل نه مراد قتل عمد دې.ددې دليل دا هم دې.چه پوره پوره جرم د عمديت په وجه كيږي.او د زجر( ملامته كولو) پوره نفع او فائده هم هغه وخت حاصليږي.كله چه جنايت كښې ده تعمد كړې وي.او د ټولو نه لوئې جرم دنيا كښې يوكس قتلول دى.او د ټولو نه لويه سزا قصاص ده.نو قصاص به په لوئې جنايت كښې واجب وي.او قتل به لوئې جنايت هغه وخت وي.لكه چه ددې عمد ( قصد او اراده) وي.په دې وجه مذكوره آيت كښې وجوب د قصاص عمديت سره مقيد منلې شوې دې.

**د قتل عمد سزا او ددې حكم**

| |
|---|
| إِلَّآ أَن يَعْفُوَ الْأَوْلِيَاءُ خو دا چه اولياء معاف كړي |

**تشريح** > د قتل عمد اصل سزا قصاص دې.او دا هم فرض عين دې.چا چه قتل كړې دې. هغه نه به قصاص اخستلې شي.دده په بدله كښې به د بل نه ( قصاص) نشي اخستلې.خو قصاص د اولياو حق دې.كه هغوى ئې معاف كړي.نو ختميږي.يا دوى مصالحت اوكړي.او ددې په بدله كښې څه واخلي.او قصاص پريږدي.نو جائز دى.خو د قصاص په ځائې به ديت هغه وخت واجبيږي.كله چه قاتل هم په ديت وركولو باندې راضى شي.

| |
|---|
| وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ او په دې كښې زمونږ په نيز كفاره نشته |

**تشريح** > ① په قتل عمد كښې كفاره نشته. ([1])

**فلائله** > ① دليل قتل عمد گناه كبيره ده.او ډيره سخته كبيره ده.اوپه كفاره كښې د عبادت معنى ده.نو كومه كفاره چه عبادت دې.د هغې سبب به داسې كبيره گناه څنگه جوړيږي.كفاره پخپلې رائې سره نه واجبيږي.بلكه د شريعت په متعين كولو سره واجبيږي.

② شريعت كفاره، د هغې گناه لرې كولو دپاره متعين كړې ده.كومه چه قتل خطاء كښې ده.او دا گناه معمولى ده.نو پخپل قياس سره د بنده گانو نه ددې گناه لرې كولو دپاره كفاره نشي متعين كيدې.كوم چه قتل عمد دې.او دا گناه ډيره لويه ده.

**حكم قتل العمد** > دقتل عمد حكم دا دې.چه قاتل ته به ميراث نه ملاويږي.حديث كښې راغلى.چه ،قاتل ته به ميراث نه ملاويږي، يعنى قتل مانع د ميراث دې.

**قتل شبه عمد څوم قتل ته وائي؟**

| |
|---|
| وَشِبْهُ الْعَمْدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او شبه عمد د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دا دې آن يَتَعَمَّدَ الضَّرْبَ چه قاتل په داسې څيز سره د وهلو اراده اوكړي بِمَا لَيْسَ بِسِلَاحٍ وَلَا مَا أُجْرِيَ مُجْرَى السِّلَاحِ چه هغه نه وسله ده.او نه د وسلې قائم مقام دې. |

**تشريح** > **مسلك ابي حنيفة** > امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه كله په قصد سره اووهى.او په داسې څيز سره اووهى.كوم چه وسله نه شمارلې كيږي.نو دا شبه عمد دې.اگرچه ددې څيز په استعمالولو سره عام طور

---

[1] **مسلك الشافعي**:- دامام شافعى په نيز واجب ده

باندې مرګ نه واقع کيږي. يا په دې مرګ نشي کولې. نو که په امسا ئې مر کړي، يا ئې په کاڼي مر کړي، يا ئې په ډنډه( لرګي) مر کړي، يا ئې قينچۍ باندې مر کړي، چونکه دا وسله نه شمارلې کيږي. په دې وجه دا ټول صورتونه په شبه عمد کښې داخل دي.

**دليله** > د امام صاحب رحمه الله دليل دا دې. چه په حديث کښې دي. چه أَلَا اِنَّ قَتِيلَ خَطَأِ الْعَمْدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا وَفِيهِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ (١) خبرشئ چه د شبه عمد مقتول، د کوړې او امسا (کونټې) مقتول دې ،او په دې کښې سل اوښان دي يعني شبه عمد مقتول هغه دې. کوم چه په کوړې او امسا وغيره سره مړ کړې شوې وي. او په دې کښې د ديت سل اوښان دي. نو اوګورئ چه دې حديث کښې د مطلق امسا ذکر دې. چه دا ډنډې او امسا دواړو ته شامل دې. نو د صاحبينو رحمهما الله دا فرمائيل، چه ددې نه مراد ډنډه ده. دا مطلق باطلول دي. چه دا جائز نه دي.

| |
|---|
| وَقَالَا او فرمائيلي دي امام ابويوسف او امام محمد رحمهما الله إِذَا ضَرَبَهُ بِحَجَرٍ عَظِيمٍ أَوْ بِخَشَبَةٍ عَظِيمَةٍ فَهُوَ عَمْدٌ کله چه قاتل مقتول په لوئې کاڼي يا غټ لرګي سره اووهلو. نو دا عمد دې. وَشِبْهُ الْعَمْدِ او شبه عمد دا دې أَنْ يَتَعَمَّدَ ضَرْبَهُ چه د مقتول په داسې څيز سره د وهلو قصد اوکړي بِمَا لَا يُقْتَلُ بِهِ غَالِبًا چه هغې سره عام طور باندې قتل نه کيږي |

**حل اللغة** > ① **خشبة**: د سوکې والا لرګي

**تشريح** > صاحبين فرمائي کله چې يې په لوې کاڼي باندې اووهل يا يې په لوئې لرګي اووهل نو دا قتل عمد دې او په کوم څيز سره عام طور باندې نشي قتلولې. هغې سره قصدا مړ کولو سره به شبه عمد وي. اګرچه دا وسله نه وي. خو ددې په استعمالولو سره مرګ واقع کيږي. نو په داسې څيز سره په وژلو باندې قتل عمد وي. نو د صاحبينو رحمهما الله په نيز که په لرګي وغيره سره مړ کړي. نو بيا به هم قتل عمد وي. او په لوئې کاڼي ئې مړ کړو. نو بيا به هم قتل عمد وي. البته که په ډنډې سره ئې مړ کړو. نو شبه عمد به وي. خو که پرله پسې ئې په ډنډه اووهي. نو بيا به قتل عمد وي.

**دلائلهما** > ① خکه چه د عمديت معنی به قاصر( ناممکن) وي په داسې ورې آلې استعمالولو سره چه دې سره عام طور باندې نشي قتلولې خکه چه ورې آلې سره د غير د قتل قصد کولې شی لکه تاديب او ددې پشان، نو دا ( وړوکې آلې سره قتلول ) به شبه عمد وي

② بيا دويمه وجه دا هم ده. چه امسا وي او که ډنډه وي. ددې دواړو وضع د قتل دپاره نه کيږي. او نه دا د قتل دپاره استعمالولې شي. خکه وسله هغه ده. چه د چا د قتلولو اراده ده. هغه نا خبره دې. او اچانك دې وار اوکړو. او هغه مړ شو. لکه څنګه چه وسلو کښې کيږي. خو امسا يا ډنډه د مقتول ناخبرئ سره استعمالول ناممکن دي. خکه چه دې کښې يو ځل وهل عام طور باندې د قتل دپاره نه کافي کيږي. بلکه بار بار وهل به ضروري وي. او په داسې صورت کښې به غفلت نه وي. بلکه غفلت صرف په رومبي ګزار کښې کيدې شي. او چونکه د غفلت په صورت کښې ددې استعمال ناممکن دې. په دې وجه قتل کښې د عمديت معنی قاصر شوه. خکه چه د قاتل د نفس قصد لحاظ نه دې. بلکه د آلې لحاظ دې. نو په امسا وغيره سره قتلول به هم دغه شان شبه عمد وي. لکه څنګه چه کوړې او ډنډې سره قتل شبه عمد دې.

---

[1]) من حديث عمرو بن العاص رضي الله عنه أخرجه أبوداود في الديات باب ۱۷ والنسائي في القصاص باب ۳۳ رقم ٤٤٦٠ وابن ماجه في الديات باب ٥ رقم ۲٦۲۷)-

**د قتل شبه عمد موجب او حکم**

(وَمُوجِبُ ذٰلِكَ عَلَى الْقَوْلَيْنِ الْمَأْثَمُ)او د شبه عمد موجب د دوارو قولونو مطابق گناه ده (وَالْكَفَّارَةُ)او کفاره واجب ده.فِيهِ دِيَةٌ مُغَلَّظَةٌبلکه په دې کښې دیت مغلظه دې عَلَى الْعَاقِلَةِ)په عاقله باندې

**تشريح** > دا د قتل شبه عمد موجب او حکم بیان دې.چه ددې موجب گناه او کفاره او دیت دې. او د شبه عمد د فریقینو په نیز هم دا حکم دې.
**دليل وجوب الاثم** > گناه ځکه واجب ده.چه ده په قصد سره وهلې دې.چه په دې سره قتل واقع شوې دې.
**دليل وجوب الكفارة** > او کفاره ځکه واجب ده.چه دا دقتل خطاء مشابه ده.او دیت مغلظه به واجب وی.چه دا به دده په خاندان واجب وی.
**القاعدة** > په عاقله باندې د دیت د جوب دپاره قاعده کلیه ذکر کوی چه کوم دیت براه راست (بغیر واسطې) قتل سره واجبیږی.هغه د قاتل په خاندان واجبیږی.او که د قتل نه روستو مصالحت وغیره سره دیت واجب شی.نو هغه پخپله قاتل باندې واجبیږی.او دلته دیت دځه واسطې نه بغیر (براه راست) قتل سره واقع شوې دې.

وَالْخَطَأُ عَلَى وَجْهَيْنِ او (قتل) خطاء په دوه قسمه دې خَطَأٌ فِي الْقَصْدِ،یو د ارادې خطاء، وَهُوَ أَنْ يَرْمِيَ شَخْصًا او هغه دا دې.چه په غشی یو داسې سړې اولی يَظُنُّهُ صَيْدًا چه ده په هغه باندې د ښکار گمان کړې دې ،فَإِذَا هُوَ آدَمِيٌّ نو اچانك هغه سړې دې

**تشريح** > د قتل خطاء موجب کفاره او دیت دې.او دیت به په عاقله وی.او ددې اداکول به په دریو کالو کښې وی.چه ددې دلیل تیر شوې دې.او د خطاء دوه قسمونه دی.یو د ارادې خطاء ده. د دې مثال لکه چه هوسۍ ته ئې ایشتله، خو هغه سړې اوختو. دا د ارادې خطاء ده.

وَخَطَأٌ فِي الْفِعْلِ،او دویم خطاء په فعل کښې وَهُوَ أَنْ يَرْمِيَ غَرَضًا او هغه دا دې.چه په یوه نښه غشې اولی. فَيُصِيبَ آدَمِيًّا، نو دا یو سړی ته اولگی وَمُوجَبُ ذٰلِكَ الْكَفَّارَةُ،وَالدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او ددې موجب کفاره او دیت دې.عاقله باندې

**تشريح** > دویم قسم د فعل خطاء ده.د دې مثال لکه چه په یوه نښه ئې غشې اوویشتلو.خو هغه اونه لگیده.بلکه یو سړې اولگیدو.دا د فعل خطاء ده.بهرحال حکم د دوارو یو دې.چه کفاره او دیت واجب دې.
**دليله** > چه ددې دلیل دا فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ آیت دې.

**په قتل خطاء کښې گناه شته اوکه نه؟**

وَلَا مَأْثَمَ فِيهِ) او په قتل خطاء کښې گناه نشته

**تشريح** > امام قدوری رحمه الله اوفرمائیل. چه په قتل خطاء کښې گناه نشته.که په اراده کښې خطاء وی.اوکه په فعل کښې خطاء وی.صاحب د هدایه فرمائیلی دی چې مشائخو فرمائیلی دی چه مراد د قتل گناه ده بهرحال فی نفسه دا فعل د گناه نه خالی نه دې د عزیمت په پریخودو ځکه چې ده بې احتیاطی کړې ده

**د جارې مجری (قائم مقام) تعارف او حکم**

(وَمَا أُجْرِيَ مُجْرَى الْخَطَأِ او کوم چه د قتل خطاء قائم مقام دې مِثْلُ النَّائِمِ يَنْقَلِبُ عَلَى رَجُلٍ لکه اوده

کس په یو سړی را واوړی فَيَقْتُلُهُ نو هغه مړ کړی فَحُكْمُهُ حُكْمُ الْخَطَاِ نو ددې حکم د قتل خطاء حکم دي.

تشریح > د قتل خطاء نه د فراغت نه پس امام قدوري رحمه الله هغه قتل بیانوی.کوم چه د قتل خطاء قائم مقام دي. لکه مثلاً یو سړي اوده وو.هغه په اړخ واوختلو.خو په یو بل سړی راپریوتلو.چه ددې په وجه هغه مړ شو.نو ددې حکم به هم هغه وی.کوم چه د قتل خطاء دي.

وَأَمَّا الْقَتْلُ بِسَبَبٍ او هغه چه قتل دې د سبب په ذریعه كَحَافِرِ الْبِئْرِ لکه د خپل ملك نه علاوه ( د بل په ملك) کښې کوهې کنستونکي وَوَاضِعِ الْحَجَرِ فِي غَيْرِ مِلْكِهِ او کانړې ایخودونکي.

تشریح > سبب القتل > ددې نه پس بیا امام قدوري رحمه الله د قتل سبب ذکر کړو. لکه یو سړی په یو داسې زمکه کښې کوهې اوکنستلو.کوم چه دده ملکیت نه دې.او څوك په دې کښې پریوتلو.او مړ شو.یا ده په داسې زمکه کښې کانړې کیخودو.چه په دې سره یو کس تیندك ( ډغره) اوخوړلو .او مړ شو.

وَمُوجِبُهُ او ددې موجب إِذَا تَلِفَ فِيهِ آدَمِيٌّ کله چه یو سړې په دې کښې مړ شی، الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ، عاقله باندې دیت دې.

موجب القتل > نو په دې کښې عاقله باندې دیت واجب دې.

دلیله > څکه چه دا کوهې کنستل، او کانړې ایخودل د هلاکت سبب دې.او کله چه د سبب مرتکب متعدی کیږی.نو سبب د علت په مرتبه کښې راکوزولې شی.او دلته دده تعدی (زیاتې) ښکاره دې.نو داسې به ګڼړلې شی.ګویا چه ده پخپله هغه په کوهی کښې غورځولې دې.او پخپله ئې هغه په کانړی وردیکه کړې دې.نو دیت به واجب وی.

(وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ او په دې کښې کفاره نشته

تشریح > البته په دې کښې به کفاره واجب نه وی.او نه به دا قاتل د میراث نه محرومیږی.([1])

دلیله > په حقیقت کښې د قاتل د طرفه قتل معدوم دې.البته دا صرف د قتل سبب دې.نو ددې سبب کیدو په وجه مونږ په ده باندې دیت واجب کړې دې.خو د کفارې او د میراث نه د محرومیدو په باره کښې مونږ دا ددې پخپل حقیقت باندې قائم ساتلې دې.چه دا دده د طرفه قتل نه دې.نو نه به کفاره وی.او نه به د میراث نه محرومیږی.او کفاره د قتل او د میراث نه محرومیدل به هغه وخت کیږی.کله چه قاتل د قتل په وجه ګناهګار وی.او دې د مړګ په وجه ګناهګار نه دې.بلکه د غیر په ملك کښې د کوهی کنستلو په وجه ګناهګار دې.

## په کوم قتل سره قصاص واجبیږی؟

الْقِصَاصُ وَاجِبٌ بِقَتْلِ كُلِّ مَحْقُونِ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيدِ هرهغه سړې د کوم چه همیشه دپاره وینه محفوظ وی.د هغه په قتل سره قصاص واجبیږی. إِذَا قُتِلَ عَمْدًا کله چه دې په عمد ( قصد) سره قتل کړې شی

حل اللغة > ① محقون: محفوظ ② التأبيد: همیشه دپاره

[1] ) مسلك الشافعي: - امام شافعي رحمه الله فرمانی چه په قتل سبب کښې دیت دې.او ورسره کفاره او د میراث نه محرومیدل هم شته او زمونږ‌داحنافو په نیز نه کفاره شته او نه د میراث نه محرومیدل شته.

**تشریح** > په قتل عمد سره هغه وخت قصاص واجبیږی.کله چه مقتول داسې سړې وی.چه دهغه وینه همیشه دپاره محفوظه وی.لکه مسلمان یا ذمی، ځکه چه د ذمی امان هم همیشه دپاره دې.کافر، حربی، مرتد، باغی مستامن دا ټول ددې فهرست نه خارج دی.نو ددوی په قتل سره قصاص نه واجبیږی.

**شرطونه وجوب القصاص** > امام ابوالحسَن قدوری دوه قیده لګولې دی. ① عمدیت چه ددې بیان د کتاب الجنایات په شروع کښې تیر شوې دې.

② همیشه دپاره محفوظ الدم کیدل

**وجهان للشرطین** > نو ددې دوه وجې دی.① که دا شرط نه وی.نو ددې مقتول د وینې مباح کیدلو شبه به باقی وی.او شبه راتلو سره به قصاص ختمیږی.

② چه د قاتل او مقتول په منځ کښې مساوات راشی.چه مقتول محفوظ الدم وو.نو دده په بدله کښې به محفوظ الدم قاتل هم قتلولې شی.

**غلام او آزاد به د یو بل په قتل کښې قصاص کولې شی اوکه نه؟**

| (وَيُقْتَلُ الْحُرُّ بِالْحُرِّ او آزاد به قتلولې شی.د آزاد په بدله کښې وَالْحُرُّ بِالْعَبْدِ او آزاد د غلام په بدله کښې، |
|---|

**تشریح** > د غلام په بدله کښې قصاص کښې قتلولې شی (۱)

**دلیله** > دلیل ددلیلونو عموم دې.لکه ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلَى﴾ او لکه مثلاً (تقدیم وتاخیر اوکره) ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ او لکه (العمد قود)

**د ذمی په بدله کښې به مسلمان قصاص کولې شی اوکه نه؟**

| وَالْمُسْلِمُ بِالذِّمِّيِّ) او قتلولې به شی مسلمان د ذمی په بدله کښې، |
|---|

**تشریح** > که مسلمان ذمی قتل کړو.نو د ذمی په بدله کښې به قصاصاً مسلمان قتلولې شی(۲)

**دلیله** > دلیل دا حدیث دې أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَتَلَ مُسْلِمًا بِذِمِّيٍّ } (۳) چه نبی کریم ﷺ یو مسلمان په قصاص کښې قتل کړې وو.چه هغه ذمی قتل کړې وو. (کذا في دارقطني)

**د مستامن په قتل سره قصاص واجب دې اوکه نه؟**

| (وَلَا يُقْتَلُ المسلم بِالْمُسْتَأْمَنِ)؛ او مسلمان به د مستامن په بدله کښې نشی قتلولې. |
|---|

**تشریح** > مسلمان به د مستامن په بدله کښې نشی قتلولې.

**دلیله** > د مستامن د وینې په حفاظت کښې دوام ( او همیشګی) نشته.نوکه یو مسلمان مستامن قتل

---

[1] ) **مسلک الشافعي**:- اودامام شافعی رحمه الله په نیز نشی قتلولې اودا اختلاف په دې صورت کښې دې.کله چه مقتول غلام وی.او قاتل آزاد وی. اوکه دواړه غلامان وی.نو بالاتفاق قصاص شته.اوکه دواړه آزاد وی.بیا هم بالاتفاق قصاص شته. اوکه قاتل غلام وی او مقتول آزاد وی نو په دې صورت کښې به په اتفاق سره غلام قتلولې شی.

[2] ) **مسلک الشافعي**:- د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې.امام شافعی رحمه الله عدم مساوات په وجه د قصاص قائل نه دې.

[3] ) من حديث ابن عمر رضي الله عنه اخرجه الدارقطني في سننه (۱۳٤/۳)_

کړو. نو قصاص به واجب نه وي.او دې د واپس کيدو اراده لري.نو دده کفر ده لره په جنګ باندې اماده (او راضي کونکې) دې.

**سړي به د ښځې په بدله کښې قصاص کولې شي**

| |
|---|
| (وَيُقْتَلُ الرَّجُلُ بِالْمَرْأَةِ)او قتلولې به شي سړې د ښځې په بدله کښې ،(وَالْكَبِيرُ بِالصَّغِيرِ) او غټ د وړوکي په بدله کښې (وَالصَّحِيحُ بِالْأَعْمَى وَالزَّمِنِ)او صحت مند د ړوند او ګوډ په بدله کښې |

**حل اللغة** > ① الزمن:ګوډ ② اعمى:ړوند

**تشريح** > هرکله چه د مساوات (او برابرئ) مدار په اسلام او دارالاسلام باندې ايخودې شوې دې.نو کله چه دا مدار او موندې شي.هلته به قصاص اخستلې شي.که سړى ښځه قتل کړې وي.او که ددې په عکس وي.او که بالغ بچې قتل کړې وي.اوکه صحت مند سړى ړوند او ګوډ قتل کړې وي.

**دليله** > ځکه چه نص کښې عموم دې.اوکه د عصمت نه علاوه په نورو څيزونو کښې د مساواتو اعتبار اوکړې شي.نو بيا به خو د قصاص دروازه بنده شي.او هرکله چه قصاص نه اخستلې کيږي.نو بيا پخپل منځ کښې جنګ جګړې او د قتل دروازه پرانستلې شي.او خپل منځ کښې به يو بل هلاکوي.

**پلار به د ځوى په بدله کښې نشي قصاص کولې**

| |
|---|
| (وَلَا يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِابْنِهِ)او سړې به د خپل ځوى په بدله کښې نشي قتلولې |

**تشريح** > که پلار (خپل) ځوئې قتل کړو.نو قصاص به نشي اخستلې. نوکه ذبح ئې کړي.او که په بله څه طريقه ئې قتل کړي.تول په دې کښې داخل دي. (۱)

**دلائله** > ① حديث دې.{لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِوَلَدِهِ} (۲) چه د پلار نه به د خپل بچي په بدله کښې قصاص نشي اخستلې.اودا حديث عام دې د قتل ټولو صورتونو ته شامل دې.

② او دويمه وجه دا ده.چه د ځوى د ژوند سبب پلار دې.نو ځوى ته دا استحقاق نشي کيدې.چه پلار ختم کړي.هم دا وجه ده.که پلار د کافرانو په فوج کښې د جنګ دپاره راغلې وي.او قتال کوي.بيا هم شريعت ځوى ته دا حق نه دې ورکړې.چه خپل پلار قتل کړي.چه ددې تفصيل په کتاب السير کښې ذکر دې.دغه شان که پلار د محصن کيدو باوجود زنا اوکړله.او ځوى اوکتلو.نو ځوى له جائز نه دي.چه پلار قتل کړي.

**الاشکال** > که څوك دا اووائي چه قصاص خو د ځوى د وارثانو حق وي.ځوى ته خو دا حق نه وو.چه پلار قتل کړي.خو دلته خووارثان مستحق جوړ شوي دي؟

**الجواب** > مونږ وايو چه اول استحقاق د قصاص دپاره کيږي.بيا ددې په نيابت او خلافت کښې دا حق دده وراثانو ته ملاويږي.او دلته چه هرکله اصل ته حق ملاؤ نشو.نو دده خليفه ته به څنګه ملاويږي.

**حکم الام والجد** > نيکه، ترنيکه، پرنيکه وغيره (چه د پلار د طرفه وي اوکه د مور د طرفه وي) د پلار په حکم کښې دي.مور او نيا ، تره نيا او پره نيا وغيره(چه د پلار د طرفه وي اوکه د مور د طرفه وي) هم د پلار په مرتبه کښې دي.او دليل هم هغه دې.کوم چه ذکر شو. البته که ځوى پلار قتل کړو.نو دلته

---

(۱) امام مالك رحمه الله فرمائيلي دي.چه قصاص به نشي اخستلې.خو که پلار خپل بچې ذبح کړې وي.نو قصاص به اخستلې شي.

(۲) من حديث عمروبن شعيب عن ابيه عن جده رضي الله عنه اخرجه البيهقي في السنن الكبرى (۱۸۹۹۶).

کېنې هيڅ ساقطونکي نشته.په دې وجه به خوني په قصاص کېنې قتل کولې شي.

**آقا به د غلام، مدبر او مکاتب په بدل کښې نشي قصاص کولی**

| |
|---|
| وَلَا بِعَبْدِهٖ او قتلولې به نشی سرې د خپل غلام په بدله کېنې، وَلَا مُدَبَّرِهٖ او د خپل مدبر په بدله کېنې وَلَا مُكَاتَبِهٖ او نه د خپل مكاتب په بدله كېنې وَلَا بِعَبْدِ وَلَدِهٖ او نه د خپل خوی د غلام په بدله كېنې |

**تشريح** ﴿ دلته مسئله دا ده که مولا خپل غلام قتل کړو.نو قصاص به نشی اخستلې.اود مدبر او مكاتب هم دا حكم دې.ځكه چه د قصاص وارث هم مولا دې.او اخستلې هم د مولا نه شی.او دا باطل دی.اوکه د خپل خوی غلام ئې قتل کړې وی.نو بيا به هم قصاص نه وی.

**دليله** ﴿ ځكه چه خونې هم پلار باندې د قصاص نشی مستحق كيدې.يو مشترك غلام دې. چه دا يو شريك قتل كړو.نو دده نه به قصاص نشی اخستلې.ځكه چه قصاص غير متجزی دې.

| |
|---|
| (وَمَنْ وَرِثَ قِصَاصًا عَلَى أَبِيهِ سَقَطَ) او څوك چه وارث شو د قصاص، پخپل پلار باندې، نو قصاص به ساقطيږی ، |

**تشريح** ﴿ كه خوی ته د قصاص حق په ميراث كېنې ملاو شو.بيا به هم قصاص نه وی.

**دليله** ﴿ ځكه چه د پلار توب احترام ددې نه مانع دې.مثلاً د خوی مور ئې قتل كړله.او خونې ددې وارث دې.نو قصاص به ساقطيږی.

**قصاص به په توره او توپك سره اخستلی شی**

| |
|---|
| وَلَا يُسْتَوْفَى الْقِصَاصُ قصاص به نشی اخستلې إِلَّا بِالسَّيْفِ مگر په تورې سره، |

**تشريح** ﴿ صرف وسلې سره قصاص اخستلې شي.كه په توره وی اوكه په توپك وی. (۱)

**دلائله** ﴿ ① دليل د ابن ماجه حديث دې. لَا قَوَدَ إِلَّا بِالسَّيْفِ چه قصاص به تورې يعنی وسلې سره اخستلې شی. ② او دويم دليل دا دې.كه د مساوات صورت اختيار كړې شی.نو زياتوالې لازميږی.ځكه كيدې شی.چه كومه طريقه قاتل اختيار كړې وه.كه هم دغه طريقه اختيار كړې شی.نو كيدې شی چه قاتل مړ نشی.نو بيا به دده قتلول لازمی وی.نو قاتل سره دده د حركت نه زيات حركت اوشو.او دا جائز نه ده.ددې مثال هډوكې ماتول دی.كه غابن ئې مات كړې وی.نو قصاص ممكن دې.ځكه چه غابن محدود دې.او كه د غابن نه ئې علاوه بل څه هډوكې مات كړې وی.نو معلومه نه ده.چه په قصاص كېنې به څومره هډوكې ماتولې شی.كه هم دغه اومره هډوكې د قاتل مات كړې شی.څومره چه ده مات كړې وو.يا ددې نه كم نو جائز دې.او كه زيات مات كړې شی.نو جائز نه ده.او چونكه دلته دا اطمينان نشته.چه زيات هډوكې به نه ماتيږی.په دې وجه د هډوكی قصاص جائز نه دې. چه د حق نه زيات وصول نكړې شی.دغه شان كله چه د قاتل د فعل نه زيات وصولول لازميږی.نو جائز به نه وی.

**كه د مكاتب مقتول د مولا نه بغير هيڅ څوك وارث نه وی نو د قصاص حكم**

| |
|---|
| وَإِذَا قُتِلَ الْمُكَاتَبُ عَمْدًا او كله چه مكاتب عمداً قتل كړې شو وَلَيْسَ لَهُ وَارِثٌ إِلَّا الْمَوْلَى او د آقا نه علاوه هيڅ څوك وارث نه وی فَلَهُ الْقِصَاصُ د آقا دپاره به قصاص وی. إِنْ لَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً كه ده د بدل |

---

(۱) د امام شافعی رحمه الله مسلك دا دې.چه كوم فعل قاتل كړې دې.كه دا مشروع فعل وی.نو قاتل سره به هم دغه شان كولې شی.بيا كه هغه په دې سره مړ شو.نو ټيك ده.گنی ددې نه پس به دده سټ كټ كولې شی.

کتابت برابر مال پریخودي نه وي

تشریح ﴾ مکاتب یو کس عمداً قتل کړو.او مکاتب په مزدورئ کولو دومره مال ګټلي او پریخودي دي.چه په دې سره د بدل کتابت اداکیدي شي.او د آقا نه علاوه بل څوك دده وارث نشته.نوشیخین حضرات رحمهما الله فرماني.چه آقا ته د قصاص اخستلو حق شته.

دلیلهما ﴾ دلیل دا دي.چه مولا ته د قصاص اخستلو حق شته.څکه که هغه آزاد مړ شي او که غلام، دواړو صورتونو کښي مولا ته د قصاص اخستلو حق شته.او مستحق یعني مولا هم معلوم دي.او حکم هم متحد (یوشان) دي.یعني قصاص وصولول.

مسلك محمد ﴾ امام محمد رحمه الله فرماني.چه د قصاص اخستلو حق نشته.

دلیله ﴾ څکه چه دلته د قصاص اخستلو سبب مختلف دي.او د سبب اختلاف داسي دي.لکه د مستحق اختلاف.او د مستحق داختلاف په صورت کښي قصاص نشي اخستلي.نو دلته به هم قصاص نه اخستلي کیږي.څکه که اومنلي شي.چه دي د آزادئ په حالت کښي مړ شوي دي.نو د قصاص اخستلو سبب ولاء دي.اوکه دا اومنلي شي. چه دي د غلامئ په حالت کښي مړ شوي دي.نو د قصاص اخستلو سبب ملك دي.

نظیره ﴾ او ددې مثال دا دي.چه آقا د خپلي وینځي په باره کښي اوونیل.چه ما ددې سره ستا نکاح کړې ده.او هغه اووائي.داسي نه ده.بلکه دا تا په ما باندې په دومره خرڅه کړې ده.نو دده دپاره دې وینځي سره وطی کول جائز نه دي.څکه چه سبب مختلف دي.او دغه شان دلته کښي د سبب اختلاف دي.نو لکه څنګه چه وطی جائز نه ده.دغه شان قصاص هم جائز نه دي.

الجواب عنه ﴾ په سبب کښي اګرچه اختلاف دي.خو ددې به هیڅ پرواه نشي کولي.څکه چه ددې په وجه حکم کښي اختلاف نشته.او د سبب دا اختلاف مفضی الی المنازعت دي.

الجواب عن نظیره ﴾ کومه مسئله چه دلیل کښي امام محمد رحمه الله پیش کړې ده.د هغې خبره بله ده.څکه چه هلته کښي حکم کښي مغایرت دي.څکه چه د ملك یمین حکم یو دي.او د ملك نکاح حکم بل دي.څکه د ملك یمین حکم دا دي.چه دا مملوکه وي.چه په دې کښي حلت تابع دي.او ملك رقبه اصل دي.او تابع د معدوم په مرتبه کښي وي.او په نکاح کښي حلت مقصود دي.

چه د مکاتب د مولا نه علاوه وارثان هم موجود وي نو د قصاص حکم

وَإِنْ تَرَكَ وَفَاءً او که (مقتول عمد مکاتب) د بدل کتابت برابر مال پریخودي وي وَوَارِثُهُ غَيْرُ الْمَوْلَى او د آقا نه علاوه بل څوك دده وارث وي فَلَا قِصَاصَ لَهُمْ نو هغوی دپاره قصاص نشته ،وَإِنْ اجْتَمَعُوا مَعَ الْمَوْلَى اګرچه وارثان آقا سره راجمع شي

تشریح ﴾ اوکه د مولا نه علاوه دده نور وارثان هم موجود وي.او باقي صورت هم هغه وي.نو بالاتفاق به قصاص نشي اخستلي.

دلیله ﴾ څکه چه ړومبی صورت کښي خو د سبب اختلاف وو.او حکم متحد وو.او مستحق هم متحد وو. او دلته په مستحق کښي اختلاف دي.مستحق په یو صورت کښي مولا دي.او په یو صورت کښي د مکاتب مقتول وارثان دي.که دا اومنلي شي.چه دي آزاد مړ شوي دي.نو وارث مستحق دي.اوکه دا اومنلي شي. چه غلام مړ شوي دي.نو آقا مستحق دي.او دی غلام مړ شوي دي، اوکه آزاد، دا د صحابو رضي الله عنهم اختلافي مسئله ده.نو د یو صورت متعین کول مشکل دي.په دې وجه قصاص ختم کړې شو.او په ړومبی صورت کښي مستحق صرف مولا وو.په دې وجه شیخینو رحمهما الله اوفرمائیل.چه قصاص به اخستلي شي.

## مرتهن سره د مرهون غلام عمداً قتل کولو سره د قصاص حکم

| |
|---|
| وَإِذَاقُتِلَ عَبْدُ الرَّهْنِ او کله چه د رهن غلام (د مرتهن په قبضه کښې) قتل کړې شو لَمْ يَجِبِ الْقِصَاصُ نو قصاص به واجب نه وی حَتّٰى يَجْتَمِعَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ تردې چه راهن او مرتهن دواړه جمع شی |

**تشریح** > که مرهون غلام عمداً (په قصد سره) د مرتهن په قبضه کښې قتل کړې شو.خو یواځې راهن ته، یا یواځې مرتهن ته به د قصاص اخستلو حق نه وی.بلکه د دواړو جمع کیدل شرط دی.

**دلیله** > راهن یواځې ځکه (قصاص) نشی اخستلې.چه د مرتهن د حق ابطال لازمیږی.او یواځې مرتهن ځکه قصاص نشی اخستلې. چه هغه ددې مالك نه دې.نو ضروری ده.چه دواړه جمع شی.چه د مرتهن د حق ابطال دده په رضامندئ سره وی.

**الاشکال** > که څوك دا اووائی چه هرکله چه د مرتهن په قبضه کښې غلام هلاك شو.نو دده حق هم دده نه ساقط شو؟

**الجواب عنه** > نو مونږ وايو دا ټيك ده خو حق ساقطيدل اوس هم تام (او پوره) نه دی.ځکه کیدې شی.چه مصالحت اوشی.یا کیدې شی.چه داسې شبه راوخی.چه هغې سره دا قتل، قتل خطاء شی.

## په قصداً وهلو ټکولو. او زخمی کولو سره د مړ کیدو په صورت کښې د قصاص حکم

| |
|---|
| وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا عَمْدًا فَلَمْ يَزَلْ صَاحِبَ فِرَاشٍ او چا چه قصداً څوك سړې زخمی کړو.نو هغه مسلسل په بستره (بیمار) پروت وو حَتّٰى مَاتَ فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ تردې چه مړ شو.نو په ده به قصاص واجب وی. |

**تشریح** > عثمان بکر زخمی کړو.او ددې زخم په وجه بکر مثلاً یوه میاشت پورې په بستره (مریض) پروت وو. او مړ شو.نو د عثمان نه به قصاص اخستلې شی.

**دلیله** > ځکه چه د عثمان د زخم په وجه دې مړ شوې دې.چه دا تر اوسه پورې باطل شوې نه وو.نو د مرګ اضافت به د زخم لګولو طرف ته کیږی.

## په څومره صورتونو کښې قصاص شته اوپه څومره کښې نشته

| |
|---|
| وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ عَمْدًا مِنَ الْمِفْصَلِ او چا چه عمداً د خپل ځان نه غیر په جوړ کښې لاس کټ کړو قُطِعَتْ يَدُهُ .نو دده لاس به کټ کولې شی. وَكَذٰلِكَ الرِّجْلُ وَمَارِنُ الْأَنْفِ وَالْأُذُنُ دغه شان خپه، او د پوزې نرمه حصه ده.او غوږ دې. |

**حل اللغة** > ① **مفصل**: جوړ ]

**تشریح** > که یوکس د بل سړی یو اندام کټ کړو.نو په بعضو صورتونو کښې قصاص شته.او په بعضو کښې نشته.نو ددې اصولی (قاعده) کلیه دا ده.چه په کوم صورت کښې مماثلت کیدې شی.هلته به قصاص وی.چرته چه مماثلت متعذر یا نا ممکن وی.هلته به قصاص نه وی.بلکه دیت به واجب وی.تفصیل ددې اجمال دا دې.چه کله ئې لاس یا خپه د جوړ دپاسه کټ کړې وی.نو مماثلت به ممکن وی.یعنی د مروند نه ئې کټ کړې وی.یا ئې د څنګلې نه کټ کړې وی.یا ئې خپه د ګیټو نه،یا ئې د څنګون نه کټ کړې وی.نو د بل (کټ کونکی) به هم دغه اومره کټ کولې شی.دغه شان په غوږ کښې د مماثلت رعایت کیدې شی. اودپوزې په نرمه حصه کښې هم مماثلت کیدې شی.نو په دې کښې به قصاص وی.

**دلیل** ﴿ ځکه د قرآن فیصله ده.چه(والجروح قصاص) [المائدة:۴۵] ، د زخمونو بدله برابر ده.
د لاس کار نیول دی.نوکه د لاس د ورکوالی یا غټ والي په وجه د لاس په منفعت کښې څه خلل نه وی.نو ددې اعتبار به نه کیږی.نو که کټ کړې شوې ورکوکې وی.او د کټ کونکې لاس غټ وی.بیا به هم قصاص واجب وی.او چرته چه د مماثلت رعایت نشي کیدې.لکه د مروند د نیمې نه نې لاس کټ کړې وی.یا نې د پنډئ د نیمې نه خپه کټ کړې وی.نو دلته د مماثلت رعایت ممکن نه دې.نو قصاص به هم نه وی.

**په سترګه اوبهلو کښې د قصاص حکم او یوه قاعده کلیه**

| |
|---|
| وَمَنْ ضَرَبَ عَيْنَ رَجُلٍ امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.او چا چه یوکس په سترګه اووهلو. فَقَلَعَهَا نو دا نې بهر راویستله. فَلَا قِصَاصَ عَلَيْهِ نو په ده به قصاص نه وی.په بهر راویستلو کښې، |

**حل اللغة** ﴿ ① قلع: ویستل

**تشریح** ﴿ وړاندې قاعده تیره شوه.چه چرته مماثلت ممکن وی.هلته به قصاص وی.او چرته چه مماثلت ممکن نه وی.نو هلته به قصاص واجب نه وی.نوکه زید د بکر سترګه اووهله.چه ددې په وجه د بکر ګاټې بهر راووتلو.نو قصاص به نه وی.

**دلیل** ﴿ چونکه دلته کښې مماثلت ممکن نه دې.په دې وجه به قصاص نه وی.

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَتْ قَائِمَةً اوکه سترګه موجود وی. وَذَهَبَ ضَوْءُهَا نو ددې نظر (بینائی) ختم شو. فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ نو په ده به قصاص وی. تُحْمَى لَهُ الْمِرْآةُ چه دده دپاره به آئنه ګرمه کړې شی. وَيُجْعَلُ عَلَى وَجْهِهِ قُطْنٌ رَطْبٌ. او دده په مخ باندې دې لامده مالوچ کیخودې شی. وَتُقَابَلُ عَيْنُهُ بِالْمِرْآةِ او آئینه دې دده سترګې ته مخامخ کړې شی.حتى يَذْهَبَ ضَوْءُهَا نو دده نظر به ختم شی، |

**حل اللغة** ﴿ ① قطن: مالوچ ② المرآة: شیشه]

**تشریح** ﴿ اوکه سترګه موجود وی. صرف ددې بینائی ( نظر) ختم شوې وی.نوقصاص به واجب وی.
**دلیل** ﴿ ځکه چې دلته مماثلت ممکن دې.او هغه دا دې.چه د کومې سترګې نه قصاص اخستل مقصود نه دی.هغه دې اوتړلې شی.او په مخ دې لامده مالوچ کیخودې شی.او ګرمه صفا اوسپنه دې دده هغه سترګې ته مخامخ کړې شی.د کومې نظر ختمول چه مقصود دی.په دې طریقه به بینائی ختمه شی.او مخ او دویمې سترګې ته به هیڅ نقصان نه رسیږی.د حضرت عثمان رضي الله عنه په زمانه کښې دا واقعه راپیښ شوې وه.نو حضرت عثمان رضي الله عنه صحابو رضي الله عنهم سره مشوره اوکړله.نو حضرت علی رضي الله عنه دا مشوره ورکړې وه.او ټولو صحابه کرامو رضي الله عنهم په دې باندې سکوت اختیار کړې وو.

**په غاښ ماتولو کښې د قصاص حکم**

| |
|---|
| (وَفِي السِّنِّ الْقِصَاصُ)او په غاښ کښې قصاص شته. (وَفِي كُلِّ شَجَّةٍ يُمْكِنُ فِيهَا الْمُمَاثَلَةُ الْقِصَاصُ او هر یو داسې زخم چه هغې کښې مماثلت متحقق کیدې شی.قصاص شته. |

**حل اللغة** ﴿ ① شجة: د سر زخم ② السن: غاښ]

**تشریح** ﴿ که یوکس د بل سرې غاښ مات کرو.نو په دې کښې په قصاص وی.

**دلیل** ﴿ په قرآن کښې صفا حکم موجود دې. (وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ) [المائدة:۴۵]چه ،، د غاښ په بدله کښې غاښ دې،،اګرچه د یو کس غاښ وړوکې وی.او د بل کس غټ وی.ځکه چه دې اختلاف سره د غاښونو

منفعت کښې هیڅ تفاوت نه راځي.او په ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ سره دا خبره ثابته شوې ده چه په کوم زخم کښې مماثلت ممکن وي هغې کښې به قصاص اخستلې شي.

**د غاښ نه علاوه هډوکي ماتولو کښې د قصاص حکم**

| |
|---|
| وَلَاقِصَاصَ فِي عَظْمٍ او قصاص په هډوکي نشته إِلَّافِي السِّنِّ خو په غاښ کښې، |

**حل اللغة** < ① **عظم**: هډوکې

**تشریح** < د غاښ نه علاوه په يو هډوکي کښې به هم قصاص نشي اخستلې.

**دلائله** < ① د حضرت عمر او د ابن مسعود رضي الله عنهم نه دا الفاظ نقل دي.(لاقصاص في عظم إلا في السن)[1] ② په حديث کښې دا هم دي.چه (لاقصاص في العظم)[2] هډوکي کښې قصاص نشته.او د هډوکي نه مراد د غاښ نه علاوه دي.

③ بله دا چه اصول هم هغه دي.کوم چه ذکر شوې دي.چه چرته مماثلت ممکن وي.هلته به قصاص وي.ګنې نه به وي.او په هډوکي کښې مماثلت نشي کيدې.البته په غاښ کښې مماثلت کيدې شي.ځکه چه هډوکي کښې د کمي بيشي ، او د زياتي او نقصان احتمال شته.او دا احتمال په غاښ کښې نشته.ځکه چه غاښ په سوان سره ټرولو سره د رومبي پشان جوړيدې شي.اوکه د رومبي ټي پوره غاښ اوبنکلې وي.نو د دويم به هم پوره غاښ اوبنکلې شي.

**د نفس نه په کم کښې شبه عمد نه وي**

| |
|---|
| وَلَيْسَ فِيمَادُونَ النَّفْسِ شِبْهُ عَمْدٍ وإِنَّمَا هُوَعَمْدٌ أَوْخَطَأٌ او د نفس نه په علاوه کښې شبه عمد نشته.هغه (مادون النفس) خو عمد يا خطاء دي |

**تشریح** < وراندې تفصيل تير شوې دي.نو شبه عمد په پوره قتل کښې خو کيدې شي.د اندامونو په ماتولو کښې صرف دوه صورتونه دي.يا به عمد وي، يا به خطاء وي.

**دليله** < ځکه چه شبه عمد آلې طرف ته واپس کولې شي او قتل د آلې په اختلاف سره مختلف کيږي. داسې نه چه کوم د نفس نه علاوه دي ځکه چه د مادون النفس هلاکت به د آلې د اختلاف په وجه نه مختلف کيږي نو د عمد او خطاءنه علاوه هيڅ يو باقي پاتې نشو.

**د يو بل په زخمي کولو کښې د قصاص حکم**

| |
|---|
| (وَلَاقِصَاصَ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ فِيمَادُونَ النَّفْسِ،او قصاص نشته، د سړي او ښځې په منځ کښې، د نفس نه علاوه کښې وَلَابَيْنَ الْحُرِّوَالْعَبْدِ،وَلَابَيْنَ الْعَبْدَيْنِ او نه د آزاد او غلام په منځ کښې، او نه د دوه غلامانو په منځ کښې، |

**تشریح** < په قصاص في النفس کښې سړې او ښځه، آزاد او غلام، او دوه غلامان برابر دي.چه ددې بيان وراندې تير شوې دي.خو د اندامونو په قصاص کښې دې کښې مساوات نشته.بلکه تفاوت

---

[1] ) خرجه الزيلعي رحمه الله عنهما ونقل عن الشعبي والحسن رحمه الله قالا ليس في العظام قصاص ما خلا السن والرأس وعزاه إلى مصنف ابن ابي شيبة (نصب:۵\۱۰۷)_

[2] ) خرجه الزيلعي رحمه الله ثم قال وروى ابن ابي شيبة في مصنفه ..عن عمر رضي الله عنه قال إنا لنقيد من العظام ونقل مثله عن ابن عباس رضي الله عنهما (نصب:۵\۱۰۷)_

دي.وجه ددې دا ده.چه اندامونه د مالونو په درجه کښې ایخودې شوی دی.چه ددې وجه تیره شوې ده.او هرکله چه دا د اندامونو په مرتبه کښې شو.نو ددې قیمت به ملاویږی.او په قیمت کښې تفاوت دې.مثلاً د سرې د لاس قیمت شریعت پنځه سوه دیناره مقرر کړي دې.او د ښځې د لاس قیمت ئې دوه سوه او پنځوس دیناره مقرر کړي دې.بهرحال هرکله چه تفاوت دې.نو د سرې د لاس په بدله کښې د ښځې لاس اود ښځې د لاس په بدله کښې به د سرې لاس نشی کټ کولې.او نه د غلام د آزاد په بدله کښې، او نه د آزاد د غلام په بدله کښې، او نه د غلام د غلام په بدله کښې، په دې ټولو صورتونو کښې به قصاص نه وی. ([1])

**دلیله** > دلیل دا دې چه په لاس کښې اصل کښې نیول معتبر دی.اودا په دواړو لاسونو کښې موجود دی.او د تفاوت دپاره شریعت هیڅ اصول او قاعده نه ده مقرر کړې.نو ددې تفاوت اعتبار به نه کیږی.اود سرې او د ښځې په لاس کښې د تفاوت شریعت اعتبار کړي دې.او ددوی ئې جدا جدا قیمت متعین کړي دې.په دې وجه دا تفاوت معتبر منلې شوې دې.او د نفس په ضائع کولو کښې دا تفاوت هم معتبر نه دې.ځکه چه قاتل په هر صورت کښې د روح ضائع کونکې دې.او په روح کښې هیڅ تفاوت نشته.نو قصاص به واجب وی.

**د مسلمان او ذمی په منځ کښې د قصاص مسئله**

وَيَجِبُ الْقِصَاصُ فِي الْأَطْرَافِ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرِ او د مسلمان او کافر په منځ کښې اندامونو کښې قصاص واجب دې

**تشریح** > دلته د کافر نه مراد ذمی دې.د مسلمان او د ذمی د لاس قیمت شریعت یو ایخودې دې.نو د مساوات په وجه به قصاص واجب وی.

**دلیله** > ځکه چه قصاص مماثلت غواړی.او مماثلت موجود دې.

**نیم مرونده پورې لاس کټ کول او تیره زخم لګولو نه پس ټیک کیدو سره د قصاص حکم**

وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ مِنْ نِصْفِ السَّاعِدِ امام قدوری رحمه الله فرمائیلی دی.او چا چه د یوسرې لاس د نیم مروند نه کټ کړو أَوْ جَرَحَهُ جَائِفَةً یا ئې ده ته جائفه زخم( تیره زخم ) اولګولو فَبَرَأَ مِنْهَا نو هغه ددې نه ټیک شو فَلَا قِصَاصَ عَلَيْهِ نو په ده به قصاص نه وی

**حل اللغة** > ① **جائفه** : هغه زخم ته وائی.کوم چه جوف ( منځ) پورې متعدی شی.یعنی په سر ئې اووهلو.او ددې اثر دماغ پورې اورسیدو.یا معدې پورې اورسیدو.وغیره،

② **جراحات** :جمع د **جراحة** : زخم

**تشریح** > دلته دوه مسئلې بیانولی شی① که یوکس د بل نیم مروند کټ کړو.نو دلته به قصاص نه وی.ځکه چه دلته د مماثلت رعایت ممکن نه دې.ځکه چه دا هډوکې کټ کول دی.چه ددې حکم هم دا دې. ② داسې زخم ئې اولګولو.چه دا دننه پورې اورسیدو.یعنی جائفه چه ددې نه عام طور باندې سرې نه ښه کیږی.خو هغه ټیک شو.نو قصاص به نه وی.

**دلیله** > ځکه چه دې خو ټیک شو.او د دویم په باره کښې غالب ګمان هم دا دې.چه دې به ټیک نشی.نو د

---

[1] ) د امام شافعی رحمه الله په نیز به په دې ټولو صورتونو کښې قصاص وی.علاوه د یو صورت نه،

مماثلت رعایت ممکن نه دي.
البته که رومبي کس تیك شوي نه وي.نو کتلي به شي.چه زخم دننه پوري رسیدونکي دي.اوکه نه دي.که رسیدونکي وي.نو قصاص به وي.ګنې اوس به انتظار کولي شي.کله دا حالت ښکاره شي.بیا به ددي مطابق عمل کولي شي.

**د شل لاس یا د کمو ګوتو والا نه د لاس**
**کټ کولو په جرم کښې د قصاص اخستلو مسئله**

وَإِذَا كَانَ يَدُ الْمَقْطُوعِ صَحِيحَةً اوکله چه کټ شوي لاس صحیح وي وَيَدُ الْقَاطِعِ شَلَّاءَ او د کټ کونکی لاس اوچ وي أَوْ نَاقِصَةُ الْأَصَابِعِ یا د ناقصو ګوتو والا وی فَالْمَقْطُوعُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَطَعَ الْيَدَ الْمَعِيبَةَ نو د چا لاس چه کټ کړي شوي دي.هغه ته اختیار دي.که غواړي.نو د عیب دار لاس دي کټ کړی وَلَا شَيْءَ لَهُ غَيْرُهَا او دده دپاره ددي عیب دار لاس نه علاوه هیڅ نشته وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ كَامِلًا او که غواړي.د لاس پوره دیت دي واخلی

**تشریح** > د زید لاس صحیح سلامت دي.او د بکر لاس شل دي.اوچ دي.یا دده ګوتي کمي دی.او صورت دا شو.چه بکر د زید لاس کټ کړو.نو اوس به زید څه کوی.نو ده ته یواختیاردا حاصل دي که زید غواړي.نو د بکر لاس چه هر څنګه دي.هم ددي نه دي قصاص واخلی.او دا دي کټ کړي.
**دلیله** > ځکه چه هرکله پوره لاس د بکر نشته.نو ددي نه علاوه بله لار نشته.او د خپل حق نه په کم باندي راضی کیدل، او په دي حال باندي بي پرواهی کول ( او سترګي پټول) جائز دی.او که ده داسي اوکړل.نو دده حق ادا شو.او دا داسي شوه.لکه د کره درهمو په ځاني ردی ( او کهوټه) اخستل.اودویم اختیار دا دي که قصاص وانخلی.بلکه دیت واخلی.
**مثاله** > ددي مثال بالکل داسي دي.چه زید د بکر یو مثلی څیز هلاك کړو.نو په زید واجب دی.چه ددي مثل ادا کړي. خو اتفاق سره دا څیز په بازار کښي نشته.او که وی.نو خراب ( او معمولی) دي.نو اوس بکر ته اختیار دي.که غواړي.نو څنګه څیز چه بازار کښي ملاویږی.د هغي په اخستلو دي راضی شی.او په دي صورت کښي به دهغه حق ادا شی.اوکه غواړي.نو ددي قیمت دي واخلی.بالکل دغه شان مذکوره صورت هم دي.

**د زخمي شوي سر وړوکي او د زخمي کونکي سر لټ وي نو څه حکم دي ؟**

وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا او چا چه د یو سړی سر زخمی کړي وی فَاسْتَوْعَبَتِ الشَّجَّةُ مَا بَيْنَ قَرْنَيْهِ نو زخم د سر دواړه طرفونه راګیر کړي وی. وَهِيَ لَا تَسْتَوْعِبُ مَا بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّاجِّ او دا زخم، د زخم لګونکی دواړه طرفونه نشی راګیرولي فَالْمَشْجُوجُ بِالْخِيَارِ، إِنْ شَاءَ اقْتَصَّ بِمِقْدَارِ شَجَّتِهِ يَبْتَدِءُ مِنْ أَيِّ الْجَانِبَيْنِ شَاءَ، نو زخمی ته اختیار شته.که غواړي.د خپل زخم په مقدار دي قصاص واخلی.د کوم طرفه چه غواړي.شروع دي اوکړی. وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ كَامِلًا او که غواړي.پوره دیت دي واخلی

**حل اللغة** > ① **شاج**: د سر زخمی کونکي یعنی بکر، **مشجوج**: دکوم کس چه سر زخمی کړي شوي دي.یعنی زید

**تشریح** > د خالد سر ورکوتي دي.مثلاً په پلن والی کښي د ښی طرفه ګس طرفه پوري ټول د څلورو ګوتو عرض دي.او د عثمان مثلاً یوه لیشت دي.اوس صورت دا شو.چه عثمان د خالد سر زخمی کړو.او دومره زخم ئي لګولي دي.چه څلور ګوتي پلن والي ئي ټول راګیر کړي دي.اوس که خالد ته اوونیلي شي.چه څلور ګوتي قصاص واخله.نو د عثمان په سر کښي به څلور ګوتي معمولي شان درد

سره اوشي.او دده پوره سر به نه خرابیږي.نو د خالد حق ناقص پاتې شو.او که د پوره سر زخمي کولو یعني پوره یوه لیشت زخمي کولو اختیار ورکړې شي.نو دا مقدار د جنایت نه زیات دې.او دا ظلم دې.نو خالد ته دوه اختیاره دي. ① صرف د څلورو ګوتو مقدار چه د کوم طرفه غواړي.زخمي دې کړي. ② اوکه غواړي.نو دیت دې واخلي.لکه څنګه چه مخکښې مسئله کښې شوې وو.کله چه د پریکونکی لاس شل یا اوچ وو.دغه شان به دلته کښې هم وی.

**په ژبه او خاص اندام (ذکر) کښې قصاص شته اوکه نه؟**

| |
|---|
| وَلَاقِصَاصَ فِي اللِّسَانِ وَلَافِي الذَّكَرِ[1] او په ژبه او ذکر کښې قصاص نشته |

**حل اللغة** ① **اللسان**: ژبه

**تشریح** که زید د بکر ژبه کټ کړله.یا ئې ذکر کټ کړو.نو قصاص به نه وی.

**دلیلهما** ژبه او ذکر کله راټولیږي.او کله پلنیږي. نو د مساوات اعتبار ممکن نه دې.

**مسلک ابي یوسف** امام ابویوسف رحمه الله فرمائي. که ژبه او ذکر ئې د جرړې نه کټ کړو.نو قصاص به واجب وی.ګنی نه به وی.

**دلیله** ځکه چه اوس مماثلت او مساوات کیدې شي.چه د دویم کس هم د جرړې نه کټ کړې شي.

**په حشفه (یعنی د خاص اندام په سر) کښې د قصاص حکم.**

| |
|---|
| (اِلَّاأَن تُقْطَعَ الْحَشَفَةُ)خو دا چه حشفه (د اندام مخصوصه سر) کټ کړې شي. |

**حل اللغة** ① **حشفة**: د ذکر سر

**تشریح** که یوکس د یوسړي حشفه کټ کړله.نو دا ځائې معلوم دې.نو قصاص به اخستلې شي.لکه څنګه چه د لاس په صورت کښې د جوړ نه د کټ کولو حکم وو.

**حکم قطع بعض الذکر او الحشفة** او که د حشفې یا د ذکر (اندام مخصوصه) څه حصه کټ کړې شوې وی.نو په دې کښې به قصاص نه وی.

**دلیله** دلیل دا دې چه بعض حصه معلوم نه ده.یعنی متعین ځائې نه دې.په دې وجه به د مماثلت او مساوات رعایت نشی کیدې.

**الاستثناء** البته که غوږ ئې کټ کړو.ټول یا بعضې حصه، نو قصاص به واجب وی.ځکه چه غوږ نه راټولیږي.او نه خوریږي.او د غوږ یو حد مقرر دې. نو دلته مساوات کیدې شي.او که شونډې ئې پوره کټ کړې وی.نو قصاص شته.او په بعض حصه کښې به قصاص نه وی. ځکه چه رومبی صورت کښې مساوات کیدې شي.او په دویم کښې مساوات نشی کیدې.

**که قاتل د مقتول وارثانو سره صلح اوکړی نو د قصاص څه حکم دې؟**

| |
|---|
| وَإِذَا اصْطَلَحَ الْقَاتِلُ وَأَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِ او کله چه د قاتل او مقتول اولیاو مصالحت اوکړو عَلَى مَالٍ په یو مال باندې، سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط شو وَوَجَبَ الْمَالُ قَلِيلًا كَانَ أَوْكَثِيرًا او مال واجب شو.که لږ وی اوکه ډیر وی |

**تشریح** کله چه د قاتل او مقتول وارثانو دا مصالحت اوکړو.چه د دومره مال په بدله کښې صلح ده.او

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الجمهور رحمهم الله كذا في ردالمحتار (٥٣٩٤) والهندية (١٥\٦) وملتقى الأبحر (٣٢٥\٤) والدرالمنتقى (٣٢٤\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٤٠\٢)-

قصاص معاف دي.نو اوس به قصاص ختم وي.او صرف مال به واجب وي.په کوم چه مصالحت شوي دي.که دا مال لږ وي.او که ډیر وي.

**دلیله** ﴿ د صلح ثبوت په قرآن سره دي ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾ (هغه قاتل) چا لره چه دده د رور ( مقتول) د طرفه څه معافي ورکړې شي.( په واسطه د اولیاو) نو تابعداري کول پکار دی.د دستور موافق، او په ښه طریقې سره دا ادا کول پکار دی،،یعنی د مقتول په وارثانو کښې که بعضې هم وینه معاف کړي.نو اوس به قاتل په قصاص کښې نشی قتلولې.بلکه کتلې به شی.چه دې وارثانو په کومه طریقه معاف کړې دې.چه خالص د ثواب په غرض سره ئې د مال د معاوضې نه بغیر معاف کړې دې.

**وجه استواء القلیل والکثیر** ﴿ د صلح د مال مقدار به څومره وی.نو چونکه په نص کښې ددې مقدار نه دې وراد شوې.په دې وجه دا د ولي او قاتل په اتفاق باندې موقوف دی.که لږ وي.اوکه ډیر وي.لکه په خلع او د مال په بدله کښې آزادولو کښې هم دا صورت دې.اوکه دوي د نقد او قرض هیڅ ذکر نه وی کړې.نو نقد مال به واجب وي. ځکه قاعده دا ده.چه کوم مال په عقد سره د طرفینو په رضامندئ سره واجب وي.نو هغه به فی الحال واجب الاداء وي.او کوم مال چه عقد سره واجب نه وي.هغه به فی الحال واجب نه وي.او دا مال عقد سره واجب شوي دی.نو فی الحال به واجب الاداء وي.او دیت قسط وار واجب دې.ځکه چه ددې وجوب عقد سره نه دې.بلکه د شریعت په واجبولو سره دې.

### آزاد او غلام په شریکه یو قتل اوکړونو په زر روپۍ باندې صلح کولو کښې

### په د مقتول د بعضو وارثانو د قصاص معاف کولو حکم

| |
|---|
| فَإِنْ عَفَا أَحَدُ الشُّرَكَاءِ مِنَ الدَّمِ او که شریکانو کښې یو کس وینه معاف کړله أَوْصَالَحَ مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى عِوَضٍ یا ئې د خپلې حصې د طرفه په یو عوض باندې مصالحت اوکړو. سَقَطَ حَقُّ الْبَاقِينَ عَنِ الْقِصَاصِ نو د باقی خلقو حق د قصاص به معاف کیږی وَكَانَ لَهُمْ نَصِيبُهُمْ مِنَ الدِّيَةِ او د دوی دپاره به په دیت کښې ددوی حصه وی |

**تشریح** ﴿ حق د قصاص چه چا دپاره ثابت وو.هغوی کښې یوخپل حق معاف کړو.نو اوس باقی اولیاء هم قصاص نشی اخستلې.بلکه د خپلې حصې دیت اخستلې شی.مثلاً د زید پنځه خامن دی.او بل هیڅ څوك وارث ئې نشته.زید چا عمداً قتل کړو.چه ددې په وجه قصاص واجب شو.خو یو څوی خپل حق معاف کړو.نو اوس قصاص ساقط شو.صرف دیت به واجب وی.چه ددې صورت به دا وی.چه د پوره دیت نه به ۱\۵ خارجولې شی.او ۴\۵ به دوی څلور وارو په منځ کښې برابر برابر تقسیمیږی. (۱)

**دلیله** ﴿ دلیل دا دې.چه اشیم ضبابی خطاءً قتل کړې شوې وو.چه ددې په وجه دیت واجب شو.نو سرکار دوعالم ﷺ دا حکم فرمائیلې وو. (۲) چه په دې دیت کښې دې د اشیم ښځې ته هم میراث ورکړې

(۱) دامام مالك او امام شافعی رحمهما الله په دې کښې اختلاف دې.دوی فرمائی.چه په قصاص او دیت کښې د زوجینو حق نشته.ځکه چه میراث کښې کوم وراثت ثابتیږی.ددې مال خلافت او نیابت دې.او د خلافت بنیاد نسب دې.سبب نه دې.ځکه چه سبب خو مرګ سره ختمیږی.نو د زوجینو هیڅ حق به په قصاص او دیت کښې نه وی.

(۲) من حدیث ضحاك بن سفیان رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الفرائض والترمذی فی الفرائض باب ۱۸ وابن ماجه فی الدیات باب ۱۲ رقم ۲۶٤۲ والنسائی فی السنن الکبری (۷۹\٤) رقم ٦۳٦٦)۔

شي.ددې نه معلومه شوه.چه په دیت کښې د ښځې حق وو.په دې وجه خو ئې ورکړې وو.نو دغه شان په قصاص کښې هم حق وی.بیا قصاص او دیت داسې څیز دی.چه په دې کښې میراث جاری کیږی.او هرکله چه میراث جاری کیږی.نو بیا به دټولو وراثانو دپاره دا حق ثابت وی.

**که یو جماعت یو سړی عمداً قتل کړی نو د قصاص څه حکم دی؟**

| |
|---|
| وَإِذَاقَتَلَ جَمَاعَةٌ وَاحِدًا عَمْدًا او کله چه یو جماعت یو سړې عمداً قتل کړو أُقْتُصَّ مِنْ جَمِيعِهِمْ نو ددوی ټولو نه به قصاص اخستلې شي |

**تشریح** ﴿ مقتول یو دې.او قاتل متعدد ( ګڼر) دی.نو ټول به په قصاص کښې قتلولې شي.
چونکه قتل عام طور باندې هم داسې کیږی.چه د یوکس نور خلق مدد کوی.نو که د قاتل د تعدد په وجه قصاص پریخودې شي.نو بیا به د قصاص دروازه بنده شي.او کوم چه مقصود دې. یعنی نظام د عالم قائم ساتل، او د خلقو ژوندی ساتل، دا مقصود به معطل ( او عبث) پاتې شي.
**دلیل** ﴿ په صنعاء کښې زینب نومې یوه ښځه وه.د هغې خاوند په سفر کښې پردی وطن ته تلې وو.او خپل یو خوئې ،، چه اصیل ئې نامه وه.او دده د مخکښنۍ ښځې نه پیدا شوې وو،، ددې سره ئې پریخودو.او لاړو.د زینب یو څو اشنایان پیدا شو.خو هغوی د اصیل نه تنګ راغلل.نو زینب خپلو چالاکو یارانو سره مشوره اوکړله.نو د ټولو دا رائې مقرر شوه.چه دا هلك مونږ رسوا کوی.نو ټول متفق شو.او دې ئې قتل کړو.او د عمدان په کوهی کښې ئې اوغورزولو.او دا ټول سره د ښځې اووه کسان وو.نو کله چه دا هلك ورك شو.نو هم دې زینب چغې کړې.او په چغو کښې به ئې وئیلې.چه ایْ الله چا چه اصیل قتل کړې وی.هغه دې تباه شي.او هغه دې اونیولې شي.او دغه وخت د حضرت عمر ﷺ د طرفه یعلی د صنعاء وزیر وو.نو دوی په دې باره کښې خلقو ته خطبه واورولـه.چه ددې تحقیق او معلومات اوکړئ.نو یو څو ورځې پس د غمدان کوهی په طرف یو سړې تیریدو.او هلته د مچانو د ډیروالی نه ده ته پته اولګیده.نو ده یعلی ته خبر ورکړو.نو هغه خلق خان سره کړل.او تشریف ئې یوړلو.نو د ښځې په چالاکو یارانو کښې یوکس اووئیل.چه ما په رسۍ کښې ور زوړند کړئ.نو ورکوز شو.او د اصیل لاش ئې د کوهی په غار( ګاڼ) کښې پټ کړو.بیا دې راووتلو.او ده اووئیل.چه ما هلته هیڅ او نه موندل.نو دویم سړی اووئیل.چه ما ورکوز کړئ.بیا هغه ورکوز شو.او لاش ئې راوښکلو.نو آخرکار ښځې اقرار اوکړو.او ددې یارانو هم اقرار اوکړو.یعلی ددې تفصیل حضرت عمر ﷺ ته اولیکلو.هغوی ددې دا حکم جاری کړو.لَوْتَمَالَأَعَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَلَقَتَلْتُهُمْ[1] چه دوی ټول دې قتل کړې شي.

**که یو سړې پوره جماعت قتل کړی نو په**
**قصاص کښې به هم دا یوکس قتل کولې شي**

| |
|---|
| وَإِذَاقَتَلَ وَاحِدٌ جَمَاعَةً اوکله چه یو سړی یو جماعت قتل کړو فَحَضَرَأَوْلِيَاءُالْمَقْتُولِينَ نو د مقتولینو اولیاء حاضر شو قُتِلَ لِجَمَاعَتِهِمْ نو قاتل به ددوی د ټولو د طرفه قتلولې شي وَلَاشَيْءَلَهُمْ غَيْرُذَلِكَ،او د اولیاو دپاره به ددې نه علاوه هیڅ نه وی فَإِنْ حَضَرَوَاحِدٌمِنْهُمْ نو که په دوی کښې یو حاضر شو قُتِلَ لَهُ نو دده دپاره به قاتل قتلولې شي وَسَقَطَ حَقُّ الْبَاقِينَ او د باقی ( اولیاو) حق به ساقطولې شي. |

[1] ) اخرجه مالك في موطاه في العقول رقم ۱۳)۔

**تشریح** یوسړي مثلاً لس کسان قتل کړي دي.نو که ټول اولیاء راجمع شي.بیا به هم قصاص کېښي د ټولو دپاره دا یو قاتل وي.او دده په قتلولو سره به د ټولو قصاص ادا کېږي.اوکه په دوی کښې یو (ولي) حاضرشو.او قصاص ئې واخستلو.نو بیا هم د باقي (اولیاوو) حق ساقط شو.او هیڅ مال به چا ته نه ورکولی کېږي. ([1])

**دلائله** ① دلیل دا دې.چه هرکله ټول اولیاء حاضر شو.او د قاضي د فیصلې نه پس هغوی پخپله یا ددوی وکیل هغه قتل کړو.نو په دواړو صورتونو کښې به دا ګڼړلې شي.چه هر یو کس خپل پوره حق ،،قصاص علی سبیل الکمال،،حاصل کړو.نو تماثل شته.او لکه څنګه چه ړومبی صورت کښې مقتول یو وی.او قاتلان ګڼړ وی.هم دا ګڼړلی شوی دی.چه هر قاتل کامل وصف سره دې قتل کړې دې.ګنی ددې نه بغیر به د ټولو نه قصاص نه اخستلې کیدو.نو دلته به هم دغه شان ګڼړلې کیږي. ② بل دلیل دا دې چه په دوی کښې د هریو زخم ددې قابل دې.چه د روح وتلو سبب جوړ شي.نو د روح وتلو اضافت به دوی ټولو طرف ته کیږي.ځکه چه لکه څنګه قصاص غیر متجزی دی.دغه شان روح وتل هم غیر متجزی دی.او د سړی د بدن شلول (او زخمی کول) ممنوع دی.او داسې کونکې حدیث کښې ملعون ګرځولې شوې دې. خو ددې باوجود دلته کښې د ژوند د تحقیق په غرض سره قصاص مشروع کړې شوې دې.بهرحال کوم چه غرض (او مقصد) دې.یعني تحقیق د ژوند ، هغه ددې قاتل په قتلولو سره حاصلیږي.او هرکله چه مقصد حاصل شو.نو په دې به اکتفاء کولې شي.او د قصاص نه علاوه به هیڅ مال واجب نه وي.

## که قاتل مړشي نو د قصاص څه حکم دې ؟

| |
|---|
| وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْقِصَاصُ او په چاچه قصاص واجب وي فَمَاتَ او هغه مړشو سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط شو |

**تشریح** په کوم قاتل چه قصاص واجب وو.او دیت ورکول اختیار شوی نه وو.نو که دا قاتل مړ شي.نو قصاص به هم ساقطیږي.

**دلیله** ځکه چه د کوم محل نه قصاص وصولیدو.هغه محل ختم شوې دې.نو دا بالکل داسې ده.لکه چه یو غلام جنایت (جرم) اوکړی.او په دې کښې دا غلام ورکول لازمی شي.خو د ورکولو نه وړاندې دا غلام مړ شو.نو اوس به هیڅ نه ورکړې کیږي.ځکه چه محل فوت شوې دې.
اصلي واجب قصاص دې.او دیت طرف ته انتقال هغه وخت کیږي.کله چه دوی دواړه په دې باندې اتفاق اوکړي.او دا اتفاق شوې نه وو.نو اصلي موجب قصاص وو.او د محل فوت کیدو په وجه اوس دا فوت (ختم) شو.

---

[1] د امام شافعي رحمه الله دلته مختلف اقوال دي: ① که قاتل دا ټول مقتولین یو بل پسې قتل کړي وي. نو د ړومبی په بدله کښې به قصاص وي.او د باقي په بدله کښې به مال واجب وي. ②اوکه ټول (ئې په یو ځل) قتل کړي وي.یا ئې وړاندې روستو قتل کړي وي.خو د ړومبی پته نه لګي.نو د ټولو دپاره به قتلولې شي.او بیا به دیتونه د دوی ټولو په منځ کښې تقسیمولې شي. ③ قرعه (او خسړې) به اچولې شي.چه د چا نوم راوځي.د هغه دپاره به قتلولې شي.او د باقي دپاره به مال وي.

**که دوو سړو د يو سړي لاس کټ کړونو د قصاص څه حکم دی ؟**

| |
|---|
| وَإِذَاقَطَعَ رَجُلَانِ يَدَرَجُلٍ وَاحِدٍاوکله چه دوو سړو د يو سړي لاس کټ کړو (فَلَاقِصَاصَ عَلَى كُلِّ وَاحِدٍمِنْهُمَانو په دوی دواړو کښې يو باندې هم قصاص نشته.وَعَلَيْهِمَانِصْفُ الدِّيَةِاو دوی دواړو باندې به نيم ديت وی |

**تشريح** > زيد او بکر په يوځائې د خالد يو لاس کټ کړو.نو په دواړو کښې په يو هم قصاص نشته البته په هر يو باندې نيم نيم ديت دې.(١)

**دليله** > دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه په زيد او بکر کښې هر يو دده بعض لاس کټ کړې دې. ځکه چه چاره باندې د دواړو لاس دې.او د دواړو په زور د چاړې نه کار اخستې شوې دې.او د خالد لاس هم د تجزی ( يعني حصې کولو) قابل دې.نو دا به ضروری وی.چه داسې اووئيلې شی.چه هر يو بعض لاس کټ کړې دې.او هرکله چه هر يو بعض لاس کټ کړې دې.او دوی دواړو ته دا سزا ملاو شی.چه ددوی پوره لاس کټ کړې شی.نو مماثلت ختم شو.حالانکه قصاص کښې مماثلت ضروری دې.،،کمامر،،

**يو لاس دوو سړو کټ کړولو د ديت څه حکم دی ؟**

| |
|---|
| وَعَلَيْهِمَانِصْفُ الدِّيَةِچه په دوی دواړو به نصف ديت واجب وی |

**تشريح** > د يو لاس هغه ديت وی.کوم چه د پوره نفس د ديت نيم دې.نو هم دا نصف ديت به په دوی دواړو واجب وی.او په دوی دواړو کښې به هر يو باندې د نصف نيم نيم واجب وی.

**دليله**:ځکه چه دوی يو لاس کټ کړې دې.نو ددې لاس ضمان به دوی دواړو باندې نصف واجب وی.ګويا چه هر يو باندې د نفس د ديت۱۱۴ واجب وی.

**يو سړي د دوو سړو ښي لاس کټ کړواو دواړه حاضر شو لو څه حکم دی ؟**

| |
|---|
| (وَإِنْ قَطَعَ وَاحِدٌ يَمِيْنَيْ رَجُلَيْنِ اوکه يو سړي د دوو سړو ښي لاس کټ کړو فَحَضَرَا نو دوی دواړه حاضر شو فَلَهُمَا نو ددوی دواړو حق دې أَنْ يَقْطَعَا يَدَهُ.چه دده لاس کټ کړی وَيَأْخُذَامِنْهُ نِصْفَ الدِّيَةِاو دده نه نصف ديت واخلی يَقْتَسِمَانِهَانِصْفَيْنِ چه دا دوی دواړه نيم په نيمه تقسيم کړی. |

**تشريح** > ارشد د حارث اوعثمان دواړو لاسونه کټ کړی دی.نو د ارشد لاس د دوی دواړو د لاسونو بدل خو نشی جوړېدې.نو دا صورت به اختيارولې شی. چه دوی دواړه د هغه لاس کټ کړی.او دا به د تعين نه بغير د يو لاس بدل وی.او د دوېم لاس دې دده نه ديت وصول کړی.او دا دې دواړه نيم په نيمه تقسيم کړی.که دواړه لاسونه ئې په يوځل کټ کړې وی.بيا هم دا حکم دې.او که وړاندې روستو ئې کټ کړې وی.بيا هم دا حکم دې.

**دليله** > دليـل دې.ددې حاصـل دا دې.چه چونکـه د زيـد او بکـر دواړو لاسونه کټ کړې شـوی دی.نو قصاص هم دواړو ته ملاوېدل پکار دی.ځکه چه هرکله په سبب کښې دواړه برابر دی.نو په حکم کښې به هم برابر وی.او ددې هم هغه طريقه ده.کومه چه مونږ بيان کړې ده.ددې مثال بعينه داسې دې.چه د زيد په ذمه د بکر پنځوس روپۍ قرض دی.او د خالد څلوېښت دی. او د ساجد هم څلوېښت دی.او دا ټول قرض په مختلفو زمانو کښې ده اخستې دې.اوس زيد وفات کيږی.او مال پرېږدی.نو په دې ترکه کښې د ټولو ( قرضخواهانو) حق برابر دې.دا به نشی کتلې.چه د کوم کس نه قرض مخکښې اخستې شوې دې.هغه ته به د مخکښې اخستلو حق حاصل وی.دغه شان به دلته کښې هم دا نشی کتلې.بلکه صرف په سبب کښې د مساوات په وجه به په حکم کښې مساوات ثابتيږی.

**يو سړی د دوو سړو لاس غوڅ کړواو يو حاضر شو.نو څه حکم دی ؟**

| |
|---|
| فَإِنْ حَضَرَوَاحِدٌ مِنْهُمَا اوکه په دوی دواړوکښې يوحاضرشو فَقَطَعَ يَدَهٗ نو ده دهغه لاس کټ کړو فَلِلْاٰخَرِعَلَيْهِ نِصْفُ الدِّيَةِ،نو د دويم دپاره په ده باندې نيم ديت دی |

**تشريح** > وراندې چه کومه مسئله بيان کړې شوې ده.دا حکم هغه وخت دې.چه د کومو دواړو لاسونه کټ کړې شوی دی.دوی دواړه حاضر شي.اوکه صرف يو حاضر شو.او دويم غائب وی.نو ددې حکم دا دې.کوم چه دلته کښې ذکر دې.يعنی حاضر خپل قصاص وصول کړی.اوکوم چه غائب دې.هغه دپاره به نصف ديت واجب وی.

**دليله** > ځکه چه دوی دواړو کښې د هر يو لاس کټ شوې دې.نو د وصولولو حق هر يو ته حاصل دې.نو کوم چه حاضر دې.هغه ته به حق وی.چه هغه خپل حق وصول کړی.او پاتې شو غائب، نو دده په وجه به د حاضر حق مؤخر کول ضروری نه وی.ځکه چه د غائب په حق کښې خو اوس هم تردد ( او شك) دې. ځکه کيدې شی.چه هغه خپل حق معاف کړی.او کيدې شی.چه هغه دسره حاضر هم نشی.نو حاضر ته حق شته.چه خپل حق وصول کړی.نو کله چه ده وصول کړو.نو چونکه محل د استيفاء ( او وصولولو ،،يعنی ښي لاس،، ختم شو.نو اوس د دويم حق په ديت کښې متعين شو.ولې؟ ځکه چه لاس پرکونکی پخپل لاس سره هغه حق ادا کړې دې.کوم چه په ده واجب وو.او په داسې صورت کښې د حقدار حق نه ختميږی.چه ددې تفصيل وراندې تير شوې دې.

**د غلام د قتل عمد اقرار معتبر دې اوکه نه؟**

| |
|---|
| وَإِذَاأَقَرَّالْعَبْدُبِقَتْلِ الْعَمْدِ او کله چه غلام د قتل عمد اقرار اوکړو لَزِمَهُ الْقَوَدُ.([1]) .نو په ده به قصاص لازم وی. |

**تشريح** > غلام د قتل عمد اقرار کوی. زمونږ مذهب دا دې.چه اقرار صحيح دې.او د غلام نه به قصاص اخستلې شی.

**دلائله** > ① دليل دادې چه دې اقرار کښې غلام باندې هيڅ تهمت نشته.او د مال په اقرار کښې تهمت دې.ځکه چه د آقا نه زيات نقصان خو پخپله دغلام دې.چه دده نفس به قتليږی.نو دده اقرار به قبول وی.

② بله وجه دا ده که مونږ دغلام دآدميت اوانسانيت خيال ساتونودې نه دا قاعده مقرر کيږی چه غلام پخپله وينه کښې د آزادئ صفت لری.او د قصاص اصلی مقصد وينه بهيول دی.مال نه دې.بلکه د مال معدوم کيدل ضمنی څيز دې.نو دلته د غلام اقرار د هغه څيز په باره کښې معتبر منلې شوې دې.کوم څيز چه د حريت صفت باندې قائم ( او باقی پاتې) دې.اود دې دليل دا دې چه غلام د انسانيت او آدميت دحق مستحق دې که آقا پخپل غلام باندې د حدود يا قصاص اقرار اوکړی.نو دده اقرار به صحيح نه وی.او د مولا د اقرار په وجه به غلام باندې حد يا قصاص نه جاری کيږی.نو ددې مسئلې دا خبره معلومه شوه.چه غلام اگرچه غلام او مملوك دې.خودده اقرار به قبلولې شی.

| |
|---|
| وَمَنْ رَمٰى رَجُلًا عَمَدًا اوچا چې يو سړې په قصد سره اوويشتلو فَنَفَذَالسَّهْمُ مِنْهُ إِلَى آخَرَنو غشي د دې نه |

---

[1] ) القول الراجح هو هذاقول الجمهور ﷺ كذا في ردالمحتار(٥\٣٩٦) والفقه الإسلامى (٣\٣٢٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٤٢)-

اووتل او په بل کبنې ورننوتلو فَمَاتَاودواړه مړه شول فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ لِلْأَوَّلِ نو په ده باندې د اول دپاره قصاص دې وَالدِّيَةُ لِلثَّانِيْ اود دويم دپاره ديت دې عَلَى عَاقِلَتِهِ د هغه په عاقله باندې

**تشریح>** خالد عامر په غشي باندې اوويشتلو عامر په غشي اولګيدلو د هغه نه اووتلو او په بکر کبنې ورداخل شو او دواړه د دغه يو غشي نه مړه شو.نو په دې صورت کبنې به خالد د عامر په قصاص کبنې قتل کولې شي او د بکر ديت به دده په عاقله باندې واجبيږي.

**دلیله>** د عامر قصاص پرې څکه واجبيږي.چې خالد قصداً هغه ويشتې دې او هغه او کله چې څوك په قصد باندې بل اولي اوهغه مړ شي.نو قصاص واجب وي دغه شان به دلته هم قصاص واجب وي.او د بکر قتل په خطاء سره شوې دې څکه چې خالد بکر قصدا نه دې ويشتې بلکه د عامر د ويشتلو اراده ئې وه.خو بکر اولګيدلو.اوپه خطاء کبنې ديت وي.نو دلته به هم ديت واجبيږي.

# كِتَابُ الدِّيَاتِ

**ترجمه>** (دا) کتاب د ديتونو(په بيان کبنې) دې.

**تشریح> تعریف الدیة>** ديت په شريعت کبنې هغه مال ته وائي.کوم چه د نفس بدل ګرځولې شوې دې.يعنی دا د ،،تسمية الشئ باسم المصدر،،د قبيلې څخه دې.او ،،إرش،، (تاوان) هغه مال ته وائي.کوم چه د نفس نه په کم کبنې واجبيږي.

**الربط بما قبله>** مخکبنې قصاص بيان کړې شوې دې.بيا ديت، څکه چه قصاص اصل دې.او ديت دخليفه مثل دې.اودژوند اونفس حفاظت زيات اهم (اوضروري) دې.په دې وجه قصاص مقدم کړې شوې دې.

### د قتل شبه عمد د دیت او کفارې حکم

إِذَا قَتَلَ رَجُلٌ رَجُلًا شِبْهَ عَمْدٍ کله چه يوسړې بل سړې قتل کړی په شبه عمد سره فَعَلَى الْعَاقِلَةِ دِيَةٌ مُغَلَّظَةٌ او شبه عمد په عاقله باندې ديت مغلظه دې وَعَلَيْهِ كَفَّارَةٌ.او په قاتل باندې کفاره ده

**تشریح>** د قتل شبه عمد ديت په عاقله باندې وی.او کفاره په قاتل باندې وی.په هدايه څلورم جلد باندې ددې بيان تير شوې دې.خو د تغليظ طريقه هلته نه ده تيره شوې.هغه دلته بيانولې شی.کله چه اوښان سل واجب وی.او ددې دا څلور قسمونه واجب وی: ① بنت مخاض ② بنت لبون ③ حقاق ④ جزاع، ددې نوم ديت مغلظه دې.

### د قتل خطاء کفاره، او د شیخینو رحمهما الله مسلک

وَدِيَةُ شِبْهِ الْعَمْدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَرْبَاعًا او د شيخينو رحمهماالله په نيز د شبه عمد ديت د څلورو قسمونو سل اوښان دی خَمْسٌ وَعِشْرُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ پنځه ويشت بنت مخاض

وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ بِنْتَ لَبُونٍ او پنځه ویشت بنت لبون، وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ حِقَّةً وَخَمْسٌ وَعِشْرُونَ جَذَعَةً (۱) او پنځه ویشت حقي او پنځه ویشت جذعي.

**حل اللغة** ① **بنت مخاض:** چه دا د اوښ هغه بچي دې.چه په دویم کال کښې شروع شوې وی.او چونکه اوس به ددې مور په دویم بچی سره حامله شوې وی.په دې وجه دې ته بنت مخاض وائی. ② **بنت لبون:** کومه چه په دریم کال کښې شروع شی.او چونکه اوس به ددې مور دویم بچې راوړلې وی.او پئ به ورکوی.په دې وجه دې ته بنت لبون وائی. ③ **حقه:** کوم چه په څلورم کال کښې شروع شی. چونکه اوس به دا استحقاق وی.چه په دې سور شی.او په دې بوج بار کړې شی.په دې وجه دې ته حقه وائی. ④ **جذعه:** کومه چه په پنځم کال کښې شروع شی.ځکه چه اوس به دې دوه غاښونه کړی وی.په دې وجه دې جذعه وائی.بهرحال د شیخینو رحمهما الله په نیز د سلو اوښانو تفصیل دا دې.کوم چه ذکر شو.

**تشریح** د شیخینو رحمهما الله مذهب دا دې. چه کومه د قتل شبه عمد کفاره ده.هم هغه د قتل خطاء کفاره ده.او په شبه عمد کښې به سل اوښان واجب وی. په دې کښې پنځه ویشت بنت مخاض وی او پنځه ویشت بنت لبون وی اوپنځه ویشت جذعه وی اوپنځه ویشت حقه وی

**دلائلهما** د شیخینو رحمهما الله دلیل دې.رومبې دلیل دا حدیث دې. (فی نفس المومن مائة من الابل) چه دا ابن حبان صحیح ګرځولې دې. په دې حدیث کښې صرف د سلو اوښانودې.د دغه سلو په څلورقسمه اوښانو باندې د تقسیم تفصیل په کښې نشته نو معلومه شوه چه کوم قیدونه امام محمد اوامام شافعی رحمهما الله لګولی دی دا په واجب چه سل اوښان دی په هغې باندې زیادت دې حالانکه داسې موقعو کښې مقادیر په قیاسی موازنو (او خیالاتو) سره نه معلومیږی.

**مسلک محمد** امام محمد سل اوښان د څلورو قسمونو په ځائې دریو قسمونو باندې تقسیم کړی دی.یعنی جذعې دیرش وی.او حقې دیرش وی.او ثنیې څلویښت وی.،،ثنی،، د مذکر دپاره او مادې دپاره ،،ثنیه،، ده.او دا ټولې څلویښت ثنیې حاملې وی.د حامله مطلب دا دې.چه ددوی په خیټو کښې ددوی اولاد وی.

په دې خو د ټولو اتفاق دې.چه د شبه عمد په دیت کښې تغلیظ دې.حضرات شیخینو رحمهما الله په څلور قسمونو باندې تقسیمول تغلیظ ګنړلې دې.او امام محمد د تثنیې په وجوب کښې تغلیظ ګنړلې دې.او ثنی هغه دې.چه په شپږم کال کښې شروع شی.او مؤنث ثنیه دې.چه دې وخت به دا حامله وی.او د خلفة په معنی کښې دې.حملداره اوښه د ،،فی بطونها اولادها خلفات،، صفت کاشفه دې.

**دلیله** ① دلیل دا حدیث دې (الا ان قتیل خطأ العمد قتیل السوط والعصا وفیه مائة من الابل اربعون منها فی بطونها اولادها) (۲)بهرحال حدیث کښې صراحت دې.چه په دې سلو کښې څلویښت داسې کیدل پکار دی.چه هغه حاملې وی.او د عمر فاروق او زید بن ثابت رضی الله عنهما نه نقل دی.چه دیرش به حقې وی.او دیرش به جذعې وی. نو ددې تفصیل نه معلومه شوه.چه درې قسمه اوښان به واجب وی.دیرش حقې، او دیرش

(۱) القول الراجح هوهذا قول الشیخین رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(۵\۴۰۶) وملتقى (۴\۳۴۱) والهندیة (۶\۲۴) وكنز الدقائق (۳۹۸) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۴۷)۔

(۲) تقدم تخریجه۔

جذعي، او څلورېښت ثنيات،

**الجواب عنه** امام محمد چه کوم حديث بيان کړې دې.هغه حديث اګرچه مرفوع دې. خو دا به غيرثابت شمارلې کيږي.ځکه که دا ثابت وې.نو د تغليظ په صفت کښې چه د صحابه کرامو په منع کښې . کوم سخت اختلاف دې.دا به نه وو.ځکه چه د مذکوره قول قائل د ذکر شوي حديث نه دليل نيولو سره نور صحابه کرام خاموش کولي شو.حالانکه په دې حديث سره د صحابو په منع کښې حجت پيش کول جاري نشو.دا ددې د نه ثابتيدو دليل دې.

**تغليظ صرف په اوښانو کښې دې**

| |
|---|
| (وَلَا يَثْبُتُ التَّغْلِيظُ او تغليظ به نه ثابتيږي إِلَّا فِي الْإِبِلِ خَاصَّةً خو خاص طور باندې په اوښانو کښې، |

**تشريح** چه ددې بيان اوس تير شوې دې.خو چونکه شريعت تغليظ صرف په اوښانو په شبه عمد کښې ديت مغلظه واجبيږي کښې خاص کړې دې.او په دې د امت اجماع منعقد شوې ده.نو د تغليظ به بله کومه طريقه د ذکر شوې طريقې نه علاوه نه وي.

**دليله** ځکه چه په شرعي مقدارونو کښې د قياسي موازنو دخل نه وي.بلکه د شرعي مقدارونو پيژندلو دپاره نقل پکار دې.او نقل د اوښانو په سلسله کښې دې.نو که قاضي د اوښانو نه علاوه سره فيصله اوکړله.نو دده فيصله به نه نافذ کيږي.ځکه چه د توقيف مغائر دې.

**په قتل خطاء کښې د ديت او کفارې حکم**

| |
|---|
| وَفِي قَتْلِ الْخَطَإِ او په قتل خطاء کښې تَجِبُ بِهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ وَالْكَفَّارَةُ عَلَى الْقَاتِلِ ددې په وجه عاقله باندې ديت او په قاتل کفاره واجب ده |

**تشريح** په آيت کښې صراحت سره ذکر دی.چه په قتل خطاء کښې ديت او کفاره واجب ده.خو کفاره په قاتل ده.او ديت په عاقله باندې دې.چه ددې وجه په شروع د کتاب الجنايات کښې ذکر شوې ده.

**د قتل خطاء ديت څه دې ؟**

| |
|---|
| وَالدِّيَةُ فِي الْخَطَإِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَخْمَاسًا او په (قتل) خطاء کښې پنځه قسمه اوښان دی عِشْرُونَ بِنْتَ مَخَاضٍ شل بنت مخاض، وَعِشْرُونَ ابْنَ مَخَاضٍ اوشل ابن مخاض وَعِشْرُونَ بِنْتَ لَبُونٍ او شل بنت لبون وَعِشْرُونَ حِقَّةً ،او شل حقې وَعِشْرُونَ جَذَعَةً او شل جذعې، |

**تشريح** که د قتل خطاء ديت په اوښانو سره ادا کول وي.نو ددې مقدار سل اوښان دی.چه په دې کښې به دا پنځه قسمه اوښان وي. کوم چه دلته کښې ذکر دی.

**دليله** دا د ابن مسعود قول دې. (۱) دا به د حديث مرفوع په درجه کښې شمارلې شي.د ابن مسعود ددې فرمان په وجه مونږ او امام شافعي هم دا قول اختيار کړې دې.چه د قتل خطاء ديت به په پنځو قسمونو سره اداکولې شي.او هم په دې طريقه ابن مسعود د قتل خطاء په ديت کښې د نبي کريم فيصله روايت کړې ده.او خاطي معذور هم دې.په دې وجه دده په ديت کښې (اسانتيا او) سپکوالي پکار دې.او دا د سپکوالي طريقه ده.

(۱) اخرجه اصحاب السنن الأربعة بالفاظ مختلفة نقلها الزيلعي في نصب الراية و هو في ابي داود في الديات باب ۱۷رقم ۴۵۵۶)_ والترمذي في أوائل الديات والنسائي رقم ۴۸۰۲ وابن ماجه رقم ۲۶۳۱) كذا في نصب الراية:۱۲۵\۵)_

**د قتل خطاء په دیت کښې د سرو زرو او سپینو زرو مقدار**

وَمِنَ الْعَيْنِ أَلْفُ دِينَارٍ او د (قتل خطاء دیت) د سرو زرو نه زر دینار وَمِنَ الْوَرِقِ عَشَرَةُ آلافِ دِرْهَمٍ او د سپینو زرو نه لس زره درهمه دي

**تشریح** که د قتل خطاء دیت د سرو زرو نه ادا کول غواړي.نو زر دیناره د هغې مقدار دي.اوکه د سپینو زرو نه ادا کول وي.نو ددې مقدار لس زره درهمه دي. ([1])

**دلیله** دلیل د حضرت عمر رضی الله عنه روایت دې چه نبی ﷺ د یومقتول په دیت کښې په لس زره روپو باندې فیصله کړې وه ([2])

**د اوښانو، سرو زرو، او سپینو زرو نه علاوه سره د دیت اداکولو مسئله**

وَلَا تَثْبُتُ الدِّيَةُ او دیت به نه ثابتیږی. إِلَّا مِنْ هَذِهِ الْأَنْوَاعِ الثَّلَاثَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ،
([3]) مگر هم ددې دریو اقسامو نه د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز

**تشریح** هرکله چه قاتل دیت ادا کوی.نو هغه ته په دریو څیزونو کښې اختیار دې.که اوښانو سره دیت ادا کوی.اوکه دینار یا دراهمو سره،اوددې دریو څیزونو نه علاوه سره به دیت نه ادا کوی.او دا د امام صاحب رحمه الله فرمان دې.

**دلیله** دلیل دا دې.چه تقدیر په داسې څیز سره صحیح کیدې شی.چه دکوم مالیت معلوم وی.او د دینار او درهم مالیت هر څوك پیژنی.نو هم دې تقدیر سره صحیح دې.خو د غواګانو، چیلو او جوړو مالیت مجهول (نا معلوم) دې.لکه څنګه چه ښکاره ده.هم دا وجه ده.که د یوکس څه څیز تې ضائع کړو.نو ددې د ضمان اندازه به غواګانو اوچیلو وغیره سره نشی کولی.

وَقَالَا او صاحبین رحمهما الله فرمائی مِنْهَا وَمِنَ الْبَقَرِ مِائَتَا بَقَرَةٍ،ددې نه او د غواګانو نه دوه سوه غواګانې وَمِنَ الْغَنَمِ أَلْفَا شَاةٍ اود چیلو نه زر چیلې وَمِنَ الْحُلَلِ مِائَتَا حُلَّةٍ او د جوړو نه دوه سوه جوړې، كُلُّ حُلَّةٍ ثَوْبَانِ هره جوړه دوه کپړې،

**تشریح** **مسلك الصاحبین** صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د ذکر شوی دریو قسمونو نه هم د مقرر مقدار مطابق دیت ادا کولې شی.اوکه د غواګانو نه ادا کوی.نو دوه سوه به وی.اوکه د چیلو نه ادا کوی.نو زر به وی.اوکه جوړې ورکوی.نو دوه سوه جوړې به وی.چه په دې کښې به هره جوړه دوه کپړې وی.چه دا به زمونږ د عرف (او رواج) مطابق په دې زمانه کښې یو قمیص او یو پرتوګ وی.

**دلیلهما** څکه چه عمرفاروق رضی الله عنه هم دغه شان فیصله په دې مالونو کښې کړې وه.دا د صاحبینو

---

[1]) **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دولس زره درهمه دي.

[2]) غریبه الزیلعی رحمه الله ثم نقل عن عبیدة السلمانی قال وضع عمر رضی الله عنه الدیات علی أهل الذهب الف دینار وعلی أهل الورق عشرة آلاف درهم وعلی أهل الإبل مائة من الإبل وعلی أهل البقر مائتی بقرة مسنة وعلی أهل الشاء الفی شاة وعلی أهل الحلل مائة حلة وعزاه إلی کتاب الآثار لمحمد بن الحسن (نصب الرایة: ۱۳۰\۵)_

[3]) القول الراجح هوهذا قول أبی حنیفة رحمه الله ردالمحتار(۴۰۷\۵) والفقه الإسلامی (۳۰۲\۶) وملتقی (۳۴۲\۴) والهندیة (۲۴\۶) نقلاً عن القول الراجح (۳۴۸۰\۱۲)-

رحمهماالله دلیل دی. [1]

**تنبیه>** دلته د بعضو فقهاو عبارتونه مختلف دی.سوال دا دې.چه دا صرف د قتل خطاء د دیت ذکر دې. یا د شبه عمد او د خطاء دوارو دې.نو محقق قول دا دې.چه د دوارو ذکر دې.یعنی د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د شبه عمد او خطاء دوارو دیت د دریو وارو قسمونو نه ادا کیدې شی.او د صاحبینو رحمهماالله په نیز د نورو هغه څیزونو نه هم ادا کیدې شی.کوم چه دلته کښې ذکر دی.

**الاشکال>** که څوك دا اعتراض اوکړی چه وړاندې تیر شوی دی.چه په شبه عمد کښې به دیت مغلظه واجب وی.او تغلیظ به صرف اوښانو کښې وی.بیا دا ولې اوشو؟

**الجواب>** نو د دې جواب دا دې چه د هغې مطلب دا وو.چه د تغلیظ تحقق به صرف اوښانو کښې وی.چه سل اوښان به په ذکر شوو څلورو قسمونو باندې تقسیمولې شی.او که دیت د اوښانو نه علاوه سره ادا کول وی.نو هلته به تغلیظ نشی کیدی.بلکه بیا به د شبه عمد او قتل خطاء په دیت کښې هیڅ فرق نه وی.څکه چه د تغلیظ طریقه صرف په اوښانو کښې منقول ده.نو که قاضی د اوښ نه په علاوه کښې د تغلیظ فیصله ورکړله.نو د نه منقول کیدو په وجه تغلیظ ثابت نه وی.او د قاضی فیصله به نافذ نه وی.

## د مسلمان او ذمی.او د نصرانی، یهودی او د مجوسی د دیتونو مقدار

| |
|---|
| وَدِيَةُ الْمُسْلِمِ وَالذِّمِّيِّ سَوَاءٌ او د مسلمان او د ذمی دیت برابر دې |

**تشریح>** ① د مسلمان او ذمی دیت برابر دې. [2]

**دلیله>** دلیل دې.د ابوداؤد په مراسیلو کښې روایت دې.دِيَةُ كُلِّ ذِي عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ أَلْفُ دِينَارٍ} [3] چه د هر ذمی دیت زر دیناره دې.او هم دا د تیرشوی تصریح مطابق د مسلمان دیت دې.اوهم دا حضراتو شیخینو رحمهماالله فیصله ده.

## اندامونو کښې د دیت حکم

| |
|---|
| (وَفِي النَّفْسِ الدِّيَةُ چه په نفس کښې دیت دې (وَفِي الْمَارِنِ الدِّيَةُ او په مارن (د پوزې په نرم هډوکی) کښې (پوره دیت) دیت دې وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ او په ژبه کښې دیت دې وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ او په ذکر (اندام مخصوصه) کښې دیت دې |

**حل اللغة>** ① **مارن:** د پوزې نرم هډوکې، تندورې ② **اللسان:** ژبه ]

**تشریح>** په متن کښې چې د کومو مسائلو ذکر دې هغه د وضاحت محتاجه نه دی.

**دلیله>** دلیل دا دې چه نبی کریم ﷺ د یمن خلقو ته یو خط لیکلې وو.او حضرت عمرو بن حزم رضی الله عنه ته

[1] من حدیث عمروبن شعیب عن ابیه عن جده رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الدیات باب ۱٦ رقم ٤٥٤٢)۔

[2] **مسلک الشافعي:**۔دریم مذهب د امام شافعی رحمه الله دې د هغوی په نیز که ذمی، نصرانی یا یهودی وی.نو دده دیت څلور زره درهمه دې.اوکه مجوسی وی.نو دده دیت اته سوه درهم دې.
**مسلک مالک:** دریم مذهب د امام مالک رحمه الله دې ددوی په نیز د یهودی اونصرانی دیت شپږزره درهمه دې.

[3] من حدیث سعیدبن المسیب رحمه الله اخرجه ابوداود فی مراسیله (نصب:۵\۱۳٤)۔

نې لیکلې وو.چه هغې کښې د فرائضو، سنتو او د دیتونو تفصیل وو. ([1]) بهرحال مذکوره تولو څیزونو کښې به پوره دیت واجب وی.

**القاعدة >** هرکله د یو انسان په اندام کښې کولو سره ددې اندام کامل منفعت ختم شو.یا چه په دې سره کوم جمال مقصود وو.هغه زائل شو.نو دا داسې ده.لکه د نفس هلاکول.نو دې ته به د کامل هلاکولو درجه ورکولې شی.او پوره دیت به واجبولې شی.د انسان د احترام تقاضه هم دا ده. او ددې دلیل دا دې.چه نبی کریم ﷺ په ژبه او پوزه کښې د پوره دیت فیصله فرمائیلې وه.خیر دا یو کلی (قاعده او) اصول دې.چه په دې باندې ډیر جزئیات متفرع کیږی.فرمائی.

## په وهلو سره عقل ختم شو.نو څه حکم دې ؟

| |
|---|
| وَفِي الْعَقْلِ إِذَا ضَرَبَ رَأْسَهُ فَذَهَبَ عَقْلُهُ الدِّيَةُ)او په عقل کښې کله چه وې وهلو سر دهغه نو دهغه عقل ختم شو.دیت دې |

**تشریح >** که ګزار (وار) ئې اووهلو.او عقل ختم شو.نو پوره دیت به واجب وی.

**دلیله >** ځکه چه د عقل په وجه سړې پخل نفس پخپلو دینی او اخروی ضروریاتو کښې لګوی.نو د معلومولو (او پوهیدو) د جنس منفعت فوت کیدو په وجه به پوره دیت واجب وی.

## د ږیرې یا د سر ویښته خرئیلو سره د دیت حکم

| |
|---|
| وَفِي اللِّحْيَةِ إِذَا حُلِقَتْ او په ګیره کښې کله چه دا اوخرئیلې شی که یوکس د چا د ګیرې یا د سر ویښته اوخرئیل فَلَمْ تَنْبُتْ الدِّيَةُ نو راونه خیژی.دیت واجب دې |

**تشریح >** او بیا ګیره یا د سر ویښته راونه ختل.نو د حنفیانو په نیز به خرایونکی باندې پوره دیت واجب وی. ([2])

**دلیله >** ځکه دې دوارو سره چه کوم جمال (او ښائست) دې.هغه فوت شو.او دا جمال مقصود دې.

## په وروځو کښې د دیت د وجوب مسئله

| |
|---|
| وَفِي شَعْرِ الرَّأْسِ الدِّيَةُ اود سر په ویښتو کښې دیت دې وَفِي الْحَاجِبَيْنِ الدِّيَةُ او په دوارو وروځو کښې پوره دیت دې |

**حل اللغة >** ① **الحاجبين:** تثنیه د حاجب ، وروځه

**تشریح >** که دواړه اوریخې ئې کټ کړلې.نو پوره دیت به واجب وی. ([3])

## په کومو اندامو کټ کولو کښې پوره دیت او په کومو کښې نیم دیت واجب دې ؟

| |
|---|
| وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ او په دوارو سترګو کښې دیت دې وَفِي الْيَدَيْنِ الدِّيَةُ او په دوارو لاسونو کښې دیت دې وَفِي الرِّجْلَيْنِ الدِّيَةُ او په دوارو ښپو کښې دیت دې وَفِي الْأُذُنَيْنِ الدِّيَةُ او په دوارو |

---

[1] اخرجه النسائی فی القود رقم ۴۵۱۳) وابوداود فی مراسیله وابن حبان فی صحیحه والحاکم فی المستدرك (۱\۳۹۷) وعبدالرزاق فی مصنفه (نصب:۵\۱۳۸)_

[2] مسلك الشافعي:- د امام مالك او امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې.چه په دې دوارو صورتونو کښې حکومت عدل واجب دې.دیت واجب نه دې.

[3] مسلك الشافعي:- د امام مالك اواما شافعی رحمهما الله په نیز د ګیرې پشان دلته هم حکومت عدل دې.

غوږونو کښې دیت دی وَفِي الشَّفَتَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو شونډو کښې دیت دی وَفِي الْأُنْثَيَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو خصیو(هګو) کښې دیت دی

تشریح ﴿ مطلب د عبارت او ترجمې نه ښکاره دی.خلاصه د کلام دا چه چرته د دواړو لاسونو یا خپو وغیره کښې کولو سره پوره دیت واجب دی.هلته به د یو په کښې کولو سره نصف دیت واجب وی.

دلیله﴿ د سعید بن مسیب رح په حدیث (۱)او د عمرو بن حزم رضی الله عنه په خط کښې دغه شان منقول دی.(۲)او د اصول خبره دا ده.چه کله جنس منفعت یا د پوره جمال فوت کولو سره پوره دیت واجب شو.نو د نصف په فوت کولو سره به نصف دیت واجب وی.

**د ښځې یا د سړی تینو کښې کولو کښې څه حکم دی ؟**

وَفِي ثَدْيَيِ الْمَرْأَةِ الدِّيَةُ او د ښځې په دواړو تینو کښې پوره دیت دی.

حل اللغة ﴿ ① ثدي: تی،میمی ② المراة: ښځه

تشریح ﴿ د ښځې دواړه تیونه کښې کړې شو.نو د ښځې پوره دیت به واجب وی.

دلیله﴿ ځکه چه جنس منفعت فوت شو.اوکه یو تی کښې کړو.نو د ښځې نیم دیت به واجب وی.د تیر شوی دلیل په وجه.

حکم قطع ثديي الرجل﴿ او که د سړی دواړه تیونه کښې کړې شو.نو په دې کښې صرف حکومت عدل واجب دی.

دلیله﴿ ځکه چه دې کښې نه د جنس منفعت فوت کیدل دی.او نه د جمال (او ښائست) فوت کیدل دی.،، کماهوظاهر،،

وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْاَشْيَاءِ نِصْفُ الدِّيَةِ او د دې ټولو څیزونو په یو کښې به نیم دیت وی

تشریح ﴿ د انسان چې کوم اندامونه یو یو دی لکه ژبه ،عضو تناسل پوزه نو په دې کښې پوره دیت دې اوکه کوم چې دوه دوه دی لکه غوږونه ، سترګې وریځې نوکه د دې یو هلاک کړې شی په دې کښې به نیم دیت وی

**د سترګو په ښړو (ویښتو) کښې د دیت حکم**

وَفِي أَشْفَارِ الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ او د سترګو په ښړو کښې پوره دیت دی.وَفِي إِحْدَاهَا رُبْعُ الدِّيَةِ او په دې کښې په یو کښې څلورمه حصه دیت دی

حل اللغة ﴿ ① الاشفار:د اشفار معنی ده.د ښړو (د سترګو د ویښتو) جرړه، یعنی کوم ځائې چه ویښته راخیژی.هغه ځائې اود اهداب معنی ده.ښاڼه، خو په دې دواړو کښې د مجاورت (ګاونډ توب) تعلق دی.چه دا د مجاز مرسل علاقه ده.نو د یو بل په معنی کښې استعمالولې شی.لکه د راویه معنی اوبن،او په دې د پاسه د اوبو مشک ته ونیلې شی.

تشریح ﴿ د قدوری په متن کښې د لفظ اشفار نه ښاڼه هم مراد اخستې شی.او د ښړو جرړې (ایخونه)

(۱) قال الزيلعي رحمه الله غريب وقدتقدم في كتاب عمروبن حزم رضی الله عنه وفي الشفتين الدية وفي البيضتين الدية (نصب:۵\۱۴۱)_

(۲) تقدم تخريجه)_

هم مراد کیدې شي.بهرحال حکم د دوارو یو دې.د بنړو ویختـه تـول خلور خایه وی.او ددې جرړې هم خلور خایه وی.نو که یو کس پوره بانړه کټ کړل.نو پوره دیت به واجب وی.اوکه د یو خاتې بانړه نې کټ کړل.نو چونکه د ټولو ۱\۴ دې.نو دیت به هم ۱\۴ واجب وی.،، وقس علی هذا،،

**دلیله>** د ټولو بنړو کټ کولو سره به پوره دیت خکه واجب وی.چه جنس منفعت هم فوت شو.او جمال هم فوت شو.د بنړو منفعت دا دې.چه ددې په ذریعه تکلیف ده څیز مثلاً خاورې او ګردونه او خزلې او بوسرې په سترګو کښې نه رسیږی.

**د لاسونو او خپو په ګوتو کښې د دیت حکم**

| |
|---|
| (وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ عُشْرُ الدِّيَةِ)او د دوارو لاسونو او د دوارو خپو په ګوتو کښې، په هره ګوته کښې د دیت عشر دې |

**تشریح >** په یولاس کښې پنځه ګوتې دی.او په دوارو لاسونو کښې لس دی.او دغـه شان په دوارو خپو کښې لس ګوتې دی.او په دوارو لاسونو کښې یا ددې په لسو ګوتو کښې پوره دیت واجبیږی.او هره ګوته د دوارو لاسونو کښې د ټولو ګوتو عشر (لسمه) ده.نو په هره ګوته کښې به د پوره دیت عشر ۱\۱۰ واجب وی.باقی مسئله ښکاره ده.

**دلیله>** د نبی کریم صلی الله علیه وسلم حدیث دې «فِي كُلِّ أُصْبُعٍ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ»[1] هره ګوته کښې لس اوښان دی،،

**د لاسونو او خپو ټولې ګوتې برابر دی**

| |
|---|
| (وَالْأَصَابِعُ كُلُّهَا سَوَاءٌ)او ټولې ګوتې برابر دی |

**تشریح >** که هره یوه ګوته وی.د ټولو حکم برابر دې.

**دلیله>** خکه چه کوم حدیث ددې نه وړاندې د ګوتو په باره کښې ذکر شو.هغه مطلق دې.او د اصل نیولو منفعت کښې ټولې ګوتې برابر دی.نو په دې کښې به کمې زیاتې معتبر نه وی.لکه ښی او ګس (چپ) لاس کښې چه هیڅ شمارلې شوی نه دی.اوکوم حال چه د لاسونو د ګوتو دې.هم دا حال د خپو دګوتو دې.چه ددې ټولو په کټ کولو سره د تللو منفعت فوت کیږی.نو دیت به واجب وی.بیا چه څومره ګوتې کټ کړې شوی وی.نو مذکوره حساب به دلته هم جاری کیږی.

**د ګوتو په بندونو کښې کټ کولو کښې د دیت حکم**

| |
|---|
| (وَفِي كُلِّ أُصْبُعٍ فِيهَا ثَلَاثَةُ مَفَاصِلَ)او په هر هغه ګوته کښې چه هغې کښې درې جوړونه وی (فَفِي أَحَدِهَا ثُلُثُ دِيَةِ الْأُصْبُعِ)نو په یو جوړ کښې د ګوتې دیت ثلث دې (وَمَا فِيهَا مِفْصَلَانِ)او هغه ګوته کومه کښې چه دوه جوړونه وی (فَفِي أَحَدِهِمَا نِصْفُ دِيَةِ الْأُصْبُعِ)نو په یو جوړ کښې به د ګوتې دیت نصف وی |

**حل اللغة >** ① **الاصابع**: جمع د اصبعة، ګوته ② **مفاصل**: جمع د مفصل،جوړ]

**تشریح >** په ګوتو کښې درې جوړونه (بندونه) وی.او په متې ګوته کښې دوه بندونه دی.نو د کومې ګوتې بندونه چه درې وی.که د هغې یو بند کټ کړې شی.نو هغې کښې به د ګوتې د دیت ثلث واجب

[1] من حدیث ابی موسی رضی الله عنه اخرجه أبوداود فی الدیات باب ۱۸ رقم ٤٥٥٦ والنسائی فی القسامة باب ٤٥ رقم ٤٥٠٣)

وي.او په کومه ګوته کښې چه دوه بندونه وي.که د هغې يو بند کټ کړې شي.نو په دې کښې به د ګوتې د ديت نصف واجب وي. لکه د لاس ديت په ګوتو باندې تقسيميږي.،، کما مر،، دغه شان به د ګوتو ديت په بندونو باندې تقسيميږي.

**په غاښ کښې د ديت حکم؟**

| |
|---|
| وَفِي كُلِّ سِنٍّ خُمُسٌ مِنَ الْإِبِلِ)او په هر غاښ کښې پنځه اوښان دي |

**تشريح** > که يوکس د يوسړي غاښ مات کړو.نو په هر غاښ کښې به پنځه اوښان واجب وي.

**دليله** > په حديث کښې دي وَفِي كُلِّ سِنٍّ خُمُسٌ مِنَ الْإِبِلِ } (۱) او په هر غاښ کښې پنځه اوښان دي

| |
|---|
| وَالْأَسْنَانُ وَالْأَضْرَاسُ كُلُّهَا سَوَاءٌ،او غاښ او جامه (د جامې غاښ) برابر دي |

**تشريح** > بيا غاښونه ټول برابر دي.که انياب وي.او که اضرس يا طواحن وي.او که نواجذ وي.د ټولو حکم يو دې.

**دليله** > ځکه چه د ابو موسى اشعري رضـ په حديث کښې اطلاق دې.او حديث دا دې. (الأسنان كلها سواء) نو صفا معلومه شوه.چه ټول غاښونه برابر دي.بيا په اصل منفعت کښې ټول برابر دي.نو لکه ځنګه چه په لاسونو او ګوتو کښې يو بل ته فضيلت ورنکړې شو.دغه شان به په غاښونو کښې هم تفاضل معتبر نه وي.خو دا ټول تفصيل هغه وخت دې.کله چه دا ټول امور خطاء واقع شي.ګنې د عمد په صورت کښې به قصاص واجب وي.

**د اندام منفعت ضائع کولو سره د ديت حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ ضَرَبَ عُضْوًا چا چه د يوکس اندام اووهلو فَأَذْهَبَ مَنْفَعَتَهُ.نو د هغې منفعت ئې ختم کړو فَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په دې کښې به پوره ديت واجب وي كَالْيَدِ إِذَا شُلَّتْ لکه لاس چه شل شي و وَالْعَيْنِ او لکه سترګه إِذَا ذَهَبَ ضَوْءُهَا کله چه ددې رنړائي (بينائي) ختمه شي. |

**حل اللغة** > ① **منفعة:** فائده

**تشريح** > يوکس بل سړې په اندام باندې اووهلو.او ددې منفعت ئې ختم کړو.که ددې اندام صورت پخپل حال قائم وي.نو بيا به هم پوره ديت واجب وي.مثلاً په لاس ئې اووهلو.او لاس موجود دې.خو دا شل شو.يا ئې په سترګه اووهلو.اوسترګه موجود ده.خو بينائي (او نظر) ئې ختم شو.نو پوره ديت به واجب وي.

**دليله** > ځکه چه د پوره ديت وجوب د جنس منفعت فوت کيدو په وجه کيږي.د صورت د زوال په وجه نه کيږي.اودلته جنس منفعت فوت شوې دې.

**د سر او مخ د ښږاو زخمونو بيان**

| |
|---|
| الشِّجَاجُ عَشَرَةٌ:چه شجاج لس دي الْحَارِصَةُ حارصه، وَالدَّامِعَةُ او دامعه وَالدَّامِيَةُ او داميه، وَالْبَاضِعَةُ او |

۱) قال الزيلعي رحمه الله ليس هذا في حديث أبي موسى رضي الله عنه نقل عن ابن عباس رضي الله عنهما وفيه ... أن النبي قضى في السن خمس من الإبل أخرجه ابن ماجه في الديات باب ۱۷ وأحمد في المسند(۱\۲۲۷) نصب:۵\۱۴۴)ــ

بضعه، والملاحمة او متلاحمه، والسمحاق او اسمحاق، وَالْمُوضِحَةُ او موضحه (وَالْهَاشِمَةُ) او هاشمه وَالْمُنَقِّلَةُ.اومنقله (وَالْآمَّةُ) او آمه،

**تشریح** ﴿ **التعریفات** ﴾ ① **شجة** کوم زخم چه په سر او مخ باندې وی.هغې ته شجه وائی.ددې جمع شجاج دې.

② **جراحة:** او کوم زخم چه د سر او مخ نه علاوه وی.هغې ته جراحت وائی.د نفس نه د کم په اقسامو کښې یو قسم شجاج هم دې.او د شجاتو (د سر د زخمونو) مسئلې هم ډیرې دی.په دې وجه دا په جدا فصل کښې بیان کړې شوی دی.

③ **حارصة** کښې صرف په څرمنه کښې خراش وی. او بس .

④ **دامعة:** کښې وینه ښکاری.خو بهیږی نه.لکه څنګه چه په سترګو کښې هر وخت اوښکې ښکاری. خو بهیږی نه. ⑤ **دامیة:** چه په دې کښې وینه اوبهیږی.

⑥ **باضعة:** چه په دې کښې غوښه کټ شی.مرغینانی رحمه الله تعریف کړې دې.چه په دې کښې څرمنه کټ شی.خو دا تعریف مشکوك دې.څکه چه دې لسو واړو کښې یو زخم هم داسې نشته.چه په دې کښې څرمنه نه کټ کیږی.بلکه څرمنه خو په ټولو کښې کټ کیږی.

⑦ **متلاحمة:** مرغینانی رحمه الله ددې تفسیر کړې دې.چه په دې کښې غوښه کټ شی.یعنی په غوښه کښې وربنخ شی.او په بدائع وغیره کښې ددې تفسیر داسې شوې دې.چه په دې کښې د باضعه نه زیات غوښه کښې وربنخ شی.

⑧ **اسمحاق:** د غوښې او د سر د هډوکی په منځ کښې یوه نرئ شان پرده وی.کله چه زخم دې پردې ته اورسیږی.نو دې ته اسمحاق وائی.

⑨ **موضحة:** چه په دې کښې هډوکې کلاو او ښکاره شی.

⑩ **هاشمة:** چه په دې کښې هډوکې مات شی.

⑪ **منقلة:** چه په دې کښې هډوکې مات شی.او خپل ځائې نه بې ځایه شی.

⑫ **امة:** چه زخم ام الراس ته اورسیږی.او أم الرس هغه دې.کوم ځائې چه دماغ وی.

د دې ځائې نه د سر او د مخ د شپږو زخمونو بیان شروع شو.اود لغاتو حل نې اوشو.

**که موضحه عمدا وی نو په دې کښې قصاص دې**

فَفِي الْمُوضِحَةِ الْقِصَاصُ نو په موضحه کښې قصاص دې ان كَانَتْ عَمْدًا که دا عمداً وی

**تشریح** ﴾ د لسو اقسامو د بیانولو نه پس فرمائی.چه په دې کښې اووم قسم موضحه دې.که دا زخم عمداً وی.نو په دې کښې قصاص واجب دې.

**دلائله** ﴾ ① د بیهقی حدیث دې.چه په دې کښې موضحه کښې قصاص بیان کړې شوې دې.

② قصاص مساوات غواړی.او په موضحه کښې مساوات ممکن دې.چونکه دلته منتها (آخری حد) هډوکې موجود دې.نو په قصاص کښې هډوکی پورې کټ کولې کیدې شی.

**د موضحه نه علاوه د سر او مخ په باقی زخمونو کښې قصاص نشته**

وَلَا قِصَاصَ فِي بَقِيَّةِ الشِّجَاجِ) اوپه نورو زخمونوکښې قصاص نشته.

**تشریح** ﴾ د موضحه نه علاوه په باقی نهو قسمونو کښې قصاص نشته.بلکه حکومت عدل دې.

**دلیله** > ځکه چه قصاص مساوات غواړي.اودلته مساوات ممکن نه دي.ځکه چه په دې کښې هيڅ يو کښې هم داسې حد او منتها نشته.چه هلته کښې رسيدو سره چاړه اودريږي. دا دليل خو د ټولو دپاره عام دې.او د موضحه نه پس چه د کومو دريو ذکر دې.يعنى هاشمه، منقله، آمه، په دې کښې د قصاص نه کيدو وجه دا هم ده.چه په دې ټولو کښې هډوکې ماتيږي.او وراندې مسئله تيره شوې ده.چه په هډوکو کښې قصاص نشته. خلاصه د کلام دا چه د امام ابوحنيفه رحمه الله د روايت مطابق د موضحه نه پورته کوم شپږ ذکر دي.نه هغې کښې قصاص شته.او نه په هغه دريو کښې کوم چه د موضحه نه روستو ذکر دي.

**د موضحه نه په کم زخم کښې څه حکم دې ؟**

| |
|---|
| وَفِيمَا دُونَ الْمُوضِحَةِ فَفِيهِ حُكُومَةُ عَدْلٍ )او د موضحه نه په کم کښې حکومت عدل دې |

**تشريح** > امام قدوري رحمه الله مخکښې فرمائيلي وو.چه د موضحه نه په علاوه کښې قصاص واجب نه دې.بلکه په دې کښې حکومت عدل واجب دې.يعنى نه ديت شته.او نه قصاص واجب دې.د عدم قصاص وجه خو ذکر شوې ده.

**دليله** > او د عدم ديت وجه دا ده.چه د شارع د طرفه تقدير نشته.او پخپل قياس سره د ارش (تاوان) مقدار نشى متعين کيدې.او دا هم نشى کيدې.چه هيڅ واجب نه وي.او دا به عبث (او فضول) ګرځولې شي.ځکه چه دا تکريم د انسان نه خلاف دې.نو هرکله چه هيڅ خلاصې ملاو نشو.نو مونږ مجبوراً حکومت عدل اختيار کړې دې.او دا د حضرت ابراهيم نخعي،او عمربن عبدالعزيز رحمهما الله نه منقول دې.

**که موضحه خطاء وي نو ديت واجب دې**

| |
|---|
| وَفِي الْمُوضِحَةِ إِنْ كَانَتْ خَطَأً او په موضحه کښې که دا خطاء وي نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ،د ديت د عشر نصف (يعنى شلمه) ده وَفِي الْهَاشِمَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ، اوپه هاشمه کښې عشر (لسمه) ده وَفِي الْمُنَقِّلَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ وَنِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ،او په منقله کښې عشر او د ديت نصف عشر دې وَفِي الْآمَّةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ، او په آمه کښې دريمه حصه ديت دې وَفِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ اوپه جائفه کښې دريمه حصه ديت دې فَإِنْ نَفَذَتْ نو که جائفه نه ورتير شو ،فَهِيَ جَائِفَتَانِ فَفِيهِمَا ثُلُثَا الدِّيَةِ نو دا دوه جائفې شوې.نو په دې دواړو کښې به د ديت دوه ثلثه واجب وي. |

**تشريح** > وړاندې د موضحه حکم قصاص بيان شوې دې.دا هغه وخت دې.کله چه دا زخم عمداً لګولې شوې وي.او که خطاء وي.نو په دې کښې به ديت واجب وي.چه ددې مقدار دلته کښې بيان شوې دې.او ددې نه علاوه نور هغه زخمونه په کومو کښې چه ديت واجب دې.هلته د خطاء قيد ملحوظ نه دې.بلکه په عمداً او خطاء دواړو صورتونو کښې هم دا حکم دې.اوس د ديت تفصيل بيانوي:

**تفصيل الدية** > ① په موضحه کښې به د ديت شلمه حصه واجب وي.يعنى پنځه اوښان،

② هاشمه کښې به د ديت عشر واجب وي.يعنى لس اوښان،

③ په منقله کښې به عشر ديت او نصف عشر واجب وي.يعنى پنځلس اوښان،

④ په آمه کښې به دريمه حصه ديت واجب وي.

⑤ په جائفه کښې به هم دريمه حصه ديت واجب وي.

اوجائفه هغه زخم دې.کوم چه جوف (منځ) پورې اورسيږي.که په سينه کښې وي.که په خيټه کښې وي.او که په شا وغيره کښې وي. باقى پاتې شوه دا خبره چه دلته خو د شجاج ذکر شروع دې.نو د

جائفه ذکر څنګه راغلی؟

ددې په جواب کښې صاحب د نهایه رحمه الله فرمائیلی دی.چه دا ذکر دلته کښې اتفاقاً راغلې دې.ګنې شجاج صرف هغه زخم ته وائي.کوم چه په سر او مخ کښې وی.بیا نې اوفرمائیل.چه په جائفه کښې به دریمه حصه دیت هغه وخت واجب وی.کله چه دا زخم بل طرف ته وتلې نه وی.که بل طرف ته وتلې وی.نو بیا به د دیت درې ثلثه واجب وی.

**دلیله** امام قدوری رحمه الله چه کومې مسئلې بیان کړې وې.دا د هغه ټولو مسئلو دلیل دې.ددې مسئلو درې اجزاء دی.نو د دلیل هم درې اجزاء دی.

**اجزاء الدلیل** ① په موضحه کښې پنځه اوښان دی.او هاشمه کښې لس دی. او منقله کښې پنځلس دی.او آمه کښې دریمه حصه دیت دې.نبی کریم صلی الله علیه وسلم چې عمروبن حزم رضی الله عنه ته کوم خط لیکلی وو په هغې کښې وو. وَفِي الْمُوضِحَةِ خَمْسٌ مِنْ الْإِبِلِ وَفِي الْهَاشِمَةِ عَشْرٌ،وَفِي الْمُنَقِّلَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ، وَفِي الْآمَّةِ} ()او په موضحه کښې پنځه اوښان دی‌اوپه هاشمه کښې لس اوښان دی‌اوپه منقله کښې پنځلس د دې په دلیل کښې د عمرو بن حزم رضی الله عنه د خط حدیث دې.

② په جائفه کښې دوه ثلثه دیت دې.څکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی {فِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ}چه په جائفه کښې دریمه حصه دیت دې

③ که جائفه د یو طرف نه بل طرف ته اوځی.ددې دپاره دلیل د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه فیصله ده. هغوی هم دغه شان فیصله کړې وه (٢) دغه شان دویم عقلی دلیل دا دې .چه هرکله جائفه بل طرف ته اووتلو.نو اوس دا یوه جائفه پاتې نشوه.بلکه دوه شوې.او په هره جائفه کښې دریمه حصه دیت واجبیږی .نو په دوو کښې به ثلث واجبیږی.

### د لاس ګوتو کټ کولو کښې د دیت حکم

| |
|---|
| وَفِي أَصَابِعِ الْيَدِ نِصْفُ الدِّيَةِ)او د یو لاس په ټولو ګوتو کښې نصف دیت دې |

**تشریح** دا مسئله وړاندې تیره شوې ده.چه په یو لاس کښې نیم دیت واجبیږی.او که لاس کټ نکړی.بلکه د یو لاس پنځه واړه ګوتې کټ کړی.نو اوس هم نیم دیت واجبیږی.او په هره ګوته کښې لس اوښان واجبیږی.نو په دوو کښې به شل او په دریو کښې دیرش او په څلورو کښې څلویښت او په پنځو کښې به پنځوس اوښان واجب وی.او هم دا پنځوس اوښان نیم دیت دې.،،

**دلیله** د پنځو واړو ګوتو د کټ کولو په وجه د نیولو د منفعت ختمیدو، او دجنس منفعت فوت کیدو په وجه دیت واجبیږی.

| |
|---|
| فَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ الْكَفِّ نو که ټولې ګوتې نې سره د تهلی کټ کړلې فَفِيهِ أَيْضًا نِصْفُ الدِّيَةِ نو په دې کښې نیم دیت دې |

**حل اللغة** ① **الكف**: تلې،ورغوې]

**تشریح** او که پنځه واړه ګوتې نې سره د تهلی کټ کړلې.نو اوس به هم دا نیم دیت واجب وی.

---

[1]) تقدم تخريجه في كتاب عمروبن حزم رضی الله عنه۔

[2]) اخرجه عبدالرزاق في مصنفه (نصب:١٤٨\٥)۔

دلائله> ① څکه حدیث کښې دی.چه په دوارو لاسونوکښې پوره دیت واجب دې.او په یو لاس کښې نیم دیت دی.او دا یو لاس کټ کړې شوې دې.نو نیم دیت به واجب وی. (۱)

② چونکه سرې د ګوتو په وجه نیول کوی.او نیول د لاس اصل منفعت دې.او تهلې په دې کښې د ګوتو تابع دې.په دې وجه د تابع په وجه به بل هیڅ نه واجبیږی.

**د لاس څوتي د مروند سره په کټ کولو کښې څه سزا ده؟**

| |
|---|
| وَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ نِصْفِ السَّاعِدِ او که ګوتې ئې سره د نیم مروند کټ کړلې فَفِي الْكَفِّ نِصْفُ الدِّيَةِ نو په ټول تلی کښې نیم دیت دې وَفِي الزِّيَادَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ.(۲) او په زیات کښې(مروند)کښې حکومت عدل دې |

**حل اللغة** > ① **الساعد**:مروند]

**تشریح** > یوکس د زیددیولاس پنځه واړه ګوتې کټ کړلې.او تهلې ئې هم کټ کړو.او نیم مروند ئې هم کټ کړو.نو په دې کښې د طرفینورحمهماالله مذهب دا دې.چه د ګوتو او تهلې په وجه به نیم دیت واجبولې شي.او کوم نصف مروند ئې چه کټ کړې دې.هغې کښې حکومت عدل واجب دې. اودامام ابویوسفرحمه‌الله نه هم په یو روایت کښې دا منقول دی

**دلیلهما**> د لاس کار نیول دی.او سرې په ګوتو اوتهلې سره نیول کوی.په مروند او مټ سره نیول نه کوی.نو مټ وغیره د ضمان په حق کښې د ګوتو تابع هم نشي کیدې.څکه که تاسو ئې تابع جوړ کړئ.نو د ګوتو تابع به ئې جوړوئ.یا د تهلې،او دواړه باطل دی.د ګوتو خو څکه نشي تابع کیدې.چه په منځ کښې کامل اندام تهلې موجود دې.او که تاسو ئې د تهلې تابع کوئ.نو دا هم باطل دې. څکه چه تهلې پخپله د بل تابع دې.او د تابع، تابع نشي کیدې.نومعلومه شوه.چه په زیاتی کښې دحکومت عدل نه علاوه بله لاره نشته.

**مسلک ابي یوسف**> دامام ابویوسفرحمه‌الله نه دویم روایت دا منقول دې چه بس نیم دیت واجب دې. باقی هیڅ نشته.

**دلیله**> دلیل دا بیانوی چه اصل ګوتې دی.او تهلې باقی مقدار تر اوګو پورې دا ټول ددې تابع دې.څکه لاس وانی.د ګوتو نه واخله تر اوګو پورې ته، او خپه د خپو د ګوتو نه واخله تر د پندئ پورې ته وانی. بهرحال مروند(مټ) وغیره ټول تابع دی.دغه شان پندئ وغیره ټول تابع دی.او د تابع دپاره هیڅ نه واجبیږی.نو په مذکوره صورت کښې به مروند دپاره هیڅ واجب نه وی.

| |
|---|
| وَفِي الْأُصْبُعِ الزَّائِدَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ)او په زیاتی ګوته کښې حکومت عدل دې |

**تشریح** > البته دا هم دده د لاس جزء دې.نو د انسانی عزت او شرافت په لحاظ سره په دې کښې حکومت عدل واجب دې.دغه شان که د زید دواړه ګانبونه راختلې وی.چه دې ،، داره ور،،ونیلې شي.او خالد دده زیاتی ګانبن مات کړو.نو ددې هم دغه حکم دې.چه حکومت عدل دې.

**دلیله**> د سړی د شرافت په وجه، څکه چه دا دده دلاس جزء دې خو په دې کښې نه منفعت شته او نه ښائست شته

---

(۱) تقدم فی الأحادیث المختلفةذکرها۔

(۲) هومذاالول الطرفین رحمهما الله کذا فی الدرالمختار(۵\۴۱۳) وملتقی (۴\۳۵۱) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۴۹)-

د بچي د سترګې، ذکر او ژبې کټ کولو سزا

وَفِي عَيْنِ الصَّبِيِّ او د بچي په سترګه کښې وَلِسَانِهِ او دده په ژبه کښې وَذَكَرِهِ او دده په ذکر کښې إِذَا لَمْ يُعْلَمْ صِحَّتُهُ کله چه په دې کښې د هريو صحت معلوم نه وی حُكُومَةُ عَدْلٍ نو حکومت عدل دې.

**تشريح** کله چه د بچي په باره کښې معلومه ده.چه دې ګوری.او کلام (خبری) کوی.او دده ذکر حرکت کوی.نو دا ددې اندامونو د صحت علامت دې.نو په داسې صورت کښې به بالاتفاق کامل ديت واجب وی.خو که اوس ددې صحت او تندرستی معلومه شوې نه وه.او چا دا کټ کړل. نوزمونږ په نيز په دې کښې به ديت واجب نه وی.بلکه حکومت عدل دې. (۱)

**دليله** دليل دا دې چه دې اندامونو سره مقصود منفعت دې نو ترکومه پورې چه ددې اندامونو صحت معلوم نشی نو د شک په وجه به کامل ارش واجب نه وی او د ظاهرالروايه دپاره د حجت جوړيدو صلاحيت نه لری

په وهلو سره د عقل ختميدو، يا د ويښتو غورزيدو حکم

وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا مُوضِحَةً چا چه د يوکس سر زخمی کړو (فَذَهَبَ عَقْلُهُ نو دده عقل ختم شو أَوْشَعْرُ رَأْسِهِ يا دده د سر ايخته (ختم شو). دَخَلَ أَرْشُ الْمُوضِحَةِ فِي الدِّيَةِ نو د موضحه ارش (تاوان) به په ديت کښې داخل وی

**تشريح** دلته امام قدوری رحمه الله په حقيقت کښې دا بيانول غواړی.چه زيد يو جنايت اوکړو.چه ددې وقوع په يو اندام باندې اوشو.خو دې دوه څيزونه ضائع کړل.او په دې کښې د يو ديت کم دې.او د دويم زيات دې.نو دلته به اقل په اکثر کښې داخليږی.که دا جنايت عمداً وی.او که خطاءً وی.او که جنايت جدا جدا په دواړو اندامونو باندې واقع شوې وی.نو تداخل به نه کيږی.بلکه د هر يو ديت به جدا جدا واجب وی.که جنايت عمداً وی.اوکه خطاء وی.دا تفصيل د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې.خکه چه ددوی په نيز داسې صورت کښې قصاص ساقط دې.

**مسلک الصاحبين** او د صاحبينو رحمهما الله په نيز که رومبې عمداً وی.او قصاص وصولول ممکن وی.نو قصاص به اخستلې شی.ګنی بيا ددوی هم هغه مسلك دې.کوم مسلك چه دامام صاحب رحمه الله دې.

**توضيح العبارة** وړاندې تير شوی دی.چه د پوره سر ويښته خرئيلو کښې چه کله دا دوباره راو نه خيژی.پوره ديت دې. اويا ګيره کښې پوره ديت دې. او که راوخيژی.نو هيڅ واجب نه دی.خو تعزير دې.او که د سر بعض ايخته ئې ختم کړل.نو په دې کښې حکومت عدل واجب دې.نو که ده سر زخمی کړو.چه په دې سره موضحه زخم جوړ شو.او (بعض) ايخته هم ختم شو.نو اوس به کتلې شی.چه د موضحه ديت زيات دې.او که د ويښتو حکومت عدل زيات دې. نوکوم چه زيات وی.هم هغه به واجبولې شی.او قليل به په کثير کښې داخلولې شی.نو که حکومت عدل زيات وی.نو هم دا به واجب وی.او د موضحه ديت به په حکومت عدل کښې داخل منلې شی.نو هم دا يو خانې دې.چه دلته کښې نې د موضحه ديت په کثير کښې داخل کړې دې.او دويم خانې دا دې.چه موضحه زخم جوړ کړې شوې وی.خو زخمی کړې شوې ددې په وجه مړ شو.نو دلته به کامل ديت واجب وی.اود موضحه ديت به په

---

۱) **مسلک الشافعي**:-په دې صورت کښې امام شافعي رحمه الله زمونږ سره اختلاف کړې دې هغوی فرمائی چه غالب هم دا ده.چه دا اندامونه صحيح وی.نو هم په دې بنياد لکه څنګه چه د پوزې په نرمه حصه کښې او په غوږ کښې ديت واجبيږی.دغه شان به په مذکوره اندامونو کښې هم ديت واجب وی.

دي.او په دويم کښې ددوی په نيز تفصيل دي.يعنی په ذکر شوو دريو قوتونو کښې يو کښې يعنی نظر کښې دوي د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي.او په اوريدو او خبرو کولو کښې د تداخل قائل دی.اوس د دوارو روايتونو دليل اوګورئ.

**دليل عدم التداخل>** په دې دريو وارو کښې هر يو جرم د نفس نه په کم کښې جرم کول دی.او په دې کښې دهر يو منفعت هم دغه اندام سره خاص دې.يعنی خبرې کول صرف د ژبې کاردې.اواوريدل د غوږونو،او کتل د سترګو کار دې.نو دا د مختلفو اندامونو مشابه شو.او په مختلفو اندامونو کښې تداخل نه کيږي.نو دلته به هم تداخل نه کيږي.بلکه ددې د ختمولو ديت ورکول به واجب وي.او د موضحه ديت به جدا ورکول لازمی وی.او د عقل په صورت کښې د تداخل قول ځکه اختيار کړې شوې وو.چه د عقل منفعت پوره بدن طرف ته راجع دې.او دلته کښې داسې نه ده.بلکه هر قوت پخپل مخصوص دائره کښې کار کوی.

**دليل التداخل>** د دويم روايت دليل دا دې.چه قوت د اوريدو، او د خبرو کولو، باطنی او پټ څيزونه دی.لکه څنګه چه عقل باطنی (او پټ) څيز دې.نو دا دواړه په عقل باندې قياس کولو سره هم هغه حکم ورکړې شو.کوم چه د عقل په صورت کښې دې.او نظر يو ښکاره قوت دې.نو دا په عقل باندې قياس کړې شو.او د عدم تداخل قول اختيار کړې شو.

**يوې ګوتې کټ کولو سره د دويمې ګوتې شل کيدو حکم**

وَإِنْ قَطَعَ أُصْبُعَ رَجُلٍ فَشُلَّتْ أُخْرَىٰ إِلَىٰ جَنْبِهَا او که يوه ګوته ئې کټ کړله.نو ددې په اړخ کښې بله ګوته شله شوه **فَفِيهِمَا الْأَرْشُ** نو په دې کښې ديت دې **وَلَا قِصَاصَ فِيهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ** رحمه الله نو دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې دوارو کښې يو کښې هم قصاص نشته

**تشريح>** يوه ګوته ئې کټ کړله.په اړخ کښې ورسره دويمه ګوته هم شله شوه.نو د امام صاحب رحمه الله په نيز به قصاص نه وی.او د ذکر شوو څلورو حضراتو په نيز به رومبی کښې قصاص او دويم کښې ديت واجب وی. دلته هم د فريقينو دليلونه هم هغه دی.کوم چه په پورتنۍ مسئله کښې وو.

د يو غاښ وتلو په ځائې بل غاښ راوتلو نو څه حکم دې ؟

وَمَنْ قَطَعَ سِنَّ رَجُلٍ اوکه د يو سړی غاښ ئې اوښکلو. **فَنَبَتَتْ مَكَانَهَا أُخْرَىٰ** نو ددې په ځائې بل راوختلو **سَقَطَ الْأَرْشُ** نوديت ساقطيږي.

**تشريح>** اوکه د غټ سړی غاښ ئې مات کړې دې.او ددې په ځائې دويم غاښ راختلې وی.نو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائی.چه اوس ديت واجب نه دې. (۱)

**دليله>** دليل دا دې چه معناً جنايت معدوم اوختم شو نو دا داسې شو لکه چه که يوکس د ماشوم غاښ مات کړو.او دويم غاښ راوختلو.نو چونکه په دې نه ښائست ختم شو.او نه منفعت فوت شو.په دې وجه به په دې کښې بالاجماع ديت واجب نه وی.نودغه شان به دلته هم ديت ساقطيږی ۞

**مسلک الصاحبين>** د صاحبينو رحمهما الله په نيز به کامل ديت واجب وی.

**دليلهما>** ځکه چه د مجرم د طرفه خو کامل جنايت دې.او په دې عمر کښې غاښ راختل، دا د الله

---

۱) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى (۳۵٤\٤) وردالمختار(٤١٥\٥) نقلاً عن القول الراجح (۳۵۲\۲)-

تعالی نوي نعمت دي.نو په مجرم به کامل دیت واجب وی.یعنی پنځه اوښان ،،کما مر،،.

**د شجه زخم تیك کیدو او نښان ختمیدو نه پس څه حکم دی ؟**

وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا او چا چه د یوسړی سر زخمی کړو فَالْتَحَمَتْ نو زخم ډك (جوړ) شو وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ او ددې هیڅ نښان باقی پاتې نشو وَنَبَتَ الشَّعْرُ او ایخته وینختـل سَقَطَ الْأَرْشُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله[1] نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دیت ساقط شو

**تشریح** > زید د خالد په سر کښې زخم اولګولو.او هغه بالکل تیك شو.تردې چه د هغې هیڅ نښان هم باقی پاتې نشو.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به اوس ددې تاوان واجب نه وی.

**دلیله** > ځکه چه د کوم عیب په وجه مثل واجبیږی.هغه عیب ختم شو.

وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: رحمه الله او امام ابویوسف رحمه الله فرمائی يَجِبُ عَلَيْهِ أَرْشُ الْأَلَمِ چه په ده باندې د درد (تکلیف) تاوان واجب دې

**تشریح** > **مسلك ابي يوسف** > د امام ابویوسف رحمه الله فرمان دا دې.چه په ذکر شوی صورت کښې حکومت عدل واجب دې.

**دلیله** > ځکه چه ددې زخم او نښان او عیب اګرچه ختم شو.خو د هغه تکلیف په وجه کوم چه هغه ته رسیدلې وو.او دده کوم صحت چه په دې سره متاثر شوې وو.د هغې هیڅ بدل ملاو نشو.نو د هغې بدل حکومت عدل دې.

**د امام محمد رحمه الله مسلك**

وَقَالَ مُحَمَّدٌ: امام محمد رحمه الله اوفرمائیل عَلَيْهِ أُجْرَةُ الطَّبِيبِ،چه په ده (ضارب) باندې د ډاکټر اجرت دې.

**تشریح** > **مسلك محمد** > دا د امام محمد رحمه الله مسلك دې.چه په مذکوره صورت کښې به په ضارب باندې د ډاکټر فیس او د دوائی قیمت واجب وی.

**دلیله** > ځکه چه دا ټول تاوان مضروب ته د ضارب د فعل په وجه ور رسیدلې دې.نو داسې شوه.ګویا چه دومره مال د مضروب نه ضارب اخستې دې.چه ددې واپس اخستل په ضارب باندې ضروری ده.

**ملحوظة** > خو امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه په مذکوره صورت کښې درد اوتکلیف برداشت کول د منافعو د قبیل څخه دی.او منافع څه په ده متقوم نه دی.او په منافعو کښې تقوم اجارې سره حاصلیږی.یا په شبه عقد سره، لکه څنګه چه په اجاره فاسده او مضاربت فاسده کښې دی.او دلته نه څه عقد شته.او نه شبه عقد دی.نو په ضارب او جنایت کونکی به دلته هیڅ تاوان هم واجب نه وی.

**د زخم لګولو په صورت کښې د فی الحال قصاص اخستلو حکم**

وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا جِرَاحَةً او چا چه یو سړی ته زخم اولګولو لَمْ يُقْتَصَّ مِنْهُ نو فی الحال به دده نه قصاص نشی اخستلې حَتَّى يَبْرَأَ تردې چه هغه تیك شی.

**تشریح** > یو سړی ته چه کوم زخم لګولې شوې دې.کیدې شی.چه دا تیك شی.او کیدې شی.چه حالت

---

[1] القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ردالمحتار(٥\٤١٥) والهندية (٦\٣٠) والدرالمنتقى (٤\٣٥٦) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٥٤)-

مرګ ته اورسيږي.په دې وجه به في الحال قصاص نشي اخستلې.بلکه کله چه دې تيك شي.نو هله به قصاص اخستلې شي. (۱)

**دلائله** ① دليل دا حديث دې.﴿يُسْتَأْنَى فِي الْجِرَاحَاتِ سَنَةً﴾ (۲) چه په زخمونو کښې به د يو کال مهلت ورکولې شي چه په زخمونو کښې به يو کال مهلت ورکولې شي.

② د زخم حال به اوس نه معلوميږي.ځکه ممکن ده.چه دا خور شي.او قتل پورې اورسيږي.نو په زخمونو کښې دحال اعتبار نه کيږي.بلکه د مال اعتبار کيږي.په دې وجه تيك کيدو پورې به انتظار کولې شي.چه خبره په مسند (او د تحقيق په) طريقه باندې صفا شي.او ښکاره شي.

**د خطاء لاس کټ کولو نه پس د قتلولو مسئله**

| |
|---|
| وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ خَطَأًاو چا چه کټ کړو.په خطاء سره د يوسړي لاس ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً قَبْلَ الْبُرْءِ بيا ئې هغه د تيك کيدو نه مخکښې په خطاء سره قتل کړو (فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ نو په ده باندې ديت واجب دې وَسَقَطَ أَرْشُ الْيَدِ.او د لاس ديت به ساقط وي. |

**تشريح** > زيدد عمرو لاس خطاء سره کټ کړو.هغه اوس ښه شوې نه وو.چه بيا ئې خطاء سره قتل کړو.نو اوس به د لاس ديت ساقطيږي.او د نفس ديت يعنې سل اوښان به واجب وي.

**دليله** > دليل دا دې چه دواړه جنايتونه د خطاء کيدو په وجه جنس واحد دې.او د دواړو موجب هم يو دې.يعنې ديت دې.او ديت په حقيقت کښې د بدن د ټولو اجزاو عوض دې.نو د لاس عوض هم دې.په دې وجه به د لاس عوض دوباره (جدا) نشي اخستلې. بلکه تداخل به کولې شي.او داسې به شمارلې شي.ګويا چه زيد عمرو لره د شروع نه قتل کړې دې.او په خطاء سره د قتلولو سزا ديت دې.چه دا واجب شوې دې.

| |
|---|
| وَإِنْ بَرَأَ ثُمَّ قَتَلَهُ اوکه هغه روغ شو او بيا ئې قتل کړو فَعَلَيْهِ دِيَتَانِ نو په ده باندې دوه ديتونه دی دِيَةُ نَفْسٍ وَدِيَةُ الْيَدِ يو ديت د نفس او بل ديت د لاس |

**تشريح** > په متن کښې وائی که د لاس کټ کولو نه پس مقطوع اليد روغ شو او جانی بيا په هغه جنايت اوکړو او هغه ئې قتل کړو نوپه ده به دوه ديتونه وی يو ديت د نفس چې سل اوښان دی او بل ديت د لاس چې پنځوس اوښان دی.

| |
|---|
| وَكُلُّ عَمْدٍ سَقَطَ فِيهِ الْقِصَاصُ بِشُبْهَةٍ او هر قتل عمد په کوم کښې چه د شبهې په وجه قصاص ساقط شی (فَالدِّيَةُ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو ديت به د قاتل په مال کښې وی وَكُلُّ أَرْشٍ وَجَبَ بِالصُّلْحِ والاقرار او هر هغه ديت کوم چه د صلح يا د اقرار په وجه واجب شی فَهُوَ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو هغه د قاتل په مال کښې دې |

**تشريح** > ددې ځائې نه يو اصول پيش کوی.چه چرته په قتل عمد کښې د شبهې په وجه قصاص ساقط شی.او ديت واجب شی.لکه مثلاً پلار خوئې قتل کړو.نوداسې ديت به د قاتل په مال کښې واجب وی.عاقله باندې به نه وی.او هر د جرمانې مال کوم چه د عمد په صورت کښې د مصالحت په بناء

---

(۱) **مسلک الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه قصاص به في الحال (فوراً) اخستلې شي.

(۲) من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه الدارقطني في سننه(۳/ ۹۰) رقم ۳۲)۔

واجب شوې وي.هغه به د قاتل په مال کښې واجب وي.

**دليله** خکه په حديث کښې وارد دي. لَاتَعْقِلُ الْعَوَاقِلُ عَمْدًا ﴾ (١) چه عاقله د عمد برداشت نشي کولې، او مذکوره صورت هم عمد دې.

| |
|---|
| وَإِذَاقَتَلَ الْأَبُ ابْنَهُ عَمْدًا او کله چه پلار خپل خوئي عمداً قتل کړو (فَالدِّيَةُفِي مَالِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو ديت به د قاتل په مال کښې دريو کالو کښې وي. |

**تشريح** کله چه پلار خپل خوئي قتل کړو.نو قصاص نشته.بلکه ديت واجب دې.بيا په دې کښې اختلاف دې.چه دا ديت به مؤجل (روستو) وي.او که معجل (فوراً) به وي.زمونږ مذهب دا دې.چه مؤجل دې.چه دريو کالو کښې به ددې اداکول ضروري وي. (٢)

**دليله** چه کوم مال د قتل په وجه واجبيږي.هغه مؤجل وي.نو د قتل خطاء او شبه عمد ديت ددې شاهد دې.بيا انسان مالك دې.او په مالك د مملوك کښې هيڅ تماثل نشته.خو په خطاء وغيره کښې چه کوم تقويم ثابت شوې دې.دا خلاف قياس دې.خو د شريعت نه ثابته ده.خو دا ثبوت په طريقه د تاجيل دې.د تعجيل په طريقه نه دې.نو ضروري شوه.چه د شريعت د امر نه عدول نه وي.په دې وجه مونږ د تاجيل قائل شوي يو.بيا معجل د مؤجل په مقابله کښې زائد هم دې.نو د شريعت د مورد خلاف د زياتوالي د اثبات هيڅ وجه نشته.هم دا وجه ده.چه په قدر او جنس کښې د يو د موجود کيدو په وجه د برابرئ باوجود قرض بيع حراميږي.خکه چه د زياتوالي شبه ده.بهرحال کله نې چه پلار قتل کړو.د ديت مقدار دلته هم سل اوښان دي.زيات نه دي.نو دده د عمداً کيدو په وجه چه کله مقدار کښې زياتوالي اونشو.نو په وصف کښې به په درجه اولي اضافه نه کيږي.او ديت به معجل نشي واجبولې.

**که مجرم د جرم اقرار اوکړي نو ديت به په ده لازم وي او که په عاقله باندې ؟**

| |
|---|
| وَكُلُّ جِنَايَةٍ اعْتَرَفَ بِهَا الْجَانِي او هر هغه جنايت د کوم چه جنايت کونکی اقرار اوکړو نه فَهِيَ فِي مَالِهِ نو هغه به هم دده په مال کښې واجب وي وَلَايُصَدَّقُ عَلَى عَاقِلَتِهِ او پخپلو عاقله باندې به ددې تصديق نشي کولې |

**تشريح** د قتل خطاء ديت عاقله باندې واجب وي.خو که جنايت کونکي پخپله د جنايت اقرار کړې وي.نو دده اقرار به د عاقله خلاف حجت نه وي.نو دا جرمانه به اقرار کونکې د خپل مال نه اداکوي.

**دليله** خکه چه کوم حديث اوس تيرشوې وو.چه عاقله د عمد بوج نه اوچتوي.ددې په آخرکښې دی. (ولاصلحا ولااعترافاً) نو د حديث نه معلومه شوه.چه د اقرار تاوان په عاقله باندې نشته.

د بچي او ليوني عمد هم د خطاء په حکم کښې دې او ديت په عاقله باندې دې

| |
|---|
| وَعَمْدُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُونِ خَطَأٌ اود بچي او د ليوني عمد خطاء دې |

**تشريح** که په قتل عمد کښې شبه اوشي.نو کوم ديت چه واجب وي.هغه به د قاتل په مال کښې وي.خو که بچې، يا مجنون، يا پاگل عمداً قتل کړو.نو قصاص نشته.

**دليله** خکه چه هغه غير مکلف دې.او که خطاء نې قتل کړې وي.نو بيا هم دا حکم دې.

---

(١) قال الزيلعي رحمه الله غريب مرفوعاً واخرجه البيهقي عن الشعبي عن عمر رضي الله عنه قال العمد والعبد والصلح والإعتراف لا تعقله العاقلة أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (١٨١\٨) رقم ١٦٣٥٩).

(٢) **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه معجل او في الحال ادا کول واجب دی.

| |
|---|
| وَفِيهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په دې کښې عاقله باندې دیت دې |

تشریح> دا دیت به د بچي او لیوني په عاقله وي. (۱)

دلائله> ① د حضرت علی رضی الله عنه فرمان دې.چه د مجنون عمد او خطاء دواړه برابر دی.او تاسو عمل هم دا اوکړو.چه د لیوني دیت مو په عاقله باندې واجب کړې دې.

② دویم دلیل دا هم دې.چه بچې د رحم او شفقت محل دې.او هرکله چه تاسو په عاقل خطاء کار باندې دده د معذور کیدو په وجه تخفیف اوکړو.او دیت مو په عاقله باندې واجب کړو.نو بچې د هغه نه زیات معذور دې.نو ده ته دا تخفیف په درجه اولی ملاویدل پکار دی.

**په غیر مملوکه زمکه کښې کوهې کښتل یا کاڼرې ایښودو سره په مړکېدو کښې د ضمان حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ او چاچه کوهې اوکنستلو.د مسلمانانو په لاره کښې. أَوْ وَضَعَ حَجَرًا یا ئې کاڼرې کیخودو. فَتَلِفَ بِذَٰلِكَ إِنْسَانٌ ، نو ددې په وجه څوك انسان هلاك شو فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو دهغه دیت به دده په عاقله باندې وی وَإِنْ تَلِفَ بِهِ بَهِيمَةٌ اوکه یو څاروې هلاك شوې وی فَضَمَانُهَا فِي مَالِهِ نو د هغې ضمان به دده په مال کښې وی. |

تشریح> که یوکس د خپل مملوکه زمکې نه علاوه کښې کوهې اوکنستلو.یا ئې کاڼرې کیخودو.چه په دې کښې انسان یا څاروې پرېوتلو.یا ئې دغره (ټکره) اوخوړله.او مړ شو.نو په دواړو صورتونوکښې به ضمان واجب وی.

دلیله> څکه چه دا دده زیاتې دې.چه ده په لاره کښې دا حرکت کړې دې.خو د سړی دیت به عاقله باندې وی.او دڅاروی ضمان به پخپله ددې سړی په مال کښې واجب وی.څکه چه خاندان د مال برداشت نشی کولې.صرف د نفس کولې شی.او دغه شان ئې په لاره کښې خاوره واچوله.یا ئې خټه جوړول شروع کړل.نو دا هم تعدی ده. ددې هم دغه حکم دې.

**په لاره کښې یوکس باندې ناوه یا روښندان راپرېوتو.او مړشونو د دیت مسئله**

| |
|---|
| وَإِذَا أَشْرَعَ فِي الطَّرِيقِ رَوْشَنًا أَوْ مِيزَابًا اوکله ئې چه راوښکلو لاره کښې روشندان یا ناوه فَسَقَطَ عَلَى إِنْسَانٍ نو دا په یو انسان باندې راپرېوتلو فَعَطِبَ نو هغه هلاك شو فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو دیت به دده په عاقله باندې وی |

تشریح> قاعده کلیه داده.چه څوك د چا د قتل او هلاکت سبب جوړ شی.نو دده په عاقله باندې د هلاکونکی دیت واجبیږی.نوکه یوکس په لاره کښې د ذکر شوو څیزونو څنې یو څیز جوړ کړو.او هغه په کس باندې راپرېوځی.چه دې سره هغه مړ شی.نو په جوړونکی په عاقله باندې به ددې دیت واجب وی.په دومره خبرې سره مسئله صفا شوه.

دلیله> څکه چه هغه دده د هلاکیدو سبب دې متعدی دې دده د مشغولولو په وجه د لارې فضاء

---

(۱) مسلك الشافعي:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه عمد خو عمد دې.خو د بچي یا د لیوني کیدو په وجه مونږ قصاص پرېخودو.چه داد قتل عمد موجب وو.او ددې دویم موجب دا دې.چه دا د دیت وجوب د قاتل په مال کښې وی.نو مونږ یو موجب پرېخودو.خو دویم مو باقي اوساتلو.یعنی دیت مو د بچي په مال کښې واجب کړو.

(خلاء)،او دا د ضمان د اسبابوځني دي او هم دا قاعده کليه ده

**فائده>** د روشن تفسير صاحب د عين الهدايه رحمه الله روشن دان سره کړې دې.او بعضو په پاوړۍ او بعضو په هغه لښتې (چت) سره کړې دې.کوم چه په لاره واچولې شي.چه ددې طرفه بل کور ته ورتللې شي. بهرحال که هر څه تفسير وي.حکم يو دې.

| |
|---|
| ولاکفارةعلى حافرالبيراونشته کفاره په کنستونکي د کوهي باندې وواضع الحجراو په کيخودونکي د کاڼري باندې |

**تشريح>** نفس مسئله آسانه ده

**دليله>** کفاره په قتل خطاء کښې وي اود کوهي په کنستلو او د کاڼري په کيخودو سره چې کوم سړې مړ شي نودا قتل بالسبب دې نو ځکه په دې کښې کفاره نشته.

**که پخپل ملک يا د کور په کوهي کښې څوک مړ شي نو د ضمان حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ حَفَرَبِئْرًافِي مِلْكِهِ اوچا چې اوکنستل کوهي په خپل ملك کښې فَعَطَبَ بِهَا اِنْسَانٌ نو په هغې باندې يو انسان هلاك شو.لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کيږي |

**تشريح>** ځنګه مذکوره امورو کښې د امام د اجازت په صورت کښې ضمان واجب نه وي.دغه شان که په مملوکه زمکه کښې هم دا تصرفات اوکړي.نو بيا به هم ضمان نه وي.

**دليله>** ځکه چه دې کښې دده د طرفه هيڅ تعدي نشته.

**د سور سړي سوارلئ يوکس مړکړونو څه حکم دې ؟**

| |
|---|
| اَلرَّاكِبُ ضَامِنٌ چه سور به ضامن وي لِمَا اَوْطَأَتِ الدَّابَّةُ د هغې کوم چه ځاروی خپوکښې اغړلې وي.وَ مَا اَصَابَتْ بِيَدِهَا که په لاسونو (مخکنو خپو) ئې اغړکلې وي اَوْكَدَمَتْ يا ئې چيچلې وي وَلَايَضْمَنُ او ضامن به نه وي مَا نَفَحَتْ بِرِجْلِهَا کله چه ځاروی د خپلو خپو په نوکونو سره وهلې وي اَوْذَنَبِهَا يا ئې پخپلې لکۍ سره وهلې وي. |

**حل اللغة>** ①**الكدام**: په مخکنو غابښونو سره چيچل، ②**الوطاء**: پائمال کول⑤ **ذنب**: لکۍ]

**تشريح>** که زيد پخپل اس باندې ناست چرته روان وو.چه د هغه اس خالد پائمال کړو او هلاك ئې کړو.اويا ئې په مخکنو پښو اغړلې وي يا ئې اوچيچلې وي نوپه ذکر شوو صورتونو کښې به په راکب باندې ضمان وي اوکه اس لته اووهله، يا ئې په لکۍ اووهلو.نو ضمان به نه وي.

**دليله>** په لاره کښې د ټولو خلقو حق دې.ټول په دې کښې تيريدې شي.هر تيريدونکې من وجه پخپل حق کښې تصرف کوي.او من وجه د بل په حق کښې تصرف کوي.نو حکم کول پکار دی.چه ناجائز وي.خو دا تيريدل به په سلامتيا سره مقيد وي.ځکه چه د دواړو طرفونو د غوره والي هم دا صورت دې.

**په لاره کښې د ځاروي په سولو سره د هلاکت د ضمان حکم**

| |
|---|
| فَاِنْ رَاثَتْ نو که ځاروی سوټې اوکړله اَوْبَالَتْ فِي الطَّرِيْقِ يا ئې په لاره کښې متيازې اوکړلې فَعَطِبَ بِهِ اِنْسَانٌ نو په دې سره څوك انسان هلاك شو لَمْ يَضْمَنْ نو هغه به ضامن نه وي |

**تشريح>** که اس په لاره کښې سوټې اوکړلې.يا ئې متيازې اوکړلې. نو که په دې کښې څوك اوخوئيږي.او مړ شي.نو په سورکس به ضمان نه وي.

**دلیله** خکه چې ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی.دغه شان بعضې خاروی داسې وی.چه هغوی اودریږي.نو سوټې کوي.یا متیازې کوي.په دې وجه سور کس دا (خاروي) اودرولو .چه د خپل ضرورت نه فارغ شي.نو چونکه ددې په اودرولو کښې ضرورت وو.په دې وجه به اوس هم ضمان واجب نه وي.

**د خاروي راښکونکې یا شړونکې به کله ضامن وي؟**

| |
|---|
| وَالسَّائِقُ ضَامِنٌ او د شا طرفه شړونکې به ضامن وي لِمَا أَصَابَتْ د هغه څیز. کوم چه خاروی رسولې وي بِيَدِهَا أَوْرِجْلِهَا په مخکنو خپو یا شاتنو خپو سره، وَالْقَائِدُ ضَامِنٌ او راښکونکې ضامن دې لِمَا أَصَابَتْ بِيَدِهَا د هغه څیز کوم ئې چه رسولې دې.پخپلو مخکنو خپو سره دُونَ رِجْلِهَا په شاتنو خپو سره به نه وي |

**حل اللغة** ① **السائق**: دخاروي شړونکې

**تشریح** که سائق (شړونکې) خاروې شړي.او روان دې.نو په مخکنو خپو سره اغږل او په شاتنو خپو سره اغږل برابر دی.په دواړو صورتونو کښې به سائق باندې ضمان واجب وي.اوکه قائد (راخکونکې) دې.نو هغه به د شاتنو خپو ذمه دار نه وي.بلکه صرف د مخکنو خپو ذمه وار دې.

**دلیله** خکه چه شړونکې ته دواړه خپې مخامخ دی.نو هغه ددې نه بچکیدې شي.او چونکه د راښکونکی نظر په شاتنو خپو نه دې.نو هغه دپاره ددې نه بچ کیدل هم ممکن نه دی.په دې وجه به هغه د شاتنو خپو ضامن نه وي.

**که د اوښانو په قطار کښې یو اوښ څوک هلاک کړي؟**

| |
|---|
| وَمَنْ قَادَقِطَارًا او چا چه د اوښانو قطار راښکلو فَهُوَضَامِنٌ نو هغه ضامن دې لِمَا أَوْطَأَ د هغه څیز کوم چه دې په خپو کښې واغږل |

**حل اللغة** ① **قطار**: صف،لین، قطار ② **قاد**:اوښان راښکلو ③ **اوطا**: پائمال کړلو]

**تشریح** د اوښانو قطار روان دې.او یو سړی د مخکنی اوښ واګې نیولې دی.او مخکښې مخکښې روان دې.باقي ټول هغه پسې شاته روان دی.نو هغه ته قائد (راښکونکې) وائی.او اوښان د څه تکلیف نه بغیر دغه شان خې.نو په ذکر شوې صورت کښې که یو اوښ یو انسان هلاك کړو.نو ضمان به واجب وي.یعنې که نفس دې.نو ددې ضمان به د راښکونکی په عاقله باندې وي.اوکه مال دې.نو ددې ضمان به پخپله د راښکونکی په مال کښې وي.

**دلیله** دلته د ضمان د وجوب وجه دا ده.چه په راښکونکی باندې د قطار حفاظت ضروری دې.او هغه حفاظت کولې هم شي.هسې خو دا مسبب دې.خو په مسبب باندې د تعدی په صورت کښې ضمان واجبیږي.او دلته د قطار حفاظت پریخودل، دده د طرفه تعدی ده.

**په مذکوره صورت کښې به شړونکې او راښکونکې دواړه ضامن وي**

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ مَعَهُ سَائِقٌ اوکه راښکونکی سره شړونکې هم وي فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمَا نو ضمان به په دوی دواړو باندې وي |

**تشریح** زید قائد(د اوښانو راښکونکې) دې.چه په ده باندې رومبی صورت کښې ضمان واجب شوې وو. خو دده سره سائق (شړونکې) دې.نو دا قائد هم دې.نوپه دې صورت کښې به په دواړو باندې ضمان واجب وي

**دلیله** خکه چې په دواړو کښې هر یو قائد هم دې او سائق هم دې نوخکه په دواړو ضمان واجبیږي.

## د غلام خطاء سره جنايت کولو باندې د ضمان حکم

وَإِذَاجَنَى الْعَبْدُ جِنَايَةً خَطَأً او که چه غلام خطاء سره جنايت اوکړو قِيلَ لِمَوْلَاهُ: نو دده آقا ته به ونيلې شي إِمَّا آنْ تَدْفَعَهُ بِهَا چه يا خو دا غلام د جنايت په بدله کښې ورکړه أَوْتَفْدِيَهُ يا ددې غلام فديه ادا کړه

**تشريح** > کله چه يو غلام څه جرم اوکړو.مثلاً څوك ئې خطاء سره قتل کړو.يا ئې خطاء سره د چا سترګه زخمي کړله.وغيره وغيره.نو په دې صورت کښې د جرمانې اصل وجوب په آقا باندې دې.خو د آسانتيا په طور آقا ته دا اختيار ورکړې شو.که غواړي.نو غلام دې د جنايت ولی ته حواله کړي.اوکه غواړي.نو د غلام فديه دې ورکړي. (۱)

**دليله** > دليل دا دې.که د خطاء جنايت صادر کيدو په صورت کښې ددې جرمانه او بدل په مجرم باندې واجب کړې شي.نو هغه به هلاك شي.او په پريشانو کښې به مبتلا کړې شي. حالانکه خطاء کونکې په خطاء کښې معذور هم دې.څکه چه هغه کوم څه کړی دی.خطاء سره ئې کړی دی.قصداً ئې نه دی کړی.نو که د هغه مددګار خاندان وی.نو ديت هم په ده واجبيدل پکار دی.او د غلام مددګار دده آقا دې.څکه چه د آقا نه غلام مدد غواړي.

## که جنايت دوباره اوکړي نو څه حکم دې ؟

فَإِنْ عَادَ نو که مجرم راواپس شو فَجَنَى نو جنايت ئې (دوباره) اوکړو كَانَ حُكْمُ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ كَحُكْمِ الْأُولَى نو د دويم جنايت حکم د ړومبی د جنايت پشان دې

**تشريح** > که آقا دغلام فديه ادا کړې ده.خوغلام دوباره جنايت اوکړو.نو اوس به هم هغه حکم وی.کوم چه د ړومبی جنايت په صورت کښې بيان کړې شوې دې.

**دليله** > څکه چه هرکله د ړومبی جنايت فديه ادا شوه.نو غلام د جرم نه پاك صفا شوې دې.ګويا چه هغه جنايت هم نه دې کړې.اودا ګويا دده ړومبې جنايت دې.

فَإِنْ جَنَى جِنَايَتَيْنِ او که غلام دوه جنايتونه اوکړل قِيلَ لِلْمَوْلَاهُ نو د هغه آقا ته به ونيلې شي إِمَّا آنْ تَدْفَعَهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ چه يا خو ته غلام د دواړو جنايتونو وليانو ته ورکړه يَقْتَسِمَانِهِ عَلَى قَدْرِ حَقِّهِمَا چه دا به هغوی دواړه د خپل حق په اندازه تقسيموی وَإِمَّا آنْ تَفْدِيَهُ او يا د غلام فديه ورکړه بِأَرْشِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دهغوی دواړو د ديت په اندازه،

**تشريح** > که غلام دوه جنايتونه کړې وی.مثلاً خالد ئې هم خطاء سره قتل کړې دې.او ساجد ئې هم خطاء سره قتل کړې دې.نو اوس هم آقا ته اختيار دې.که غواړي.نو د دواړو مقتول اولياء ته دې خپل مجرم غلام اوسپاري.او هغوی دې د خپلې حصې مطابق دا غلام تقسيم کړي.او که آقا غواړي.نو ددوی دواړو ديت دې ورکړي.او غلام دې خان سره اوساتي.

**دليله** > څکه چه د خالد په قتلولو سره به د ساجد د قتلولو جرم د معاف کولو قابل نه وی.لکه د آقا د مملوك کيدو باوجود دخالد قتلولو د جنايت تعلق ممتنع نشو.دغه شان د ړومبی جنايت متعلق کيدو

---

(۱) د امام شافعي رحمه الله په نيز دغلام په سټ کښې ده. يعنی غلام به خرڅولې شي.او دهغه حق به ادا کولې شي.البته آقا ته به دا حق ضرور وی. چه هغه تاوان ادا کړي.او غلام خپل خان سره اوساتي.

سره د دویم جنایت دده دسې سره متعلق کیدل به ممنوع نه وی.لکه مثلاً که غلام قرض واخستلو.نو هغه به دده د سې سره متعلق وی.اوکه دوباره او په دریم خلی ئې قرض واخستلو.نو هغه به هم دده سې سره متعلق وی.

**توضیح قوله علی قدر حقیهما** دخپل حق په اندازه د اخستلو مطلب دا دی.چه د دوی دوارو په دیت کښې کوم تناسب دی.په دې تناسب سره به د غلام په قیمت کښې اخلی.مثلاً یوکس ته ئې داسې زخم لګولې دې.چه په هغې سره پنځلس سوه روپۍ واجبیږی.او د دویم زخم سره مثلاً درې زره روپۍ واجبیږی.نو د غلام قیمت به هم د دوی دوارو په منځ کښې د دریو حصو په حساب سره تقسیمیږی.

**که آقا ته علم نه وواو جنایت کونکی غلام ئې آزادکړو.نو څه حکم دی ؟**

| |
|---|
| وَإِنْ أَعْتَقَهُ الْمَوْلَى نوکه مجرم غلام آقا آزاد کړو وَهُوَلَا يَعْلَمُ بِالْجِنَايَةِاو آقا جنایت نه خبر نه وی ضَمِنَ الْمَوْلَى الْأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو آقا به دده په قیمت او د جنایت د دیت (یعنی دوارو) نه د کم ضامن وی وَإِنْ بَاعَهُ اوأَعْتَقَهُ او که هغه ئې خرڅ کړو یا ئې آزاد کړو بَعْدَالْعِلْمِ بِالْجِنَايَةِ د جنایت معلومیدو نه روستو وَجَبَ عَلَيْهِ الْأَرْشُ،نو په ده باندې دیت واجب دې |

**تشریح** د زید غلام خالد جنایت اوکړو.چه په دې کښې زید ته دوه اختیاره وو.غلام د جنایت ولی ته حواله کول.یا دهغه فدیه ادا کول.خو که زید خالد (غلام) آزاد کړو.نو ددې اعتاق په وجه زیدفدیې اختیارونکې شو اوکه نه؟ نو ددې تفصیل دا دی.که زید ته دجنایت علم وی.نو هغه به د آزادولو په وجه د فدیې اختیارونکې جوړیږی.اوکه د جنایت علم نه وی.او آزاد ئې کړو.نو د فدیې اختیارونکې به نه شمارلې کیږی.بلکه په دې صورت کښې به د غلام قیمت او د جنایت په دیت کښې چه کوم یو کم وی.هم هغه به په آقا باندې واجب وی.

**دلیله** خکه چه د جرم د مستحق حق هم دا جوړیږی .چه دا آقا په مجرم غلام آزادولو سره فوت کړو.نوآقا به ددې ضامن وی.او آقا به د علم نه بغیر د فدیې اختیارونکې نه شمارلې کیږی.البته د علم نه روستو به د آزادولو په وجه فدیه واجب وی.خکه چه اوس د غلام ورکول ممتنع شو.نو فدیه متعین شوه.

| |
|---|
| وَإِذَاجَنَى الْمُدَبَّرُ أَوْأُمُّ الْوَلَدِ جِنَايَةً او کله چه مدبر او ام ولد څه جنایت اوکړو. ضَمِنَ الْمَوْلَى الْأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو آقا به دده د قیمت او د جنایت په ارش کښې د کم ضامن وی |

**تشریح** وراندې مسئله تیره شوې ده.که غلام جنایت اوکړو.خو آقا ته دده د جنایت علم نه وو شوې.چه هم په دې حالت کښې آقا غلام آزاد کړو.نو دلته به آقا د فدیې اختیارونکې نه شمارلې کیږی.خو چونکه د مجنی علیه هم څه قصور (نقصان) نشته.په دې وجه دلته آقا باندې واجب دی.چه د جنایت ارش او د غلام په قیمت کښې چه کم وی.هغه ورکړی.خکه چه د غلام آزادولو نه پس خو اوس د هغه (غلام) د ورکولو هیڅ سوال نه پیدا کیږی.بالکل هم دغه شان دا مسئله هم ده.چه مدبر او ام ولد به جنایت کښې د ورکولو قابل نه دی.خو آقا ته څه خبر وو.چه دوی به روستو داسې کوی.نو دلته هم که دوی څه جنایت اوکړو.هم دا حکم به وی.چه ددوی په قیمت او ارش کښې چه کم وی.هغه به ورکولې شی.

**دلیله** اوس پاتې شوه دا خبره چه د مدبر د جنایت ضمان آقا باندې ولې راغلې دې.نو په دې باره کښې اګرچه حدیث نشته.خو حضرت ابوعبیده ابن الجراح رضی الله عنه د شام امیر(ګورنر) وو.هغوی د مدبر د جنایت ضمان د هغه په آقا باندې واجب کړې وو.او د ډیرو صحابو رضی الله عنهم په موجودګۍ کښې ئې کړې

وو.اوهيڅ يو صحابي په هغه به باندې نكير نه وو كړې.نو ګويا په دې باندې اجماع اوشوه. (۱)
**وجه وجوب الاقل من القيمة >** او په قيمت اوارش كښې كم څكه واجب دې چه د جنايت د ولي حق د قيمت نه زيات نه دې.او د قيمت نه زيات آقا منع كړې دې.څكه چه دې كښې كوم كم وي.هم هغه به وركوي.اوكه څوك دا سوال اوكړي چه لكه څنګه چه په غلام وركولو او دده په فديه وركولو كښې آقا ته اختيار وي.دلته هم په كم او زيات كښې اختيار وركول پكار دى.د كم واجبولو څه وجه ده؟ نود دې جواب دا دې چه دلته د اختيار وركولو نه څه فائده ده؟ بنكاره ده.چه سړې كم اختياره وي.هغه به زيات ولې وركوي.

**د آقا د يو جنايت قيمت ادا كولو نه پس د مدبر د بل جنايت حكم**

| |
|---|
| فَإِنْ جَنَى جِنَايَةً أُخْرَى نوكه مدبر دويم جنايت اوكړو وَقَدْ دَفَعَ الْمَوْلَى قِيمَتَهُ إِلَى الْوَلِيِّ الْأَوَّلِ بِقَضَاءٍ حالانكه مولا د رومبى جنايت ولى ته د قاضى په فيصلې سره قيمت وركړې دې. فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو په هغه باندې هيڅ نشته |

**تشريح >** كه مدبر جنايت اوكړو.او مولا د هغه قيمت د جنايت ولى ته وركړو.او د قاضى په حكم سره ئې وركړو.او مدبر دويم جنايت هم اوكړو.نو اوس به په مولا هيڅ ضمان نه وى.
**دليله >** ده چه څه هم وركړى دى.د قاضى په حكم سره ئې وركړى دى.او د قاضى د حكم نه پس دې په وركولو باندې مجبوره دې.نوځكه به پرې ضمان نه وى

| |
|---|
| وَيَتْبَعُ وَلِيُّ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ او وريسې به شي ولى د جنايت دويم وَلِيَّ الْجِنَايَةِ الاولى، په ولى د جنايت اولى پسې فَيُشَارِكُهُ فِيمَا أَخَذَ نو هغه سره به په هغه څه كښې شريك شي كوم چې هغه اخستې وى |

**تشريح >** مدبر يا ام ولد چې يو ځل جنايت كړې وو.اومولى د قاضى په فيصلې سره اول جنايت كونكى ته تاوان وركړې وو.اوس مدبر يا ام ولد دوباره جنايت اوكړو.نو په مولى باندې به څه تاوان نه وى بلكه د دويم جنايت ولى به د اولنى جنايت ولى ته لاړ شى او څه چې هغه ته مولى وركړې وو.هغې كښې به ورسره شريك شي.

| |
|---|
| (وَإِنْ كَانَ الْمَوْلَى دَفَعَ الْقِيمَةَ بِغَيْرِ قَضَاءٍ اوكه مولا (د قاضى) د فيصلې نه بغير قيمت وركړې وى فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ، نو د جنايت ولى ته اختيار دې آن شَاءَ اتَّبَعَ الْمَوْلَى كه غواړى.مولا پسې دې اولګى وَإِنْ شَاءَ اتَّبَعَ وَلِيَّ الْجِنَايَةِ الاولى، او كه غواړى.د جنايت په ولى پسې دې اولګى |

**تشريح >** اوكه آقا د قاضى د فيصلې نه بغير قيمت ادا كړې وى.بيا مدبر دويم جنايت اوكړو. امام صاحب ﷺ فرمائى .چه دلته د دويم جنايت ولى ته اختيار شته.كه غواړى.خپل حق دې د مولا نه اوغواړى.اوكه غواړى.نو د جنايت د ولى نه دې دخپل حق مطالبه اوكړى.
**دليله >** دليل دادې.چه په جرم كښې د دواړو شريكوالى ده.د مولا هم او د دويم جنايت د ولى هم.د مولا جرم دا دې.چه هغه پخپله رضامندئ سره د دويم حق رومبى ته سپارلې دې.او د رومبى جنايت د ولى جرم دا دې.چه هغه د دويم په حق باندې ناجائز قبضه كړې ده.نو دويم ته اختيار ملاو شو.چه رومبې (د جنايت ولى) راونيسى.يا مولا راونيسى.

---

(۱) اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه (لصب: ۱۸۷\۵)

**توضیح**> چه د دویم جنایت دوه جهته دی.من وجه د ړومبی نه موخر دی.او من وجه پیوست او متصل دی.ددی مقارنت (او پیوست کیدو) په وجه دیرو صورتونو کښې دویم هم د ړومبی شریك کیږی.او په مدبر کښې حصه حاصلوی.او د موخر کیدو په وجه په ډیرو صورتونو کښې دویم هم د ړومبی سره شریکیږی.او په مدبر کښې حصه حاصلوی.او د موخر کیدو وجه دا ده.چه په دویم جنایت کښې به هغه قیمت معتبر وی.کوم چه د دویم جنایت په ورځ د مدبر وو.بهرحال هرکله چه د دویم دا دوه طرفونه دی.نو مونږ په دواړو مشابهتونو باندې د عمل په خیال دا اوکړل.چه د ضمان په حق کښې مونږ دا د مقارن او پیوست پشان اوګڼرلو.او ضمان مو واجب کړو.او چونکه د هغه هم حق مدبر سره متعلق وو.چه په دې کښې د مولا او د ړومبی د ولی دواړو نقصان دی.په دې وجه په دواړو پسې د لګیدو حق ورکړې شو .او په دواړو مشابهتونو باندې عمل داسې اوشو.چه ضمان یا د اتصال په وجه واجب کړې شو.خو دده قیمت کم کړې شو.او هغه معتبر کړې شو.کوم چه په دغه ورځ دده قیمت وو.یا د موخر کولو په وجه واجب شوې دې.په [نتائج الافکار ص۳۷۷] باندې په دې خاتې کښې ډیر بحث دې.

**مسلك الصاحبین رحمهماالله**> صاحبین رحمهماالله فرمائی.چه اوس به په مولا هیڅ ضمان نه وی.

**دلیلهما**> هرکله چه مولا د ړومبی جنایت ولی ته قیمت ورکړې وو .هغه وخت دویم جنایت موجود نه وو.او مولا د حق مستحق ته د هغه پوره حق ادا کړې وو.نو د هغه پخپله ادا کول داسې شو.لکه د قاضی په حکم سره ورکول.

| |
|---|
| وَإِذَامَالَ الْحَائِطُ او کله چه دیوال راکوږ شی إِلَى طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ د مسلمانانو لارې طرف ته، فَطُولِبَ صَاحِبُهُ بِنَقْضِهِ نو ددې د مالك نه ددې د ورانولو مطالبه اوکړې شوه وَأُشْهِدَ عَلَيْهِ او په دې باندې ګواهان جوړ کړې فَلَمْ يَنْقُضْهُ نو هغه مات نکړو فِي مُدَّةٍ يَقْدِرُ عَلَى نَقْضِهِ په دومره موده کښې چه ددې په ورانولو باندې قادر وو حَتَّى سَقَطَ تردې چه هغه راپریوتلو ضَمِنَ مَا تَلِفَ بِهِ مِنْ نَفْسٍ أَوْ مَالٍ نو ددې په وجه چه کوم نفس یا مال هلاك شی. هغې به ضامن وی. |

**تشریح**> د یوکس دیوال کوږ شو.چه ددې په وجه ددې د راغورځیدو خطره پیدا شوه.نوکه هغه ته چا هیڅ او نه ونیل.او دیوال راپریوتلو.او څوك هلاك شو.نو هغه به ضامن نه وی.او که هغه ته په هغه خلقو کښې چا اوونیل.چاته چه په دې لاره کښې د تللو حق دې.او ونیلو هم د مشورې په طور نه وی.بلکه د حکم په طریقه وی.او بیا نې هم هغه مات نکړی.حالانکه هغه ته دومره مهلت ملاو شوې دې.چه په دې (موده) کښې هغه دا کار کولې شی.خو وې نکړو.او اوس هغه راپریوتلو.او څوك سرې هلاك شو.نو ددې ضمان به په هغه لازم وی.دا حکم د استحسان دې.

**وجه الاستحسان**> د استحسان دلیل دې.ددې حاصل دا دې.چه دده دیوال د مسلمانانو د لارې پلن والې راګیر کړې دې.حالانکه دده ته ونیلی شوی وو.چه دا راوغورځوه.او تیك نې کړه.نو په ده راغورځول او تیك کول واجب شوی وو.بیا ده تیك نکړو.نو متعدی او ظالم شو.په دې وجه به ضمان واجب وی.ددې مثال بعینه داسې دې.چه د یو انسان کپړه هوا وغیره د بل په غیره کښې راو غورځوله.د کپړې مالك ددې مطالبه اوکړله .خو هغه ورنکړله.بیا هغه هلاکه شوه.نو په هغه به ضمان واجب وی.خکه چه هغه د ددې منع کولو په وجه متعدی او ظالم اوګرځیدو.خو که تر اوسه پورې د کپړې مالك نه وه غوښتلې.چه ددې نه مخکښې هلاکه شوه.نو ضمان به واجب نه وی.خکه چه دې صورت کښې تعدی نشته.دغه شان که د دیوال تیك کولو حکم نه وو ورکړې شوې.چه ددې نه وړاندې دا حادثه راپیښه شوه.نو اوس به دې ظالم نه وی.او په ده به ضمان واجب نه وی.

وَيَسْتَوِي او برابره ده دا خبره أَنْ يُطَالِبَهُ بِنَقْضِهِ مُسْلِمٌ چه دده نه دديږ د ورانولو مطالبه مسلمان اوکړی أَوْ ذِمِّيٌّ اوکه ذمی اوکړی

تشريح > بيا کوموخلقو ته چه په دې لاره کښې د تيريدو حق دې.که هغه مسلمان وی.اوکه ذمی وی.ټولو ته د مطالبې حق شته.که هغه سړی وی.اوکه ښځه وی.آزاد وی.اوکه مکاتب وی.

دليله> ځکه دديږ مطالبې حاصل دا دې.چه د ديوال مالك د لارې مشغولتيا لرې کړی.نو هر حقدار ته به د مطالبې اختيار وی.

وَإِنْ مَالَ إِلَى دَارِ رَجُلٍ او که ديوال د يوسړی کور طرف ته کوږ شو فَالْمُطَالَبَةُ لِمَالِكِ الدَّارِ خَاصَّةً نو مطالبه به خاص طور باندې د کور مالك طرف ته کيږی

تشريح > د زيد دکور ديوال د لارې په ځائې د خالد کور طرف ته کوږ شو.نو دلته به د ورانولو اختيار صرف خالد ته وی.

دليله> ځکه چه حق صرف هم دده دې.

**په دوو اسونو سواره کسان خپلو کښې ټکراو شی، او مړه شی نو د ديت حکم**

وَإِذَا اصْطَدَمَ فَارِسَانِ اوکله چه دوه سواره اوجنګيږی.(ټکراو شی). فَمَاتَا نو دواړه مړه شو فَعَلَى عَاقِلَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دِيَةُ الْآخَرِ نو د هر يو په مددګار خاندان (عاقله) باندې به د دويم ديت واجب وی.

تشريح > زيد او خالد دواړه په اسونو باندې سواره دی.دواړو ډغره اوخوړله.چه دديږ په وجه دواړه مړه شو.يا دواړه پيدل وو.دواړو ډغره اوخوړله.او دواړه مړه شو.او ډغره په خطاء سره وی.نو اوس حکم دا دې.چه د زيد مددګار خاندان به د خالد پوره ديت او د خالد مددګار خاندان به د زيد پوره ديت ادا کوی. (۱)

دليله> دليل دا دې.چه دلته اګرچه د دواړو د فعل دخل دې.خو په داسې موقعو کښې د مرګ اضافت خپل فعل طرف ته نه کيږی.بلکه د غير فعل طرف ته د مرګ اضافت کيږی.ځکه چه خپل ذاتی فعل خو د هر يو مباح دې.چه دا به د ضمان سبب نه وی.ځکه چه لاره کښې تلل مباح دی.بهرحال خپل ذاتی فعل موجب د ضمان نشی کيدې.لکه څوك تلونکې روان دې.چه د کوهی علم هغه ته نشته.او هغه په کوهی کښې پريوتلو.نو د هغه پوره ديت به واجب وی.او د هغه د تللو په وجه به هيڅ ديت نه ساقطيږی.

**د غلام په قتلولو سره قيمت واجبيږی**

وَإِذَا قَتَلَ رَجُلٌ عَبْدًا خَطَأً او چا چه غلام په خطاء سره قتل کړو فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ نو په قاتل باندې د هغه قيمت واجب دې لَا تُزَادُ عَلَى عَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ چه دا به په لس زره درهم باندې نشی زياتولې فَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ عَشَرَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ نو که د غلام قيمت لس زره درهم وی. أَوْ أَكْثَرَ يا زيات وی ، قُضِيَ لَهُ بِعَشَرَةِ آلَافٍ نو هغه دپاره به د لسو زرو درهمو فيصله کولې شی إِلَّا عَشَرَةً بغير د لسو (د رهمو) نه وَفِي الْأَمَةِ او په وينځه کښې إِذَا زَادَتْ قِيمَتُهَا عَلَى الدِّيَةِ کله چه دهغې قيمت د آزادې ښځې د ديت نه زيات

(۱) مسلك الشافعي:-امام شافعی رحمه الله مذهب دا دې.چه د زيد په خاندان باندې به د خالد نيم ديت او د خالد په خاندان باندې به د زيد نيم ديت واجب وی.

وي خَمْسَةَ آلَافٍ إِلَّا عَشَرَةً د لس کم پنځو زرو فیصله به کولې شي

حل اللغة ﴿ ① الآف: جمع د الف، زر]

تشریح ﴿ که یوکس غلام خطاء سره قتل کړو.نو دلته به د دیت په ځاني ددغه غلام قیمت واجب وي.خو د طرفینو رحمهماالله په نیز شرط دا دې.چه دا قیمت د آزاد د دیت نه زیات نشي.نوکه دده (مجنی علیه غلام) قیمت بالفرض لس زره یا ددې نه هم زیات وي.نو په دیت کښې به لس درهمه کم لس زره (۹۹۹۰) درهم واجب وي. صرف،

## د غلام په لاس کښې نیم قیمت واجب دی

وَفِي يَدِ الْعَبْدِ نِصْفُ قِيمَتِهِ او د غلام په لاس کښې د هغه د قیمت نیمه ده لَا يُزَادُ عَلَى خَمْسَةِ آلَافٍ.چه په پنځو زرو (درهمو) به نشي زیاتولې إِلَّا خَمْسَةً خو پنځه به کمولې شي

تشریح ﴿ وړاندې تیرشوی دی.چه د سړی په لاس کښې نیم دیت واجبیږی.نو د غلام په لاس کښې به نیم قیمت واجب وی.اوکه دده نیم قیمت د پنځو زرو درهمو نه زیاتیږی.نو د پنځو زرو نه به پنځه درهمه کم واجب وی.

دلیله ﴿ دلیل په مخکنۍ مسئله کښې تیر شوې دې.یعنی د کل په صورت کښې چه کومه طریقه اختیار کړې شوې ده.د نصف په صورت کښې به هم هغه طریقه اختیارولې شي.

## په غلام کښې پوره قیمت کله واجبیږی؟

وَكُلُّ مَا يُقَدَّرُ مِنْ دِيَةِ الْحُرِّ او هرهغه جرم په کوم کښې چه د آزاد پوره دیت اندازه وی فَهُوَ مُقَدَّرٌ مِنْ قِيمَةِ الْعَبْدِ نو هلته به د غلام پوره قیمت اندازه وی

تشریح ﴿ یعنی کوم ځائې چه د آزاد پوره دیت واجبیږی.هغه صورت کښې به د غلام پوره قیمت واجب وی.او کوم ځائې چه د آزاد نصف دیت واجبیږی.هلته به غلام کښې نصف دیت واجب وی.

دلیله ﴿ ځکه چه دا دواړه دیتونه دی.او دواړه د وینې بدل دی.د (وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَى أَهْلِهِ) نه دا خبره ښکاره ده.نوکه یو آزاد ته نې داسې زخم اولګولو.یعنی موضحه چه په هغې کښې د دیت ۱۱۲۰ حصه واجب ده.هلته به غلام کښې د هغه د قیمت ۱۱۲۰ واجب وی.او وړاندې تیر شوی دی.چه ضمان د غصب ، د مالیت ضمان دې.

## په ښځه د وهلو په وجه د بچې غورځیدو مسئله

وَإِذَا ضَرَبَ رَجُلٌ بَطْنَ امْرَأَةٍ اوکله نې چه ښځه په خیټه (ګیډه) اووهله فَأَلْقَتْ جَنِينًا مَيِّتًا نو هغې جنین اوغورځولو.فَعَلَيْهِ غُرَّةٌ نو په دې کښې یوه غره ده وَالْغُرَّةُ نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ او دا غره د دیت د عشر نیمه ده

تشریح ﴿ که زید یوه آزاده ښځه په خیټه اووهله.یا نې په بل یو اندام په لته وغیره اووهله.چه په دې سره د هغې حمل پریوتلو.(یعنی بچې اوغورځیدو).نو دلته به دیت واجب وی.چه ددې مقدار د دراهمو نه پنځه سوه درهمه دې.که هلك وی او که جینۍ وی.او چونکه د دیت مقدار د تولو نه کم او ړومبې مقدار دې.په دې وجه دا غره سره تعبیر کړې شوې دې.چه ددې معنی د ړومبی خیز ده.اګرچه دهلك په صورت کښې د سړی د دیت شلمه حصه واجبیږی.او د جینۍ په صورت کښې د ښځې د دیت لسمه حصه واجبیږی.چه ددې مال یو وی. ،

هسې د قیاس تقاضه دا وه.چه چونکه د جنین د ژوند هیڅ علم نشته.په دې وجه هیڅ واجبیدل پکار نه

وو.خو استحسانا غره واجب کړې شوې ده.

**دلیله>** وجه د استحسان د نبی کریم صلی الله علیه وسلم حدیث دی {فِي الْجَنِينِ غُرَّةٌ عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ قِيمَتُهُ خَمْسُمِائَةٍ} وَيُرْوَى "أَوْ خَمْسُمِائَةٍ"([1])نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چې په جنین کښې غره ده يعنی غلام يا چه ددې قیمت پنځه سوه درهم وی او نقل دی چه ،، یا پنځه سوه درهم.،

**الاستدلال>** ددې حدیث په وجه مونږ قیاس پرېخودو.او حدیث کښې غره پنځو سوو درهمو سره خاص کړې شوې دې.

### د حمل ماشوم ژوندې پیدا شو او مړ شو، نو پوره دیت واجب دې

| |
|---|
| فَإِنْ أَلْقَتْهُ حَيًّا نو که ښځې ژوندې جنین راورو ثُمَّ مَاتَ بیا هغه (بچې) مړ شو فَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په دې کښې پوره دیت دې |

**تشریح >** یعنی که جنین ژوندې بهر راوتلې وی.او بیا مړ شوې وی.نو په دې صورت کښې به پوره دیت واجب وی.

**دلیله>** ځکه چه د بچی مړ کیدل د رومبی وهلو اثر دې.او چونکه دده مړکیدل د ژوند ښکاره کیدو نه پس دی.نو پوره دیت به واجب وی.

### د مړ جنین پیدا کیدو نه پس ښځه هم مړه شوهنو دمور د قتل دیت واجب دې

| |
|---|
| (وَإِنْ أَلْقَتْهُ مَيِّتًا او که ښځې مړ بچې اوغورځولو ثُمَّ مَاتَتِ الْأُمُّ بیا (ښځه) مړه شوه فَعَلَيْهِ دِيَةٌ نو په ضارب دیت دې وَغُرَّةٌ او غره ده |

**تشریح >** که د زید لتې وهلو په وجه (مثلاً) جنین مړ بهر ته راووتلو.او بیا ښځه هم مړه شوه.نو دلته په زید باندې دوه ضمانه دی.د ښځې دیت واجب دې.او د جنین په وجه غره واجب ده.

**دلیله>** دطبرانی د روایت په موجب په مذکوره صورت کښې حضرت ﷺ هم دا فیصله فرمائیلې ده. ([2])

### ښځه مړه شوه بیا مړ بچې پیدا شونو څه حکم دې ؟

| |
|---|
| وَإِنْ مَاتَتْ اوکه ښځه مړه شوه ثُمَّ أَلْقَتْ مَيِّتًا بیا هغې مړ بچې اوغورځولو فَلَا شَيْءَ فِي الْجَنِينِ او په جنین کښې هیڅ واجب نه دی. |

**تشریح >** اوکه دا صورت راپیښ شو.چه ښځه مړه شوه.بیا مړ شوې بچې را پیدا شو.نو زمونږ په نیز ذکر شوی صورت کښې به صرف د مور دیت واجب وی.او د بچی به هیڅ واجب نه وی. ([3])

**دلیله>** دلیل دا دې.چه د بچی د مرګ دلته کښې دوه سببونه دی: ① د وهلو په وجه مړ شی. ② د مور د مرګ په وجه سا بنده شی.او مړ شی.ځکه چه بچې د مور د ساه په ذریعه ساه اخلی.بهرحال دلته

---

[1]) قال الزیلعی رحمه الله الأول غریب ورواية أو خمسمائة عند الطبراني في معجمه (كماذكره الهيثمي في مجمع الزوائد ٦\٣٠٠) وعزاه لطبراني والبزار) نصب الراية:٥\١٥٨)_

[2]) قال الزيلعي رحمه الله نظرت الكتب الستة إلاالنسائي فلم أجده بهذا المعنى والذى في الكتب الستة عن ابى هريرة رضي الله عنه أن النبي ﷺ قضى في جنين إمرأة من بني لحيان بغرة عبد أوامة ثم إن المرأة التي قضى عليها بالغرة توفيت فقضى رسول الله ﷺ ان ميراثها لبنيها ولزوجها وأن العقل على عصبتها (نصب:٥\١٩١)_

[3]) **مسلک الشافعي:-** د امام شافعی رحمه الله په نیز به د مور دیت او په بچی کښې به غره واجب وی.

کښې شك پیدا شو. چه مرګ د رومبی (وهلو) په وجه دې.اوکه د دویم (د مور د مرګ) په وجه دې.نو د شك په وجه به ضمان واجب نه وی.

**د بچی غره به په وارثانو کښې د میراث په طور تقسیمیږی**

| |
|---|
| وَمَا يَجِبُ فِي الْجَنِيْنِ او په جنین کښې چه کومه غره واجب وی مَوْرُوْثٌ عَنْهُ هغه به دده د طرفه په میراث کښې تقسیمولې شی |

**تشریح** د جنین په ذکرشوو ټولو صورتونو کښې چه ضارب باندې کوم مال واجب کړې شوې دې.چونکه د تیرشوی تصریح مطابق د نفس بدل دې.نو دا به دجنین د وارثانو په منځ کښې تقسیمولې شی.خو که ضارب هم ددې وارث وی.نو هغه به د میراث نه محرومیږی.مثلاً یوکس خپله ښځه په خیټه باندې په لته اووهله.چه په دې سره مړ جنین بهر ته راووتلو.نو دلته به د وهونکی په خاندان باندې دیت واجب وی.او وهونکي به په دې غره کښې د میراث مستحق نه وی.

**دلیله** خکه چه قاتل ته میراث نه ملاویږی.او دا قاتل دې.او دا قتل هم قتل د سبب نه دې.بلکه قتل د مباشرت (او ارادهٔ) دې.او ناحقه قتل دې.،،فیه مافیه،،

**د وینځې په مذکر اومونث ژوندی بچی کښې به خومره دیت واجب وی**

| |
|---|
| وَفِي جَنِيْنِ الْأَمَةِ إِذَا كَانَ ذَكَرًا او د وینځې په جنین کښې کله چه دا هلك وی نِصْفُ عُشْرِ قِيْمَتِهٖ دده (د جنین) د قیمت نصف عشر (شلمه) ده لَوْ كَانَ حَيًّا که ژوندې وی وَعُشْرُ قِيْمَتِهٖ اولسمه حصه د قیمت د ده وی لَوْ كَانَ أُنْثٰى که دا جینۍ وی. |

**تشریح** دا دهغه جنین تفصیل وو.کوم چه د آزادې ښځې نه راوغورځیږی.که د وینځې نه پیدا شی.نو دا به د وینځې د آقا غلام وی.په دې وجه ددې حکم لږ بل شان دې.نو که د وینځې جنین که ژوندې وی.نو دده قیمت به واجبیدو.ددې نه پس دې بیا اوکتلې شی.چه جنین هلك دې.اوکه جینۍ ده.که هلك دې.نو دده د قمیت شلمه حصه به واجبولې شی.اوکه جینۍ ده.نو لسمه حصه به واجبولې شی. (۱)

**دلیله** اصل لحاظ به د جنین د قیمت ساتلې شی.د مور به نشی ساتلې.خکه چه دا ضمان د نفس ضمان دَجنین دې.د مور د اندام ضمان نه دې.خکه چه چرته د اندام ضمان واجبیږی.نو هلته په دې غور کولې شی. چه په اصل کښې خومره نقصان پیدا شوې دې.بیا هم دغه اومره نقصان واجبولې شی.حالانکه دلته ددې اعتبار اونکړې شو.بلکه مطلق اوفرمائیلې شو.چه د مور د قیمت عشر به واجب وی.نو که د ښځې نقصان ددې په وجه نه وی شوې.نو بیا هیڅ ضمان واجبیدل پکار نه دی.نو معلومه شوه.چه دا ضمان د نفس دې.ضمان د اندام نه دې.او هرکله چه دا د نفس ضمان دې.نو ددې اندازه به د نفس د قیمت په لحاظ سره وی.

**په بچی کښې کفاره نشته اوکه نشته**

| |
|---|
| (وَلَا كَفَّارَةَ فِي الْجَنِيْنِ)او په جنین کښې کفاره نشته |

(۲)

**تشریح** دجنین د ضمان بیانولو نه پس د جنین د کفاره بیان کوی اوفرمائی چه کفاره واجب نه ده.

---

(۱) **مسلک الشافعي**:-امام شافعی رحمه الله فرمائیلی دی.چه په دواړو صورتونو کښې به د مور قیمت لګولې شی.اود مور د قیمت عشر به واجبولې شی.

(۲) **مسلک الشافعي**:-د امام شافعی رحمه الله په نیز کفاره احتیاطاً واجب ده.خکه چه جنین هم من وجه نفس

**دليله** > دليل دا دې چه چونكه كفاره د مطلقه نفسونو په باره كښې وارد شوې ده.او دا مطلق نفس نه دې.بلكه من وجه نفس دې.نو عقوبت به صرف په مطلقه نفسونو كښې واجب وې.چونكه دا نفس مطلقه نه دې.په دې وجه خو د پوره ديت په ځائې غره واجب شوې ده.البته كه احتياطاً كفاره وركړي.نو غوره ده.چه د تقرب سبب اوګرځي.او د جنين هلاكولو كوم جرم چه ده كړې دې.د هغې نه استغفار اوكړي.

**د قتل شبه عمد كفاره څه ده؟**

(وَالْكَفَّارَةُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ وَالْخَطَاءِ او كفاره په شبۀ عمد او قتل خطاء كښې عِتْقُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ د مومن غلام آزادول دی فَإِنْ لَّمْ يَجِدْ نو كه هغه غلام اونه مومی فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ نو د لګاتار دوو مياشتو روژې نيول دی

**تشريح** > د شبه عمد كفاره دا ده.كه قدرت وی.نو مومن غلام دې آزاد كړي.

**دليله** > د الله تعالى ارشاد دې(فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ)[النساء:۹۲] اوكه غلام ملاو نشي. نو بيا كفاره دا ده.چه د دوو مياشتو لګاتار (پرله پسې) روژې اونيسي.

وَلَا يُجْزِءُ فِيْهِ الْإِطْعَامُ او په دې كښې به اطعام (په مسكينانو خوراك خوړل) نه كافي كيږی

**تشريح** > او په كفاره د قتل كښې به په مسكينانو خوراك خوړل كافي نه وي.

**دليله** > ځكه چه شرعي مقادير د شريعت په خودلو معلوميدې شي.حالانكه په هيڅ نص كښې نقل نه دی.چه مسكينانو ته به په خوراك خوړلو باندې كفاره ادا كيږی.

## بَابُ الْقَسَامَةِ

**ترجمه** > (دا) باب د قسامت (د احكامو په بيان كښې) دې.

**تشريح** > **القسامة لغة** > په لغت كښې قسامت په معنی د قسم سره دې.

**القسامة شرعاً** > په شريعت كښې قسامت په الله تعالى قسم خوړل دی.د مخصوص سبب په وجه، مخصوص عدد سره.په سړي باندې مخصوص طريقه باندې.

**د قسامت بيان**

وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيْلُ فِي مَحَلَّةٍ اوكله چه په يوه محله كښې څوك مقتول اوموندلې شی لَا يُعْلَمُ مَنْ قَتَلَهُ د هغه د قاتل علم اونشی اُسْتُحْلِفَ خَمْسُوْنَ رَجُلًا مِنْهُمْ نو د محلې د پنځوسو سړو نه به قسم اخستلې شی يَتَخَيَّرُهُمُ الْوَلِيُّ كوم (پنخوس كسان) چه ولی اختيار كړی بِاللهِ مَا قَتَلْنَاهُ (د قسم الفاظ به دا وی).د خدائې قسم نه مونږ دې قتل كړې دې وَلَا عَلِمْنَا لَهُ قَاتِلًا اونه مونږ ته دده د قاتل علم شته.

**حل اللغة** > ① **قتيل**: صيغه داسم مفعول،قتل شوې]

**تشريح** > كه يو سړې مقتول په يوه محله كښې اوموندې شو.او د قتل آثار په ده باندې موجود وی.او د هغه د قاتل معلومات نه وی.او د مقتول ولی په ټوله محله باندې يا په بعضو غير معين باندې يا په

---

دې.نو كفاره به واجب وی.

---

بعضو معین باندې د قتل دعوه اوکړي.نو زمونږ په نیز به ولی ته حق وي.چه په محله کښې پنخوس کسان منتخب کړي.کوم چه دده خوښ وي.او د هغوی نه دې قسم واخستلې شي.هغوی به داسې قسم خوري.چه ،، د الله قسم نه مونږ دا قتل کړې دې.او نه مونږ ته دده د قاتل معلومات شته.اوکه هغوی قسم اوخوړلو.نو قصاص به ددوی نه ساقطیږي. البته ددوی په عاقله به دیت واجب وي.که ولی د قتل عمد دعوه کوي.او که د قتل خطاء دعوه کوي.خلاصه د کلام دا چه زمونږ په نیز قصاص صرف هغه وخت ثابتیږي.کله چه د محلې خلق د قسم نه انکار اوکړي.او د قتل اقرار کوي.یا په ګواهانو سره قتل عمد ثابت شي.دا زمونږ د مسلك تفصیل دې. ([1])

**دلائله** ① رومبې دلیل مشهور حدیث دې.(البینة علی المدعی والیمین علی من أنکر)

② دویم دلیل د سعید بن مسیب رحمه الله روایت دې.چه د یهودو په یو کوهی کښې د یو مقتول ملاویدو په وجه د یمین او قسامت شروع نې د یهودو نه اوکړله.او بیا نې په یهودو باندې دیت واجب کړو.ځکه چه مقتول ددوی په منځ کښې ملاو شوې وو.

**د قسامت په باره کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله دعوه او د امام شافعي رحمه الله دلیلونه**

| |
|---|
| وَإِذَاحَلَفُوانو کله چه دوی قسم اوخوړلو قُضِيَ عَلَى أَهْلِ الْمَحَلَّةِ بِالدِّيَةِ نو د محلې په خلقو به د دیت فیصله کولې شي وَلَا يُسْتَحْلَفُ الْوَلِيُّ او د ولی نه به قسم نشي اخستلې |

**تشریح** کله چه د محلې د خلقو نه پنخوسو سړو قسم واخستلو.نو ددوی نه به قصاص ساقطیږي.او په دوی به دیت واجبیږي.دا زمونږ مذهب دې.

**دلائله** ① دلیل دا حدیث دې چې النَّبِيُّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ جَمَعَ بَيْنَ الدِّيَةِ وَالْقَسَامَةِ فِي حَدِيثِ ابْنِ سَهْلٍ ([2]) چه نبيّ کریم صلی الله علیه وسلم د سهل رضی الله عنه په حدیث کښې دیت او قسامت جمع والې اوکړو

② اوهم دغه شان د زیاد بن ابومریم په حدیث کښې دواړه جمع کړې شوي دي. ([3])

③ او دغه شان د قبیلهٔ همدان په یو ښاخ وادعه کښې دا واقعه راپیښه شوه.نو فاروق اعظم رضی الله عنه هم قسامت او دیت کښې جمع فرمائیلې وه.

| |
|---|
| وَلَا يُقْضَى عَلَيْهِ بِالْجِنَايَةِ وَإِنْ حَلَفَ اوفیصله به نشي کولې په ده باندې د جنایت اګرکه قسم اوخوري |

**تشریح** د مقتول د ولی نه په قسم نشي اخستې اوکه هغه قسم اوخوري نو هم به په هغه باندې د

---

[1] مسلك الشافعي ومالك:- امام شافعي رحمه الله اوفرمائیل کله چه هلته څه قرینه وي نو د اولیاء نه پنخوس قسمونه اخستلې شي و اولیاء دپاره به مدعی علیه باندې د دیت فیصله ورکولې شي.دعوه که د (قتل) عمد وي اوکه د خطاء وي. امام مالك رحمه الله فرمائی.که د مدعی دعوه د قتل عمد وي.نو دمدعی علیهم (د محلې خلقو) نه چه مدعی څوك اختیار کړي.د هغوی نه به قصاص اخستلې شي.[غرر الافکار، شامي]

[2] ) کماتقدم تخریجه في اول الباب)۔

[3] ) قال الزیلعي رحمه الله وحدیث زیاد غریب و وری البزارفي مسنده ..عن أبي سلمة بن عبدالرحمن عن أبیه قال کانت القسامة في الدم یوم خیبر وذکر ان رجلاً من الأنصارمن أصحاب النبي صلی الله علیه وسلم فقد تحت اللیل فجاءت الأنصار فقالوا إن صاحبنا یتشحط في دمه فقال أتعرفون قاتله؟قالوا لا إلا أن الیهود قتلته فقال رسول الله إختاروا منهم خمسین رجلاً فیحلفون بالله جهد أیمانهم ثم خذوا الدیة منهم ففعلوا (نصب:۵/۱۹۵)۔

جنايت فيصله نشي کولې.چې دا قتل ده کړې دې.

**د محلې د خلقو د قسم خوړلو نه د انکار کولو حکم**

| |
|---|
| وَاِنْ أَبَى وَاحِدٌ مِنْهُمْ او که په دوی کښې یو کس د قسم نه انکار اوکړو حُبِسَ نو هغه به قید کولې شي حَتَّى يَحْلِفَ تردې چه هغه قسم اوخوري |

**تشریح** ﴾ که د محلې په خلقو کښې چا د قسم نه انکار اوکړو.نو ترکومه پورې چه هغه قسم اونه خوري.تر هغه وخته به دې په قید کښې اچولې شي.

**دلیله** ﴾ ځکه چه په باب د قسامت کښې صرف مال مقصود نه دې.بلکه یمین هم اصل مقصود دې.ځکه چه دا د وینې معامله ده.چه دا ډیره محترمه ده.نو دلته قسم هم واجب دې.او دیت هم واجب دې.

**که په محله کښې پنځوس قسمونه پوره نشي نو د قسم طريقه**

| |
|---|
| وَاِنْ لَمْ يُكْمِلْ أَهْلُ الْمَحَلَّةِ او که د محلې د خلقو تعداد پوره نشو كُرِّرَتِ الْأَيْمَانُ عَلَيْهِمْ نو په دوی به قسمونه مکرر کولې شي.حَتَّى تَتِمَّ خَمْسِينَ تردې چه پنځوس (قسمونه) پوره شي |

**تشریح** ﴾ وراندې وئیلې شوی دی.چه د محلې د خلقو د پنځوسو سړو نه به قسم اخستلې شي.نو که اتفاق سره پنځوس تعداد پوره نشي.نو د موجوده کسانو نه به مکرر قسم اخستلې شي.چه د پنځوسو تعداد پوره شي.

**دلیله** ﴾ د حضرت عمر رضي الله عنه ([1]) او د قاضي شريح اونخعي رحمهما الله ([2]) نه هم دغه شان منقول دې.او چونکه دپنځوسو شمیر د حدیث نه ثابت دې.نو څومره چه ممکنه وي.(د پنځوسو قسمونو تعداد) پوره کول واجب دی.او ددې صورت دلته هم دا دې.کوم چه ذکر شو.

**په بچي، مجنون، ښځه او غلام باندې د قسامت نه کیدو وجه**

| |
|---|
| وَلَا يَدْخُلُ فِي الْقَسَامَةِ صَبِيٌّ وَلَا مَجْنُونٌ)او په بچي او لیوني باندې قسامت نشته وَلَا امْرَأَةٌ وَلَا عَبْدٌ) اونه په ښځه او نه په غلام باندې (قسامت شته). |

**تشریح** ﴾ په قسامت کښې به په ماشوم، لیوني، ښځه او غلام باندې قسم نه وي.

**دلیله** ﴾ ځکه چه قسم قول صحیح ته وائي.او قسم په هغه خلقو باندې واجبیږي.کوم چه امداد کولې شي.او دلته رومبی دواړه قول صحیح نشي وئیلې.اوآخری دواړه اګرچه په صحیح قول کلام کولې شي.خو مدد نشي کولې.

**په کومو صورتونو کښې د محلې په خلقو قسامت او دیت نشته؟**

| |
|---|
| وَاِنْ وُجِدَ مَيِّتًا اوکه مړې اوموندې شي لَا أَثَرَ بِهِ چه په ده باندې (د قتل) اثر نه وي فَلَا قَسَامَةَ وَلَا دِيَةَ نو نه قسامت شته او نه دیت شته وَكَذَلِكَ اِنْ كَانَ الدَّمُ يَسِيلُ مِنْ انفه اوهم دغه شان حکم دې چې وی وینه بهیږي د پوزې دده نه أَوْ دُبُرِهِ یا دده د دبر أَوْ فَمِهِ یا دده د خولې نه |

**تشریح** ﴾ که په محله کښې مړ انسان ملاؤ شو خو په ده باندې د زخم هیڅ اثر نه وو.نو په دې کښې نه قسامت شته اونه دیت دغه شان که دده د پوزې یا دبر یا خولې نه وینه روانه شوې وی نو دغه حکم دې

---

[1] اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه (نصب:۱۹۸\۵).

[2] حديث شريح اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه وحديث النخعي[رح] اخرجه عبدالرزاق في مصنفه (نصب:۱۹۹\۵).

چې په دې کېږي نه قسامت شته اونه ديت

**دليل>** ځکه چه ددې ځايونو نه عام طور باندې دبل کس د فعل نه بغير پخپله هم وينه راوځي.په ،، باب الشهيد ،، کښې هم ددې بيان تير شوې دې.

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ خَرَجَ مِنْ عَيْنَيْهِ أَوْ أُذُنَيْهِ نوکه وی وينه چې راوتلې وی دده د سترګو نه يا دده د غوږونو نه فَهُوَ قَتِيلٌ نو دې قتل کړې شوې دې |

**تشريح>** اوکه دده د سترګو يا غوږونو نه وينه وتلې وی نو دا ددې خبرې دليل دې چې دې مقتول دې

**دليل>** ځکه چې ددې اندامونو نه پخپله وينه نه اوځی بلکه د چا د تشدد په وجه ترې اوځی.نو په دې صورت کښې به قسامت او ديت وی.

**په ځاروی باندې دموندلی شوی مقتول د ديت حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيلُ عَلَى دَابَّةٍ او کله چه مقتول په يو ځاروی باندې اوموندلې شی يَسُوقُهَا رَجُلٌ چه دا يو سړې شړی فَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو ديت به دده په عاقله باندې وی دُونَ أَهْلِ الْمَحَلَّةِ په محلې والا باندې به نه وی |

**تشريح>** يو کس يو ځاروې روان کړې دې.او په دې باندې يو مقتول دې.نو دده ديت به هم په ده باندې واجب وی.لکه که مقتول دده په کور کښې ملاو شوې وې.نو هم دا حکم به وو.بيا که دا سړې ئې د شا طرفه شړی.يا ئې د مخکښې طرفه راکاږی.يا په دې باندې سور وی.ټول برابر دی.

**دليل>** ځکه چه مقتول د هغه په لاس کښې دې نو داسې شوه لکه چه دده په کور کښې وی

**په يوکورکښې د موندلی شوی مقتول د قسامت او ديت حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا وُجِدَ الْقَتِيلُ فِي دَارِ إِنْسَانٍ اوکه مقتول د يو انسان په کور کښې اوموندلې شی فَالْقَسَامَةُ عَلَيْهِ نو قسامت به هم په ده وی |

**تشريح>** که يو مقتول ديوکس په کور کښې اوموندې شی.نو قسم به صرف په کور والا باندې وی.

**دليل>** ځکه چه د کورمالك يواځې هم هغه دې.نو هغه به يواځې د محلې د خلقو په درجه کښې وی.

| |
|---|
| وَالدِّيَةُ عَلَى عَاقِلَتِهِ او ديت دده په عاقله باندې دې |

**تشريح>** او ديت به دده په مددګار خاندان باندې وی.

**دليل>** ځکه د عاقله فريضه ده.مدد او نصرت کول، او د عاقله د مدد په وجه انسان پخپل ځان کښې قوت او طاقت محسوسوی.

**قسامت به په اصل اوسيدونکو وی او هغه په کرايه دارو به هم وی؟**

| |
|---|
| وَلَا يَدْخُلُ السُّكَّانُ فِي الْقَسَامَةِ او په قسامت کښې به سکان (د ملکيت نه بغير اوسيدونکی) نه داخليږی نيز مَعَ الْمُلَّاكِ د مالکانو سره عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[1] د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز |

**تشريح>** د يوې محلې څه اوسيدونکی خو هغه دی.کوم چه ددې ځائې اصلی اوسيدونکی دی.او ددې

---

[1] القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(٤٤٧\٥) والهندية (٧٨\٦) وملتقى (٤٠٣\٤) نقلاً عن القول الراجح (٣٦٥\٢)–

ځائې د زمکو مالکان دي.او بعضې هغه دي.کوم چه د ملکیت نه بغیر کرایه وغیره باندې دلته اوسیږي.نو قسامت به صرف په مالکانو باندې وي.په سکان (په کرایه وغیره اوسیدونکي) به نه وي.دا د طرفینو رحمهماالله مذهب دې.

**دلیلهما** > د بقعې (او علاقې) نصرت دپاره مالکان مختص دي.د ملکیت نه بغیر اوسیدونکي نه دي.ځکه چه د ملکیت نه بغیر اوسیدو کښې قرار او همیشکي نشته.په خلاف د مالکانو، نو د تدبیر دلالت به په مالکانو باندې وي.او هم په دوی به حفاظت ضروري وي.نو کوتاهي د مالکانو د طرفه ده.نو هم دوی به کرفتارولې شي.

**مسلک ابي یوسف** > امام ابویوسف رحمه الله فرمائي.چه قسامت به په دواړو وي.ځکه چه د قسامت او دیت تعلق تدبیر سره دې.او په دې معامله کښې ټول برابر دي.

**دلیله** > د دوی دلیل دا وو.چه اوګورئ نبي کریم ﷺ په یهودو باندې قسامت او دیت واجب کړې وو.([1]) حالانکه هغوی د خیبر مالکان نه وو.بلکه د ملکیت نه بغیر د هغه اوسیدونکي وو.ددې نه معلومه شوه.چه په غیرمالکانو باندې هم قسامت او دیت شته.

**الجواب عنه** > د دې نه جواب دا دې چه هغوی مالکان وو.نبي کریم ﷺ هغوی لره د هغوی په زمکو او جاندادونو قائم ساتلي وو.او د هغوی نه به ئې چه کوم څه وصولول.هغه به ئې د خراج په طریقه اخستل.

| |
|---|
| وَهُوَعَلٰی اَهْلِ الْخِطَّةِ اودا قسامت به په اهل خطه وي دُوْنَ الْمُشْتَرِيْنَ په اخستونکو باندې به نه وي وَلَوْبَقِیَ مِنْهُمْ وَاحِدٌ اکرچې په اهل خطه کښې یو هم باقي وي |

**تشریح** > د محلې خلق په چا چې قسامت واجبیږي په هغوی کښې څه خو هغه دي چا ته چې د مسلمانانو امام په وخت کښې د دې زمکې نه څه حصه ورکړې وه څه چې دا علاقه فتح شوې وه.دا اهل خطه دي.اوکه اهل خطه نه وي نو بیا به د هغوی اولاد وي.په هغوی به قسامت وي.اودویمه ډله د هغه خلقو ده چې چې دا زمکه اخستي وي.اوکورونه ئې په کښې آباد کړي وي.

**مسلک الطرفین** > د طرفینو په نیز په به قسامت صرف په اهل خطه باندې وي په اخستونکو به نه وي تردې که په اهل خطه کښې صرف یو کس پاتې شوې وي او نور نه وي نو په هغه به قسامت واجب وي.

**مسلک ابي یوسف** > دامام ابویوسف په نیز به قسامت په اهل خطه او اخستونکو دواړه قسمه خلقو باندې وي.

**په کشتئ کښې د موندلې شوي مقتول د قسامت حکم**

| |
|---|
| وَاِنْ وُجِدَ الْقَتِیْلُ فِیْ سَفِیْنَةٍ اوکه مقتول په کشتئ کښې اوموندې شي فَالْقَسَامَةُ عَلٰی مَنْ نو قسامت به په هغه خلقو باندې واجب وي فِیْهَا کوم چه په کشتئ کښې دي مِنَ الرُّکَّابِ یعنی سوارلئ وَالْمَلَّاحِیْنَ اوکشتئ چلونکي (مانړکي) |

**حل اللغة** > ① **سفینة**: کشتئ ② **ملاحین**: جمع د ملاح ده د کشتئ چلونکي ،مانړکي)

**تشریح** > که مقتول په کشتئ کښې وي.نوکوم خلق چه په کشتئ کښې دننه دي.هم په هغوی باندې قسامت او دیت واجب دې.که هغوی سواره وي.که مالکان وي.او که مانړکي وي.ټول به ضامن وي.او د ریړې (خرګاډي) هم دغه حال دې.نو د بسونو به هم دا حال وي.

---

[1] تقدم تخریجه)_

**دليله** > په دوی باندې ځکه واجبيږي چې کشتۍ هم د دوی په لاس کښې ده .نومعلومه شوه چې دا هم دوی کړې دې.بل چا نه دې کړې.

**د محلې په جمات کښې د موندلې شوي مقتول د قسامت مسئله**

(وَإِنْ وُجِدَ فِي مَسْجِدِ مَحَلَّةٍ)او که مقتول د محلې په جمات کښې اوموندې شو فَالْقَسَامَةُ عَلَى أَهْلِهَانو قسامت به د محلې په خلقو وي

**تشريح** > د محلې د جمات حفاظت او تدبير د محلې د خلقو فريضه ده.نو که د محلې په جمات کښې څوک مقتول اوموندې شو.نو قسامت او ديت به د محلې په خلقو واجب وي.

**دليله** > ځکه چې د جمات انتظامات وغيره هم د دوی سره تعلق ساتي.اوهم د دوی په محله کښې دې نو قسامت او ديت به هم په دوی وي.

په جامع جمات يا په عامه لاره کښې د موندلې شوي مقتول د قسامت حکم

وَإِنْ وُجِدَ فِي الْجَامِعِ أَوْالشَّارِعِ الْأَعْظَمِ او که مقتول په جامع جمات يا په عامه لاره کښې اوموندې شي فَلَاقَسَامَةَ فِيهِنو په دې کښې قسامت نشته وَالدِّيَةُ عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او ديت په بيت المال باندې دې

**حل اللغة** > ① **الشارع الاعظم:** لاره لويه

**تشريح** > که په جامع جمات کښې يا په عامه لاره کښې مقتول اوموندې شو.نو په دې صورت کښې قسامت نشته.او

ديت به د بيت المال نه ادا کولې شي.

**دليله** > ځکه چه هيڅ څوک سرې يواځې د جامع جمات يا عامې لارې يا پل سره مخصوص نه دې.بلکه دا څيزونه د عامو مسلمانانو دپاره دی.او د بيت المال مال هم د عامو مسلمانانو دې.نو ددوی د مال نه به ديت ادا کولې شي.

**په غير مملوکه ځنګل کښې د موندلې شوي مقتول د قسامت مسئله**

(وَإِنْ وُجِدَ فِي بَرِّيَّةٍ)اوکه مقتول په يو ځنګل کښې ملاو شي لَيْسَ بِقُرْبِهَا عِمَارَةٌچه دې ته نيزدې هيڅ آبادي نه وي فَهُوَ هَدَرٌنو دا فضول ده

**حل اللغة** > ① **برية:** ځنګل

**تشريح** > که مقتول په يو داسې ځنګل کښې ملاو شي.چه دا دچا مملوك نه وي.نو په هيڅ چا قسامت او ديت نشته.بلکه دده وينه عبث ده.

په هدايه کښې ئې دا تفصيل کړې دې چې په دې شرط چه دې ځنګل سره هيڅ آبادي نه وي.چه ددې ځنګل نه هغه آبادئ ته آواز اورسيږي.ځکه چه هرکله دې ته نيزدې داسې آبادي نشته.نو ده له هيڅ څوك فرياد پوره کونکې نشي راتلې.او په نه راتلو کښې د هيڅ يوکس د طرفه کوتاهي نشته.خو که دا ځنګل د چا مملوك وي .بيا به ددې ځنګل د مالك په عاقله باندې ديت واجب وي.

**د دوو کلو په منځ کښې د موندلې شوي مقتول د قسامت حکم**

وَإِنْ وُجِدَ بَيْنَ قَرْيَتَيْنِ او که مقتول د دوو کلو په منځ کښې ملاو شي كَانَ عَلَى أَقْرَبِهِمَانو د ديت وجوب به په دوی کښې زيات نيزدې والا باندې وي

**حل اللغة** > ① **قريتين:** تثنيه د قرية، کلې

**تشريح** ﴾ كه مقتول ددووكلوپه منځ كښې ملاو شي.نوكوم(كلي)چه دې ځائې ته نيزدې وي.دهغې اوسيدونكو باندې به قسامت او ديت واجب وي.

**دليله** ﴾ ځكه چه ددې ځائې مدد هم ددوی فريضه ده.نو هم دوی طرف ته كوتاهی راګرځولې شوې ده.په دې وجه به دوی ددیت ذمه دار وي.

| |
|---|
| وَإِنْ وُجِدَ فِي وَسَطِ الْفُرَاتِ او كه مقتول د فرات درياب په منځ كښې ملاو شي يَمُرُّ بِهَا الْمَاءُ چه دا اوبه اوړی فَهُوَ هَدَرٌ نو دا عبث دې |

**تشريح** ﴾ اوكه مقتول د فرات دريا په غاړه نه بلكه په منځ كښې ملاو شي.چه د اوبو چپې ځان سره اوړی وي.نو دده ديت به په هيڅ چا هم واجب نه وي.

**دليله** ﴾ ځكه چه دا د هيڅ چا په قبضه كښې نه دې.او د فرات لاندې (په حكم كښې) هر هغه درياب داخل دې. كوم چه د چا په ملكيت كښې نه وي.

### د لوئې درياب په غاړه د راګيرشوی مقتول د ديت او قسامت مسئله

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ مُحْتَبَسًا بِالشَّاطِئِ اوكه مقتول د فرات (درياب) په غاړه راګيرشوې وی فَهُوَ عَلَى أَقْرَبِ الْقُرَى مِنْ ذَلِكَ الْمَكَانِ نو دا (وجوب د ديت) به دې ځائې ته نيزدې كلی والو باندې وی |

**حل اللغة** ﴾ ① **محتبس:** راګيرشوې،بندشوې ② **الشط:** غاړه

**تشريح** ﴾ كه مقتول د لوئې درياب په غاړه راګير شوې دې.نو كوم كلې چه دې ځائې ته نيزدې وی.هم په هغوی به ديت واجب وی.

**دليله** ﴾ ځكه چه ددې ځائې مدد هم ددوی فريضه ده.نو هم دوی طرف ته كوتاهی راګرځولې شوې ده.په دې وجه به دوی ددیت ذمه دار وي.

### د مقتول ولی د محلې د خلقو نه علاوه په بل سړی باندې دعوه كول

| |
|---|
| وَإِنْ ادَّعَى عَلَى وَاحِدٍ مِنْ غَيْرِهِمْ اوكه ددوی نه په علاوه كښې په يوكس باندې ولی د قتل دعوه اوكړله سَقَطَتْ عَنْهُمْ نو د محلې د خلقو نه به قسامت ساقطيږی |

**تشريح** ﴾ كه د مقتول ولی د محلې د خلقو نه علاوه په بل يوكس باندې د قتل دعوه اوكړله.نو اوس د محلې په خلقو نه قسامت شته.او نه ديت شته.

**دليله** ﴾ هركله د محلې په خلقو قسامت واجبيږی.نو دا ددې خبرې دليل وی.چه قاتل هم ددوی نه يوكس دې.نو هركله چه ولی د محلې په خلقو كښې يوكس متعين كړو.نو خبره اوس هم هغه شان شوه.ځكه چه وړاندې هم د محلې خلق قاتل شمار كړې شوی وو.او هركله ئې چه په دوی كښې يوكس متعين كړو.نو تقديراً اوس هم هغه شان قاتل دی.ځكه په دوی ضروری وه.چه دوی د قاتل لاس نيولې وې.او هغه ئې ظلم ته نه وې پريخودې.

### د قاتل معلومولو دپاره د قسم خوړلو په جواب كښې د.. فلانی سړی خودلو.. حكم

| |
|---|
| وَإِذَا قَالَ الْمُسْتَحْلَفُ او كله چه يو قسم خورونكی اووئيل قَتَلَهُ فُلَانٌ چه مقتول فلانی قتل كړې دې اُسْتُحْلِفَ بِاللَّهِ نو هغه ته به داسې قسم وركولې شی مَا قَتَلْتُ چه د خدائې قسم ما نه دې قتل كړې وَلَا عَرَفْتُ لَهُ قَاتِلًا غَيْرَ فُلَانٍ .او نه زه د فلانی نه علاوه بل څوك قاتل پيژنم |

**تشريح** ﴾ كله چه د يو مقتول په باره كښې د يوكس نه قسم واخستلې شو.نوهغه داسې اووئيل.چه دا

فلاني سړی قتل کړي دي.نو اوس هم دا قسم پوره نشو.

**دلیله** ﴿ څکه کیدي شي.چه فلاني قتل کړي وي.خوهغه سره دې پخپله هم شریك وي.یا مثلاً دده پلار شامل وي.چه هغه (پلار په قسم کښې) ده پریخودي وي.نو د قسم پوره کولو دپاره به اوس ده ته داسې قسم ورکولې شي.یعني هغه به داسې وائي. چه (بالله ما قتلتُ ولا عرفتُ له قاتلاً غیر فلان)

| |
|---|
| وَاِذَا شَهِدَ اثْنَانِ مِنْ اَهْلِ الْمَحَلَّةِ عَلٰی رَجُلٍ او کله چه د محلې په خلقو کښې دوو سړو د داسې سړي خلاف ګواهي ورکړله مِنْ غَیْرِهِمْ چه هغه ددوی څنې نه دې اَنَّهُ قَتَلَ چه هغه دا مقتول قتل کړي دې لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُمَا نو ددوی شهادت به نشي قبلولې |

**تشریح** ﴿ د محلې دوو سړو د داسې سړي په باره کښې ګواهي ورکړله.چه هغه ددوی د محلې نه دې.چه هغه مقتول قتل کړي دې.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دا ګواهي نشي قبلولې.

**دلیله** ﴿ دلیل دادې.چه ددې خلقو کوتاهي خو ضرور ده.څکه چه قتل ددوی په محله کښې شوې دې.په دوی حفاظت واجب وو.نو ددی دکوتاهئ په وجه دوی د قاتلانو په درجه کښې راغلی دی.او خصم جوړ شوی دی.خو اتفاقي خبره دا ده.چه اوس ولی په غیر باندې د قتل دعوه اوکړله. چه په دې وجه دا خلق د خاصمانو په فهرست کښې نه دی.خو د رومبئ شبهې په وجه به ددوی شهادت نشي قبلولې.او دوی به داسې ګنړلې شي.لکه چه یوکس د چا وصی دې.خو اوس هغه د بچې د بالغ کیدو په وجه د وصی کیدو نه خارج شو.او اوس هغه ددې بچی ګواه دې.نو اوس به هم دده ګواهی نشي قبلولې.دغه شان حکم به دلته هم دې.

**مسلک الصاحبین** ﴿ د صاحبینو رحمهما الله په نیز به دا ګواهي قبلولې شي. ([1])

**دلیلهما** ﴿ دلیل دا دې.چه د محلې خلق اګرچه په نشانه وو.چه هم دا خلق خصم جوړ شی.خو اوس چه کله ولی د مقتول ددوی نه په علاوه باندې دعوه اوکړله.نو اوس ددوی په نسبه باندې کیدل باطل شو.نو اوس ددوی په شهادت کښې هیڅ شبه پاتې نشوه.او دا بالکل داسې اوګنړئ.لکه چه د یوکس څوك وکیل بالخصومت وی.نوهغه د خپل مؤکل ګواه نشي جوړیدې.خو که مؤکل هغه د خصومت نه وړاندې د وکالت نه معزول کړي وی.نو اوس هیڅ شبه پاتې نشوه.نو اوس به دهغه ګواهی قبلولې شي.نو دلته به هم دغه شان کیږی.

# كِتَابُ الْمَعَاقِلِ

**ترجمه** ﴿ (دا) کتاب د معاقلو (خلقو په بیان کښې) دې.

**تشریح** ﴿ وړاندې د دیاتو بیان وو.او په دې کښې به د هغه خلقو بیان کولې شی.په کومو چه دیت واجبیږی. دلته اصل عبارت داسې دې.،، کتاب أهل المعاقل،، او اهل معاقل، عواقل دی.خو د عامو مصنفینو دا عادت دې.چه دوی دا په حذف د مضاف سره بیانوی.

[1]) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في كشف الأسعار(۲\۳۱۳) والهندية (۶\۷۹) نقلا عن القول الراجح (۲\۳۶۸)-

**په عاقله باندې څوم څوم دیت لازمیږي ددې سبب او دلیل**

| |
|---|
| الدِّيَةُ فِي شِبْهِ الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ دیت په شبه عمد او په خطاء کښې دي وَكُلُّ دِيَةٍ وجبت بِنَفْسِ الْقَتْلِ عَلَى الْعَاقِلَةِ او هرهغه دیت کوم چه د نفس قتل په وجه واجبیږي.هغه په عاقله باندې دي |

**تشریح** > هرهغه دیت کوم چه د نفس قتل په وجه واجبیږي.یعنی د دم عمد نه د مصالحت په وجه او د پلار کیدو په وجه نه واجبیږي(یعنی چه قاتل پلار وی.نوپه دې صورت کښې دیت صرف په پلار باندې دې.په عاقله باندې نه دې) بلکه د نفس قتل په وجه واجبیږي. یعنی په دې باندې د قتل موجب دیت وی.که هغه قتل شبه عمد وی.اوکه قتل خطاء وی.نو داسې دیت به پخپله قاتل باندې واجب نه وی.بلکه دده په مددګار خاندان باندې به واجب وی.او د دیاتو تفصیل په ،،کتاب الدیات،، کښې تیر شوې دې.

**دلائل** > ① دحمل بن مالك دوه ښځې وې.په دوی کښې یوې دویمه د خیمې په لرګی باندې اووهله.چه په دې سره د هغې حمل ساقط شو.او پخپله هم مړه شوه.په دې باندې نبی کریمﷺ د ضاربه (کومې ښځې چه وهل کړی وو د هغې) اولیاو ته حکم اوفرمائیلو.چه ددې دیت اداکړي. [1]

② عقلی دلیل دا دې چې د مقتول نفس محترم دې. چه دا عبث نشی ګرځولې کیدې.او خاطی هم معذور دی.که خطاء سره قتل شوې وی.بیا هم معذور دې .او په شبه عمد کښې هم معذور دې.ځکه چه دلته د آلې استعمال د تادیب دپاره وو.هغه اتفاق سره مړ شو.بهرحال دواړو صورتونو کښې قاتل معذور دې.بیا هم که په قاتل باندې عقوبت (سزا) واجب کړې شی.او هغه هم پوره دیت، نو د قاتل بربادی او هلاکت یقینی دې.په دې وجه به د آسانتیا دپاره دده سره عاقله ملاوولې شی.چه قاتل د تباهئ نه بچ شی.

**د عاقله مصداق**

| |
|---|
| وَالْعَاقِلَةُ أَهْلُ الدِّيوَانِ ان كَانَ الْقَاتِلُ مِنْ أَهْلِ الدِّيوَانِ او عاقله اهل دیوان دی.که قاتل د اهل دیوان ځنې وی |

**تشریح** > دیت په عاقله باندې د مدد په بناء واجبیږي.اوس ضرورت راپیښ شو.چه مددګار کوم خلق دی.او هغه کوم خلق دی.چه هغوی ته عاقله ونیلې شی.نو په دې کښې رومبی نمبر کښې اهل دیوان دی.

| |
|---|
| يُؤْخَذُ مِنْ عَطَايَاهُمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ نو دیت به ددوی د عطایانو نه په دریو کالونو کښې اخستلې شی |

**حل اللغة** > ① **عطایا** جمع د عطیة، ورکړه

**تشریح** > اوس سوال کیږي.چه اهل دیوان کوم خلق دی.نو ددې وضاحت ئې کړې دې.چه ددې حاصل دا دې.چه کوم خلق په فوج کښې بهرتی کیږي.نو د هغه نوم په سرکاري کاغذونو او رجسترو کښې لیکلې کیږي.بیا ددوی مختلفې کمپنئ (یونټې) وی.او مختلف جماعتونه وی.او په جدا جدا رجسترو کښې ددوی نوم لیکلې شوې وی.یعنی د هرې کمپنئ رجستر جدا جدا وی.نو کوم خلق چه د یوې کمپنئ افراد دی.هغوی خپل منځ کښې د یو بل عاقله دی.ځکه که په دوی کښې یوکس ته څه حادثه راپیښه شی.نو هغه به د خپلو ملګرو نه مدد طلب کوی.نوکه په دوی کښې د یوکس نه څه داسې کار اوشی.چه

[1] اخرجه الطبرانی فی معجمه (نصب:۵\۱۶۰)۔

هغې سره دیت واجب شي .نو هغه به هم په دې اهل دیوان باندې واجب وي.او دیوان په معنی د رجستر دی.یعنی دده د کمپنۍ په خلقو باندې. ([1])

**دلیله** په اهل دیوان باندې د دیت په وجوب باندې د صحابو اجماع ده.ځکه چه کله حضرت عمرفاروق رجسترونه مدون (او رائج) کړل.نو په اهل دیوان باندې ئې دیت مقرر کړو.او دوی دا کار د صحابو په موجودګۍ کښې کړې دې.چه په دې کښې هیڅ یو صحابي نکیر اونکړو.

**دلائل التقدیر بثلاث سنین** ① پاتې شوه دا خبره چه دیت ادا کول په دریو کالو کښې ولې دی؟ نو ددې وجه دا ده.چه دا د نبی کریم نه نقل دی. ([2])

② دحضرت عمر نه منقول دی. ([3])

③ چونکه دا سرکاری انعامونه په یو کال کښې یوځل ورکولې شي.اودعطیاتو نه دیت اخستل د آسانتیا په غرض سره دی.نو د آسانتیا تقاضه دا شوه.چه قسطوار به په دریو کالو کښې دیت وصولولې شي.

**ددیت ادا کولو طریقه او موده**

| |
|---|
| فَإِنْ خَرَجَتْ الْعَطَايَا فِي أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثِ سِنِينَ نوکه درې عطایانې د دریو کالو نه په زیاته کښې یا په کم کښې اووتل أَوْ أَقَلَّ أُخِذَ مِنْهَا نو دیت به هم ددې نه اخستلې شي. |

**تشریح** عام طور به داسې کیدل.چه د ماهانه رزق او میاشت په میاشت تنخواه نه علاوه چه به فوج ته کوم سالانه انعام ملاویدو.هغه به په یو کال کښې یوځل ورکولې شو.نو ددې نه به د هر کال په عطایانو کښې د دیت ثلث وصولولې شو.چه په دریو کالو کښې پوره دیت ادا کړې شي.خو که دا عطایانې د دریو کالو په ځانې شپږو کالونو کښې ملاو شي.نو بیا به په شپږو کالونو کښې دیت وصولولې شي.یعنی کال په کال به ۱\۶ وصولولې شي.اوکه اتفاق سره د دریو کالو عطایانې په یو کال کښې ورکړې شي.نو پوره دیت به هم ددې یو کال عطایانو نه وصولولې شي.

**دلیله** ځکه مقصود خودا وو.چه کوم دیت وصول شي.هغه ددوی د عطایانو نه وصول شي.او دلته هم دغه شان ده.

**لحاظ امرین** خو دا کومې عطایانې چه اوس ملاو شوی دی.په دې کښې به د دوو خبرو لحاظ ساتلې کیږی ① په دې کښې به دیت هغه وخت واجب وي.کله چه قاضی په اهل دیوان باندې د دیت د وجوب فیصله ورکړله .نو د قاضی د حکم نه پس به دا عطایانې مجاهدینو ته ملاوشوی وي.

② دا عطایانې د راروانو کالونو دپاره پیشګی ورکړې شوی وي.وجه ددې دا ده.چه په عاقله کښې کلام دې.نو ددې تعین به د قاضی د قضاء په ذریعه کیږی.نوکه د تیرو شوو کالونو عطایانې بندې شوې وي.او د قاضی د قضاء نه روستو عطایانې ورکړې شوی وي.نو ددې عطایانو نه به دیت نشي اخستلې.ځکه چه دویم شرط موجود نه دې.

---

[1]) **مسلک الشافعي**:-د امام شافعي په نیز به اهل دیوان باندې دیت نه واجبیږي. بلکه ددیت وجوب به د خاندان په خلقو باندې وي.

[2]) قال الزیلعي تقدم تخریجه في باب الجنایات (نصب: ۲۰۷\۵)-

[3]) أخرجه ابن ابي شیبة في مصنفه (نصب:۸۵\۵)-

**که څوك اهل دیوان نه وي نو دده عاقله به څوك وي؟**

وَمَنْ لَمْ يَكُنْ مِنْ أَهْلِ الدِّيوَانِ او څوك چه د اهل دیوان څخې نه وي. فَعَاقِلَتُهُ قَبِيلَتُهُ نو د هغه عاقله د هغه قبیله ده

**حل اللغة** ﴿ ① **الدیوان**: رجستر]

**تشریح** ﴿ که یوکس د اهل دیوان څخې نه وي.نو دده عاقله به دده قبیله او دده خاندان وي.

**دلیله** ﴿ ځکه چه دده مددګار دده خاندان وي.او د مدد په بنیاد باندې د عاقله کیدو مدار دې.

**د دیت طریقه**

تُقْسَطُ عَلَيْهِمْ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ دیت به په قبیله باندې دریو کالو کښې تقسیمولې شی لَا يُزَادُ الْوَاحِدُ عَلَى أَرْبَعَةِ دَرَاهِمَ فِي كُلِّ سَنَةٍ هرکال کښې به د یو یا څلورو درهمو نه زیات نشی اخستلې درهم ودانقان یو درهم اودوه دانقه وَيُنْقَصُ مِنْهَا .او ددې نه کمولې هم شی

**حل اللغة** ﴿ **دانق** د یودرهم شپږمه حصه ده.او دوانق ئې جمع ده.

**تشریح** ﴿ کله چه په قبیلې والو باندې دیت تقسیم کړې شی.نو په دې کښې به دا خیال ساتلې شی.چه پوره دیت به ددوی نه په دریو کالو کښې قسط وار وصولولې شی.او په کال کښې به د هر یو نه صرف یو درهم ا خستلې شی.چه مجموعه درې شی.یا به دهریو نه یودرهم او د یو درهم دریمه اخستلې شی.چه مجموعه څلوردرهمه شی.ځکه چه د هیڅ یوکس نه د څلورو درهمو نه زیات اخستل جائز نه دی.اګرچه د کمولو ګنجائش شته.خو د زیاتو نشته.د صاحب قدوری د عبارت نه په ظاهره دا معلومیږی چې په دریو کلونو کښې د هریو نه د څلورو درهمو نه زیاتې هم اخستې شی.خو اصح قول هم هغه دې کوم چې مونږ په تشریح کښې بیان کړو.

**که د عاقله قبیله د دیت دپاره کافی نه وی نوځه حکم دی ؟**

وَإِنْ لَمْ يَكُنْ تَتَّسِعُ الْقَبِيلَةُ لِذَلِكَ او که قبیله ددې دپاره کافی نه وی ضُمَّ إِلَيْهِمْ أَقْرَبُ الْقَبَائِلِ إِلَيْهِمْ نو د نسب په اعتبار سره به په قبیلوکښې زیاته نیزدې ددوی په طرف ملاوولې شی

**حل اللغة** ﴿ ① **تتسع**: کافی کیږی ]

**تشریح** ﴿ کومه قبیله چه دده عاقله شمار کړې شوې وه.هغه د دیت ادا کولو دپاره کافی نه ده.نو دریمه قبیله به ددوی په طرف ملاوولې شی.کومه چه د نسب په اعتبار سره دوی ته نیزدې وی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه عاقله باندې د دیت وجوب د سهولت په غرض سره دې.او سهولت په دې کښې دی.کوم چه مونږ بیان کړل.چه په یو سړی باندې په پوره دیت کښې د څلورو درهمو نه زیات رانشی.نو د اقرب فالاقرب په لحاظ سره به قبیلې ملاوولې شی.او د ا لاقرب فالاقرب هم هغه ترتیب دې.کوم چه د عصبیاتو ترتیب دې.یعنی رومبې به د قاتل رونړه ملاوولې شی. بیا به د رونړو خامن، بیا ترونه، بیا د ترونو خامن وغیره. (وقد بينا ترتيب العصبيات مفصلاً في درس السراجي)

**قاتل هم عاقله کښې داخل دې اوکه نه؟**

وَيَدْخُلُ الْقَاتِلُ مَعَ الْعَاقِلَةِ او عاقله سره به قاتل داخلولې شی فَيَكُونُ فِيمَا يُؤَدِّي كَأَحَدِهِمْ نو قاتل به په هغه دیت کښې کوم چه ادا کړې شوې دې.په عاقله کښې به د یوکس پشان شی

**تشریح** ﴿ چرته چه عاقله باندې دیت واجب وی.هلته د عاقله یو فرد چه هغه پخپله قاتل دې.په دیت ادا

كولو كښې به شريكيږي.اودې به د قبيلې د يو فرد پشان شمارلې شي.(١)
**دليله>** دليل دا دې. چه جرم دې قاتل اوكړی.او راګيری دې بل څوك، دا كوم انصاف دې؟ په دې وجه به قاتل هم د عاقله سره شريك وی.او په ده باندې پوره ديت څكه نه دې واجب كړې شوې. چه دې په پريشانئ كښې مبتلا نشی.او د دريو، څلورو درهمو په ادا كولو كښې به دده سا نه اوخی.(يعنی هيڅ پريشانی نه ده).

### د آزاد شوی غلام عاقله به د آقا قبيله وی

| |
|---|
| (وَعَاقِلَةُ الْمُعْتَقِ قَبِيلَةُ مَوْلَاهُ)او د معتق عاقله دده د آقا قبيله ده |

**تشريح>** د آزاد كړې شوی عاقله معتق (آزادونكې) او ددې معتق خاندان دې.
**دليله>** څكه چه دې به هم ددوی نه مدد طلب كوی.اوپه دې حديث د مذكوره حديث مَوْلَى الْقَوْمِ مِنْهُمْ (٢)سره هم د دې تآئيد كيږی.

### د مولی الموالاة عاقله به د مولا خاندان وی

| |
|---|
| (وَمَوْلَى الْمُوَالَاةِ يَعْقِلُ عَنْهُ مَوْلَاهُ وَقَبِيلَتُهُ) امام قدوری رحمه الله اوفرمائيل.او مولی الموالات، دده د طرفه به دده مولا او دده قبيله ديت ادا كوی |

**تشريح>** كه په دوو سړو كښې عقد موالات قائم وی.او دده نه خطاء اوشوه.نو ددې ديت به دده مولا او دده د مولا خاندان ادا كوی.
**دليله>** څكه چه لكه څنګه ولاءِ عتاقه خپل منځ كښې د امداد كولو ذريعه ده.دغه شان ولاءِ موالات هم خپل منځ كښې د امداد كولو ذريعه ده.د هداية په دريم جلد كښې په ،، كتاب الولاء،، كښې تير شوی دی.

### عاقله به د څومره جرمانې لازميدو په صورت كښې ذمه دار وی؟

| |
|---|
| (وَلَا تَتَحَمَّلُ الْعَاقِلَةُ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ عُشْرِ الدِّيَةِ) او عاقله به د ديت د نصف عشر نه كم ديت نه ورکوی |
| (وَتَتَحَمَّلُ نِصْفَ الْعُشْرِ فَصَاعِدًا) او عاقله به د نصف عشر يا د زيات برداشت كوی |

**حل اللغة>** ① **تتحمل:** برداشت كوی ② **فصاعدا:** زيات]
**تشريح>** عاقله باندې د ديت وجوب څكه شوې دې.چه قاتل په پريشانو كښې مبتلا نشی.او په پريشانئ كښې مبتلا كيدل به هغه وخت وی.كله چه ديت زيات وی.اوكه كم وی.نو په پريشانئ كښې به نه مبتلا كيږی.بيا په كم او زيات كښې حد په عقل سره نشی معلوميدې.بلكه دا خبره نص سره معلومه شوې ده.
**قدرالضمان>** نص دا خودلې ده.چه د نصف عشر نه كم يعنی كه د پوره ديت د شلمې حصې نه هم كم ديت واجب وی.نو دا به عاقله نه ادا كوی.بلكه دا به قاتل اداكوی.البته كه شلمه حصه يا ددې نه زيات مقدار ديت واجب وی.نو دا به كثير شمارلې شي.او ديت به په عاقله باندې واجب وی.
**دليله>** دلته د ابن عباس رضي الله عنهما حديث دې.چه دا موقوفاً او مرفوعاً دواړه شان نقل دې.په دې كښې پنځه

---

(١) **مسلك الشافعي:**- د امام شافعی رحمه الله په نيز به نه شريكيږی.
(٢) تقدم تخريجه فی الزكاة وغيرها)_

ځیزونه فرمانیلی شوی دی: ① د قتل عمد ذمه داری په عاقله باندې نه ده.،، کمامر، ② که غلام قتل کړې وی.نو ددې ذمه داری د آقا په خاندان باندې نه ده.بلکه د جنایت ولی ته به دا غلام ورکولې شی. ③ که قاتل عمدا قتل کړې وی.او قاتل د مال په اداکولو مصالحت کړې وی.نو دا مال به په عاقله باندې واجب نه وی.بلکه د قاتل په مال کښې به واجب وی. ④ که قاتل پخپله د قتل اقرار کړې دې.او عاقله ددې تکذیب اوکړی.نو په عاقله به دیت واجب نه وی. ⑤ د موضحه د ارش نه کم چه کوم مالی تاوان واجبیږی.دا به عاقله نه ورکوی.بلکه ددې وجوب به د قاتل په مال کښې وی.او وړاندې تیر شوی دی.چه په موضحه کښې نصف عشر یعنی شلمه واجبیږی.نو معلومه شوه.چه ددې نه د کم به عاقله برداشت کونکی (او اوچتونکی) نه وی.

**د جنایت کم مقدار.او د جنایت کونکی په مال کښې به د دیت فیصله کله کولې شی؟**

وَمَا انْتَقَصَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُوَفِي مَالِ الْجَانِي اوکوم چه ددې نه کم وی.هغه به د مجرم په مال کښې وی

**تشریح** > د نصف عشر نه چه کوم کم دې.هغه په عاقله باندې واجب نه دې.بلکه د قاتل په مال کښې واجب دې.

**دلیله** > ځکه چه قیاس دلته متعارض دې.یو قیاس غواړی.چه د قلیل او کثیر په منځ کښې فرق کولو نه بغیر ټول دیت په عاقله باندې واجب وی.او دویم قیاس غواړی.چه په عاقله باندې بالکل واجب نه وی.بلکه ټول په قاتل باندې واجب وی.په دې وجه مونږ قیاسونه پریخودی دی.او نص باندې مو عمل کړې دې.او د مذکوره نص نه صفا معلومه شوه.چه د نصف عشر نه د کم ذمه دار قاتل دې.او دویم حدیث دا هم دې.چه نبی کریم ﷺ عاقله باندې د جنین ارش واجب کړو.چه دا د سړی د دیت ۲۰۱۱ دې.نو کوم مقدار چه ددې نه کم وی.دا به د مالونو په درجه کښې اېښودې شی. لکه څنګه چه د مال ضمان تقویم سره واجبیږی.دغه شان د نصف عشر نه کم تحکیم سره واجبیږی.نو دا به د مجرم په مال کښې واجبولې شی.

**عاقله د کومو کارونو د جنایت برداشت نشی کولې ؟**

وَلَاتَعْقِلُ الْعَاقِلَةُ جِنَايَةَ الْعَبْدِاو عاقله به د غلام د جنایت دیت نه ادا کوی.

**تشریح** > که غلام څوك په غلطۍ سره قتل کړونو د هغه دیت به د غلام د قیمت په حساب سره وی اوپخپله به مولی ته اختیار وی چې غلام ولی د جنایت ته حواله کوی او یا مولی دده دیت ورکړی اوغلام خان سره اوساتی مولی یا د مولی خاندان به دده دیت نه ورکوی که غلام آزاد شی نو بیا به د مولی خاندان دده دیت ورکوی.

وَلَاتَعْقِلُ الْجِنَايَةَ الَّتِيْ اوعاقله به دهغه جنایت دیت نه ورکوی اِعْتَرَفَ بِهَاالْجَانِيْ دکوم چې جنایت کونکې اقرار کړې وی اِلَّااَنْ يُّصَدِّقُوْهُخو دا ده که عاقله ئې تصدیق اوکړی.

**تشریح** > که قاتل دا اووئیل چې د مقتول دومره مال زما په ذمه دې نو دا مال به د قاتل قبیله نه ادا کوی خوکه عاقله دده تصدیق اوکړی چې واقعی د مقتول مال ستا په ذمه دې.اومونږ دا په خوشحالۍ سره ادا کوو.نو دوی ئې ادا کولې شی.

**دلیله** > د سړی اقرار هم په هغه باندې لازمیږی په بل چا باندې نه، د دې وجې د جانی اقرار په عاقله باندې حجت نشی جوړیدې.البته چې عاقله په خپله د ده تصدیق اوکړی نو بیا به ئې ادا کوی ځکه چې په

عاقله باندې د جاني اقرار نه لازمول د عاقل د حق دپاره ډو اوهرکله چې عاقلې پخپله د ورکولو رضا ښکاره کړه نو خبره ختمه شوه.

| |
|---|
| وَلَايَعْقِلُ مَا لَزِمَ بِالصُّلْحِ اوعاقله به نه ورکوی هغه مال کوم چې لازم شوې وی په صلح کولو سره |

**تشريح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.
**دليله** ﴿ دا عدم لزوم ځکه دې چې جاني په عاقله باندې ولايت کمزورې دې.نو دې په خپله صلح باندې په هغوی د يو مال لازمول نشی کولې

| |
|---|
| وَإِذَا جَنَى الْحُرُّ عَلَى الْعَبْدِ جِنَايَةَ خَطَإٍ كَانَتْ عَلَى عَاقِلَتِهِ اوکله چې قتل کړی آزاد سړې غلام لره په قتل خطاء سره نو وی به ديت په عاقله د آزاد سړی باندې |

**تشريح** ﴿ که يو آزاد سړی په خطاء سره غلام قتل کړو.نو په دې صورت کښې به ديت د قاتل په عاقله باندې وی.
**دليله** ﴿ ځکه چې دا ديت د نفس په بدله کښې دې کوم چې په دقتل خطاء په وجه واجبيږی.او د بدل نفس وجوب په عاقله باندې وی.

# كِتَابُ الْحُدُودِ

**تشريح** ﴿ **الحد لغة** ﴿ په لغت کښې حد منع کونکی ته وائی.ددې وجې دربان ته حذاد وائی. (ځکه چه هغه خلق د دننه تلو نه منع کوی)
**الحد شرعا** ﴿ په شريعت کښې حد هغه سزا ته وائی.چه هغه صرف د الله تعالی دحق دپاره مقررشوې وی.تردې چه قصاص ته هم حد نشی ونيلې.ځکه چه دا د بندګانود حق اخستلو دپاره دې. (ددې وجې ولی ته د قصاص معاف کولو اختيارشته) اوتعزيرته هم حد نشی ونيلې.ځکه چه هغه مقدرنه وی.يعنی دهغې څه حد نه وی مقرر.چه په هغې کښې کمې زياتې نشی کيدې. (بلکه قاضی ته دکمی اوبيشی اختيارحاصل وی)

## د زنا د ثبوت طريقه

| |
|---|
| الزِّنَا يَثْبُتُ بِالْبَيِّنَةِ وَالْإِقْرَارِ |

**ترجمه** ﴿ ابوالحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه د زنا ثبوت په ګواهانو سره کيږی.اوپه اقرارکولوسره،
**تشريح** ﴿ اود ثبوت نه مراد داسې ثبوت دې.کوم چه د وخت دامام مخامخ وی.ځکه چه ګواهی يوظاهری دليل دې.اوداقرارهم دا حکم دې.ځکه چه په اقرارکښې هم رښتيا غالب وی.بيا خاص کردکوم څيزپه ثبوت کښې چه نقصان اوشرم وی.او دمسئلې حقيقی علم ته رسيدل ناممکن وی.نوځکه صرف په ظاهرباندې اکتفاء کولې شی.تفصيل به روستو راشی.

## دګواهئ طريقه کار

| |
|---|
| فَالْبَيِّنَةُ أَنْ تَشْهَدَ أَرْبَعَةٌ مِنَ الشُّهُودِ عَلَى رَجُلٍ أَوِ امْرَأَةٍ بِالزِّنَا |

**ترجمه** ﴿ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.دګواهئ ورکولو صورت به دا وی.چه په ګواهانو کښې څلور کسان په يوسړی اوښځه باندې د زنا ګواهی ورکړی.

**تعریح> دلائله>** ① دالله تعالی ددې فرمان د وجې چه «فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِّنكُمْ» یعنی په داسې ښځویاندې دخپلو سړو نه څلورګواهان اولټوئ.
② اوالله تعالی دا هم فرمائیلی دی.«ثُمَّ لَمْ يَأْتُوا بِأَرْبَعَةِ شُهَدَاءَ» بیا که دغه خلقو څلورګواهان قائم نکړل.
③ اورسول الله ﷺ په هغه سړی باندې چا چه په خپله ښځه باندې د زنا تهمت لګولې وو.داسې فرمائیلی وو.ته داسې څلورسړی راوله.ګوك چه ستا په خبره باندې ګواهی ورکړی.(۱)
④دڅلوروسړو په شرطیت کښې د پرده پوشۍ معنی پرته ده.اوپرده اچول بوداسې کاردې.چه ددې ترغیب ورکړې شوې دې.اوفحش اودبې حیائۍ خبرې ته شهرت ورکول ددې پرده پوشۍ دعمل نه خلاف دی.
**دلیله>** روایت دحضرت ابوهریره اوابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې.چه کوم مسلمان دبل مسلمان پرده واخستله.نوالله تعالی به په دنیا اوآخرت کښې دده پرده واخلی.ترمذی ابوداود اونسائی ددې روایت کړې دې.

## د زنا تحقیق کول

| (وَإِذَا سَأَلَهُمُ الْإِمَامُ عَنِ الزِّنَا مَا هُوَ وَكَيْفَ هُوَ وَأَيْنَ زَنَى وَمَتَى زَنَى وَبِمَنْ زَنَى ؟) |
|---|

**ترجمه>** اوکه دغه ګواهان په زنا باندې ګواهی ورکړی.نوبیا به امام دهغوی نه د زنا په باره کښې تپوس کوی.چه زنا څه څیزدې.اوپه کومه طریقه کیږی.اوپه کوم محل کښې کیږی.اوده زنا په کوم ځائې کښې کړې ده.اوکله ئې کړې ده.اوچا سره ئې کړې ده.
**تشریح> دلائله>** ① ځکه چه رسول الله ﷺ د حضرت ماعزبن مالك رضي الله عنه نه د زنا کیفیت ،اودکومې ښځې سره چه ئې زنا کړې وه.ددې ټولوخبروپه باره کښې تپوسونه کړی وو.لکه څنګه چه ابوداود ددې روایت کړې دې.(۱)
②په داسې قسم سوالونوکښې احتیاط ددې وجې واجب دې.چه کیدې شی.دې کس په فرج کښې دڅه کولوپه ځائې څه بل څیز مراد اخستې وی.مثلاً نظربازی(کتل راکتل) کوکۍ اخستل،ئې زنا ګنړلې وی.یا ده په دارالحرب کښې زنا کړی وی.یا په پخوا زمانه کښې ئې کړې وی.یا دکومې ښځې سره چه ئې زنا کړې وی.هلته داسې څه شبه وی.چه دهغې دوجې حد ساقط کیدې شی.حالانکه هغه په خپله دا نه پیژنی. (چه په دې باندې حد ساقطیږی) مثلاً چه یوکس دخپل خوئی د ویښځې سره وطی اوکړله. (نوپه دې صورت کښې حد نه جاری کیږی) خلاصه دا چه ددې ټولو خبروپه باره کښې به امام ښه تحقیق اومعلومات اوکړی.کیدې شی.چه په دې طریقه د حد ساقط کیدو څه موقع په لاس راشی.
ددې وضاحت دا دې.چه په کوم سړی باندې ګواهانود زنا ګواهی ورکړې وی.کیدې شی.چه هغوی ته دزنا پوره معنی معلومه نه وی.یوسړی یوه پردئ ښځه ښکل کړله.اوبیادېر وارخطا د نبی ﷺ په مجلس کښې حاضرشو.اوعرض ئې اوکړلو.یارسول الله ﷺ په ماباندې حد جاری کړه.نو رسول الله ﷺ

---

۱) غربه الزیلعی بهذا اللفظ ثم اخرج عدة احادیث ما هو بمعناه منها حدیث انس بن مالك رضي الله عنه وعزاه الی ابی یعلی الموصلی رحمه الله نصب الرایة ۴۷۸/۳۔
۱) من حدیث نعیم بن هزال اخرجه ابوداود فی الحدود تب ۷ رقم ۴۳۷۷ واحمد فی المسند ۲۱۷/۵) والحاکم فی المستدرك ۳۶۳/۴) والنسائی فی السنن الکبری ۳۰۶/۴) رقم ۷۲۷۴ والبیهقی فی السنن الکبری ۵۷۴/۸)۔

پرې حد جاري نکړلو.او ورته ئې اوفرمائيل.تا مونږ سره مونځ ا وکړو.هغه ورته عرض اوکړو.او.نو نبي ﷺ ورته اوفرمائيل.مونځ او اودس واړه ګناهونه معاف کوي.اوحد ئې پرې جاري نکړلو.

دغه شان که په دارالحرب کښې زنا اوکړي.نوپه هغه باندې حد نه جاري کيږي.دغه شان که ګواهانوپه يوکس باندې د زنا کولوګواهي ورکړله.اودا معلوميدله.چه په زنا باندې کافي موده تيره شوې دې.نوپه دې باندې زنا نه ثابتيږي.ځکه چه ګواهانودومره اوږده موده په ګواهئ کولوکښې روستوالي اوکړلو.اوشريعت حاکم ته ئې خبرورنکړلو.نوداکسان په خپله فاسقان شول.اوددې په وجه دوی دګواهئ ورکولوقابل پاتې نشو.يادغه شان که د يوې ښځې سره داسې حرکت اوکړي.اوهغه دده د ځوی منکوحه وي.يا دده مملوکه وي.تردې چه هغه ګواه بلکه هغه سړې په خپله په دې باندې د زنا ګمان کوي.حالانکه د شريعت په نظرکښې په دې کښې داسې څه خبره موجود نه ده.چه په هغې باندې حد ساقط شي.نوځکه دټولوخبرومعلومات کول پکار دی.چه په غلطه طريقه حدجاري نشي.

| |
|---|
| (فَإِذَا بَيَّنُوا ذَٰلِكَ وَقَالُوا رَأَيْنَاهُ وَطِئَهَا فِي فَرْجِهَا كَالْمِيلِ فِي الْمُكْحُلَةِ وَسَأَلَ الْقَاضِي عَنْهُمْ فَعُدِّلُوا فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ حَكَمَ بِشَهَادَتِهِمْ) |

**حل اللغة** ﴿ ① **ميل**:د رانجو سلائی ② **المكحلة**: رجرومه ③ **السر**:پټ ④ **العلانية**:ښکاره

**ترجمه** ﴿ بيا چه کله دغه ټول ګواهان ددې سرې د زنا کيفيت بيان کړي.اودا اووائي.چه مونږ فلانې سړې په داسې حالت کښې ليدلې وو.چه هغه خپله شرمګاه دفلانئ په ښځې په شرمګاه کښې داسې وردننه کړې وه.لکه څنګه چه په رجرومه کښې سلئ ورداخلولې شي.بيا به قاضي ددغه ګواهان دحال په باره کښې معلومات اوکړي.نوچه په پټه اوپه ښکاره په هرحالت کښې ددوی عدالت معلوم شي.نوبيا به قاضي دهغوی په ګواهئ باندې فيصله اوکړي.

**تشريح** ﴿ يعنې د زنا اوحدودو په ګواهئ کښې به قاضي ددوی ظاهري عدالت (ظاهري شکل اوشباهت اودهغوی په اسلام باندې اکتفاء نه کوي.چه دحدنه جاري کيدو حيله پيدا شي.يعنې چه د ثابتيدو نه بچ شي.

**دليله** ﴿ د شريعت دا نظردې چې څومره کيدې شي حدود دفع کړې دې لکه څنګه چې په حديث کښې راغلي دي. ادْرَءُوا الْحُدُودَ مَا اسْتَطَعْتُمْ (۱)يعنې څومره کيدې شي حدود دفع کړئ

**الاكتفاء بالظاهر في غيرالحدود** ﴿ په خلاف د نوروحقوقوځکه چه په هغې کښې دامام ابوحنيفه رحمه الله په نيزد دغه ګواهانوپه ظاهري عدالت باندې اکتفا کولې شي.خوپه دې شرط چه دويم فريق په دغه ګواهانوڅه اعتراض نه کوي)اودګواهانود پټ اوښکاره عدالت په باره کښې به انشاء الله مونږ په کتاب الشهادات کښې بيان اوکړو.

**داقرارکولوطريقه کار**

| |
|---|
| (وَالْإِقْرَارُ أَنْ يُقِرَّ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ عَلَىٰ نَفْسِهِ بِالزِّنَا أَرْبَعَ مَرَّاتٍ فِي أَرْبَعَةِ مَجَالِسَ مِنْ مَجَالِسِ الْمُقِرِّ كُلَّمَا أَقَرَّ رَدَّهُ الْقَاضِي) |

**ترجمه** ﴿ ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه په خپله داقرارکولوصورت به دا وي.چه عاقل بالغ په خپل ځان په څلورو مجلسونوکښې دزنا کولواقراراوکړي.اوهرځل چه اقرارکوي.نوقاضي به هغه رد کوي.

**تشريح** ﴿ **اشتراط العقل والبلوغ** ﴿ په دې مسئله کښې دمجرم په باره کښې دعاقل اوبالغ شرطونه ددې

۱) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه الترمذي في الحدود باب ۲ رقم ۱٤۲٤)۔

وجي لګولی شوی دی.چه د ماشوم اوليونی اقرار معتبر نه دې.يا دا چه په دوی باندې حد نه واجبيږي.
**اشتراط الاقرار اربع مرات** > څلورخله به اقرارکوی (۱)
**دليل اربع مرات** > دليل هغه حديث دې.چه په هغې کښې دحضرت ماعزبن مالك رضي الله عنه قصه ذکر ده.چه رسول الله ﷺ په هغه باندې دحد په قائمولوکښې روستوالې اوکړلو.تردې چه دهغه څلور خله په څلورو مجلسونوکښې اقراربرابرشو.ددې روايت امام بخاری، مسلم، ابوداود او نسائی رحمهما الله وغيره کړې دې.
**الاستدلال** > که د څلورو نه په کم مقدارکښې هغه اقرارښکاره کيدلو.په کوم چه حد لازميدلو.نونبی ﷺ به د حد په جاری کولو کښې روستوالې نه کولو.ځکه چه حد به واجب شوې وو. (اوچه کله يوڅيزواجب شی.نوپه هغې کښې تاخير د پيغمبر ﷺ دشان سره نه ښائی)
**اختلاف المجلس** > دغه شان په اقرارکښې دمجلس اختلاف هم ضروری دې.
**دليله** > ددې دليل هغه حديث دې.دکوم روايت چه مونږ وړاندې کړې دې.
**کيفية اختلاف المجلس** > دمجلس دمختلف کيدو صورت به دا وی.چه هغه مجرم کله د قاضی په وړاندې اقرار اوکړی. نو قاضی به هرځل يعنی چه کله هم هغه اقرار کوی.قاضی به نې رد کوی.تردې چه هغه لاړ شی.اودومره لرې شی.چه قاضی هغه نشی ليدلې.اوبيابه دوباره راشی.او اقراربه اوکړی.دامام ابوحنيفه رحمه الله نه هم دا نقل دی.
**دليله** > ځکه چه رسول الله ﷺ به دحضرت ماعز رضي الله عنه اقرارهرځل رد کولو.تردې چه هغه به د مدينې د ديوالونو نه پناه شو.(۲)
**واقعة ماعز** > حضرت ماعز رضي الله عنه رسول الله ﷺ ته ورغلو.اوعرض نې اوکړلو.يارسول الله ﷺ ما زنا کړې ده.نوتاسو ما پاك کړئ.په دې باندې رسول الله ﷺ مخ واړلو.نوهغه د بل طرف نه راغلو.اوهم دا عرض نې اوکړلو.نبی ﷺ بيا هم مخ واړلو.بيا هغه د دريم طرف نه راغلو.اوهم دغه عرض نې اوکړلو.اوبيا د څلورم طرف نه راغلو.اودا عرض نې اوکړلو.نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل.چه تاڅلور ځله اقراراوکړلو.دا راته اوښايه.چه تا چا سره زنا کړې ده.هغه اووئيل.ما د فلانئ ښځې سره زنا کړې ده.نبی ﷺ ورته اوفرمائيل.کيدې شی. تا ترې صرف بوسه اخستې وی.کيدې شی چه ته ورته ورتر غاړه وتلې نې.هغه اووئيل.بلکه د ښکاره زنا اقرارنې اوکړلو.په دې باندې نبی ﷺ اوفرمائيل.کيدې شی. په تا د دليونتوب اثر وی.اوپه يوروايت کښې دی.چه نبی ﷺ دهغه دکورخلقو ته څوك د تحقيق کولودپاره اوليږلو.چه آيا تاسو ته ددې کس په عقل کښې څه کمزوری اوفطور ښکاری.هغوی اووئيل نه.بيا نبی ﷺ اوفرمائيل دا محصن (واده شوې) دې؟ نومعلومه شوه.چه اوهغه واده شوې وو.نوبيا نبی ﷺ د هغه د رجم کولو حکم ورکړلو.

**دااقرارپوره کيدونه پس تحقيق کول**

(فَإِذَا تَمَّ إِقْرَارُهُ أَرْبَعَ مَرَّاتٍ سَأَلَهُ عَنِ الزِّنَا مَا هُوَ وَكَيْفَ هُوَ وَأَيْنَ زَنَى وَبِمَنْ زَنَى ، فَإِذَا بَيَّنَ ذَلِكَ لَزِمَهُ الْحَدُّ)

---

(۱). امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه صرف يوځل اقرارکول کافی دی.لکه څنګه چه په نوروحقوقوکښې يوځل اقرار کول کافی وی.

۱) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج ما هو بمعناه عن أبي هريرة رضي الله عنه وعزاه إلى ابن حبان نصب الراية ۳/۴۸۹

ترجمه> امام قدوري رحمه الله فرمائي. کله چه مجرم خپل اقرار څلور خله پوره کړي. نوقاضي به دهغه نه تپوس اوکړي. چه زنا څه کاردې. اوڅنګه کیږي. اوده په کوم ځائي کښې زنا کړې ده. اودکومې ښځې سره ئې کړې ده. نوکله چه دې صحیح صحیح خودنه اوکړي. نوبیا به په هغه باندې حد جاري کړې شي.

دليله> ځکه چه حجت پرې پوره شو. اوددې څيزونود تپوس کولو مطلب مونږ دګواهئ ورکولوپه صورت کښې بیان کړی دی.

**دحد قائمولو طريقه**

| |
|---|
| (فَإِنْ كَانَ الزَّانِي مُحْصَنًا رَجَمَهُ بِالْحِجَارَةِ حَتَّى يَمُوتَ) |

حل اللغة> ① رجم: په کانړو ويشتل ② احصان: ددې اسم فاعل محصن راځي هغه سړي چه واده ئې کړې وي

ترجمه> که وي زناکارمحصن (داسې کس وي. چه په هغه کښې نور څه شرطونه موجود وي. دهغې تفصيل به څو صفحې روسته راشي. انشاءالله) نوحاکم دې په خپله (اونور مسلمانان) په دومره کانړو دې اولي. چه مړ شي.

تشريح> دلائله> ① ځکه چه رسول الله ﷺ حضرت ماعز رضي الله عنه رجم کړې وو. په داسې صورت کښې چه هغه محصن وو. اوپه یومشهورحدیث کښې دی. چه «والزناء بعدالأحصان» دمحصن کیدونه پس زنا کول. په دې خبره د صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع پاتې شوې ده. (۱)

② یوحدیث دا هم دې. چه د یومسلمان وینه د درې خبرونه په یوه خبره باندې حلالیږي. چه هغه د احصان نه پس زنا اوکړي. چه هغه دالله تعالی د رسول ﷺ سره د جنګ دپاره راوتلې وي. یعنی داکو وي. نوهغه به قتل کولې شي. اويا به په سولئ کولې شي. یا به د ملك نه ویستلې شي. هغه کس چه په ناحقه ئې قتل کړې وي. نوهغه به په قصاص کښې قتل کولې شي. اوابوداوددې روایت کړې دې. اوپه صحیحینوکښې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روایت مشهور دې.

**د رجم طريقه**

| |
|---|
| (يُخْرِجُهُ إِلَى أَرْضٍ فَضَاءٍ وَتَبْتَدِئُ الشُّهُودُ بِرَجْمِهِ ثُمَّ الْإِمَامُ ثُمَّ النَّاسُ) |

ترجمه> اوابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي. چه په کوم کس باندې رجم واجب شي. نوحاکم به هغه کولاؤ میدان ته اوباسي. هلته به د ټولونه وړاندې ګواهان هغه په کانړو باندې اولي. دهغوی نه پس امام اود ده نه پس نورخلق.

تشريح> دلائله> ① دحضرت علي رضي الله عنه نه هم داسې روایت نقل دې. (۲)

② ددې وجې هم چه ګواهان کله د دروغوګواهی ورکوي. اوددې جرائت کوي. خودهغه کس د قتل ذمه وارجوړیدونه ویریږي. اود ګواهی نه رجوع کوي. په دې طريقه چه دګواهانونه د حد شروع اوشي. نودحد ختمولو یوه حیله هم په لاس راځي. ( )

---

۳) يعلم هذا من حديث علي رضي الله عنه اخرجه البخاری فی الحدود باب ٦٥ ومسلم فی القسامة رقم ٢٥ وأبوداود فی الحدود باب ١ رقم ٤٣٥٢ والترمذي في الديات باب ١٠ والنسائی فی القسامة باب ٦٥ وابن ماجه فی الحدود باب ١ رقم ٢٥٣٤ واحمد فی المسند ٣٨٢/١)ـ

٤) أخرجه البيهقي في سنن الكبرى (٤٨٥/٨) رقم ١٦٩٦٣)ـ

## دګواه د ګانړې ویشتلو نه انکارکول

(وَإِنِ امْتَنَعَ الشُّهُودُ مِنَ الْإِبْتِدَاءِ سَقَطَ الْحَدُّ)

**ترجمه>** که ګواهانو دګانړو په ویشتلود شروع کولو نه انکاراوکړلو.نوحد ساقط شو.

**تشریح> دلیله>** ځکه چه ددې انکار نه دا معلومیږي.چه دوی دخپلې ګواهۍ نه واوړیدل.

(وَإِنْ كَانَ الزَّانِي مُقِرًّا ابْتَدَأَ الْإِمَامُ ثُمَّ النَّاسُ)

**ترجمه>** اوکه زاني په خپله اقراري وي.یعنی هم دهغه د اقرارپه وجه په هغه باندې حد ثابت شوې وي.نوپه ویشتلوکښې به امام د وخت شروع کوي.اوبیا به نې نورخلق په ګانړو وولي.

**تشریح> دلیله>** دحضرت علي رضي الله عنه نه هم داسې نقل دي.اوحضرت غامدیه رضي الله عنها (۱) دټولونه وړاندې رسول الله ﷺ د چنړې په برابر په یوځوګیټکو باندې ویشتلې وه.اوحضرت غامدیه) په خپله په خپل ځان د زنا اقرارکړې وو.

(وَيُغَسَّلُ وَيُكَفَّنُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ)

**ترجمه>** (چه په ګانړو ویشتلوسره مړشوې وي هغه ته به) غسل ورکړې شي.اوکفن کولې به شي.اودجنازې مونځ به پرې کولې شي.

**تشریح>** اوکه دمجرم په خپل اقرارپه هغه باندې زنا ثابته شوې وي.نودهغه په ګانړو ویشتلوکښې به امام دخپل ځان نه شروع کوي.اودهغه نه پس به نې نورخلق وولي.

**دلائله>** ① ځکه چه رسول الله ﷺ دحضرت ماعز رضي الله عنه په باره کښې فرمائیلي وو.چه ده سره هم هغه شان معامله اوکړئ.ځنګه چه تاسوخپلو نورو مړو سره کوئ.

② اوددې وجې هم چه دې په ناحقه نه (بلکه په حق) سنګسار شوې دې.نودده نه به غسل نه ساقطیږي.لکه ځنګه چه هغه کس ته غسل ورکولې شي.کوم چه په قصاص کښې قتل شوې وي.

③ اوغامدیه د رجم کیدونه پس رسول الله ﷺ په هغې باندې د جنازې مونځ کړې وو.

### د ناواده شوي حد

(وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُحْصَنًا وَكَانَ حُرًّا فَحَدُّهُ مِائَةُ جَلْدَةٍ)

**ترجمه>** اوکه زناکارمحصن (واده شوې نه وو) اوآزادهم وي.نودده حد سل کوړې دي.

**تشریح> دلیله>** دالله تعالی ددې فرمان د وجې چه زنا کارسړې اوزناکاره ښځه په دوی کښې هریوته سل کوړې ورکړئ.

**النسخ في حق المحصن>** خودکوړو وهلودا حکم د واده شوی سړی اوواده شوې ښځې په باره کښې منسوخ شوې دې.ددې وجې به د نوروخلقو په باره کښې دا حکم باقي وي.

---

[۱]) امام شافعي رحمه الله په کوړو باندې قیاس کوي.اوفرمائي.چه په رجم کښې هم د ګواهانونه شروع کول شرط نه دی.یعنی که د ناواده شوې جینۍ نه زنا صادره شي.اوهغه په کوړو باندې وهلې شي.نولکه ځنګه چه د وهلو په وخت کښې دا شرط نشي لګولې.چه شروع به د ګواهانونه کیږي.نودغه شان د ګانړو په ویشتلوکښې به هم د ګواهانو نه د رجم د شروع شرط نشي مقررولې.

۱) من حديث أبي بكرة رضي الله عنه اخرجه ابوداود في الحدود باب ۲۴ رقم ۴۴۴۳)ـ

**ترجمه** > اوکه زناکارمحصن (وادۀ شوې نه وو) اوآزادهم وي.نوده حد سل کورې دی.

**تعريح > دليله** > دالله تعالی ددې فرمان د وجې چه زنا کارسړې اوزناکاره ښځه په دوی کښې هريوته سل کورې ورکړئ.

**النسخ في حق المحصن** > خودکورو وهلودا حکم د وادۀ شوی سړی اووادۀ شوې ښځې په باره کښې منسوخ شوی دی.ددې وجې به د نوروخلقو په باره کښې دا حکم باقي وي.

(يَأْمُرُ الْإِمَامُ بِضَرْبِهِ بِسَوْطٍ لَا ثَمَرَةَ لَهُ ضَرْبًا مُتَوَسِّطًا)

**ترجمه** > امام به کورې وهونکو ته د داسې کوړو وهلوحکم اوکړی.چه په هغې کښې غوټه نه وي.اوپه درمیانه اندازه سره به ئې وهي.

**تشريح > دليله** > ځکه چه حضرت علی رضي الله عنه د کورې وهلوحکم ورکول غوښتل.نود کورې غوټې ئې لرې کړې.اود درمیانه انداز سره د وهلو مطلب دا دې.چه نه به ئې دومره سخت وهي.چه زخمی شی.اونه به ئې بیخی نرم وهي.ځکه چه د زخمی کیدو نه پس دهغه د هلاکت ویره ده.اوپه معمولی وهلوسره مقصود نه حاصلیږی.ځکه چه ددې سزا مقصد دا دې.چه دې په آئنده کښې پرهیزکوی.

**د کوړو وهلوطريقه**

(وَيُنْزَعُ عَنْهُ ثِيَابُهُ)

**ترجمه** > اودحدجاری کولوپه وخت کښې به دهغه نه جامې اوویستې شی.ددې نه مطلب دا دې.چه د لنګ یا پرتوګ نه سوا به ترې اوویستې شی.

**تشريح > دليله** > ځکه چه حضرت علی رضي الله عنه به د حدودو قائمولوپه وخت کښې دجامو ویستلوحکم کولو.اوددې وجې هم چه د بدن نه جامې اوویستې شی.نوپه وهلوکښې به بدن ته تکلیف هم زیات وي.اودحد زنا مقصد هم دا دې.چه ده ته پوره زور اورسی.البته که دده لنګ هم اوویستې شو.نودې به بربنډشی.اوپرده به ئې باقي پاتې نشی.نوځکه به ددې نه پرهیزکولې شی.

(وَيُفَرَّقُ الضَّرْبُ عَلَى أَعْضَائِهِ)

**ترجمه** > اودا وهل به دهغه مختلفو اندامونوته ورکولې شی.

**تشريح > دليله** > ځکه چه د یوځائې وهلوپه وجه دهغه د روح وتلو خطره پیدا کیږی. حالانکه کوم حد چه لګولې شی.نودهغې مقصد دهغه هلاکول نه وي.بلکه دې په راروانه زمانه کښې د همیشه دپاره ویرول وي.

**سر،مخ اوشرمګاه په کوړو وهلوممانعت**

(إِلَّا رَأْسَهُ وَوَجْهَهُ وَفَرْجَهُ)

**حل اللغة** > ① راس:سر ② وجه:مخ ③ فرج:شرمګاه

**ترجمه** > امام قدوری رحمه الله فرمائی.چه په کوړو به ټول بدن وهلې شی.سوا د سر،مخ،اوشرمګاه نه،.دا د صاحبینو مسلك دې.([1])

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في الخانية (٤\٤١٤) وفتح القدير(٥\١٩) والدرالمختار (٣\١٦١) والهندية (٢\١٤٦) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٣٥)-

**تشریح> دلائله>** ① ځکه چه رسول الله ﷺ چاته د حدجاري کولوحکم کړې وو.هغه ته ئې فرمانيلي وو.چه د ده مخ اوشرمګاه د وهلونه بچ ساته.
② ددې وجې هم چه د شرمګاه د ګذارنه کله سرې مرې هم.اوسردحواس مجموعه ده.دغه شان مخ هم د تولوحواسو دجمع کيدو ځائې دې.اومخ دده د خوبيانوځائي دې.نوپه دې کښې څه شك نشته.چه د دې په وهلوسره دده حواس يا د خوبيانوځه حصه ضائع شي.حالانکه داسې کول د دغه مجرم د قتلولوپه حکم کښې دې.ځکه په قائم کولوکښې دا جائز نه دی.
**مسلك ابي يوسف>** اوامام ابويوسف رحمه الله فرمائي. «اګرچه په اولني قول کښې په سرد وهلونه منع کړې وه.خو» رجوع وکړله.اودا ئې اووئيل.چه په سرباندې دې هم کوړې وهي.
**دليله>** ځکه چه حضرت ابوبکر رضي الله عنه فرمانيلي دی.په سرباندې ئې وهئ:ځکه چه په دې کښې شيطان دې.ابن ابی شيبه ددې روايت کړې دې.(١)
**الجواب عنه>** دا جمله د داسې کس په باره کښې وه.چا چه خلق کفرته رابلل.نودهغه قتلول هم جائزدی.اوپه جواب کښې دا هم وئيلی شوی دی.چه دا ئې دحربي کافرپه باره کښې فرمانيلي وو.چاچه به خلق کفرطرف ته رابلل. «اوکافرانوپه سردرانوکښې وو» اود داسې کس وهل پکار دی.

**د زناکارغلام حد**

| (وَإِنْ كَانَ عَبْدًا جَلَدَهُ خَمْسِينَ جَلْدَةً) |
|---|

**ترجمه>** اوزناکارځوك غلام «يا وينځه» وی.نودا به پنځوس کوړې وهلی شي.
**تشریح> دلائله>** ① ځکه چه الله تعالى فرمانيلي دی. ﴿فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ﴾ يعنی په وينځو چه دحد کومه سزا لازمه ده.هغه به نيمه وی دهغه سزا په نسبت چه هغه د آزادو ښځودپاره وی.دا آيت د وينځو په باره کښې نازل شوې دې.
② اوددې وجې هم چه غلامي نعمت نيموی.نوځکه دده سزا هم نيمه پکارده.ځکه چه قانون دا دې.چه په چا باندې نعمتونه زيات وی.اوددې باوجود هغه نافرمانی کوی.نودده سزا هم زياته وی.ددې وجې د آزاد په سزا کښې هم سختی وی.ددې په خلاف غلام صرف پنځوس کوړې وهلې شي.

**دااقرار نه د رجوع کولوحکم**

| (فَإِنْ رَجَعَ الْمُقِرُّ عَنْ إِقْرَارِهِ قَبْلَ إِقَامَةِ الْحَدِّ أَوْفِي وَسَطِهِ قُبِلَ رُجُوعُهُ وَخُلِّيَ سَبِيلُهُ) |
|---|

**حل اللغة >** ① **وسط**:درميان،مينځ ② **خلي**:پرېږدی ،خوشې کيږی
**ترجمه>** اوس که اقرارکونکی کس دخپل اقرارنه رجوع اوکړله.په ده باندې دحد جاري کولونه وړاندې،يا دحد په دوران کښې،نود ده رجوع کول به قبولولې شي.اودې به پريخودې شي. (٢)
**تشریح> دليله>** دليل دا دې.چه دااقرارنه اوړيدل يوداسې څيزدې.چه په دې کښې د رښتيا وئيلو احتمال هم شته.لکه څنګه چه اقرارکول يو خبر دې. «چه په هغې کښې د رښتياو احتمال هم شته» نوځنګه چه اقرار وی.اوداقرارنه د رجوع کولوپه صورت کښې بل څوك داسې نشته.چه دې د دروغژن کری.يعنی دده

---

١) من رواية القاسم أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه_
٢) **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمانيلي دی.اودا دابن ابی ليلی رحمه الله قول هم دې.چه قاضی به په ده باندې حد جاري کوی.

خلاف ویونکی اوالزام ثابتونکي ثوك نشته.نوځکه دده په اقرارکښي شبه پیدا شوه. (اومونږ ته ددې خبرې حکم راکړې شوي دې.چه مونږ د شبه په صورت کښي حد دفع کړو.یعني جاري نې نکړو)

**دامام دپاره د رجوع دتلقین حکم**

(وَيُسْتَحَبُّ لِلْإِمَامِ أَنْ يُلَقِّنَ الْمُقِرَّ الرُّجُوعَ فَيَقُولَ لَهُ: لَعَلَّكَ لَمَسْتَ أَوْقَبَّلْتَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **یلقن**:تلقین کول د یوې خبرې باربار وینا کول ② **لمس**:ګوتي اوړل ③ **قبلة**:ښکلول

**ترجمه**﴿ دقاضي اوامام دپاره مستحب دی.چه داقراری مجرم وړاندې داسې خبرې کوی.چه دهغې په وجه هغه دخپل اقرارنه واوړی.مثلاً داسې دې ورته اووائی.چه تا خوهغې ته صرف لاس وراوړې وو.یا تاخود هغې نه بوسه اخستې وه.

**تشریح**﴿ **دلیله**﴿ ځکه چې نبی کریم ﷺ حضرت ماعز ﷺ ته فرمانیلی وو.کیدې شی تا ورته ګوتې وراوړې وی یا دې ښکل کړې وی.(۱)

(وَالرَّجُلُ وَالْمَرْأَةُ فِي ذَٰلِكَ سَوَاءٌ)

**ترجمه**﴿ دحد په باره کښې سړې اوښځه دواړه سره برابر دی.

**دلیله**﴿ ځکه چه شرعی حکم د سړي اوښځو دواړو دپاره دې.

(غَيْرَ أَنَّ الْمَرْأَةَ لَا يُنْزَعُ مِنْ ثِيَابِهَا إِلَّا الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ)

**ترجمه**﴿ خو په سړي اوښځه کښې صرف دومره فرق دې.چه د ښځې جامې به نشي ویستلې سوا پوستین اوداسې کپړې نه چه هغه د مالوچو نه ډکه شوې وی.

**دلیله**﴿ ځکه چه دښځې نه دجامو په ویستلوکښي بې پردګی اوبې حیانی ده.اوچه غټې جامې وی.نودې سره په وهلوتکلیف نه ملاویږی.اوددې جامو نه بغیرهم دهغې پرده باقی پاتې کیږی.نوځکه به داسې غټې جامې ددې نه لرې کولې شی.اوپه ښځه به په ناسته حد جاری کولې شی.دحضرت علی ﷺ د بیان شوی حدیث د وجې.

**دښځې د رجم دپاره د کندې کنستل**

(وَإِنْ حُفِرَ لَهَا فِي الرَّجْمِ جَازَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **حفر**:اوکنستې شوه

**ترجمه**﴿ فرمانی.اوکه دښځې سنګسارولودپاره یوه کنده اوکنستې شی.نوجائزده.یعنی کنده ویستل ضوره دی واجب نه دی.

**تشریح**﴿ **دلائله**﴿ ① ځکه چه رسول الله ﷺ د غامدیه دپاره دهغې د سینې پورې کنده ویستلې وه.(۱)

② حضرت علی ﷺ د شراحه صمدانیه دپاره کنده ویستلې وه.(۲)

**حکم عدم الحفر**﴿ اوکه امام د زناکارې ښځې دپاره کنده اونه کنستله. نوځه نقصان په کښې نشته.

**دلیله**﴿ ځکه چه رسول الله ﷺ ددې حکم نه دې ورکړې.

---

۱) من حدیث ابن عباس ﷺ اخرجه الحاکم فی المستدرك ۳٦۱/٤ـ

۱) من حدیث ابی بکرة ﷺ اخرجه ابوداود فی الحدود باب ۲٤ رقم ٤٤٤۳ـ

۲) من روایة شعبی ﷺ اخرجه احمد والبیهقی کذا فی نصب الرایة ۳/۵۰۰ـ

**حکم العفو للرجل** اوسړی ته د رجم ورکولوډپاره به کنده نه کنی.

**دلیله** ځکه چه رسول الله ﷺ په حضرت ماعز رضی الله عنه باندې حد قائمولوډپاره کنده نه وه کنستې. «حضرت ابوسعید خدری رضی الله عنه فرمائی.چه کله رسول الله ﷺ دحضرت ماعز رضی الله عنه د رجم کولو حکم ورکړلو.نوموږ هغه ته په بقیع کښې رجم ورکړلو.په الله قسم موږ هغه په دغه وخت کښې نه تړلې وو.اونه مودهغه دپاره کنده کنستې وه.بلکه هغه ولاړ وو. «رواه مسلم»

## دآقا په خپل غلام باندې د حد جاری کولومسئله

| (وَلَا يُقِيمُ الْمَوْلَى الْحَدَّ عَلَى عَبْدِهِ وَأَمَتِهِ إِلَّا بِإِذْنِ الْإِمَامِ) |
|---|

**ترجمه** اومولی په خپل غلام باندې حد نشی جاری کولې.البته د امام په اجازت سره کولې شی. (۱)

**تشریح** **دلائله** ① رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چه څلورخیزونه د امام په اختیارکښې دی.اوهغه ته حواله دی.اوپه هغې کښې نې حدود هم ذکرکړی دی. (۱)اوباقی درې دا دی. جمعه قائمول،زکاة وصولول.اوحدودقائمول) خودا حدیث راته ملاؤ نشو.البته ابن ابی شیبه د حسن بصری اوعطاء خراسانی رحمه الله دا قول ذکرکړې دې)

② حد دالله تعالی یوحق دې.ځکه چه د حدودو قائمولومقصد دا دې.چه دنیا د فساد نه پاکه وی.اوهم دا وجه ده.که بنده حد معاف هم کړی.نونه ساقطیږی. نوځکه به هم هغه کس حد قائموی.کوم چه د شریعت دطرفه ددې دپاره نائب وی.یعنی امام یا دهغه قائم مقام قاضی وغیره،

## درجم نه وړاندې په ګواهانوکښې دیوګواه رجوع کول

| (وَإِنْ رَجَعَ أَحَدُ الشُّهُودِ بَعْدَ الْحُكْمِ قَبْلَ الرَّجْمِ ضُرِبُوا الْحَدَّ وَسَقَطَ الْحَدُّ عَنِ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ) |
|---|

**ترجمه** که دمکملې ګواهئ نه پس هم مجرم ته «دچا خلاف چه ګواهی ورکړې شوې وه»په هغه باندې حد جاری نکړې شو.اوپه دې حالت کښې په ګواهانوکښې یو ګواه دخپلې دعوه نه واپس شو.نوپه دې ټولوګواهانوبه حدقذف لګولې شی.اود مشهود علیه نه به حدزنا ختم شی.

**تشریح** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** د څلورو ګواهانو په ګواهئ سره په زانی باندې د سنګسار حکم اوشو.خو لاسنګسار شوې نه ووچې په ګواهانو کښې یو ګواه د ګواهئ نه واپس شو.نوپه دې صورت کښې به څلورو واړو ته حد قذف ورکولې شی.ځکه چې د دوی ګواهی ناقصه پاتې شوه د څلورو ګواهانو شمار برابر پاتې نشو.نو په دوی به حد قذف جاری کولې شی.او مشهود علیه به هم نشی سنسګسار کولې ځکه چې د زنا د ثبوت دپاره څلور ګواهان پکار دی.او دلته څلور باقی پاتې نشو.

## دڅلورو ګواهانو په شهادت سنګساریدل اوبیا په ښې دیورجوع کول

| (وَإِنْ رَجَعَ وَاحِدٌ حُدَّ الرَّاجِعُ وَحْدَهُ وَغَرِمَ رُبُعَ الدِّيَةِ) |
|---|

---

(۱) **مسلک الشافعي:-** امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه مولی ته دا حق حاصل دې.چه په خپل غلام پخپله حد قائم کړی.

(۱)وذكرالزيلعي رحمه الله بعض الروايات وفيها ذكرالجمعة والفئ أيضاء نصب الراية ۳/۰۰ ۵)_

**ترجمه** > اوکه واپس شو یو گواه د رجم نه پس نوهغه ته به حدقذف ورکولې شي. اوددغه کس د څلورمې حصې دیت به دې ضامن وي. (۱)

**تشریح** > **دلیله** > دلیل دا دې.چه دگواهۍ نه د انکار په وجه هغه ټوله گواهي په تهمت سره بدله شوه.ځکه چه په دغه رجوع کولوسره هغه گواهي فسخ شوه.نودې رجوع کولوته به په مرې باندې تهمت لگول ونیلی شي.اود زنا ثابت کولوکوم حجت چه وو.هغه به ختم شي.اودهغې په حجتیت چه د څه بنیاد وو.یعنی هغې پورې متعلق چه دقاضي کومه فیصله وه.هغه به هم ختمه شي.نواوس هیڅ شبه هم نه پیدا کیږي.

**دڅلورونه دکم تعداد په صورت کښې د حد قذف وجوب**

| وَإِنْ نَقَصَ عَدَدُ الشُّهُودِ عَنْ أَرْبَعَةٍ حُدُّوا جَمِيعًا |
|---|

**ترجمه** > اوکه دگواهانوشمارد څلورو نه کم وو.نوټولوته به حد قذف ورکولې شي.

**تشریح** > **دلیله** > دې ټولو ته به ځکه حدقذف ورکولې شي.چې د دوی گواهي د زنا د ثبوت نه قاصره شوه.ځکه چې د زنا د ثبوت دپاره څلور گواهان ضروري دی.او دلته درې پاتې شو.او دا مسئله ده که درې کسانو په چا باندې تهمت د زنا اولگولو.او څلورم ورسره نه وي.نو ټولو ته به حدقذف ورکولې شي.دغه شان به دلته هم وي.

**احصان په څه متعلق کیږي؟**

| (وَإِحْصَانُ الرَّجْمِ أَنْ يَكُونَ حُرًّا بَالِغًا عَاقِلًا مُسْلِمًا قَدْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً نِكَاحًا صَحِيحًا وَدَخَلَ بِهَا وَهُمَا عَلَى صِفَةِ الْإِحْصَانِ) |
|---|

**ترجمه** > اود رجم دپاره ددې مجرم احصان شرط لگولې شوې دې.په دې کښې داحصان معنی دا ده.چه سړې آزاد ، بالغ عاقل، اومسلمان وي.اوهغه دیوې ښځې سره صحیح نکاح کړې وي.اوپه هغې باندې نې دخول هم کړې وي.اود احصان دا صفتونه ددغه دخول په وخت کښې په دواړوکښې موجود وي.

**تشریح** > **اشتراط العقل والبلوغ** > عاقل اوبالغ خودحد سزا قائمولوشرطونه دی.ځکه چه په دې دواړو پورې دالله تعالی حکم متعلق نه دې.

**اشتراط بقية الاشياء** > اوباقي څیزونه ددې وجې شرط دی.چه دنعمت پوره کیدو په وجه دده جرم کامل شي.ځکه چه نعمتونه پوره وي. نو د دې باوجود ددې ناشکري کول سخته گناه ده.اودا څیزونه هم په لویو نعمتونوکښې دی.اوچه دا نعمتونه په یوځائې موجود شوی وي.نود زنا په وجه رجم واجبیږي.ځکه چه د رجم کولو حکم ددې نعمتونویوځائې کیدونه پس ثابتیږي.

**اشتراط الحرية** > دآزادۍ په وجه د صحیح نکاح کولوقدرت ملاویږي.اوددې موقع ملاویږي.اودصحیح نکاح کولونه پس د حلالې وطی قدرت پیدا کیږي.اوددخول نه پس چه دا جائزکاراوکړي.نوآرام اواطمینان ورته ملاویږي.

**اشتراط الاسلام** > داسلام په وجه د یوې مسلمانې ښځې سره د نکاح کولوقدرت ملاویږي. اوهم ددې اسلام په وجه د زنا دحرمت اعتقاد قوي کیږي. نو دا خبرې په مجموعي طور یو مسلمان د زنا نه په

(۱) **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائیلی دی.چه کوم گواه هم دخپلې گواهۍ نه واپس شي.نوپه هغه به مال نه واجبیږي.بلکه دهغه قتلول به واجب وي.

سختې سره منع کوي.اوددومره زياتو رکاوټونو او ممانعتونوباوجود دده زنا کول زياته سخته گناه ده.([1])

رجم او كوړې دواړه نشي جمع كيدې .

| وَلَا يُجْمَعُ فِي الْمُحْصِنِ بَيْنَ الرَّجْمِ وَالْجَلْدِ |
|---|

**ترجمه>** فرماني.اوپه محصن كښې به د سنگسارسره د كوړو دواړه سزاگانې نشي جمع كولې.

**تشريح >** ((ولايجمع في المحصن)) يعنى په كوم صورت كښې چه زناكارته رجم وركولې شي.نوددې سزا سره به دكوړو وركولوسزا نشى جمع كولې.ځكه چه د رجم سزا ډيره سخته ده.ددې سره د كوړو سزا جمع كول څه فائده نه وركوي.ځكه چه د سزا نه مقصود نورخلق د زنا كولو نه منع كول دي.اوهغه په رجم سره حاصل شو.

**دليله>** دليل دا دې. چه دصاحبة العيف په باره كښې نبي ﷺ صرف د رجم حكم وركړې وو.دغه شان حضرت ماعز رضي الله عنه ته صرف درجم وركولوحكم وو.د كوړو نه وو.([2])

د كوړو اوجلاوطنۍ نه جمع كول

| وَلَا يُجْمَعُ فِي الْبِكْرِ بَيْنَ الْجَلْدِ وَالنَّفْيِ ) |
|---|

**حل اللغة >** ① **بكر:پيغله**

**ترجمه>** داوچه واده شوې نه وي.برابره ده كه سړې وي اوكه ښځه› دوى ته به هم دكوړو وهلواوجلاوطنۍ دوه سزاگانې نشى وركولې.([3])

**تشريح> دليله>** دليل دالله تعالى دا فرمان دې.﴿ اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَـةَ جَلْـدَةٍ﴾ په دې كښې لفظ د (فَاجْلِدُوْا) دې.

**الاستدلال>** ددې په ذريعه ئې صرف كوړې وهل پوره سزا بيان كړې ده. په دې چه په دې كښې دفاء كلمه اوكتلې شي.نودا معلوميږي.چه چا زنا كړې وي.دهغه واجبي اوپوره سزا سل كوړې دي.نومعلومه شوه.چه پوره سزا سل كوړې دي.يا دا اوګورئ چه كومه سزا ئې ذكركړې ده. نو هم دا سل كوړې دي.نوكه په دې باندې بله سزا زياته كړې شي.نواصل حكم به بدل شي.اوداسې زيادت ته منسوخ كيدل وائي.حالانكه قرآن په داسې حديث باندې منسوخ كول جائز نه دي›

② ددې وجې هم چه د ښارنه بهركړې شي.نود زنا دروازه پرانستې كيږي.ځكه چه يود كور اوخاندان نه به دده حيا ختمه شي.اوبيا چه دې د ښارنه اوويستې شي.نوچه دده دخوراك څكاك اوضروريات ژوند ختم شي.نوبعضې وخت ښځه زناكارى دخپل معيشت مستقله ذريعه جوړه كړي.اودا فعل د زنا په طريقوكښې د ټولونه بدترينه طريقه ده.ددې وجې به دحضرت على رضي الله عنه قول ته ترجيح وركولې شي.چه دښارنه شړل د فتنې خوررولودپاره كافى دي.

---

[1] **مسلک الشافعي:**- امام شافعي رحمه الله د محصن په شرطونوكښې د مسلمان كيدو په شرط كښې زمونږ مخالفت كوي.دغه شان يوروايت دامام ابويوسف رحمه الله نه هم نقل دې

[2] كما هو مذكور في حديث العسيف رضي الله عنه وحديث ماعز رضي الله عنه حديث عسيف رضي الله عنه برواية أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه اصحاب الكتب الستة وأما حديث ماعز رضي الله عنه فقد تقدم مراراً نصب الراية بتغير ۳/٤۰۵)_

[3] **مسلک الشافعي:**- امام شافعي رحمه الله دواړه سزاگانې دحد په طورهم جمع كوي.

(الا ان یری الامام في ذلك مصلحة فیعزره به علی قدر ما یری)

**ترجمه** که امام داسې کول ضروري اوګڼي. یا څه مصلحت په کښې ورته ښکاري. نوچه دخومره ورځو دپاره ورته هغه مصلحت ښکاري. دښارنه دې اوشړي. دامام داسې کول به د حد په طورنه وي. بلکه دتعزیراوسیاست په طوربه وي.

**تشریح** **دلیله** څکه چه په بعضې حالاتوکښې داسې کول هم فائده مندوي. ددې وجې ددې پوره فیصله دامام په رائې پورې موقوفه شوه. اودبعضې صحابه کرامو ﷺ چه دا منقول دی. چه هغوی دښارنه شړل کړي دي. نوهغه هم ددې تعزیراوسیاست په معنی باندې محمول دي. (دابن عمر ﷺ نه نقل دی. چه رسول الله ﷺ کوړې وهلی دی. اودښارنه ئې شړل کړی دی. دغه شان حضرت ابوبکرصدیق ﷺ هم کوړې وهلی دی. اودښارنه ئې شړل کړی دی رواه الترمذی) (۱)

**دناجوړه محصن زناکاره رجم حکم**

(واذا زنی المریض وحده الرجم رجم)

**ترجمه** اوکه یوداسې ناجوړه زنا اوکړه. چه دهغه سزا سنګسارول وو. نوهغه به هم سنګسارولې شي. (په دې مسئله کښې د څلوروواړه امامانواتفاق دې)

**تشریح** **دلیله** څکه چه دده هلاکت خو مقصود دې. نودده بیماري دوجې به دده نه رجم نشي بندولې.

(وان کان حده الجلد لم یجلد حتی یبرأ)

**ترجمه** اوکه دده سزا کوړې وهل وي. نودده دصحته پورې به ده ته کوړې نشي ورکولې.

**تشریح** **دلیله** په کوړو وهلوکښې زورنه مقصود وي. نوکه په حالت د مرض کښې په کوړو اووهلې شي. نودا مریض به هلاك شي. حالانکه دده هلاکت مقصود نه دې. بلکه دده منع کول مقصود دي.

**دحاملې دحد جاري کولووخت**

(وان زنت الحامل لم تحد حتی تضع حملها)

**حل اللغة** ① **تضع**: اوزیږوي

**ترجمه** اوکله چه حامله زنا اوکړي. نودهغې دبچي پیدا کیدو پورې به په هغې باندې حد نشي جاري کولې. چه ددې په وجه دهغې بچې هلاك نشي.

**تشریح** **دلیله** څکه چه دا بچې خوپوقابل احترام نفس دې.

(وان کان حدها الجلد حتی تتعلی من نفاسها)

**ترجمه** اوکه ددې حاملې زناکارې سزا د کوړو وهل وي. نوبیا څه ترڅودنفاس نه پاکه شوې نه وي. دې ته به کوړې نشي ورکولې.

**تشریح** **دلیله** څکه چه نفاس یوقسم مرض دې. نوددې د ښه کیدوپورې به انتظارکولې شي.

---

(۱) من هو مروی عن ابن عمر ﷺ ان النبی ﷺ ضرب وغرب، وان اباپکر ﷺ ضرب وغرب، وان عمر ﷺ ضرب وغرب اخرجه الترمذی فی الحدود باب ۱۱)۔

**الرواية عن ابي حنيفة** > دامام ابوحنيفه‌رحمه‌الله نه روايت دي.چه په سنګسارکښې به ترهغه وخته پورې انتظارکولې شي.چه بچې ددې د تربيت محتاج پاتې نشي.خوپه دې شرط چه بل څوك ددې بچې د تربيت ذمه وار نه وي.

**دليله** > څكه چه په دومره روستوالى كښې دماشوم ددې خبرې حفاظت دې.چه هغه به ضائع نشي.په حديث كښې ذكردي.چه رسول الله‌ﷺ حضرت غامديه) ته د حمل زيږلو نه پس فرمائيلى وو.چه ته اوس واپس لاړه شه.تردې چه دا ماشوم ستا د تربيت نه لاپرواه شي.(۱)هم دا قول اصح دې.اوپه دې باندې فتوى وركول ېكار دي)

**حكم الزانية التي ثبت زناها بالبينة** > بيا داسې حامله چه دهغې زنا په ګواهانوسره ثابته شوې وي.نوهغه به د بچې دپيدائش پورې په جيلخانه كښې بندولې شي.چه هغه اونه تختې.په خلاف دهغه كس چه په خپله ئې د زنا اقراركړې وي. نو د هغه په جيلخانه كښې د قيد كولوڅه فائده نشته.والله اعلم

| |
|---|
| (وَإِذَا شَهِدَ الشُّهُودُ بِحَدٍّ مُتَقَادِمٍ لَمْ يَمْنَعْهُمْ عَنْ إِقَامَتِهِ بُعْدُهُمْ عَنِ الْإِمَامِ لَمْ تُقْبَلْ شَهَادَتُهُمْ إِلَّا فِي حَدِّ الْقَذْفِ خَاصَّةً) |

**حل اللغة** > ① **متقادم**:پخواني

**ترجمه وتشريح** > ابو الحسن قدوري رحمه‌الله فرمائي.كه دوو ګواهانوپه چا باندې په تيره شوې زمانه كښې دحد جارى كيدو ګواهي وركړه.حالانكه دهغوى دپاره هروخت امام ته په دې باره كښې پيش كيدو كښې اوګواهئ وركولوكښې څه څيزمانع هم نه وو.اونه څه مجبوره وو.مثلا دامام نه ډيرلرې اوسيدل، يا په څه خاص بيمارئ كښې اخته وو،يا د لارې ويره وغيره وه.نود دوى ګواهي به مقبول نه وي.البته صرف د حد قذف په باره كښې به قبول وي. (يعنى كه يوكس په بل باندې د زنا تهمت اولګولو.اودې دهغې ګواه وي.اوبيا څه وخت په مقذوف(چه په چا قذف لګولې شوې وي) دعوه اوكړه. (چه ده په ما باندې د زنا تهمت لګولې دې.او زما بې عزتي ئې كړې ده) اوپه دغه وخت كښې دغه ګواهانوګواهي وركړه.نوپه دې صورت كښې به ددوى ګواهي قبليږي.څكه چه سمدستى په دوى باندې ګواهي وركول واجب نه وو)

**اصله** > صورت دمسئلې دا دې.چه يوكس په داسې ګواهئ كښې روستوالې اوكړي. چه د هغې تعلق دهغه حدودو سره وي. كوم چه خالص دالله تعالى دحدودو په زمره كښې راځي.نودغه حقوق الله په شهادت كښې د تاخيرپه وجه باطليږي.څكه چه په حقوق الله كښې د اقرارنه پس د شهادت نه رجوع كول صحيح دى.اوپه دې كښې تاخيرد شهادت د قبوليت دپاره مانع دې.

**دليله** > دشهادت په تاخيركښې ګواهانوته په دوو خبروكښې د يوې خبرې اختياردې.يا خودې دغه ګواه دثواب په نيت باندې خاموشي اختياركړي.يا به ددې وجې خاموشي اختياروي.چه د يومسلمان پرده اچول شي.نوكه داجراوثواب په نيت باندې ئې په ګواهئ كښې تاخيركړې وي.اوبيا روستو دې په ګواهئ وركولوباندې اماده شي.نودده په دې آماده كيدو كښې مقصد حسد اودشمني ده. (چه دې د زناكارسره دشمني كوي) نوپه دې صورت كښې د تهمت په وجه دې ګواه ،ګواهئ كولو ته رجوع اوكړه.كه ددې خبرې عام اجازت وركړې شي.نود حقوق الله يعنى حدود الله حيثيت به د لوبوتوقو

(۱) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه‌الله كذا في ردالمحتار(۳\۱۶۳) والكفاية (۵\۳۰) والعناية (۵\۳۰) نقلاً عن القول الراجح (۱\۴۳۷)-

شي.اودا خبره دالله تعالى د شان سره نه ښائي.په داسې صورت حال کښې دالله تعالى اود هغه د حدودو اواحکاموتوهين ته دروازه پرانستې کيږي.دغه شان انسان د خطاء نه پيدا دې.د ده نه خامخا څه غلطي کيږي.خوپه ذکرشوی صورت کښې به لالچيان خلق د ذاتي دشمنۍ په طور دا خبره دخپلې ذاتي دشمنۍ دپاره استعمالوی.لکه په موجوده وخت کښې چه حکمران طبقه د خپلو مخالفينو مغلوبه کولودپاره قانوني حربې استعمالوی.ددې نوعيت ټول کارونه دده د باطن په فساد باندې دلالت کوی. نو د باطن د فساد په وجه به په شهادت کښې تاخيرکول معتبر نه وی. (بلکه که روسته گواهي ورکوی.هغه به غيرمقبول وی) اوکه دتاخيروجه پرده اچول کيدل وی. (که دې دهغه د زنا گواهي ورکوی.نودهغه پرده اوعزت خرابيږی) نوپه دې صورت کښې رجوع کول په فسق باندې مبنی ده. (يعنی چه اول ئې شهادت نه وی کړې.او ورستوبيا شهادت کولوته رجوع اوکړی.نودا به دده فسق وی) ځکه چه د چا عيب ښکاره کول گناه ده.نوپه شهادت کښې د پردې ښکاره کيدو په رجوع کول يعنی د زنا شهادت ورکول يوقسم عيب گنړلې شی. (چه په يومسلمان پرده اچول دی) اوعيب ښکاره کول فسق دې.اودفاسق گواهي غيرمعتبر وی.نوچه په شهادت کښې تاخيراوکړی.اوبيا روسته شهادت ورکوی.دا په شهادت کښې رجوع ده. (يعنی شهادت ورکولوته رجوع ده.چه اول ئې شهادت نه وو کړې.اوبيا روستو شهادت کوی) اودگواهۍ نه رجوع کول فسق دې. نو د دې وجې د گواهۍ نه رجوع کول صحيح نه دی.اوداقامت حد (يعنی حد قائمولو) عمل به باطل شی.ځکه چه دالله تعالى ارشاد دې.چه ﴿ وَأَقِيمُوا الشَّهَادَةَ لِلَّهِ ﴾ يعنی دالله تعالى دپاره گواهي ورکوئ.نوپه شهادت کښې روستووالې د شهادت د قبوليت دپاره مانع دې.

## د پردۍ ښځې سره دفرج نه سوا وطی اولواطت کول

(وَمَنْ وَطِئَ امراةً أَجْنَبِيَّةً فِيمَادُونَ الْفَرْجِ يُعَزَّرُ)

**ترجمه**> اوکه يوکس د پردۍ ښځې سره د شرمگاه (فرج،مقعد) نه سوا په بل ځائې کښې وطی اوکړله. (مثلاً دښځې په پتون خيته يابل ځائې پورې ئې خپل عضوتناسل اومگل) نوداسې کس ته به تعزيری سزا ورکولې شی.[1]

**تشريح**> **دليله**> اودامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه په حقيقت کښې لواطت زنا نه ده.ځکه چه ددې د سزا په باره کښې په خپله دصحابه کرامو رضي الله عنهم اختلاف وو.چه داسې کس دې په اورکښې اوسوزولې شي.يا دې پرې ديوال راگذارکړې شی.يا دې د اوچت چت نه پر مخې راگذارکړې شی.اودپاسه دې پرې کانړی اوورولې شی.وغيره.اودا فعل هم د زنا په معنی کښې نه دې.ځکه چه په دې کښې بچې ضائع کيدل اود نسب مشتبه کيدل نه لازميږی. بلکه دا فعل خود زنا په مقابله کښې زيات سپک دې.ځکه چه دا صرف د يوطرف يعنی د لوطی په خواهش سره کيږی.اوبل طرف ته په دې کښې څه خوند نه وی.نوبيخی بې خواهشه وی.اوپه زنا کښې دواړو ته خوند ملاويږی.اود دواړو طرفه خواهش وی.

**مسلک الصاحبين**> د صاحبين مسلك دا دې چې دا لواطت د زنا پشان دې نوپه ده باندې به حد زنا جاری کولې شی.

[1] القول الراجح هو هذا قول الإمام أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(۱\۶۰۳) وفتح القدير(۵\۴۴) والخانية (۴\۴۰۸) ورد المحتار(۳\۱۷۱) والهندية (۲\۱۵۰) نقلاً عن القول الراجح (۱\۴۴۰)۔

دلیلهما> لواطت هم د زنا په حکم او معنی کښې دي.ځکه چه په لواطت کښې خپل خواهش نفسانی په داسې محل کښې پوره کولې شي.دکوم چه پوره خواهش وی.اوخپل دا خواهش په پوره طریقه باندې پوره کوی.اومنی په بې محله ځائې کښې تویوی.نوهرکله چه د زنا ټول افعال دده نه څرګند شول.نوددء سزا هم د زنا یا ددې پشان کیدل پکار دی.

**دخوی د وینځې سره وطی کول موجب حد نه ده**

(وَلَا حَدَّ عَلَى مَنْ وَطِئَ جَارِيَةَ وَلَدِهِ وَوَلَدِ وَلَدِهِ وَإِنْ قَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ)

ترجمه> اوپه هغه کس باندې حد نه جاری کیږی.چا چه دخپل خوی یا نمسی د وینځې سره وطی کړې وی.اګرچه دې دا وائی.چه ماته علم دې.چه دا په ما حرامه ده.

تشریح> دلیله> ځکه چه دا شبه حکمیه ده.ځکه چه د یودلیل په وجه دا شبه پیدا شوې ده.هغه دلیل د رسول الله ﷺ فرمان دې.چه «أنت ومالك لأبيك» یعنی ته اوستا مال اواسباب ستا د پلار دی.(۲)

(وَإِذَا وَطِئَ جَارِيَةَ أَبِيهِ أَوْ أُمِّهِ أَوْ زَوْجَتِهِ أَوْ وَطِئَ الْعَبْدُ جَارِيَةَ مَوْلَاهُ) وَقَالَ ظَنَنْتُ أَنَّهَا تَحِلُّ لِي فَلَا حَدَّ عَلَيْهِ وَإِنْ قَالَ: عَلِمْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَرَامٌ حُدَّ،

ترجمه> اوکه دخپلې پلار یا موریا ښځې وینځې سره ئې وطی اوکړله.او یا غلام د خپل مولی د وینځې سره وطی اوکړه اودا اووائی. چه ما پیژندل چه دا په ما باندې حرامه ده. نو هغې باندې به حد جاری کولې شي. اوکه دا ئې اووئیل چه زما دا ګمان وو.چه دا به زما دپاره حلاله وی.نوپه ده باندې به حد نه لازمیږی.

تشریح> دلیله> ځکه ددې خلقوپه مینځ کښې دګټې حاصلولوپه اعتبارسره فراخدلی وی.نوځکه دلته دا احتمال کیدې شي.چه په حقیقت کښې ده ته په وطی کولوسره د نفعې حاصلولوګمان شوې وی.ددې وجې ددې شبه نوم شبه اشتباه ده.خوچونکه په حقیقت کښې دا زنا ده.نوکه یوکس په ده باندې د زنا تهمت اولګوی.نوهغه ته به حدقذف نشی ورکولې.

**د ورور اوترء د وینځې سره وطی کولوباندې وجوب حد**

(وَمَنْ وَطِئَ جَارِيَةَ أَخِيهِ أَوْ عَمِّهِ وَقَالَ: ظَنَنْتُ أَنَّهَا عَلَيَّ حَلَالٌ حُدَّ)

حل اللغة > ① جارية:وینځه ② اخ:ورور ③ عم:ترء

ترجمه> چا چې دخپل ورور یا ترء د وینځې سره وطی اوکړله.اودا اووائی.چه زما ګمان خودا وو.چه دا وینځه زما دپاره حلاله ده.نوپه ده به حد جاری کولې شي.

تشریح> دلیله> ځکه چه د ورور اوترء په مینځ کښې په مال کښې فراخدلی نه وی.اوهم دا حکم د نوروممحارمودې.مثلاً ماما اوترور وغیره.

**وطی بالشبه موجب دحد نه ده**

(وَمَنْ زُفَّتْ إِلَيْهِ غَيْرُ امْرَأَتِهِ وَقَالَتِ النِّسَاءُ: إِنَّهَا زَوْجَتُكَ فَوَطِئَهَا لَا حَدَّ عَلَيْهِ وَعَلَيْهِ الْمَهْرُ)

---

۲) من حديث جابر ﷺ أخرجه ابن ماجه في البيوع رقم ۲۲۹۱ـ

**ترجمه**> که دنکاح نه پس د وادهٔ په شپه خاوندته دهغه د ښځې په ځائې بله یوه ښځه اولیږي.اودا ورته اووئیلی شي.چه دا ستا ښځه ده.ددې وجې هغه ورسره وطی اوکړي.نوپه ده باندې حدنشي جاري کولې. البته په دغه سړي باندې د ښځې مهرلازم دې.یعنی دښځې چه کوم مهروی.هغه به ورکوی.

**تشریح**> **دلائله**> ① حضرت علی رضي الله عنه هم د مهرد وجوب حکم کړې وو.(۱)

② اوددې وجې پرې هم حد نه جاري کیږي.چه سړې دخپلې ښځې دنا اشناوالی دوجې د دې په پیژندګلوکښې شبه کړې وه.ځکه چه ده دځان دپاره دا خبره دلیل جوړ کړې دې.اوپه دې باندې ئې اعتماد اوکړلو.چه ښځو ورته اووئیل.چه خپلې ښځې ته ورشه. ځکه چه یوسړې په اول ځل په خپله ښځه اوپردئ کښې امتیاز نشی کولې.

**په خپله بستره پردئ ښځې سره وطی کول**

| |
|---|
| وَمَنْ وَجَدَ امْرَأَةً عَلٰى فِرَاشِهٖ فَوَطِئَهَا فَعَلَيْهِ الْحَدُّ |

**حل اللغة**> ① **فراش**:بستره

**ترجمه وتشریح**> اوچا چه په خپله بستره یوه ښځه اوموندله.اوهغې سره ئې وطی اوکړله. (حالاتکه هغه دده ښځه نه وه)نوپه ده باندې به حدجاري کیږي.

**دلیله**> ځکه څه زمانې پورې چه دوی یوځائې پاتې شوی وی.نوده ته دخپلې ښځې په پیژندګلوکښې څه اشتباه نه پیدا کیږي.نوځکه دده دګمان قابل قبول دلیل نه دې.نوځکه اشتباه نشوه.

| |
|---|
| وَمَنْ تَزَوَّجَ امْرَأَةً لَا يَحِلُّ لَهٗ نِكَاحُهَا فَوَطِئَهَا لَا يَجِبُ عَلَيْهِ الْحَدُّ |

**ترجمه**>اوکه یوکس د داسې ښځې سره نکاح اوکړه.چه هغه په ده باندې همیشه دپاره حرامه وی. یعنی هغې سره ئې هیڅ کله نکاح نه صحیح کیږي.اوددې نه پس دهغې سره وطی هم اوکړي.نوپه ده باندې حد نشی جاري کولې.

**تشریح**> په هدایه کښې ورسره دا اضافه شوې ده چې ده ته به سخته سزا ورکولې شی.خوپه دې شرط چه ده قصداً عمداً داسې کړې وی. دسفیان ثوری اوزفر رحمهما الله هم دا قول دې

**دلیله**> دلیل دا دې.چه نکاح په هغه ځائې کښې شوې ده.کوم چه ددې ځائې دې.ځکه چه محل دتصرف هم هغه وی. کوم چه د مقصود حاصلولوقابل وی. (یاچه دځه نه مقصود حاصلیدې شي) حالاتکه دنکاح اصلي مقصود د نکاح حاصلول دی.نوځکه نکاح په تولواحکاموکښې منعقداومؤثرګرځول پکار دی.خوشریعت څه خاص خلق حرام کړی دی.نوچه په نکاح سره د حلالوالی کومه فائده ملاویږي.نوهغه په دې مسئله کښې نشته.ځکه په دې عقدنکاح سره یوه شبه پیدا شوه.اګرچه هغه په خپله ثابته نه ده.خود ثابت شوې مشابه ده.اوچونکه سړی یودیرلوې جرم کړې دې.اوهغه هم داسې جرم چه دهغې حد یا سزا د شریعت دطرفه مقرر شوې هم نه دې.نوځکه به ورته د موقع مناسب سخته سزا ورکولې شی.

**مسلک الصاحبین**> خوامام ابویوسف،امام محمداو امام شافعی رحمهما الله (اوامام مالك،اواحمد او نورو فقهاؤ هم) وئیلی دی.چه په ده به حد واجب وی.خوپه دې شرط چه ده قصداً عمداً داسې کړې وی.

۱) قال الزیلعي رحمه الله قلت غریب جداً

**دلیلهما** خکه چه دا نکاح دغیرمحل یعني چا سره چه نکاح نه صحیح کیږي شوې ده. نو ددې وجې لغواوکالعدم ده.لکه څنګه چه یوسړې دبل سړي یا بل هلك سره نکاح اوکړي.نوهغه هم لغوده.خکه چه محل دتصرف هم هغه وی.کوم محل چه دمکان محل وي.اودنکاح حکم دا دې.چه دچا سره نکاح شوې وی.هغه دده دپاره حلاله شی.حالاتکه په موجوده مسئله کښې چه د کومې ښځې سره نکاح شوې ده.هغه دهغه ښځوښئ ده.چه همیشه دپاره په ده باندې حرامه ده. خوپه دې مسئله کښې دصاحبینو رحمهماالله په قول باندې فتوی ده.په الخلاصه اوجامع الرموزکښې نقل دی.چه په متونوکښې دصاحبینو رحمهماالله په قول باندې فتوی ده. (المضمرات)

**دپردۍ ښځې سره دفرج نه سوا وطی اولواطت کول**

| وَمَنْ أَتَى امْرَأَةً فِي الْمَوْضِعِ الْمَكْرُوهِ أَوْعَمِلَ عَمَلَ قَوْمِ لُوطٍ فَلَاحَدَّ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَيُعَزَّرُ.[1] |
|---|

**ترجمه** اوکه یوسړی دیوې ښځې په مکروه محل یعني مقعد کښې وطی اوکړله.یا ده د قوم لوط عمل اوکړلو.یعني دیوخوان هلك یا ماشوم په مقعد کښې ئې وطی اوکړله.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیزیه ده باندې حدزنا نه لازمیږي.بلکه بله څه سزا به ورته ورکولې شي.

**تشریح** **دلیله** دامام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه په حقیقت کښې لواطت زنا نه ده.خکه چه ددې د سزا په باره کښې په خپله دصحابه کرامو رضی الله عنهم اختلاف وو.چه داسې کس دې په اورکښې اوسوزولې شي.یا دې پرې دیوال راګذارکړې شي.یا دې د اوچت چت نه پر مخې راګذارکړې شي.اودپاسه دې پرې کاڼي اوورولې شي.وغیره،اودا فعل هم د زنا په معنی کښې نه دې.خکه چه په دې کښې بچې ضائع کیدل اود نسب مشتبه کیدل نه لازمیږي.بلکه دا فعل خود زنا په مقابله کښې زیات سپك دې.خکه چه دا صرف د یوطرف یعني د لوطي په خواهش سره کیږي.اوبل طرف ته په دې کښې څه خوند نه وی.نوپیځې بې خواهشه وی.اوپه زنا کښې دواړو ته خوند ملاویږي.اود دواړو طرفه خواهش وی.

| وَقَالَا: هُوَكَالزِّنَا فَيُحَدُّ) |
|---|

**مسلك الصاحبین** صاحبینو فرمائیلی دی.چه دلواطت عمل د زنا پشان دې.نوپه داسې کونکی به هم حد جاري کولې شي. (یعني محصن ته به رجم ورکولې شي.اوغیرمحصن ته به کوړې ورکولې شي.

**دلیلهما** دصاحبینو رحمهماالله دلیل دا دې.چه لواطت هم د زنا په حکم او معنی کښې دې.خکه چه په لواطت کښې خپل خواهش نفساني په داسې محل کښې پوره کولې شي.دکوم چه پوره خواهش وی.اوخپل دا خواهش په پوره طریقه باندې پوره کوی.اومنی په بې محله ځائې کښې تویوی.نوهرکله چه د زنا ټول افعال دده نه څرګند شول.نودده سزا هم د زنا یا ددې پشان کیدل پکار دی.

**دځناورسره دوطی کولوحکم**

| (وَمَنْ وَطِئَ بَهِيمَةً فَلَاحَدَّ عَلَيْهِ) |
|---|

**حل اللغة** ① **بهیمة**:ځناور

**ترجمه** اوکه یوکس د ځناورسره وطی اوکړله.نوپه هغه باندې به حد نشي جاري کولې.

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الإمام أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(١\٦٠٣) وفتح القدير(٥\٤٤) والخانية (٤\٤٠٨) ورد المحتار(٣\١٧١) والهندية (٢\١٥٠) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٤٠)_

**تشریح﴿ دلیله﴾** ځکه چه په جرم او د خواهش په اعتبارسره دا فعل د زنا په معنی کښې نه دې.ځکه چه فطرت سلیمه ددې فعل نه نفرت کوی.اوپه دې فعل باندې اماده کیدل یا خو دیرحماقت دې.اویا د شهوت نفساني زیادت دې.ددې وجې د څناوروشرمګاه پټول ددې په مالکانوباندې واجب نه دی.

**وجوب التعزیر﴾** که په داسې فعل کونکي باندې حدجاری هم نکړې شي.خوبیا هم ده ته تعزیری یا واجبي سزا ورکولې شي.ځکه چه داسې کارکول بیشکه ډیرناخوښه عمل دی.ددې وجې مونږ ورانديې بیان کړې ده.اوپه یوحدیث کښې چه دا خبره راغلې ده.چه دکوم څناور سره داسې کار اوشي.نوهغه دې ذبح اواودې سوزولې شي.نودا ددې وجې وو.چه خلق ددې واقعه شهرت نه کوی.خوبیا هم داسې کول (یعنی ذبح کول یا سوزول) واجب نه دی.

**د دار الحرب په زنا په دارالاسلام کښې حد نه جاری کیدل**

| |
|---|
| (وَمَنْ زَنَى فِي دَارِ الْحَرْبِ أَوْفِي دَارِ الْبَغْيِ ثُمَّ خَرَجَ إِلَيْنَا لَمْ يُقَمْ عَلَيْهِ الْحَدُّ). |

**ترجمه﴾** اوکه یوکس دکافروپه داسې ملك کښې زنا اوکړه.چا سره چه زمونږ جنګ جاری وی.یا نې د باغیانوپه ملك کښې زنا اوکړله.بیا هغه دارالاسلام ته یعنی زمونږ وطن ته راوتختیدلو.اودلته هغه په دار الحرب کښې د کړې زنا اقرار اوکړلو.نوپه ده به حد نشي جاری کولې.(۱)

**تشریح﴾ دلائله﴾** ① دلیل دا حدیث دې.﴿لَا يُقَامُ الْحُدُودُ فِي دَارِ الْحَرْبِ﴾ (۲)چه په دارالحرب کښې حدود نشي قائمولې.

② بله دا چه د حد نه خومقصود دا دې.چه دې پخپله اونورخلق داسې حرکت نه کوی.اوویریږی.خوپه دې صورت کښې خو دامام ولایت صرف په خپل ملك دارالاسلام کښې وی.دلته هغه حدود وغیره قائمولې شي.خوپه دار الکفر او دارالحرب کښې خودهغه په چا باندې څه اختیارنشته.نوځکه حد واجبول بې فائدې دی.اوچه هلته نه دارالاسلام ته راشي.نوبیا هم حد نشي قائمولې.ځکه چه په کوم وخت کښې دغه کس دا غلط کارکړې وو.په هغه وخت کښې دا زنا موجب د حد نشوه ګرځیدې.نواوس به هغه څنګه بدله شي.اود دې قابله شي.چه دهغې په وجه حد قائم کړې شي.

# بَابُ حَدِّ الشُّرْبِ

**ترجمه﴾** باب دې په بیان د شراب وغیره څکلوپه حدکښې.

| |
|---|
| (وَمَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ فَأُخِذَ وَرِيحُهَا مَوْجُودَةٌ فَشَهِدَ الشُّهُودُ عَلَيْهِ بِذَلِكَ أَوْ أَقَرَّ وَرِيحُهَا مَوْجُودَةٌ فَعَلَيْهِ الْحَدُّ، |

**ترجمه﴾** کوم کس چه شراب اوڅکل.(یعنی هغه شراب دکوموچه په قرآن پاك کښې ذکردې) اویا هغه اونیولې شو.په داسې حال کښې چه دهغې بدبوئي تراوسه پورې دهغه د خولې تلله.او ګواهانو دهغه دشرابوڅکلوګواهی ورکړله.نوپه ده به دشرابوڅکلوحد یعنی اتیا کوړې جاری کولې شي.

**تشریح﴾ ((ومن شرب الخمر))** دغه شان ده په خپله اقراراوکړلو.اوپه خوله کښې نې بدبوئي موجوده وی.نوهم دا حکم دې.ځکه چه دده نه د شرابوڅکلوجرم ثابت شوې دې.اوپه وخت کښې روستووالي هم

---

(۱) امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه په ده به حدجاری کولې شي.

(۲)خرجه الزيلعي رحمه الله مرفوعاً ثم روى عن زيد بن ثابت رضي الله عنه قال لا تقام الحدود في دارالحرب مخافة أن يلحق أهلها بالعدواخرجه البيهقي في السنن الكبرى ۱۷۸/۹)۔

نه دې شوې. (دشرابوپه څکلوکښې بيهوشى راتلل شرط نه دې.بلکله که يوه قطره هم چا اوڅکله.نوهم به ورته حد ورکولې شى)

**دليله>** ددې حد وهلوپه باره کښې اصل دا حديث دې.چه نبى ﷺ فرمائيلى دى.څوك چه شراب اوڅکى.نوهغه له کوړې ورکړئ.که بيا شراب اوڅکى.نوبيا ورته کوړې ورکړئ.اوکه په دريم ځل ئې بيا شراب اوڅکل.نوبيا ورته کوړې ورکړئ.اوکه په څلورم ځل ئې اوڅکى.نوقتل ئې کړئ.(۱)

**مفهوم القتل>** په دې کښې په څلورم ځل څکلو باندې دقتل حکم په دې باندې محمول دې.چه هغه د شرابوڅکلودحرمت قائل نه وى.يعنى دا حلال ګنړى.لکه څنګه چه دابن حبان په روايت کښې ددې صراحت راغلې دې.اوددې پشان د معاويه ؓ نه هم مرفوع روايت منقول دې.

**د بوئې ختميدونه پس اقرارکول**

| (وإِنْ أَقَرَّ بَعْدَ ذَهَابِ رَائِحَتِهَا لَمْ يُحَدَّ) |
|---|

**تشريح>** اوکه دشرابوڅکلوئې په خپله اقراراوکړلو.نودامام ابوحنيفه اوابويوسف رحمهما الله په نيزبه پرې حد نشى جارى کولې.البته په دې صورت کښې چه بدبوئې موجود وى.

**دليلها>** څکه چه د شرابوپه څکلوباندې د حد جارى کولوحکم ثبوت د صحابه کرامو ؓ په اجماع سره دې.اواجماع به په هغه وخت کښې منعقد وى.چه په هغې کښې جليل القدرصحابه کرام ؓ مثلاً دعبدالله بن مسعود ؓ رائې هم شامل وى. حضرت عبدالله بن مسعود ؓ د بدبوي وجود د حد قائمولودپاره شرط ګرځولو.(۲)

**مسلک محمد>** اودامام محمد رحمه الله په نيز که د بوئې تلو نه پس که لږه زمانه تيره شوې وى اوده اقرار اوکړو نو حد نه ساقطيږى.اوهغه يو مياشت ده.نو که د يوې مياشتې نه وړاندې وړاندې ئې اقرار اوکړو.حد بۀ پرې جارى کولې شى ګنه نه.

**دليله>** د دوى دليل په زنا باندې قياس دې لکه څنګه چې يو کس د زنا اقرار اوکړى.نو که د اقرار او د زنا په مينځ کښې د يوې مياشتې نه کمه زمانه تيره شوې وى.حد به پرې جارى کولې شى.اوکه د يوې مياشتې نه زيات وخت تير شوې وى.اوبيا دې په خپله سابقه زنا باندې اقرار اوکړى.چا ما د يوې مياشتې نه وړاندې زنا کړې وه.نو په ده حد نه جارى کيږى.

**دغه معقول عذرد وجې دخولې نه د بوئې ختميدل مانع د حدنه دې**

| (وَمَنْ سَكِرَ مِنَ النَّبِيذِ حُدَّ) |
|---|

**ترجمه>** اوهغه کس چه د نبيذ څکلوپه وجه نشه شى.نوپه ده به حدجارى کولې شى.

---

۱) من حديث أبي هريرة ؓ اخرجه أبوداود في الحدود باب ۳۶ والنسائي في الأشربة باب ۴۲ رقم ۵۲۳۳ وابن ماجه في الحدود باب ۱۷ رقم ۲۵۷۲ وأحمد في المسند ۲/۵۰۴ـ

۱) غريبه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل اثره ؓ وفيه انه ؓ امرالجلاد بالذى شرب الخمروجد منه ريح الخمروعزاه الى مصنف عبدالرزاق نصب الراية ۳/۵۳۳ـ

**تشریح> دلیله>** ځکه چه دارقطنی په خپل سنن کښې روایت کړی دی.چه حضرت عمر رضي الله عنه یوداسې کس باندې حد جاری کړی وو.چه هغه د نبیذ د ځکلوپه وجه نشه وو.(۱)انشاءالله مرنږ به وړاندې ددې بیان اوکړو.چه د نشې حدڅه دی.اوپه څومره مقدارڅکلوباندې سړې مستحق د حد ګرځی.

**معایؤخذ النبیذ؟>** دهرڅیزوی.دکوم څیزنه چه نبیذتیاریږی.هغه پخولې شی.تردې چه هغه نبیذ لږ غوند ټینګ شی. دهغې ځکل جائز دی.مثال طور دنبیذ شربت د قجورو، غنمو، شهدو، جوارو، وریژو، باجره،انګور وغیره نه نبیذتیارولې شی.

**دشرابوپه بوئې یا قئ باندې دحد عدم وجوب**

(وَلَاحَدَّ عَلٰى مَنْ وُجِدَ مِنْهُ رَائِحَةُ الْخَمْرِ أَوْمَنْ تَقَيَّأَهَا)

**حل اللغة > ① تقیأ:**خان ساتل

**ترجمه>** اوګواهانویوکس په شرابوڅکلونه وو لیدلې.خودهغه د خولې نه دشرابو بوئې راخی.یا هغه د شرابو قئ اوکړلو.نوده ته به حد نشی لګولې.

**تشریح> دلیله>** ځکه چه په دې بدبوئې کښې احتمال شته. (چه دا شرابوبوئې دې اوکه د بل څه) دغه شان ځکاك هم د څه دباؤ او زورنې دوجې کیدې شی.نوځکه به نشئ سړی ته حد نشی ورکولې.

(وَلَايُحَدُّ السَّكْرَانُ حَتّٰى يُعْلَمَ أَنَّهُ سَكِرَمِنَ النَّبِيذِ وَشَرِبَهُ طَوْعًا)

**ترجمه >** اوحد به نشی ورکولې تردې چه دا معلومه شی.چه دا کس د نبیذ په ځکاك باندې نشه شوې دې.اوده دا په خوشحالئ سره ځکلی دی.

**تشریح> دلیله>** ځکه چه په مباح څیزنشه راتلویاندې حد نه واجبیږی.لکه بهنګ اود اسپې پیوسره نشه شی.دغه شان هغه کس چه په هغه باندې په زور ځکلي شوې وی.نوپه هغه باندې هم حد نشی جاری کولې.ځکه چه دا څیزونه حد نه واجبوی.

**دبیهوشئ په حالت کښې دحد عدم نفاذ**

(وَلَايُحَدُّ حَتّٰى يَزُولَ عَنْهُ السُّكْرُ)

**ترجمه>** نشئ ته به په حالت د نشه کښې حد نشی ورکولې.تردې چه دده نه نشه لاړه شی.

**دلیله>** چه بیا دپاره دې اوویریږی.اوزورنه قبول کړی.

(وَحَدُّ الْخَمْرِ وَالسُّكْرِ فِي الْحُرِّ ثَمَانُونَ سَوْطًا)

**حل اللغة > ① سوطا:**کوړې

**ترجمه >** اود شرابواونشې حد د آزاد سړی دپاره اتیا کوړې دی.

**تشریح> دلیله>** ځکه چه په دې باندې صحابه کرامو رضي الله عنهم اجماع کړې ده.

(يُفَرَّقُ عَلٰى بَدَنِهِ كَمَا ذَكَرْنَا فِي الزِّنَا

**ترجمه >** اوکوړې به دشرابی بدن مختلفوحصو ته ورکولې شی.لکه په زنا کښې چه مونږ بیان کړی دی

**تشریح> دلیله>** دلیل وړاندې تیرشوې دې.

---

۱) اخرجه الدارقطنی فی سننه ۱۶۷/۳_

(وَإِذَا قَذَفَ الرَّجُلُ رَجُلًا مُحْصَنًا أَوِ امْرَأَةً مُحْصَنَةً بِصَرِيحِ الزِّنَا، وَطَالَبَ الْمَقْذُوفُ بِالْحَدِّ حَدَّهُ الْحَاكِمُ ثَمَانِينَ سَوْطًا إِنْ كَانَ حُرًّا)

**ترجمه** < كله چه يوسړي (زيد) بل محصن سړي (بكر) يا محصنه ښځه (زينب) په صريحي زنا باندې داغداره (متهم) كړي. (چه دې بكريا زينب زنا كړې ده) اومقذوف (په چا چه تهمت لګولي شوي وي. يعني بكراوزينب په قاذف باندې) د حد (قائمولو) مطالبه اوكړي. (چه ده په ما باندې د زنا تهمت لګولي دې.په ده باندې حد قذف قائم كړئ) كه دغه قاذف (زيد) آزاد وي.نوقاضي به په ده د اتيا كوړو حد جاري كړي.

**تشريح** < **دليله** < د الله تعالى ددې قول په دليل سره چه ((وَالَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنٰتِ)) يعني كوم كسان چه په محصناتو ښځوباندې د زنا تهمت اولګوي.اوبيا دوى څلورګواهان پيش نكړي.نودوى ته اتيا كوړې وركړئ.)اوپه آيت كښې د ، ،رمى، ، نه مراد په اجماع سره زنا ده.اوپه نص كښې دې طرف ته اشاره ده. (چه د رمى نه مراد زنا ده.اودا اشاره شرط كول د څلورو ګواهانو دې. ځكه چه څلورګواهان په زنا پورې خاص دى. (يعني شريعت كښې څلورګواهان صرف د زنا په باب كښې شرط دې.نودې ته اشاره شوه.چه د رمى نه مراد زنا ده)

**اشتراط مطالبة المقذوف** < اوشرط كولې شى.مطالبه د مقذوف(بكراوزينب.چه هغوى په قاذف باندې دحد جاري كولومطالبه اوكړي)

**دليله** < ځكه چه په دې (حدجاري كولوكښې) دده (مقذوف) حق دې.په دې حيثيت چه دځان نه ملامتيا لرې كول دى. (چه صبا ورته څوك د زناكارپيغور ورنكړي) اود مقذوف (چه بكراوزينب ده) احصان ثابتول دى. (چه خلقوته دا ثابته شى.چه بكراوزينب ګناهګاران نه دى) لكه څنګه چه مونږ آيت تلاوت كړلو. (يعني په كښې دمحصنات قيد شته)

**تشريح** < د ترجمې نه مطلب واضح دې.

(يُفَرَّقُ عَلٰى أَعْضَائِهِ)

**ترجمه** < (ابو الحسن قدوري رحمه الله) فرمائيلي دى.اوجدا جدا به وهلي شى اندامونه د قاذف. (پس يوځائې به نه وهى.بلكه مختلف ځايونه به وهى.

**تشريح** < **دليله** < دا د دې دپاره چې د يواندام دضائع كيدو يا د قاذف دهلاكت سبب اونه ګرځى) لكه څنګه چه تيرشوى دى.په بيان د حد زنا كښې (چه جدا جدا اندامونوته به كوړې لګولې شى)

(وَلَا يُجَرَّدُ مِنْ ثِيَابِهِ)

**ترجمه** < اوجامې به ترې نشى ويستلې.

**تشريح** < **دليله** < ځكه چه د حد قذف سبب يقينى نه دې. (ځكه چه كيدې شى.قاذف په خپله خبره كښې رښتيا وى.خودې څلورګواهان پيدا نكړې شى.اوپه حد زنا كښې ترې جامې ځكه ويستلې شى.چه هلته د څلوروګواهان په شهادت سره زنا ثابته شوې ده.يعني دې خبرې دصداقت دپاره د څلورګواهانو پيش كول ګران شرط دې.ممكن ده.چه خبره رښتيا وى.خوڅلورګواهان پيدا نشى.اوچه دغه خبره په څلورګواهانو ثابته شى.نوبيا خوپه كښې د شك هډو څه خبره نشته.نوپه حدقذف كښې د دعوه دصحت امكان شته.اوپه حد زنا كښې د دعوه دكذب احتمال نشته) نوحدقذف به په سختئ سره نشى قائمولې. (چه په حدزنا اوحدقذف كښې د كيفيت په اعتبارسره هم فرق ښكاره شى.اګرچه دعدد په اعتبارسره فرق ښكاره دې) په خلاف د حد زنا (ځكه چه په هغې كښې ترې جامې ويستلې شى)

(غَيْرَ أَنَّهُ يُنْزَعُ عَنْهُ الْفَرْوُ وَالْحَشْوُ)

**ترجمه** > البته دومره ده چه د قاذف نه به پوستن (یعنی هغه څیزچه د ورئ نه جوړ شوې وی) اوحشو نه(یعنی هغه جامه چه د مالوچونه ډکه شوې وی)

**تشریح** > **دلیله** > ځکه چه دا څیزونه (په بدن وی نو) بدن ته تکلیف رسول منع کوی. (حالانکه دحد جاری کولومقصد خو دا دې.چه محدود ته زورنه اوتکلیف ملاوشی.اود نورودپاره عبرت شی)

**دغلام حدقذف**

(وَإِنْ كَانَ عَبْدًا جَلَدَهُ أَرْبَعِينَ سَوْطًا

**ترجمه** > اوکه تهمت لګونکې غلام وو.نوهغه ته به څلویښت کوړې ورکوی.

**تشریح** > **دلیله** > ځکه چې هغه غلام دې او وړاندې تیر شوی دی چې دغلام سزا د آزاد د سزا په نیمه ده.نو د آزاد قاذف حد قذف اتیا کوړې دی.نودغلام به د هغې په نیمه چې څلویښت دی.دا وی.

وَالْإِحْصَانُ أَنْ يَكُونَ الْمَقْذُوفُ حُرًّا بَالِغًا عَاقِلًا مُسْلِمًا عَفِيفًا عَنْ فِعْلِ الزِّنَا)

**ترجمه** > په دې مقام کښې د محصن معنی دا ده.چه هغه آزاد ، بالغ ،عاقل ،مسلمان،اودزنا د کارنه پاك وی.

**تشریح** > **دلیل اشتراط الحریة** > > په دې کښې د آزادئ قیدځکه دې.چه دې ته د احصان نوم ورکړې شوې دې.الله تعالی فرمائیلی دی.﴿ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ﴾ ددې محصنات نه آزادې ښځې مراد دی.

**دلیل اشتراط العقل والبلوغ** > اودعقل اوبلوغ قیدپه کښې ځکه لګولې شوې دې.چه د نابالغ اولیونی نه د زنا دفعل صادریدل نه کیږی.نوهغوی باندې شرمیدل هم نه راځی.

**دلیل اشتراط الاسلام** > اوداسلام قید ددې وجې دې.چه رسول الله ﷺ فرمائیلی دی.چا چه دالله تعالی سره شرك اوکړلو. هغه محصن نه دې.

**دبل کس د نسب نه انکارکول**

(وَمَنْ نَفَى نَسَبَ غَيْرِهِ فَقَالَ لَسْتَ لِأَبِيكَ أَوْ يَا ابْنَ الزَّانِيَةِ وَأُمُّهُ مَيِّتَةٌ مُحْصَنَةٌ فَطَالَبَ الِابْنُ بِحَدِّهَا حُدَّ الْقَاذِفُ)

**ترجمه** > اوکه یوکس دبل کس د نسب نفی اوکړله.اودا ئې اووئیل.چه ته دخپل پلارنه نه ئې. اویا اې د زناکارې بچیه،حالانکه دهغه محصنه مورمړه شوې وی. او په دې باندې دهغې خونی دده خلاف دعوه اوکړله.نوقاذف باندې به حد لګولې شی.

**تشریح** > **دلیله** > په اول صورت کښې به ځکه په قاذف باندې حد جاری کولې شی چه دنسب دانکارمطلب دهغه په موریاندې د زنا تهمت لګول دی.ځکه چه دنسب انکارصرف د زناکارنه کیږی.دبل چا نه نه کیږی. (نوکه دده موردبل چا وینځه وه.چا سره چې د دغه ماشوم پلار نکاح کړې وه.نودا کس د خپلې مور د مالك غلام دې.نوپه دې صورت کښې د تهمت لګونکی د خبرې مطلب دا شو.چه ته دخپل پلار نه بلکه دخپل مولی ئې.نوځکه ددې نه د نسب نفی نه لازمیږی.اوکه دا ئې اووئیل.چه ته دخپل پلار نه ئې.نوده ته به حد نشی ورکولې.

اوپه دویم صورت کښې ده په یوه محصنه ښځه دهغې د مرګ نه پس د زنا تهمت اولګولو. (په خلاف دهغه صورت کښې چه دغه ښځه ژوندئ وی.اودتهمت نه پس مړه شی.نوپه دې صورت کښې حد ساقطیږی.العنایه)

(وَلَا يُطَالِبُ بِحَدِّ الْقَذْفِ لِلْمَيِّتِ إِلَّا مَنْ يَقَعُ الْقَدْحُ فِي نَسَبِهِ بِقَذْفِهِ)

**حل اللغة** ﴿ ① **القدح**:نقص،

**ترجمه**﴾ او د مړی د طرفه د حدقذف مطالبه هیڅوك نشی کولې.سوا دهغه کس نه چه دهغه په نسب کښې ددې مړی په قذف سره نقص او عار پیدا کیږی.(اوهغه ددې مړی پلار یا خوئې کیدې شی.یعنی په نسب کښې پورته طرف ته پلاراونیکه وغیره اوښکته طرف ته خوئې اونمسې اود دوی ښکتنی اولاد دی.([1])

**تشریح﴾ دلیله**﴾ ځکه چه پلار اوخوئې ته ددې مړی د جزئیت د تعلق په وجه په دې قذف سره عاراوشرم لاحق کیږی.په دې وجې صرف په مړی باندې تهمت لګول په حقیقت کښې په دې ټولوباندې تهمت لګول دی. (چا سره چه ئې جزئیت وی)

**دغلام په خپل مولی باندې دحدجاری کولوحق نشته**

(وَلَيْسَ لِلْعَبْدِ أَنْ يُطَالِبَ مَوْلَاهُ بِقَذْفِ أُمِّهِ الْحُرَّةِ،

**ترجمه**﴾ اوغلام ته دا حق نشته.چه په خپل مولی باندې (دحد جاری کولو) مطالبه اوکړی.چه دهغه مولی دده په آزاده موریاندې تهمت د زنا لګولې وی. (اودا صورت چه خوئې ئې غلام اومورئې آزاده وی.داسې کیدې شی.چه اول دواړه ددې مولی په ملکیت کښې وو.اوبیا مولی ددې غلام مورآزاده کړی.اودې هم دغه شان غلام وی)

**تشریح﴾ دلیله**﴾ غلام په خپل مولی باندې د حدقذف جاری کولومطالبه ځکه نشی کولې.(چه) مولی ته دخپل غلام په وجه سزا نشی ورکولې.

**دقذف داقرارنه د رجوع حکم**

(وَمَنْ أَقَرَّ بِالْقَذْفِ ثُمَّ رَجَعَ لَمْ يُقْبَلْ رُجُوعُهُ)

**ترجمه**﴾ اوچا (زید) چه د قذف اقراراوکړلو. (چه ما په بکرباندې د زنا تهمت لګولې دې.چه ده زنا کړې ده) اوبیا (د اقرارنه پس) دې رجوع اوکړی. (چه نه ما پرې د زنا تهمت نه دې لګولې.نوپه دې صورت کښې په) دده رجوع نشی قبلولې.

**تشریح﴾ دلیله**﴾ ځکه چه د مقذوف (بکر) په دې (حدقذف) کښې حق دې. (اوهغه حق په قاذف باندې د حد قذف جاری کولومطالبه ده) نوهغه (مقذوف) به په رجوع کولوکښې دده (زید) تکذیب کوی. (چه نه بلکه تا ما باندې د زنا تهمت لګولې وو.نوهرکله چه وریورې دمقذوف حق متعلق دې.د اقرار نه په رجوع کولوسره دهغه حق نه باطلیږی.) په خلاف د هغه صورت چه هغه صرف حق الله وی. (لکه زنا شوه.نو که د زنا اقراراوکړی.اوبیا دهغې نه رجوع اوکړی.نودده رجوع صحیح کیږی) ځکه چه (په دې صورت کښې د بندګانو دطرفه) دده (رجوع کونکی قاذف) څوك مکذب (دروغژن کونکې) نشته.چه (دا قاذف په) دې حق الله کښې دروغژن کړی. (چه نه تا زنا کړې وه.اواوس دروغ وانې.چه ما زنا نه ده کړې)

---

[1] **مسلك الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله په نیز ددې مطالبې حق دهغه ټولو وارثانوته حاصل دې.

**عربي ته د نبطي ويلو حکم**

(وَمَنْ قَالَ لِعَرَبِيٍّ يَا نَبَطِيُّ لَمْ يُحَدَّ)

**ترجمه** اوچا (زید) چه عربي (بکر) ته اووئیل. اې نبطي (دعراق په اوسیدونکو کښې یو قوم دې) نوده (زید) ته به حد (قذف) نشي ورکولې.

**تشریح دلیله** ځکه چه په دې کلام سره په اخلاقو یا عدم فصاحت کښې تشبیه اراده کولې شي. (یعني دقائل مراد یا دا دې چه ته په بداخلاقۍ کښې د نبطیانو پشان ئې. یا ته په عدم فصاحت کښې د عراق د نبطیانو پشان ئې)

**د ((ابن السماء)) ویلو حکم**

(وَمَنْ قَالَ لِرَجُلٍ يَا ابْنَ مَاءِ السَّمَاءِ فَلَيْسَ بِقَاذِفٍ)

**ترجمه** اوکه یوکس (زید) بل (بکر) ته اووئیل. اې دآسماني اوبو بچیه! نو(په دې جمله سره) دې قاذف نه دې.

**تشریح دلیله** ځکه چه په دې کلام سره په سخاوت اوصفائي کښې دآسماني اوبوسره تشبیه ورکول مراد کیدې شي. (چه ستا سخاوت د باران د اوبو پشان پریمانه دې. یا ستا حسن اوجمال په بنانست کښې د آسماني اوبوپشان صفا دې. اودآسماني اوبوسره تشبیه ځکه ګنړلې شي. چه) دآسماني اوبود صفائي اوپریمانۍ د وجې (یوکس ته) ددې لقب ورکولې شي. ((چه یا ابن السماء)) اې دآسمان بچیه! (لکه په یوحدیث کښې چه دحضرت اسماعیل ﷺ د موربي بي هاجره ﷺ په باره کښې راغلي دي. ((فهذه أمکم یا بني ماء السماء)) یعنې اې د آسماني اوبو بچواهم دا ستاسو مور ده. رواه البخاري. نوددې نه معلومه شوه. چه دا الفاظ د تعریف دپاره ونیلې شي. د زنا تهمت لګولو دپاره نشي ونیلې)

**ماما، تره یا میرنی پلار ته دیوکس د ابنیت نسبت کولو حکم**

(وَإِذَا نَسَبَهُ إِلَى عَمِّهِ أَوْ خَالِهِ أَوْ إِلَى زَوْجِ أُمِّهِ فَلَيْسَ بِقَاذِفٍ)

**حل اللغة** ① عم: تره: ② خال: ماما

**ترجمه** اوکله چې ئې دې د خپل تره (الف) یا ماما (ب) یا دخپله دمور خاوند (پ) ته منسوب کړلو. (چه اې د بکر بچیه، یا اې د الف بچیه یا اې د ،ب، بچیه! یا اې د ،پ، بچیه!) نو(په دې درې واړه صورتونو کښې) دې قاذف نه دې.

**تشریح دلیله** ځکه چه په دوی (درې واړو) کښې هریو (که تره دې اوکه ماما دې اوکه میرنې پلار دې) ته پلار ونیلې شي.

**اطلاق الاب علی العم** هرچه اول (یعنې تره) دې. نو(ده ته پلار ځکه ونیلې شي. چه) الله تعالی فرمائیلي دي. (کله چه دیعقوب ﷺ خامنو نه حضرت یعقوب ﷺ تپوس اوکړلوچو تاسو به زما د مرګه پس دچا عبادت کوئ. نو هغوی ورته په جواب کښې اووئیل) مونږ به ستا اوستا د پلارانو حضرت ابراهیم ﷺ اوحضرت اسماعیل ﷺ حضرت اسحاق ﷺ د معبود عبادت کوو. (په دې آیت کښې حضرت اسماعیل ﷺ ته هم پلار ونیلې شوې دې. حالانکه) حضرت اسماعیل ﷺ د دوی (یعنې دیعقوب ﷺ د خامنو) تره وو. (نومعلومه شوه. چه په تره باندې هم د پلار اطلاق کیږي)

**اطلاق الاب علي الخال** اودویم (چه ماما ته هم پلار ونیلی شی.) دنبی ﷺ ددې قول د وجې چه ماما (د مور ورور) پلار دې. (گوره په دې حدیث کښې نبی ﷺ ماما ته پلار ونیلی دی.(۱)نومعلومه شوه.چه په ماما باندې هم د پلار اطلاق کیږی)

**اطلاق الاب علي زوج الام** اودریم (چه میرنې پلار دې.نوده ته هم پلار ونیلی شی) د تربیت د وجې(ځکه چه میرنې پلار د میرنی ځوی تربیت کوی.نوخلق ورته د تربیت په وجه دهغه ځونې وائی. خلاصه دا چه په دې درې وارو نسبتونو سره حدقذف نه واجبیږی)

**د پردی ملك کښې وطی کونکی باندې د زنا تهمت لګولوحکم**

| وَمَنْ وَطِئَ وَطْئًا حَرَامًا فِي غَيْرِ مِلْكِهِ لَمْ يُحَدَّ قَاذِفُهُ) |
| --- |

**ترجمه** اوڅوك چه وطی اوکړی.داسې وطی چه هغه حرامه وی.چه دده په ملك کښې نه وی. (یعنی نه دده په ملك نکاح کښې وی.اونه ئې په ملك یمین کښې وی.اویوکس راولړی.ددې وطی په وجه په ده باندې د زنا تهمت اولګوی)نودده قاذف ته به حدنشی ورکولې.د پاکدامنۍ د نشتوالی د وجې.ځکه چه عفت د احصان د شرائط ځنی دی. (یعنی په زیربحث مسئله کښې چونکه مقذوف په غیرملك کښې وطی کړې ده.اوپه غیرملك کښې وطی کول حرام وی.نودا زنا شوه.اودې زناکارشو.نوچه چا په ده باندې د زنا تهمت اولګولو .هغه باندې به حدقذف نشی جاری کولې.

**تشریح** **دلیله** ځکه چه دقذف لګولوډپاره دا شرط دې.چه مقذوف محصن وی.اوپه دې صورت کښې دې محصن نه دې.نوحدقذف به هم نشی لګولې.اودویم دلیل دا دې.چه په قاذف باندې په هغه صورت کښې حدقذف جاری کولې شی.چه هغه په دغه الزام لګولوکښې دروغژن وی.اوپه دې صورت کښې) قاذف رښتونې دې. (نوځکه پرې حدقذف نشی جاری کولې)

**القاعدة** اوپه دې باب کښې اصل (اوقاعده) دا ده.چه کوم کس داسې حرامه وطی اوکړله.چه هغه حرامه لعینه وی.نودهغې په قذف باندې حد نه جاری کیږی. (یعنی که څوك پرې ددغه وطی په وجه د زنا تهمت اولګوی.نودغه قاذف ته به حدقذف نشی ورکولې) ځکه چه زنا داسې وطی ده.چه حرام لعینه ده. (یعنی چه د کومې وطی حرمت په ذاتی طور موجود وی.د څه عارض د وجې حرمت نه وی راغلې) اوکه (دغه وطی) حرامه لغیره وی. (یعنی داصل په اعتبارسره خو دغه وطی جائز وی.خود یوعارض اومانع د وجې حرامه ګرځیدلې وی.لکه په حالت د حیض کښې خپلې ښځې سره وطی کول) نو(په دې صورت کښې که یوکس ددغه حرامه لغیره وطی په وجه په ده د زنا الزام اولګولو.هغه قاذف شو.نو) هغه ته به حد(قذف) لګولې شی.ځکه چه دا (وطی حرامه لغیره) زنا نه ده.

**په بال بچه داره ښځه چه خاوندئې معلوم نه وی.دزنا تهمت لګول**

| وَالْمُلَاعَنَةُ بِوَلَدٍ لَا يُحَدُّ قَاذِفُهَا |
| --- |

**ترجمه** په ملاعنه ښځه باندې چه د بچی په باره کښې (د ښځې اوخاوند په مینځ کښې) لعان واقع شوې وی (یعنی چه ددې نه وراندې دغه ښځه (خالده) د بکرپه نکاح کښې وی.اوهغه پرې د زنا تهمت لګولې وی.اودهغې په وجه د دغه دوارو په مینځ کښې لعان واقع شوې وی.اوزید راولګی.په دغه خالدې باندې د زنا تهمت اولګوی) نوپه قاذف باندې حد نشته.

---

۱) خرجه الزیلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم أخرج عن عبدالله بن عمرو رضی الله عنهما مرفوعاً الخال والد من لا والده له وعزاه إلی فردوس الدیلمی نصب الرایة ۳/ ۵۴۰ـ

**تشريح> دليله>** (په قاذف باندې حدقذف ځکه نه جاري کيږي.چه) د زنا نښه موجود ده.اودغه نښه دا ده.چه بچي شته اوپلار ئې معلوم نه دې. (اوهرکله چه دا صورت حال دې.نود ښځې) پاکدامني ختمه شوه.اودا (پاکدامني) د احصان دپاره شرط دې. (يعنې په قاذف باندې به هله حدقذف جاري کولې شي.چه دې په محصنه ښځه باندې د زنا الزام اولګوي.اوپه زيربحث صورت کښې چونکه پاکدامني نشته.نواحصان ثابت نشو.اوچه احصان ثابت نشو.نود قذف لګولوشرط موجود نشو.چه په محصنه ښځه باندې دزنا الزام لګول دي)

| وَإِنْ كَانَتِ الْمُلَاعَنَةُ بِغَيْرِ وَلَدٍ حُدَّ قَاذِفُهَا |
|---|

**ترجمه>** اوکه په داسې ښځه باندې د زنا الزام اولګوي.چه بغيرد بچي نه هغې لعان کړې وي. (يعنې په هغې باندې خپل خاوند د زنا تهمت لګولې وي.حالانکه نه دهغې حمل وي.اونه ئې بچې وي.اودهغې په نتيجه کښې د دغه ښځې اوخاوند په مينځ کښې لعان واقع شوې وي.اوس دا کس راولګي.په دغه ښځه ملاعنه ښځه باندې د زنا تهمت اولګوي) نوپه دې قاذف باندې حد قذف دې.

**تشريح> دليله>** ځکه چه د زنا څه نښه نشته. (چه دهغې نه دا معلومه شي.چه واقعي دې ښځې زنا کړې ده.اوهرکله چه د زنا څه علامه اونښه نشته.نودا ښځه محصنه شوه.اوپه محصنه باندې د زنا تهمت لګول موجب دحد قذف دي)

| وَمَنْ قَذَفَ أَمَةً اوعَبْدًا اوكَافِرًا بِالزِّنَا اوقَذَفَ مُسْلِمًا بِغَيْرِ الزِّنَا فَقَالَ يَا فَاسِقُ أَوْيَا كَافِرُ أَوْيَا خَبِيثُ عُزِّرَ |
|---|

**حل اللغة> ① التعزير:** هغه سزا چه د قاضي په اختيار کښې وي او هغه ئې مقرر کوي د شريعت د طرفه مقرر نه وي

**ترجمه>** اوچا چه په وينځه يا په غلام، يا په کافرباندې د زنا تهمت اولګولو او يا په مسلمان باندې د زنا نه سوا بل څه الزام اولګوي.لکه ورته اووائي.اې فاسقه اويا اې کافره! يا اې پليته نوتعزيري سزا به ورکولې شي

**تشريح> دليل صورة قذف غيرالمحصن>** ځکه چه دا جنايت (في نفسه) قذف دې. (قطع لحاظ ددې نه چه مقذوف څوك دې.اوچه قذف شو.نود قذف تقاضا دا ده.چه شرائط پوره وي.په قاذف باندې حدقذف جاري شي.اودحدقذف د جاري والي احصان شرط دې.اوپه احصان کښې آزادي اواسلام ضروري دي.ځکه مونږ وايو.چه) داحصان د شرط فوت کيدو د وجې دحد جاري کول ممتنع شو. (اوچه حد ممتنع شو.نودې مجرم داسې پريخودل هم نه دي پکار.ځکه چه ده د جرم ارتکاب کړې دې.اومجرم ته خامخا دخپل جرم سزا ورکول پکاردي.چه په معاشره کښې امن پيدا شي.نو) تعزير واجب شو

**دليل صورة القذف بغيرالزنا>** ځکه چه ده (زيد) ورته (عمرته) تکليف اورسولو.اوپه ده (عمر) پورې ئې عيب اولګولو.اود قياس په حدودو کښې څه دخل نشته. (چه مونږ په ده باندې څه حد جاري کړو.ځکه چه حد به صرف په هغه جرمونوکښې قائمولې شي.په کوموکښې چه شريعت مقرر کړې وي.نومونږ قياساً په ده باندې حدنشو جاري کولې.البته زيدعمر ته تکليف رسولې.نوددې تکليف لرې کولودپاره) تعزيرواجب شو.خوپه اول صورت کښې (چه په غيرمحصن باندې د زنا تهمت لګولې شوې وي.نوپه هغې کښې) به تعزيري سزا آخري حد ته رسي.ځکه چه دا (الزام) د جنس د هغه تهمتونو څخه دې.په کوم کښې چه حد واجبيږي. (چه حد قذف دې) اوپه دويم صورت کښې (چه فاسق وغيره ئې ورته ويلي وي تعزير) دقاضي رائې باندې موقوف وي. (چه هغه څومره سزا مناسب ګڼړي.هغه دې ورته ورکړي)

**دخريا خنزيروئيلو تعزير**

(وَإِن قَالَ يَا حِمَارُ أَوْيَا خِنْزِيرُ لَمْ يُعَزَّرْ)

**حل اللغة** ۞ ① **حمار**:خر

**ترجمه** ۞ اوكه (زيد عمرته) اوونيل.اي خره! يا اي خنزيره! ده (زيد) ته به تعزير نشي وركولي. ځكه چه ويونكى په ده باندې عيب نه دي لګولى.

**تشريح** ۞ **دليله** ۞ ځكه چه په يقين سره ددې نفي معلومه ده. (چه عمرنه خر دې اونه خنزير دې)

**القولان الأخوان** ۞ ① اوونيلي شوى دى چه زمونږ په عرف كښې به (ده ته) تعزير وركولې شي.ځكه چه دا كنځل شمارلې شي. (اوچه كنځل شو.نوزيد دعمر توهين اوبې عزتى اوكړه.ځكه به زيد ته تعزير وركولې شي)

② اوونيلى شوى دى.چه چا ته كنځل شوې وى.كه هغه د معززينوځنې وى.لكه فقهاء اوسيدان شول.نوده (زيد) ته به تعزير وركولې شى.ځكه چه ددې الفاظو په وجه دوى ته سخت تكليف رسى.اوكه عام سړې وى. (چه ددې الفاظو په وئيلودهغه څه خاص پرواه نه وى) نوبيا به تعزيرنشى وركولې.اودا قول ډيره ښه دې. (ځكه چه په دې كښې دساب او مسبوب دواړو رعايت شوې دې)

**دتعزير مقدار**

وَالتَّعْزِيرُ أَكْثَرُهُ تِسْعَةٌ وَثَلَاثُونَ سَوْطًا وَأَقَلُّهُ ثَلَاثُ جَلَدَاتٍ.(۱) وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ: يَبْلُغُ بِالتَّعْزِيرِ خَمْسَةً وَسَبْعِينَ سَوْطًا.

**ترجمه** ۞ اودتعزيرزيات مقدار يوكم څلويښت كوړې دى.اوكم مقدارئې درې كوړې دى.او امام ابويوسف رحمه الله فرمائيلى دى.تعزيرترپنځه اويا كوړو ته رسى.

**تشريح** ۞ **الاصل** ۞ اصل (دليل) په دې (باب) كښې د نبى ﷺ ارشاد دې.څوك چه حدته اورسيدلو. په داسې ځيزكښې چه حد نه وى. (۱) (يعنى ديوكس نه څه جرم اوشو.خوهغه جرم داسې نه وى.چه شريعت پرې حدمقرر كړې وى.خوچه څوك ورته تعزير وركوى.نو دجرمونوپه حدودوكښې د يوجرم حدته اورسى.مثلاً اتيا كوړې شوې.چه دشرابوحد دې) نودا كس د زياتى كونكوځنې دې.

**مدار دليلهما** ۞ اوهركله چه د تعزيرى سزا حد ته رسول ناجائز شو.نوامام ابوحنيفه اومحمد رحمهما الله كم حد ته نظركړې دې.اوهغه په حدقذف كښې دغلام حددې. (چه څلويښت كوړې دى) نودوى دا تعزيردې (دغلام حدقذف) ته واړوله. (يعنى دتعزيرى سزا مقابله ئې د غلام د حدقذف پورې اوكړله) اوهغه څلويښت كوړې دى.نود هغې نه ئې يوه كوړه كمه كړه. (اود يوكم څلويښتو كوړو قول ئې اختياركړلو.چه په تعزيرى سزا كښې به د يوكس څلويښتوكوړو نه زياتې كوړې نشى وركولې)

**مدار دليله** ۞ امام ابويوسف رحمه الله كم حد په آزادوسړوكښې معتبر كړې دې. (اوتعزيرى سزا مقابله ئې د آزادو د حد آخرى سزا سره كړې ده.اوهغه اتيا كوړې دى.اودوى دغلام د حد په ځائې د آزاد حد سره د تعزيرى سزا موازنه اومقابله ځكه كړې ده.چه) اصل خو(په انسانيت كښې) آزادى ده. (هرانسان الله

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۵\۱۱۵) والعناية (۵\۱۱۵) وردالمحتار (۱۳\۱۹۹) والبحر(۵\۴۷) نقلاً عن القول الراجح (۱\۴۵۷)۔

۱) من نعمان بن بشيراخرجه البيهقي في السنن الكبرى ۸۵۶۷) رقم ۱۷۵۸۴ وفي معرفة السنن والآثار ۶۴۹)۔

تعالی ازاد پیدا کړې دي.اوغلامي چه راځي.دا خو یوعارضي څیزدي.نواعتباربه د اصل کولې شي د عارضي نه) نو یوه کوره ئې کمه کړې ده. (یعنې د تعزیري سزا آخري حد ئې یوکم اتیا کوړې مقررکړی دی)

**وجه التقدير بثلاث جلدات** بیا ئې په کتاب (القدوري) کښې دکم تعزیر اندازه په درې کوړو باندې کړې ده.ځکه چه ددې نه په کم مقدارباندې (چه دوه یا یوه کوړې دی) تنبیه (اوزورنه) نه واقع کیږي. (اومقصود خو په تعزیرکښې تنبیه اوزورنه وی.نوچه مقصود پرې نه حاصلیږي.هغه به معتبر نه وی)

**تعزيري سزا كښې د قيدكولو حكم**

| وَإِنْ رَأَى الْإِمَامُ أَنْ يَضُمَّ إِلَى الضَّرْبِ فِي التَّعْزِيرِ الْحَبْسَ فَعَلَ) |
|---|

**حل اللغة** ① **يضم**:یوځائې کړي ② **الحبس**:قید ،بندیز

**ترجمه** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.اوکه امام مناسب ګنړي.چه په تعزیري سزا کښې د کوړو سره قیدول هم شامل کړي.نوداسې دې اوکړي.

**تشريح** **دليله** ځکه چه دا (په جیلخانه کښې بندول) دتعزیرصلاحیت لري. (یعنې دا هم یوقسم تعزیر دی) اویا دا چه د څه حده پورې په شریعت کښې قیدول هم ثابت دی.

| وَأَشَدُّ الضَّرْبِ التَّعْزِيرُ) |
|---|

**ترجمه** ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چه سخت وهل دتعزیرځنې دې. (یعنې په وهلوکښې به سختي کوي)

**تشريح** **دليله** ځکه چه په دې (تعزیر) کښې یوخل د شمارپه اعتبارسره تخفیف راغلې دې. (چه دتعزیرد کوړو شمارپه د حددکوړو نه کم وی.اوددې حکم مطابق په تعزیرکښې دومره کوړې نشي ورکولې.چه د حدد کوړو مقدارته اورسي)نود وصف په اعتبارسره به په کښې تخفیف نشي کولې. (د وصف نه مراد په وهلوکښې سختي اونرمي کول دی) د مقصود د فوت کیدو سبب اونه ګرځي. (یعنې د تعزیرد مشروعیت مقصددا دې.چه مجرم د جرم دارتکاب نه منع شي.اوس مونږ یوطرف ته د تعزیرد کوړو په شمارکښې کمی کړې دې.نوکه بل طرف ته ددې په وصف کښې هم کمي اوکړو.چه نرم وهل اوکړو.نوبه دې سره مجرم ته زورنه اوتکلیف نه ملاویږي.اوچه تکلیف ورته نه ملاویږي.نود تعزیرد مشروعیت چه کوم مقصد دې.هغه به فوت شي. اوښکاره خبره ده.چه دا صحیح نه ده) اوددې وجې (چه دتعزیرمقصود فوت نشي) د مختلفواندامو په وهلو په کښې تخفیف نه دې شوې. (یعنې دا حکم نه دې ورکړې شوې.چه مجرم به په یواندام نشي وهلې. بلکه جلاد ته دا اجازت شته.چه هم یواندام باندې ټول حد جاري کړي.ځکه که دا حکم اوکړې شي.چه په یوداندام باندې به ئې نه وهي.نوپه دې باندې مجرم ته تکلیف نه ملاویږي.نودتعزیرمقصود به حاصل نشي.نوخلاصه دا چه دتعزیرپه عدد کښې قاضي ته اختیارحاصل دې.دې په کښې کمي زیاتي کولې شي. خود تعزیرپه وصف کښې ده ته د سختۍ اونرمۍ کولواختیارنشته.بلکه په حد ورکولوکښې به سختي کوي)

**دشرابو څکلو په حد کښې سختي**

| ثُمَّ حَدُّ الشُّرْبِ) |
|---|

**ترجمه** بیا (دحدزنا نه پس) به د شرابو څکلوحد سخت وی.

**دليله** ځکه چه ددې حد سبب (یعنې شراب څکل) یقیني دې.

| ثُمَّ حَدُّ الْقَذْفِ) |
|---|

**ترجمه>** او بیا (د شرابو حد نه پس) به حد قذف سخت وی.

**دلیله>** ① ځکه چه ددې سبب احتمالي دې. ځکه چه دا احتمال شته. چه قاذف رښتوني وی. (نو په دې صورت کښې په ده باندې دیانةً حد نه واجب کیدو. خو چونکه د شریعت مطابق څلور ګواهان ضروري وو. او دهغې نه دې عاجزه شو. ځکه په ده باندې حد قذف جاری کولې شی)

② او بله ددې وجه (هم په مرتبه کښې حد قذف د شرابو څکلو د حد نه روستو دې.) چه په دې حد (قذف) کښې یو څل سختوالي راغلي دې. چه رد کول د شهادت دی. (یعنی د محدود فی القذف ګواهی نه قبلیږی) نو د وصف په اعتبارسره به په کښې سختی نشی پیدا کولې. (یعنی دا به نشی ونیلي. چه کورې دې ورته هم نرمې ورکړی)

## د حد په وجه د مړلې واقع کیدو حکم

| |
|---|
| (وَمَنْ حَدَّهُ الْإِمَامُ أَوْ عَزَّرَهُ فَمَاتَ فَدَمُهُ هَدَرٌ) |

**حل اللغة>** ① **هدر**: بې قیمته، بې دیته

**ترجمه>** اوکوم کس چه امام پرې حد جاری کړی. یا ورته تعزیری سزا ورکړی. او مړ شو. نو دده وینه هدر ده (په چا باندې نې دیت او قصاص نشته)

**تشریح> دلیله>** ځکه چه امام څه کړی دی. د شریعت په حکم سره نې کړې دی. (یعنی شریعت ورته دا ونیلی دی. چه په مجرمانو باندې حدود جاری کوه) او د مامور فعل (یعنی چاته چه د یو کار حکم شوی وی. دهغه فعل) د سلامتیا په قید سره نشی مقید کولې. (یعنی په مامور باندې دا نشی لازمولې. چه دا کار او کړه. خو که څه نقصان په کښې پیدا شو. نو ذمه وار به نې ته نې) لکه څنګه چه په رګ لګونکی او حصی کونکی باندې تاوان نه وی. (یعنی که زید خالد له رګ وهلو. او هغه ته څه نقصان اورسیدلو. نو زید باندې تاوان نشته. دغه شان که زید یو څاروې خصی کولو. او هغه ته څه نقصان اورسیدلو نو په زید باندې څه تاوان نشته)

## د محدود فی القذف د ګواهۍ بحث

| |
|---|
| (وَإِذَا حُدَّ الْمُسْلِمُ فِي قَذْفٍ سَقَطَتْ شَهَادَتُهُ وَإِنْ تَابَ) |

**ترجمه>** اوکله چه حد ورکړې شی. مسلمان ته په قذف کښې (چه په چا باندې نې د زنا تهمت لګولې وی. او هغه زنا ثابته نشی. اوده ته دهغې په سزا کښې اتیا کورې ورکړې شی) نو دده شهادت ساقط شو. (یعنی ددې نه پس به په باب الشهادة کښې دده ګواهی نشی قبلولې) اګرچه توبه اوباسی. (چه بیا به په پاکدامن او بې ګناه کس باندې د زنا تهمت نه لګوم) ([1])

**تشریح> دلیله>** دلیل دالله تعالی دا ارشاد دې. چه [وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا ۚ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْفَاسِقُونَ] یعنی چه په چا باندې حد قذف جاری شی. تاسو کله هم ددوی ګواهی مه قبلوئ. او هم دغه کسان فاسقان دی. خو ددې نه پس الله تعالی فرمانی ﴿إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا﴾ مګر دا چه دوی توبه اوباسی. او س امام شافعي رحمه الله فرمانی. چه دا استثناء د ﴿وَلَا تَقْبَلُوا لَهُمْ شَهَادَةً أَبَدًا﴾ نه ده. یعنی که توبه اوباسی. نو بیا نې

[1] **مسلک الشافعي**:- او امام شافعي رحمه الله فرمانی. چه شهادت به نې قبلولې شی. چه توبه اوباسی. او دا مسئله به په باب الشهادات کښې اوپیژندې شی. (هلته به بیا پوره تفصیل انشاء الله بیانولې شی)

ګواهي قبلوي.

**الاستدلال﴾** دا د فسق نه استثناء ده.يعنی که توبه اوباسي.نوبيا دوی فاسقان نه دي.

**دکافر محدود في القذف ګواهي د کافر ذمي دپاره**

| (وَإن حُدَّ الْكَافِرُ فِي قَذْفٍ ثُمَّ أَسْلَمَ قُبِلَتْ شَهَادَتُهُ |
|---|

**ترجمه﴾** اوکه کافرته په تهمت لګولوکښي حد ورکړې شي. (چه په چا نې د زنا تهمت لګولې وي. اوحدپرې جاري شي) اګرچه دده دپاره په خپل هم جنس (يعنی نورو کافرانو) باندې دګواهئ اهليت شته. (مثلاً که دا کافر دبل کافرخلاف ګواهي ورکړي.نوهغه به قبوله وي. خوچه محدود في القذف وي.نوپه ذميانوبه دده ګواهي نه قبليږي.بلکه) د حد قذف دتکميل دپاره به دده ګواهي رد کيږي.

**تشريح﴾ دليله﴾** ځکه چه په حد قذف کښې دوه سزا ګاني دي.يواتيا کوړې اوبل د شهادت رد کيدل. نو حد قذف به هله پوره په پوره واخستې شي.چه دده شهادت هم نه قبليږي

| كِتَابُ السَّرِقَةِ وَقُطَّاعُ الطَّرِيقِ |
|---|

**ترجمه﴾** (دا) کتاب د غلا اولارشوکونکو (په بيان کښې) دې.

**تشريح﴾ السرقة لغة﴾** د سرقه لغوی معنی ده.دبل چا نه په پټه اوغلا باندې يوڅيز اخستل. اوپه دې معنی کښې دالله تعالی دا قول هم استعمال شوې دې.چه ﴿إِلَّامَنِ اسْتَرَقَ السَّمْعَ﴾ (يعنی د زمکې نه شيطانان دا طاقت نه لري.چه آسمان ته اوخيژي.اود فرشتو خبرو ته غوږ کيږي.اوهغه بيا خپلو کاهنانوته بيان کړي.ځکه چه دوی ددې نه منع شوی دی.البته چه څوك په پټه خبرې اوريدو ته غوږ کيږدی.نوپه هغه پسې يوه ښکاره سکروټکه شي .دلته هم استرق په پټه خبرې اوريدودپاره استعمال شوی دې)

**السرقة شرعا﴾** اوپه شريعت کښې په دې لغوی معنی باندې څو نور صفتونه زيات شوی دی.دهغې بيان به انشاءالله تاته راشي. (يعنی سارق ① عاقل وی ② بالغ وی. ③نصاب يا دنصاب برابرڅيزغلا وی④ دمحفوظ ځائې نه غلا شوی وی⑤ دبل ملکيت وی⑥ دبل په ملکيت کښې شبه نه وی.⑦ دا په پټه باندې حاصل شوې وی)

**په سرقه کښې دلاس کټ کولو دپاره دعقل اوبلوغ شرطيت**

| (إِذَا سَرَقَ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ أَوْمَا يَبْلُغُ قِيمَتُهُ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ مَضْرُوبَةً كَانت اوغيرمضروبة مِنْ حِرْزٍ لَا شُبْهَةَ فِيهِ وَجَبَ عليه الْقَطْعُ) |
|---|

**حل اللغة﴾** ① **يبلغ**: رسيږی ② **مضروبة**: تيارې شوې ③ **حرز**: محفوظ ④ **القطع**: کټ کول

**ترجمه و تشريح﴾** مصنف رحمه الله فرمائي.کله چه غلا کړی ① بالغ ② بالغ سړی ③ لس روپئ يا هغه څيزچه دهغه قيمت د سيکه لس روپو ته رسي. اودادې قيمت لس روپئ وی کا جوړې شوی وی اوکه ناجوړې شوې وي ④ دمحفوظ ځائې نه واخلي. ⑤ (اوپه داسې طريقه باندې غلا اوکړي.چه) په هغې کښې شبه نه وی. (نوچه دا ټول واړه شرائط په کښې وی) واجب شوه په ده (سارق) باندې کټ کول (د لاس)

**دليله﴾** دليل په دې (قطع د يد کښې) دالله قول دې. ﴿وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا﴾ يعنی غل سړې

اوغله ښځه کښې کړئ لاسونه ددې دواړو،د ایت اخره پورې.

**اشتراط العقل والبلوغ** > اونښته مخلص د معتبروالی دعقل اوبلوغ نه (یعنی په سارق کښې عقل اوبلوغ ضروری شرطونه دی)

**دلیله** > ځکه چه جنایت نه متحقق کیږی بغیرددې دواړو نه(یعنی چه په چا کښې عقل نه وی.نوکه دې ګناه اوکړی.دې مجرم نه دې.اوماشوم غیرمکلف وی.نوکه ګناه اوکړی.نوهم هغه دده په حق کښې ګناه نه وی. او کټ کول (یعنی دلاس کټ کول) جزاء د ګناه ده (یعنی لاس به هله کټ کیږی.چه جرم ثابت شی.اود لیونی اوماشوم په حق کښې غلا جرم نه دې.نودلاس کټ کول هم جائزنشو)

**التقدیربالعشرة** > اوپه لسو روپو پورې (دغلا شوی مال) اندازه کول زمونږ(داحنافو رحمهم الله) مذهب دې. (که یوکس د لسو درهموپه اندازه غلا اوکړله.نولاس به ئې کټ کولې شی) ( [1] )

**دلیله** > دلیل دا دې.چه عمل کول په اکثرباندې په دې باب (دحدودو) کښې غوره دې.دپاره دحیلې جوړلو حد لرې کولوته(یعنی د حدودو په باره کښې بهتره خبره دا ده.چه حد لرې کولودپاره څه مانع پیدا کړې شی.اوحد قائم نکړې شی) اودحدسرقه نصاب اکثرمقررکول ځکه غوره دی.چه په کم کښې شبه دعدم جنایت ده. (یعنی که مونږ د سرقه نصاب درې روپئ مقرر کړو.نوکیدې شی.چه دالله تعالی په نیزپه درې روپئ باندې دلاس کټ کولوحکم نه وی.نوچه درې درهمه نصاب مقرر شی.په دې کښې دا شبه پیدا کیږی.چه کیدې شی.دالله تعالی په نیزدرې درهمه نصاب د سرقې نه وی. (اوشبه دفع کونکې ده (یعنی چه په کوم محل کښې شبه پیدا شی.حدنه قائمیږی نودلته به کم نصاب نه مقررکوو.بلکه زیات نصاب به مقررکوو) اودا خبره (چه کم نصاب ځکه نه دی مقرر کول چه په دې کښې شبه د دفع کولود حد ده) د نبی ﷺ په دې قول سره موید ده. لَا قَطْعَ إِلَّا فِي دِينَارٍ أَوْعَشَرَةِ دَرَاهِمَ}

()چه نښته کټ کول مګرپه یودینار یا لسو درهمو کښې .

**اشتراط الحرز** > او(حد سرقه په حد قائمولو کښې) نښته مخلص د حفاظت نه داسې حفاظت چه شبه نه وی په هغې کښې ځکه چه شبه د حدقائمولونه منع کونکې ده. (یعنی دا کوم مال چه غلا شوې وی.دا ضروری ده.چه هغه دمحفوظ ځائې نه غلا شوې وی.

**دلیله** > ځکه چه دغیرمحفوظ ځائې نه غلا شوې وی.بیا په کښې دلاس کټ کول نښته.یا داسې ځیزغلا کړی.چه په هغې کښې شبه وی. نو لاس به نشی کټ کولې) اومونږبه دا روستو بیان کړو.انشاءالله (چه محفوظ مقام څه ته وائی.اوشبه څه ته وائی)

**په حد سرقه کښې د آزاداوغلام دحکم برابری**

| وَالْعَبْدُ وَالْحُرُّ فِي الْقَطْعِ سَوَاءٌ) |
| --- |

**ترجمه وتشریح** > فرمائی.اوآزاداوغلام په ک٠- کولو(دلاس کښې) برابر دی. (دا نه چه د آزاد نه به پوره لاس کټ کولې شی.اود غلام نه دهغې په نیمه

**دلائله** > ① ددوو وجوه نه یوه دا چه) نص قرآنی (چه والسارق والسارقة) څه تفصیل نه دې بیان کړې. (چه د آزاد نه به پوره لاس کټ کوئ.اودغلام نه به دهغې په نیمه.

[1]) **مسلک الشافعي**:- دامام شافعی رحمه الله په نیزاندازه کولې به شی په څلورمه حصه د دینار پورې.
**مسلک مالک**:- دامام مالک رحمه الله په نیز(اندازه کولې به شی) درې روپو پورې.
۱) من حدیث ام ایمن رضی الله عنها اخرجه الطحاوی فی شرح معانی الآثار ۲/۹۳_

۲ اودويم دليل دا دې.چه) تنصيف (يعنې نيم والى) متعذردي. (غيرممكن دي.يعنې داسې نشي كيدې.چه نيم لاس كټ كړې شي اونيم نه) نوكامل كولې به شي (سزا دغلام) دپاره دحفاظت د مالونودخلقو. (چه دغلام سزاهم كامله وى.نودې به هم د غلا كولونه خان ساتى)

**دغلا اقرارکولوبانديږ دلاس کټ کول**

| وَيَجِبُ الْقَطْعُ بِإِقْرَارِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً |
|---|

**ترجمه و تشريح** > اوواجب دى پريكول (دلاس) په اقراركولودده (غل) يوځل. (كه يوځل هم اقراراوكړى.چه ماغلا كړې ده.دده لاس به كټ كولې شى) اودا (حكم) په نيزدامام ابوحنيفه اومحمد رحمهماالله دې.

**دليلهما** > د طرفينورحمهماالله دليل دا دې.چه غلا يوځل ښكاره شوې ده په اقراركولوسره (چه غل په خپله د غلا اقراركړې دې. (نودوباره اقرارته څه ضرورت نشته بلكه) اكتفاء به كولې شى په دې (يوځل اقرار كولو) باندې. لكه څنګه چه په قصاص كښې دى. (كه قاتل يوځل اووائى.چه ما قتل كړې دې.دې به قصاص كولې شى.دده نه به دوباره اقرارنشئ اخستې) اوپه حدالقذف كښې (چه قاذف يوځل اووائى.چه اوما په ده په دروغه د زنا الزام لګولې دې.نوپه ده به حدقذف جارى كولې شى.دوباره به ترې اقرارنشي اخستې)

**مسلک ابي يوسف** > اوفرمائيلى دى امام ابويوسف رحمه الله چه نه به شى كټ كولې مګرپه اقراركولوسره دوه خله.اونقل شوى دى ددوى (امام ابو يوسف رحمه الله) نه چه دا (اقرار) به په دوو مجلسونو مختلفوكښې وى.

**دليله** > ځكه چه دا يوحجت دې د دوو حجتونو څنې (يعنې د حد قائمولودپاره دوه حجتونه اودليلونه دى.يوګواهي اوبل اقرار.چه كله ديوكس خلاف ګواهان ګواهي وركړى.يا دې په خپله دخپل جرم اقراراوكړى.نوده باندې حد جارى كولې شى)نودا (اقرار) به قياس كولې شى په بل باندې چه ګواهان دى. (يعنې لكه څنګه چه په حد سرقه كښې دوه ګواهان ضرورى دى.دغه شان به دوه خله اقراركول هم ضرورى وى) هم دغه شان مونږ قياس كړې دې. په زنا كښې (يعنې دحد زنا جارى كولودپاره دوه طريقې دى.يودا چه څلورګواهان ګواهي وركړى.اودويمه دا چه زانى په خپله د زنا اقرار اوكړى.نوكه دې اقراركوى.څلور خله به اقراركوى.ځكه چه لكه څنګه د زنا د ثبوت دپاره څلورګواهان ضرورى دى.دغه شان به څلورخله اقراركول هم ضرورى وى.نودغه شان به په باب د سرقه كښې هم دوه خله اقراركول ضرورى وى)

**الجواب عنه** > اوصحيح نه دې قياس كول (د اقرارفى السرقه) په شهادت باندې(يعنې امام ابويوسف رحمه الله چه په حدالسرقه كښې د اقرارقياس په ګواهئ باندې كوى.چه لكه څنګه دوه ګواهان ضرورى دى.دغه شان به دوه خله اقرارهم ضرورى وى) ځكه چه زيادت د ګواهئ فائده وركوى په شهادت كښې.چه كم والې د تهمت د دروغو دې. (يعنې چه ګواهان زيات وى.نوځوك دا ګمان نه كوى.چه دوى ټول به دروغ وائى.اوچه ګواه يو وى.نودا ګمان كولې شى.چه كيدې شى دا شاهد دروغ وائى) او(تكرارداقرار) په اقراركښې څه فائده نه وركوى د هيڅ څيز.ځكه چه (په مقرباندې) د (دروغو) تهمت نه وى. (بلكه دې خوپه خپله په ځان جرم اقراركوى.نودا قياس مع الفارق شو.اوقياس مع الفارق صحيح نه دې.)

**دلاس کټ کولودپاره دګواهانو تعداد**

| اَوْبِشَهَادَةِ شَاهِدَيْنِ ) |
|---|

**ترجمه و تشریح** ﴿.اوواجبيږي (حدسرقه) په شهادت د دووګواهانو(چه دوه ګواهان ګواهي ورکړي.چه ده غلا کړې ده.اود شهادت وجوب)
**دليله** ﴿ دښه ښکاره والي دپاره (چه دا خبره په تحقيق سره ثابته شي.چه ده غلا کړې ده)لکه څنګه چه په ټولو حقوقوکښې (که حقوق الله دي اوکه حقوق العباد) ګواهي واجب شوې ده.اومناسب دی چه تپوس اوکړي ددې دواړوګواهانونه امام د غلا دطريقې (چه ده په کومه طريقه غلا کړې ده) اودماهيت دهغې (چه غلا څه ته وائي) اود زمانې د هغې (چه غلا ئې کله کړې ده) اودهغې د ځائې (چه غلا ئې په کوم ځائې کښې کړې ده) دپاره د زيات احتياط لکه څنګه چه تيرشوی د حدودو دفع کولوپه بيان کښې. (يعنی دا احتياط به څکه کوی.که چرته په ګواهئ کښې څه نقصان وی. نو حدبه ساقط شي.اوپه شريعت کښې په جائزه طريقه د حد ساقط کول مطلوب دی)

**دغلا په واردانوکښې دګډونوکسانوشرکت**

| |
|---|
| (وَإِذَا اشْتَرَكَ جَمَاعَةٌ فِي سَرِقَةٍ فَأَصَابَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَشَرَةُ دَرَاهِمَ قُطِعَ، وَإِنْ أَصَابَهُ أَقَلُّ لَا يُقْطَعُ) |

**ترجمه و تشریح** ﴿ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.اوکله چه شريك شي يوه ډله په غلا کښې.اواورسيږي هريوکس ته په دوی کښې لس روپئ. (يعنی دمال مسروق قيمت اولګولې شي.اوهغه قيمت په دغه غلو باندې تقسيم کړې شي.نودهريوغل په حصه کښې لس روپئ راځي) نوقطع کولې به شي(لاس دهريوکس) اوکه اورسيږي(هريوکس ته په دوی کښې) کمې د لسو روپو نه،نونه به شي کټ کولې (لاس)
**دليله** ﴿ څکه چه واجبونکې (دلاس کټ کولو) غلا دنصاب ده، (يعنی کوم څيزغلا کړي.هغه لس روپئ يا ددې برابر وی.)اوواجبيږي (قائمول دحد) په هريوکس ددوی نه موافق دهغه د جرم.نومعتبر به وی کامل نصاب دده په حق کښې (يعنی حدبه هله جاري کولې شي.چه دهرکس په حصه کښې کامل جرم يعنی د سرقه دنصاب غلا راشي .چه لس روپئ دی.اوپه دې صورت کښې چونکه دهريوپه حصه کښې دلسو نه کمې روپئ راځي.نولاس به نې نشي کټ کولې)

**دکوموڅيزونوپه غلا کښې چه لاس کټ کول نشته**

| |
|---|
| (وَلَا يُقْطَعُ فِيمَا يُوجَدُ تَافِهًا مُبَاحًا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ كَالْخَشَبِ وَالْحَشِيشِ وَالْقَصَبِ وَالسَّمَكِ وَالصَّيْدِ) |

**حل اللغة** ﴿ ① **تاف:** حقير ،معمولی ② **الخشب:**لرګي ③ **الحشيش:** ګياه ④ **القصب:**نل ⑤ **السمک:**کب، مهي ⑥ **الصيد:**ښکار

**ترجمه و تشریح** ﴿ اوکټ کول (دلاس) به نشی کولې په هغه څيزکښې چه مونډې شي حقيرمباح په دارالاسلام کښې لکه لرګی اوګياه،اونل (دورمي) اوکب اوښکار (نوکه يوکس دا څيزونه غلا کړل.په دې کښې لاس کټ کول نشته.البته که په دې خام اوکچه مال باندې کاريګری اوکړې شي.اوددې نه په محنت سره بل څه څيزجوړکړې شي.نوهغه بيا معمولی مال نشی ګڼرلې.بلکه دهغې په غلا به لاس کټ کولې شي.لکه د لرګی نه چه دروازې جوړيږي.فرنيچرترې جوړيږی داسې وريسې دا نور څيزونه راواخله)
**دليله** ﴿ دليل په دې کښې (چه ددې څيزونوپه غلا کښې دلاس کټ کول نشته) د حديث دحضرت عائشې رضي الله عنها دې.دوی فرمائيلی دی.او لاس چه نه به شو کټ کيدې په زمانه د رسول الله ﷺ کښې په

څيز معمولي کښي.يعني حقيرکښي. }(۱)

**تعريف الحقير** ◀ دحقير څيز په غلا کښي دلاس کټ كول نشته.او حقيرڅيزپه هغه وی.چه خلق هغه معمولي گنړی.دهغې دحفاظت څه خيال نه ساتی.اودهغې په استعمال کښي بخل نه کوی.نوکه يو څيزداسي وی.نوهغه به حقيروی.اوپه دې مقام کښي چه مصنف رحمه الله کوم څيزونه بيان کړی دی.چه ددې په غلا کښي دلاس کټ كول نشته.نودا هم په دې صورت کښي چه خلق ئې حقيراومعمولي گنړی.اوکه بالفرض پهيوخائي کښي دا څيزونه قيمتی گنړلی شی.اوخلق ئې حفاظت کوی.اوخلقوته ئې په ورکولوکښي بخل کوی .نوکه دا څيزونه غلا کړې شی.دلاس کټ كول به په کښي وی.

**وجه عدم القطع في الصيد** ◀ اوښکار تختی. (نوددې په حفاظت کښي هم کمې دې.اووراندې تيرشو.چه حدسرقه به د مال محفوظ په غلاکښي جاری کيږی)

| |
|---|
| وَلَافِيمَايَسْرَعُ إِلَيْهِ الْفَسَادُ كَالْفَوَاكِهِ الرَّطْبَةِ وَاللَّبَنِ وَاللَّحْمِ وَالبطيخ |

**حل اللغة** ◀ ① **يسرع**:زر راځی ② **اللبن**:پې ③ **اللحم**:غوښه

**ترجمه و تشريح** ◀ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.اونشته کټ كول (دلاس) په هغه څه کښي چه زر راځی هغې ته فساد (يعنی زرخرابيږی) لکه تازه ميوې او پې اوغوښه اوخربوزه ( ).

**دلائله** ◀ ① (ځکه چه دا څيزونه د ذخيره کيدو نه دی.بلکه زر خرابيږی) په وجه د دې قول د نبی ﷺ لَا قَطْعَ فِي ثَمَرٍ وَلَا فِي كَثَرٍ} (۱)چه نشته کټ كول (دلاس) په ميوه کښي اوپه کثرکښي.اوکثردخرما گوندته وائی. (کوم چه د واږگې پشان وی)او ونيلی شوی دی.چه دخرما وړکی بوټی ته وائی. (اودامام محمد رحمه الله نه دا نقل دی.چه ثمرهغه ميوه ده.چه د قجوروپه ونو کښي وی.اوکثرهغه خرما ونه ده)

② اونبی ﷺ فرمائيلی دی. لَاقَطْعَ فِي الطَّعَامِ} (۲)نشته کټ كول(دلاس) په (غلاد) طعام کښي اومراد د طعام نه الله ښه پوهيږی.هغه څيزدې چه زرورځی هغې ته فساد (يعنی زرخرابيږی)لکه هغه طعام دخوراك دپاره تيارشوې وی.ددې نه (يعنی طعام نه) اوهغه چه په معنی ددې کښي وی.لکه غوښه اوميوه. (ځکه چه دا هم زرخرابيږی.ذخيره کيږی نه.اوپه حديث کښي د طعام نه ځکه هغه څيزمراد دې.چه زرخرابيږی.

---

۱) من حديث عائشة رضي الله عنها اخرجه ابن ابي شيبة ف مصنفه وعبدالرزاق ف مصنفه مرسلاً نصب الراية ۵۵۲/۳)۔

۲) **مسلك الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دې څيزونوکښي(کوم چه وړاندې تيرشو) به هم لاس کټ کولې شی.

۱) من حديث رافع بن خديج رضي الله عنه اخرجه الترمذی ف الحدودباب ۱۹ والنسائی ف قطع السارق باب ۱۳ رقم ۴۵۹۵ وابن ماجه ف الحدود باب ۲۷ رقم ۲۵۹۳ والدارمی ف الحدود باب واحمد ف المسند ۱۴۰/۴ والشافعی ف الأم ۱۴۸/۶) والبغوی ف شرح السنة ۳۱۸/۱) والبيهقی ف السنن الكبری ۴۵۷/۸) رقم ۱۷۲۰۰) وكذا ف معرفة السنن والآثاررقم ۵۱۵۴) ومالك ف الحدود رقم ۳۲)۔

۲) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم اخرج ما هو بمعناه من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ان النبي ﷺ سئل عن الثمر المعلق فقال من اصاب بفيه من ذی حاجة غير متخذ خبنة فلا شئ عليه ومن سرق منه شيأ بعد ان يؤويه الجرين فبلغ ثمن المجن فعليه القطع وعزاه إلى مراسيل أبي داود رقم ۲۱۵ كذا ف نصب الراية ۵۵۵/۳)۔

دونم دميوو اوديتي دفصل په غلا د حد جاري کولوحکم

(وَلَا قَطْعَ فِي الْفَاكِهَةِ عَلَى الشَّجَرِ وَالزَّرْعِ الَّذِي لَمْ يُحْصَدْ)

**حل اللغة** ﴿ ① **الشجر**:ونه ② **يحصد**:ريبلې شي

**ترجمه و تشريح** ﴿ فرمائي.اونشته کټ کول (دلاس) په (غلا د) ميوه کښې (چه وی دا ميوه) په ونه باندې.اودهغه فصل (په غلاکښې کټ کول دلاس نشته) نه وی ريبلې شوې (په دې دوارو ځيزونوکښې دلاس کټ کول نشته)

**دليله** ﴿ ځکه چه حفاظت نشته. (ددې ځيزونو دپټ اود ونې نه به څوک څوک منع کوې)

(وَلَا قَطْعَ فِي الْأَشْرِبَةِ الْمُطْرِبَةِ وَلَا فِي الطَّنْبُورِ)

**حل اللغة** ﴿ ① **المطربة**: نشه کونکی

**ترجمه** ﴿ اونشته کټ کول (دلاس) په شربوتونشه کونکوکښې،

**تشريح** ﴿ **دلائله** ﴿ ① ځکه چه غل تاويل کوی په اخستلوددې کښې د تويولو، (يعنی غل دا وئيلی شی.چه ما دا ځيزدغلا په نيت نه دې اخستې.بلکه د تويې کولوپه نيت مې اخستې دې.نوپه دې سره ده په غلا کښې شبه پيدا شوه.اوحدود په شبه سره دفع کولی شی)

② بله دا چه ددې دا (نشه راوستونکی ځيزونه دشريعت په نيز) مال نه دې. (اوحدخود هغه ځيزپه غلا کښې جاری کولې شی.چه مال وی)

③ د بعضې (حرامو) مشروباتوپه باره کښې (دعالمانو) اختلاف دې.نوثابتيږی (په دې نشه راوستونکی ځيزکښې) شبه دعدم ماليت. (اوچه په ماليت کښې ئې شبه راغله.نوحدساقط شو.چه حدود په شك سره دفع کولی شی)

د ستاراومصحف په غلا باندې د حد جاری کيدل

(وَلَا فِي سَرِقَةِ الْمُصْحَفِ وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ حِلْيَةٌ)

**ترجمه و تشريح** ﴿ اونشته په غلا کولود مصحف کښې (دلاس کټ کول) اګرکه په دې باندې سرو زر وی. ([1]) اودا ظاهر روايت دې.

**دلائله** ﴿ ① اووجه د ظاهر روايت (چه د مصحف په غلا کښې دلاس کټ کول نشته.دا ده.چه) ددې (مصحف) په اخستلوکښې تاويل دقراءت کولې شی.اوپه دې کښې دکتلو. (نوپه دې تاويل سره دغلا په تعريف کښې شبه راغله.اوپه شبه سره حدساقطيږی.نوځکه د مصحف په غلا سره حدنه جاری کيږی.

② (دمصحف په غلا باندې حدځکه هم نه جاری کيږی.چه) دمصحف ماليت نشته.په اعتبارد مکتوب سره (يعنی دمصحف الفاظ مال نه دې.بلکه دا خودالله تعالی کلام دې.اوچه مال نشو.نوحدبه په کښې هم نه وی. ځکه چه مال نه دې.اوکه ته دا وائې.چه مصحف خوصرف کلام نه وی.بلکه په هغې کښې پانړې وی. نو پکارده چه ددې پانړو اوجلدپه وجه دمصحف په غل باندې حدجاری شی.نومونږ وايو.چه) د مصحف حفاظت د کلام د وجې کيږی. (چه دا دالله تعالی کلام دې) د جلد اوپانړو او سرو زرو دوجې نه کيږی.بلکه دا ځيزونه (پانړې جلداوسره زر) توابع دی. (دمحصف) اوتابع لره څه اعتبارنه وی.

[1] **مسلك الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله فرمائي.چه (د مصحف په غلاکښې به لاس) کټ کولې شی.

**نظیره** ﴿ ‹اوددې مسئلې نظیردا دي.› که یوکس لوښې غلا کړي.اوپه هغې کښې شراب وي.اوقیمت د لوښي په نصاب باندې زیاتیږي. ‹نوپه دې صورت کښې هم حدسرقه نه واجبیږي.ځکه چه لوښې تابع وي.اواعتبارمتبوع لره وي.تابع لره نه وي.

**روایة عن ابي یوسف** ﴿ دامام ابویوسف رحمه الله ددې ‹قول› پشان نقل دی. ‹چه دمصحف په غلا کښې دلاس کټ کول شته›اودامام ابویوسف رحمه الله نه ‹دویم روایت› دا هم نقل دي.چه کټ کولې به شی‹لاس› کله چه رسیږي سره زر ‹کوم چه په دې باندې دي› نصاب ‹د سرقه› ته.ځکه چه دا سرزرد مصحف نه نهٔ دی. ‹بلکهٔ مستقل څیزدې› نومعتبریه وی ځانله. ‹دمصحف تابع به نه وي›

**د سروزروصلیب شطرنج منزری په غلا دلاس کټ کولوحکم**

| |
|---|
| وَلَا الصَّلِيبِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَلَا الشِّطْرَنْجِ وَلَا النَّرْدِ)[1] |

**حل اللغة** ﴿ ① **الصلیب**: دعیسایانو هغه مذهبی نښه کومه چه هغوی په خپلو عبادتخانو دپاسه لګولی وی ② **نرد**:منزرې

**ترجمه** ﴿ دسرو زرود صلیب،شطرنج منزری ‹په غلا د لاس کټ کول نشته›

**تشریح**﴿ **دلیله**﴿ ځکه چه تاویل کوی څوك چه واخلی ده ‹په اخستلوددې کښې› د ماتولود وجې د منع کولو‹دخلق› د ممنوع شرعی څیزنه. ‹یعنی غل دا ونیلی شی.چه ما دڅیزځکه غلا کړلو.چه خلق د یوداسې څیزنه منع کړم.دکوم نه چه شریعت دوی منع کړی دی.نوپه دې سره شبه اباحت پیدا شوه.ځکه چه د ناروا څیز ضائع کول مباح دي.اوپه شبه باندې حد دفع کولې شی›

**مسلك ابي یوسف**﴿ دامام ابویوسف رحمه الله نه نقل دی.چه چرته صلیب په عبادتګاه کښې وی.نونه به شی کټ کولې ‹لاس په غلا د دې› دوجې د نشتوالې دحفاظت نه

**دلیله**﴿ ‹ځکه چه عبادتګاه ته خلق ځی راځی.څیزپه کښې محفوظ نه وی.اوپه حد سرقه کښې دا شرط دې.چه مسروق څیزبه د محفوظ ځاني نه غلا شوې وی›اوکه په بل کور کښې وی.نوبیا به کټ کولې شی ‹لاس دغل په غلا کولو د صلیب› د وجې دکمال مالیت حفاظت دوجې ‹یعنی چه دا صلیب چه په کورکښې دي.نوددې مالیت هم پوره دې.اومحفوظ هم دې.نوددې په غلا به لاس کټ کولې شي›

**دآزاد ماشوم په غلا باندې دحدجاری کیدوحکم**

| |
|---|
| (وَلَا قَطْعَ عَلَى سَارِقِ الصَّبِيِّ الْحُرِّ وَإِنْ كَانَ عَلَيْهِ حُلِيٌّ) |

**ترجمه و تشریح** ﴿ اونشته کټ کول په غلا د ماشوم آزاد.اګرچه په هغه کالی اچولې وی.

**دلائله**﴿ ① ځکه چه آزاد انسان مال نه دې. ‹اوحدد مال په غلا باندې واجبیږي.اوکه ته دا وائې.چه سره زر خومال دي.نود ماشوم سره خوهغه هم دی.دهغې په وجه دې پرې حدجاری کړې شی.نومونږ وایو.چه څه په هغه ‹ماشوم› باندې وی. ‹هغه اچولې وی› دکالو نه.نوتابع دی دهغه ‹ماشوم›

② اوبله دا چه دې ‹غل› تاویل کولی شی په اخستو دماشوم کښې د چپ کولودهغه. ‹یعنی دا ونیلی شی.چه دې ماشوم ژړل.ځکه ما راواخستل.چه قلار شی.نوپه دې سره په غلا کښې شبه پیدا شوه› اوبیا د اورلودده خپلې تی ورکونکې نه ‹یعنی غل دا ونیلی شی.چه دا ماشوم ما دې دپاره راواخستلو.چه

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفین رحمهما الله .كذا في فتح القدیر(۱۳۳\۵) والعنایة (۱۳۳\۵) والهندیة (۱۷۷\۲) والدرالمختار(۲۱۷\۳) والبحرالرائق (۵۴\۵) نقلاً عن القول الراجح (۴۵۸\۱)–

پې ورکونکې ته نې بوځم.اوهغه ورته پې ورکړي)
**مسلک ابي یوسف** > دامام ابویوسف رحمه الله نه، نقل دی.چه کټ کولې به شي(لاس دغل) کله چه وی په ماشوم باندې کالي اووی هغه نصاب (یعنی د حد سرقه د نصاب برابر وی.چه لس درهمه دي)
**دلیله** > ځکه چه واجبیږي کټ کول (دلاس) په غلا کولود کالو چه خانله وی.نودغـه شـان بـه (کـټ کولې شي) چه وی دبل څیز سره.اوهم دغه شان (اختلاف دې په مینځ د طرفینواوامام ابویوسف رحمه الله کښې) کله چه غلا کړي لوښې د سپینو زرو اوپه هغې کښې نبیذ یا ثرید وی. (یعنی دطرفینو رحمهما الله په نیزلاس نشی کټ کولې اودامام ابویوسف رحمه الله په نیزکه لوښې د سرقه نصاب ته رسی.نودلاس کټ کول په کښې واجب دی)
**محل الاختلاف** > اودا اختلاف په هغه ماشوم کښې دې.چه تلې نشی اوخبرې نشی کولې.ځکه دې په خپل ذاتی اختیارکښې نه وی. (اوکه ماشوم تلې شی اوخبرې کولې شی.نودهغـه پـه غلاباندې پـه اتفـاق سره لاس نشی کټ کولې)

**دلوي يا ماشوم غلام په غلا باندې دلاس کټ کولوحکم**

| (وَلَا سَارِقِ الْعَبْدِ الْكَبِيرِ) |
|---|
| |

**ترجمه و تشریح** > اونشته کټ کول(دلاس) په غلا د غلام لوئې باندې ،
**دلیله** > ① ځکه چه دا غصب یا دهوکه ده. (غلا نه ده.غلا ځکه نه ده.دغلا په تعریف کښې د یو څیزپه پټه باندې اخستل دی.اودلته لوئې غلام ، په پټه نه دې اخستې شوې.بلکه په زبردستئ اغوا کړې شوې دې.نوچه زبردستی شوه.دا غصب شو.
② یا دا چه په زبردستئ اوزورباندې ئې نه وی بوتلې.بلکه په څه بهانه باندې ئې دخپل خانې بوتلې وی.نودا دهوکه شوه.اودغصب یا دهوکه سزا لاس کټ کول نه دی)

| (وَيُقْطَعُ فِي سَرِقَةِ الْعَبْدِ الصَّغِيرِ)(١) |
|---|
| |

**ترجمه** > اوکټ کولې به شي (لاس) په غلا د غلام ماشوم کښې.
**تشریح** > **دلیله** > دوجې د واقع کیدو دغلا نه د خپـل تعریف سره(یعنی دغـلا چـه څـه تعریف دې.هغـه د ماشوم غلام په غلاکولوکښې موجود دې)
**صورة استثنائية** > البته دا که دا غلام دخپل نفس نه تعبیرکولې شي. (چه خپل نوم خودلې شي.نوبیا به دغل لاس نشي کټ کولې)ځکه چه دې (یعنی داسې ماشوم چه خپل نوم خودلې شي) اوبالغ برابر دی.په معتبروالی دخپل لاس کښې (یعنی که بالغ وی اوکه نابالغه خوخبرې کولې شی.نودا دواړه دخپل خان په اختیارکښې برابر دی .یعنی خپل ښه بد پیژنی.اوچه څه کوی هغه کولې شی دبل محتاج نه وی)
**دلیلهما** > دطرفینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه دا (ماشوم غلام چه نه پوهیږی) مال دې مطلقاً ځکه چه نفع اخستې شی دده نه، (فی الحال.یعنی داسې کارونه پرې کولې شی.کوم چه ماشومان کوی.لکه د دوکان نه څه معمولی څیز راوړل) اویا نزدې دې چه اوګرځی داسې چه فائده به اخستې شی دده نه (یعنی چه

---

(١) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٥\١٣٤) وردالمحتار(٣\٢١٨) والهندية (٢\١٧٧) والبحرالرائق (٥\٥٤) نقلاً عن القول الراجح(١\٦٠٤)-

غټ شي.نودکور اودبهرکار روزګاراوخدمت به کولې شي.دغه شان که مولی ئې خرخوی.نو خرخولې ئې شي)

**مسلك ابي يوسف** > امام ابویوسف رحمه الله فرمائی.چه نه به شی کټ کولې(لاس دغل په غلا دغلام کښې) اګرچه وی (دغه مسروقه غلام) ماشوم،چه نه پوهیږی اونه خبرې کولې شي.

**دليله** > دوجې داستحسان نه، (ځکه چه په دې ماشوم غلام کښې دوه حیثیتونه جمع شوی دی) دې بنیادم دې په یوحیثیت سره.اومال دې په یوحیثیت سره ، (نوهرکله چه دده په مالیت اوعدم مالیت کښې اشتراك راغلو.نوپه دې سره دده په مالیت کښې شبه پیدا شوه.اوپه شبه سره حدساقطیږی.نودماشوم غلام چه نه پوهیږی.اوخبرې نشی کولې دده په غلا سره حدنه جاری کیږی)

**الجواب عنه** > دا ده.چه یوځانې شوې ده.ده سره معنی د آدمیت. (نوچه د انسان نوم ورته اخستې شی.په دې سره دده په مالیت کښې څه فرق نه راځی.اوچه په مالیت کښې ئې فرق نه راځی.نودده په غلا به حدجاری کولې شی)

**د دفترې رجسترواو فائلونوغلا کولوباندې دحدجاری کولوحکم**

| |
|---|
| وَلَاقَطْعَ فِي الدَّفَاتِرِ كُلِّهَا) |

**حل اللغة** > ① **الدفاتر**:جمع د دفتر،رجستر

**ترجمه و تشريح** > اونشته کټ کول(دلاس په غلا کولو) د دفتری رجسترو (اوفائلونو) ټولو کښې،

**دليله** > ځکه چه مقصود هغه څه وی.چه په هغې کښې (لیکلی شوی) وی.اوهغه (څه چه په کښې لیکلی شوی وی.نوهغه) مال نه وی.

| |
|---|
| (اَلَّا فِي دَفَاتِرِ الْحِسَابِ) |

**ترجمه** > البته (دلاس کټ کول شته) په رجسترود حساب کښې.

**تشريح** > **دليله** > ځکه چه په دغه رجستروکښې څه لیکلی وی.په اخستلوکښې هغه مقصود نه وی.نومقصود (هغه) کاغذونه شول. (په کوم کښې چه لیکل شوی وی .نوکه دهغې قیمت د سرقه نصاب ته رسی.په هغې کښې دلاس کټ کول وی.اوکه نه رسی.نوپه هغې کښې به د لاس کټ کول نه وی)

**اقسام الدفتر** > دلته دا پیژندل پکاردی.چه دخپل معیارپه اعتبارسره فائلونه اوکاغذونه په پنځه قسمه دی. ①چه شرعی مواد په کښې وی.لکه قرآن پاك تفاسیر،داحادیثوکتابونه وغیره چونکه ددې کتابونوپه کتلوسره د انسان دعقیدې اوعمل اصلاح کیږی.نود فائدې په لحاظ سره دا د قرآن پاك پشان شو.نولکه څنګه چه دقرآن پاك په غلا کښې حدنشته.دغه شان ددې په غلا کښې هم حدنشته.دغه شان مذهبی کیستواو سی دی ګانوهم دا حکم دې.ځکه چه په دې کښې مقصود دغه کیستې نه وی.بلکه کوم موضوعات چه په هغې کښې وی.هغه مقصود وی.اوهغه مال نه دې.نوځکه دهغې غلا موجب دحد نه دې.

② دویم قسم غیر اسلامی ناولې.لټریچرې دانجستې کوم چه په غیراسلامی بلکه په غیرمهذب اوبې حیائي په موادو باندې مشتمل وی.نوددې په غلا کښې هم لاس کټ کول نشته.ځکه چه دا څیزونه د منکراتود خوررلوذرایع دی. نوددې ضائع کول دنهی عن المنکرپه زمره کښې راځی.نوځکه موجب د حدسرقه نه دی.

③ هغه عدالتي يا دفتري رجسترې چه په هغې كښې مقدمات يا د آمدن او خرچ تفصيل وي.يا د زمكې اوكورونود مالكانونومونه موجود وي.نوداسې قيمتي دستاويزاتو اوكاغذاتو غلا موجب دحد ده.

④ دغه شان كه يوفائل داسې وي.چه په هغې كښې ديوكس د راز خبرې وي.يا ديوملك اهم ملكي رازونه وي.نو ددغه فائلونو په غلا باندې هم حد واجبيږي.دغه شان په عامومحكموكښې چه كوم ريكارډ وي.دهغې غلا هم موجب د حد ده.

⑤ البته داسې فائلونه يا كاغذونه چه ردي وي.يعني بيكاره شوي وي.لكه په بينك كښې داخل شوې بلونه.يا په يونيورستويابورډونوكښې د تيرو كلونو زړې پرچې نو چونكه په دې ځيزونو كښې مقصود هم كاغذ وي.لكه نن صبا چه په لاروكوڅوكښې كسان ګرځي.اوردي كاغذونه راغونډوي.اوهغه بيا په كباړي باندې خرڅوي.اوكباړي ئې بيا په كارخانه باندې خرڅه وي اوكارخانه ترې بيا اخباري كاغذ وغيره جوړوي.نوداسې ځيزونه چونكه مال دې.ځكه چه باقاعده په معاشره كښې ديرخلق داسې دې.چه دهغوي دا كاروباردې.چه رد كاغذونه اخلي.اوبيا ئې په لويوكارخانه داروباندې خرڅوي.نوددې كاغذونو قيمت كه حدسرقه ته رسي.په دې كښې به كټ كول وي.

**د سپي اومزرې د غلا حكم**

| (وَلَا يُقطَعُ سَارِقُ كَلْبٍ وَلَا فَهْدٍ) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **كلب**:سپي ② **فهد**: زمرې

**ترجمه و تشريح** ﴿.اونشته كټ كول (دلاس) په غلا دسپي اود زمرې باندې،

**دلائل** ﴿ ① ځكه چه د جنس ددې دواړو نه مونږلي شي مباح الاصل،اورغبت نشي كولي په (حاصلولود) هغې كښې، (او كوم ځيزچه مباح الاصل وي.دهغې په غلاكښې حد نشته)

② اوبله داچه اختلاف بنكاره دې په مينځ د عالمانوكښې په ماليت دسپي كښې. (هغه دا چه امام شافعي رحمه الله فرمائي.كه سپي بنكاري وي او كوڅه ډب وي.نودا مال نه دې.اوددې اخستل اوخرڅول جائزنه دي.اوامام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي.چه سپي مال متقوم دې.په اصل كښې دا اختلاف په دې قاعده باندې مبنى دې.چه څوك سپې نجس العين ګنړي.هغه ئې مال نه ګنړي.اوچه څوك ئې نجس العين نه ګنړي.نوهغه ئې مال ګنړي) نودې (اختلاف) پيدا كړه. شبه (په ماليت د سپي كښې اودا خبره معلومه شوې ده.چه حد په شبه سره دفع كيږي)

**شروط مباح الاصل**﴿ دا مسئله بيان شوه.چه كوم ځيزمباح الاصل وي.نودهغې په غلا كښې كټ كول نشته. اوس مباح الاصل څه ته وائي.نوپه مباح الاصل كښې پنځه خبرې دي. ①چه هغه ځيزدخلقو په نظركښې مرغوب اوخوښ نه وي. ② چه هغه ځيزسپك اوحقيرګنړلي شي.ځكه چه فائده په كښې نه وي③ چه دهغې چاته په وركولو كښې بخل نشي كولي④كه څوك هغه واخلي.نومالك پرې بد نه ګنړي. ⑤ چه غيرمحفوظ وي.يعني چه يو ځيزدخپل معمولي والي دوجې دهغې حفاظت نشي كولي.كله چه په دې پنځه ځيزونوكښې يوځيزهم په يو ځيز كښې موجود شو.نوهغه مباح الاصل دې.

**د سرود آلاتو غلا ځولوحكم**

| (وَلَا دُفٍّ وَلَا طَبْلٍ وَلَا مِزْمَارٍ) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **دف**:طمبل ② **طبل**:ډول ③ **مزمار**:باجه

**ترجمه و تشريح** ﴿ اونشته كټ كول(دلاس) په طمبل، اوآلاتود سرود كښې،

**دليله>** ځکه چه په نيزد صاحبينو رحمهما الله نشته قيمت ددې (¹)(يعنې عندالشرع دا مال متقوم نه دی) اوپه نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله په اخستلوددې كښې تاويل كولې شى د ماتولو. (يعنې پټونكې دا وئيلى شى.چه دا ځيزونه ما د ماتولوپه غرض اخستې دى.نودا دنهى عن المنكرپه زمره كښې راغلو.ځكه پرې حد نشته.يعنې ددې ځيزونوپه غلا باندې په اتفاق سره لاس نشى كټ كولې.البته په وجه عدم قطع كښې اختلاف دې.صاحبين دا ځيزونه مال نه ګڼرى.ځكه پرې قطع نه واجبوى.اوابوحنيفه رحمه الله ددې وجې دقطع قائل نه دې.چه دا غل ددې په غلا كولوكښې دا وئيلى شى.چه ما د ماتولوپاره دا غلا كول.نوپه دې سره شبه پيدا شوه.اوشبه دافع د حد ده)

**دقيمتي لرګي په غلا كښې دلاس كټ كول**

(وَيُقْطَعُ فِي السَّاجِ وَالْقَنَا وَالْآبَنُوسِ وَالصَّنْدَلِ)

**حل اللغة >** ① **الساج:** دا يوقسم د سور رنګ لرګې دې ② **آبنوس:** يو قيمتي د تور رنګ سخت لرګې ③ **الصندل:** هغه لرګې چه په نيزه كښې لګولې شى

**ترجمه و تشريح >** اوكټ كولې به شى (لاس په غلا د) ساج (يوقيمتي د سور رنګ سخت لرګې)اوآبنوس (يو قيمتي د تور رنګ سخت لرګې) اوصندل (هغه لرګې چه په نيزه كښې لګولې شى) كښې

**دليله>** ځکه چه دا مالونه دى محفوظ. (يعنې خلق ددې حفاظت كوى.اوحفاظت نې ځكه كوى.چه) دا قيمتى دى.په نيزد خلقو.اونشى موندې په اصلى صورت كښې مباح په دارالاسلام كښې. (نوهركله چه دا ځيزونه مال دې. محفوظ دې.مرغوب دى.مباح الاصل نه دې.نوددې په غلا كولوكښې به لاس كټ كولې شى.لكه ځنګه كه په بل ځيزكښې دا صفات وى.نودهغې په غلا كولوكښې چه لاس كټ كولې شى)

(وَإِذَا اتَّخَذَ مِنَ الْخَشَبِ أَوَانِيَ وَأَبْوَابًا قُطِعَ فِيهَا)

**حل اللغة >** ① **الخشب:**لرګې ② **اواني:**لوښې ③ **ابواب:**جمع د باب، دروازه

**ترجمه و تشريح >** اوكله چه جوړكړې شى د لرګى نه لوښې يا دروازې نوكټ كولې به شى (لاس په غلا ددې) كښې،

**دليله>** ځکه چه دا لرګې په كاريګرئ سره ملحق شو داموال مرغوبو سره، (نولكه ځنګه چه د اموال مرغوبو په غلا كښې لاس كټ كولې شى.نودغه شان به ددې په كټ كولوكښې هم لاس كټ كولې شى.اوددې دقيمتى والى دليل دا دې.چه) ته ګورې نه چه ددې حفاظت كولې شى.

**په خيانتګر،لوټګولګى لغتولګى باندې د حدله جارى كول**

(وَلَا قَطْعَ عَلَى خَائِنٍ وَلَا خَائِنَةٍ)

**حل اللغة >** ① **خائنة:**خيانګره

**ترجمه و تشريح >** اونشته كټ كول (دلاس) په خيانتګرسرى اوخيانتګرې ښځې(چه چا ورسره يوځيزامانت كيخودې وى.اوهغه ترې پټ كړى)

**دليله>** د وجې د نقصان په حفاظت كښې، (ځكه چه كله مالك خپل ځيزداسې بې اعتماده سرى يا

---

(¹) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين كذا في ردالمحتار(٣\٢١٧) والبحرالرائق (٥\٥٥) والهندية (٢\١٧٧) نقلاً عن القول الراجح (٤\١٦٠)-

ښځې سره امانت کيخودو.چه په هغه باندې اعتماد نه وو پکار.نوده پخپله خپل مال غير محفوظ اوګرځولو)

**وَلَانبـاش ولامُنْتَهِب وَلَا مُخْتَلِسٍ)**

**ترجمه>** اونه په کفن کښ باندې او نه په لوټ کونکی (چه دچا کوريا دوکان ته ورداخل شی.اوپه زور يوڅيز راواخلی . او لاړ شی.نوپه ده هم دلاس کټ کول نشته) اونه په تختونکی (چه د چا دلاسه يوڅيزاوتختوی.لکه څنګه چه نن صبا په بازارونوکښې داسې کيږی)

**تشريح> دليله>** ځکه چه دې (يعنی هرواحد د لوټکونکی اوتختونکی نه) ښکاره والې کونکی دې په خپل فعل (يعنی لوټکونکې اوتختونکې څه په پټه مال نه اخلی.بلکه په ښکاره باندې دبل نه مال اخلی.نوپه دې کښې د غلا معنی رانغله.ځکه چه غلا خوپه پټه د چا نه مال اخستل دی.نوهرکله چه پرې د غلا تعريف نه صادقيږی.کټ کول دلاس به په کښې هم نه وی.ځکه چه قطع صرف په غلا کښې راغلې ده.په خيانت نهب اواختلاس کښې نه ده راغلې)څنګه به داسې اوشی(يعنی ددوی لاس به کټ کړې شی) حالانکه نبی ﷺ فرمائيلی دی. لَاقَطْعَ فِي مُخْتَلِسٍ وَلَامُنْتَهِبٍ وَلَا خَـائِنٍ } (١)نشته کټ کول (دلاس) په تختونکی،اونه په لوټکونکی اونه په خيانتګر . (نوددوو وجوه نه په دې کسانوباندې حدسرقه نشی جاری کولې.يوخودوی په فعل باندې د غلا تعريف نه صادقيږی.نودا غلا نشوه.اوبله دا چه صريحی حديث موجود دې.چه په دوی باندې حدسرقه نشته)

**دکفن کښ په لاس کټ کولوکښې اختلاف**

**عدم القطع علي النباش>** په متن کښې په کفن کښ باندې دعدم قطع ذکر دې خو په دې کښې لږ تفصيل دې خو دا دامام ابوحنيفه اومحمد رحمهماالله مذهب دې.(٢)

**دلائلهما>** ① دطرفينو رحمهماالله دليل د نبی ﷺ ارشاد دې. لَاقَطْـعَ عَلَـى الْمُخْتَفِـي } (٣)نشته کټ کول(دلاس) په مختفی باندې،اومختفی کفن کښ ته وائی په لغت د اهل مدينه کښې، (داخونقلی دليل شو.

② اوبل عقلی دليل دا دې.چه) اوشبه پيدا شوې ده په ملك کښې،ځکه چه نشته ملك د مړی دپاره په حقيقت کښې (ځکه چه ده کښې د ملکيت اهليت پاتې نه دې)اونشته ملك د وارث دپاره،دوجې د وراندې والی د حق د مړی (ځکه چه کله څوك مړ شی.نواول به دهغه په مال کښې دهغه دکفن انتظام کولې شی.چه دکفن نه زياتی شی.بيا به هغه په وارثانوتقسيم کولې شی.نواوس په دې صورت کښې نه وارث دکفن مالك دې.اونه مړې.نوپه ملکيت کښې شبه راغله.يعنی دا داسې شوه.لکه چه غيرمملوك څيز اخستې شوی وی.اوچه غيرمملوك وی.هغه مباح وی.اودمباح څيزپه غلا باندې کټ کول

١) من حديث جابر ﷺ اخرجه ابوداود ى الحدود باب ١٤ رقم ٤٣٩١ مقطعاً والترمذى ى الحدود باب ١٨ والنسائى ى قطع السارق باب ١٣ رقم ٤٦٢٦ وابن ماجه ى الحدود باب ٢٦ رقم ٢٥٩١ والدارمى ى الحدود باب ٨)_

٢) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما كذا ى ردالمحتار(٣\٢١٩) والهندية (٢\١٧٨) وفتح القدير (٥\١٣٨) والكفاية (٥\١٣٨) والبحرالرائق (٥\٥٥)نقلاً عن القول الراجح (١\٤٦٢)-

٢) غربه الزيلعى بهذا اللفظ ثم اخرج من اثرابن عباس رضى الله عنهما قال ليس على النباش قطع وعزاه إلى ابن ابى شيبة نصب الراية ٣/٥٦٣)_

کړې شي) حالانکه نبی ﷺ فرمائیلی دی. لَاقَطْعَ فِي مُخْتَلِسٍ وَلَامُنْتَهِبٍ وَلَاخَائِنٍ }(۱)نشته کټ کول «دلاس» په تختونکی،اونه په لوټکونکی اونه په خیانتګر . «نودداوو وجوه نه په دې کسانوباندې حدسرقه نشی جاری کولې.یوخوددوی په فعل باندې د غلا تعریف نه صادقیږی.نودا غلا نشوه.اوبله دا چه صریحی حدیث موجود دې.چه په دوی باندې حدسرقه نشته»

## دکفن کښ په لاس کټ کولوکښې اختلاف

**عدم القطع علي النباش>** په متن کښې په کفن کښ باندې دعدم قطع ذکر دې خو په دې کښې لږ تفصیل دې خو دا دامام ابوحنیفه اومحمد رحمهماالله مذهب دې.(۲)

**دلائلهما>** ① دطرفینو رحمهماالله دلیل د نبی ﷺ ارشاد دې. لَاقَطْعَ عَلَى الْمُخْتَفِي }(۲)نشته کټ کول«دلاس» په مختفي باندې،اومختفي کفن کښ ته وائي په لغت د اهل مدینه کښې، «داخونقلی دلیل شو.

② اوبل عقلی دلیل دا دې.چه» اوشبه پیدا شوې ده په ملك کښې،ځکه چه نشته ملك د مړی دپاره په حقیقت کښې «ځکه چه ده کښې د ملکیت اهلیت پاتې نه دې»اونشته ملك د وارث دپاره،دوجې د وراندې والی د حق د مړی «ځکه چه کله څوك مړ شی.نواول به دهغه په مال کښې دهغه دکفن انتظام کولې شی.چه دکفن نه زیاتی شی.بیا به هغه په وارثانوتقسیم کولې شی.نواوس په دې صورت کښې نه وارث دکفن مالك دې.اونه مړې.نوپه ملکیت کښې شبه راغله.یعنی دا داسې شوه.لکه چه غیرمملوك څیز اخستې شوی وی.اوچه غیرمملوك وی.هغه مباح وی.اودمباح څیزپه غلا باندې کټ کول نشته.نودغه شان به په نبش کښې هم کټ کول نه وی» اویقیناً واقع شوخلل په مقصود کښې اومقصود تنبیه ده«چه په سارق باندې حدجاری شی.نوسارق اوخلق به دغلا نه منع شی.اودلته په تنبیه کښې ددې وجې خلل واقع دې.چه» دا جنایت د کفن کښ؛ دخپل ذات په اعتبارسره ډیرکم پیښیږی. «یعنی که په نباش باندې حد قائم نکړې شی.نوهم خلق د مړی نه کفن ویستلونه ځان ساتی.اونفرت ترې کوی.نویغیرد تنبیه نه دلته تنبیه موجود ده.ځکه به دنباش لاس نشی کټ کولې»

**مسلك ابي يوسف>** اوفرمائیلی دی امام ابویوسف اوشافعی رحمهماالله چه په ده باندې دلاس کټ کول شته.

**دلائله>** ① دوجې د وینا د نبی ﷺ نه چه چا قبرپرانسته اودمړی کفن ئې پټ کړلو . نو مونږ به ئې لاس کټ کوو. (۲)«نویوخودا دلیل نقلی شو.

---

۱) من حدیث جابر رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الحدود باب ۱۴ رقم ۴۳۹۱ مقطعاً والترمذی فی الحدود باب ۱۸ والنسائی فی قطع السارق باب ۱۳ رقم ۴۶۲۶ وابن ماجه فی الحدود باب ۲۶ رقم ۲۵۹۱ والدارمی فی الحدود باب ۸_

۲) القول الراجح هوهذا قول الطرفین رحمهما الله كذا فی ردالمحتار(۳\۲۱۹) والهندية (۲\۱۷۸) وفتح القدير (۵\۱۳۸) والكفاية (۵\۱۳۸) والبحرالرائق (۵\۵۵)نقلاً عن القول الراجح (۱\۴۶۲)-

۲) غربه الزيلعی رحمه الله بهذا اللفظ ثم اخرج من اثرابن عباس رضی الله عنهما قال ليس علی النباش قطع وعزاه الی ابن ابی شيبة نصب الراية ۳/۵۶۳)_

۱) من حدیث براء بن عازب رضی الله عنه اخرجه البیهقی فی کتاب معرفة السنن والآثار کذا قال الزیلعی رحمه الله نصب الرایة ۳/۵۶۱)-

② اوبل دليل عقلي دا چه) كفن مال متقوم دي.محفوظ دي په داسې حفاظت سره چه ددې سره مناسب دي. (يعنى دكفن دپاره قبريومحفوظ ځائې دى.ځكه چه كفن هم په قبركښې پكارراځي.دقبرنه بهرڅوك په ژوندونى كفن نه اچوى)نوكټ كولې به شى(لاس) دكفن په غلا كښې، (ځكه چه دمحفوظ ځائې نه مال متقوم په پټه باندې غلا شوې دې.اوسرقه وائى هم دې ته.چه د محفوظ ځائې نه مال متقوم په پټه باندې غلا شى.نويه دې باندې تعريف دسرقه صادق شو.نوچه څه حكم د سرقه وى.هغه به د نبش هم وى)

**الجواب عنه** ① دا روايت مرفوع نه دې. (اومونږ چه دنباش په باره كښې كوم حديث ذكركړې دې.چه په مختفى باندې كټ كول نشته.هغه مرفوع دې.نوغيرمرفوع حديث د مرفوع په مقابله كښې حجت نشى جوړيدې)

② يا دا چه دا حديث محمول دې په سياست باندې (يعنى اگرچه دنباش اصلى حكم دا دې.چه دده لاس كټ نكړې شى.البته كه امام اوحكمران دڅه مقصد دپاره د نباش لاس كټ كړى.لكه په يوه علاقه كښې كفن چور زيات شوى وى.نود هغوى د عبرت دپاره كه امام دنباش لاس كټ كړى.دا جائزدې.نودنبى ﷺ دغه حكم چه مونږ به د نباش لاس كټ كړو.په دې سياست باندې محمول دې)

### دبيت المال نه په غلا كولودلاس كټ كولوحكم

| (وَلَا يُقْطَعُ السَّارِقُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ) وَلَا مِنْ مَالٍ لِلسَّارِقِ فِيهِ شَرِكَةٌ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** اونه به شى كټ كولې (لاس د) غل (په غلا كولوسره) د بيت المال نه،

**دليله** ځكه چه دا مال د عوامو دې.اودې (غل) ددوى نه (يوفرد) دې. (نويه ملك كښې شبه پيدا شوه.اوپه شبه باندې حد ساقط كيږى.نودده نه حدساقط شو) اونشته (دلاس كټ كول) په غلا دهغه مال چه په هغې كښې د غل حصه وى.د وجې دهغه دليل نه چه مونږ بيان كړلو. (يعنى چه په دې مال مسروقه كښې د دې غل حصه ده نويه ملك كښې شبه پيدا شوه .اوپه شبه باندې حد ساقط كيږى.نودده نه حدساقط شو)

### دموريلار،اولاد اولادې رشته داروله دغلا كولوحكم

| (وَمَنْ سَرَقَ مِنْ أَبَوَيْهِ أَوْ وَلَدِهِ أَوْ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ لَمْ يُقْطَعْ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** اوڅوك چه غلا اوكړى دخپل موريلارنه،يا دخپل اولاد نه،يادرشته دارنه چه حرام وى په ده باندې، (يعنى نكاح ئې ورسره نه كيږى) نونه به شى كټ كولې لاس،

**دليل عدم القطع على السرقة من الابوين والاولاد** په اول صورت كښې (يعنى چه اولاد د والدينونه غلا اوكړى.يا والدين داولاد نه غلا اوكړى.نولاس نشى كټ كولې) دوجې د فراخ دلئ نه په مال كښې(يعنى دوى بغيردخفگان نه ديوبل مال اخلى.اوپه دې باندې خفه كيږى نه.ځكه چه د والدينود طرفه د اولاد دپاره شفقت موجود وى.او اولاد ته دخپلو والدينومال خپل مال ښكارى) اود وجې د داخليدو نه په محفوظ ځائې كښې(يعنى په كوم ځائې كښې چه مال پروت وى.اگرچه فى نفسه هغه محفوظ ځائې وى.خود والدينو اود اولاد په حق كښې غيرمحفوظ وى.ځكه چه هغوى دغه ځائې ته داخليږى راداخليږى.نويه حد سرقه كښې چه كوم شرط دې.چه غلا به د محفوظ ځائې نه شوې وى.هغه شرط مفقودشو.اوپه انتفاء د شرط سره انتفاء د مشروط راځى)

**دليل عدم القطع على السرقة من المحارم** اوپه دويم صورت كښې (يعنى كه سړې دمحرم نه څه څيزغلا كړى.نوهم پرې لاس كټ كول نشته) د دويمې وجې (يعنى چونكه د محرم په حق كښې دځائې حفاظت نشته.ځكه چه مثلاً په يوكور كښې خوراو وررو اوسيږى.نويه كوم ځائې كښې چه مال پروت وى.هغه

اگرچه فی نفسه محفوظ ځائې دې.خود محرم په حق کښې غیرمحفوظ دې.نوهم هغه خبره شوه.چه وحدسرقه جاري کولوشرط چه دحفاظت دځائې دې.هغه فوت شو.نومشروط چه حدجاري کول دی هغه به هم فوت شی)

**ثانیه**> هم ددې وجې(چه محرم خپلوانوپه حق کښې مال غیرمحفوظ دې) مباح کړې دی شریعت نظرکول (دمحرم دپاره) ځایونود زینت ته چه ظاهري وی په اندامونوکښې(یعنی د محرم دپاره دا جائز دی.چه دخپلې محرم خور یا لور وغیره ظاهري چه کوم اندامونه د زینت دی.لکه لاسونه،مخ اوقدمونه دې ته ګوری) په خلاف د دوستانو(یعنی که یودوست دبل دوست نه غلا اوکړی.نودهغه دوست لاس به کټ کولې شي) ځکه چه دا دوست ورسره دشمنی کوی په غلا کولوسره(یعنی اګرچه دوستان وی.خوچه کله یودوست ته پته اولګی.چه دې بل دوست زما نه غلا کړې ده، نو دغه دوستی په دشمنئ بدلیږی.اوپه اول صورت کښې یعنی د والدینواواولاد په مینځ کښې اودغه شان د محرم خپلوپه مینځ کښې چه کوم تعلق دې.هغه په غلا باندې په دشمنئ نه بدلیږی.بلکه که دغلا عمل واقع شی.بیا هم دهغوی همدردیانې د یوبل سره وی) ([1])

**د ښځې خاوند یا دغلام دمولی نه د غلا حکم**

| |
|---|
| وكذالك(وَإِذَاسَرَقَ أَحَدُالزَّوْجَيْنِ مِنَ الْآخَرِأَوِالْعَبْدُمِنْ سَيِّدِهٖأَوْمِنْ امْرَأَةِسَيِّدِهٖأَوْمِنْ زَوْجِ سَيِّدَتِهٖ او |

**ترجمه وتشریح**> اوهمدغه حکم دې کله چه غلا اوکړی احدالزوجین دبل نه (یعنی یا ښځه د خاوندنه غلا اوکړی.یا خاوند دښځې نه غلا اوکړی) اوغلام د مولی نه (غلا اوکړی)اویا دښځې دخپل مولی نه (غلا اوکړی) او یاغلام (غلا اوکړی) دخپل مولی نه او یا ښځه (غلا اوکړی)د خاوند نه (نوپه دې ټولوصورتونوکښې نه به شی کټ کولې لاس د سارق)

**دلیله**> د وجې د موجودوالی د اجازت نه په داخلیدوکښې عام طور یعنی عام طور دا وی.چه دا کسان بغیرد اجازت نه دیوبل کورته ورداخلیږی.نود دوی په حق کښې مال محفوظ نشو.اولاس کټ کول خود مال محفوظ په غلا کښې وی

**د مولی دخپل مکاتب نه نه دغلا حکم**

| |
|---|
| (وَالْمَوْلَى مِنْ مُكَاتَبِهٖ |

**ترجمه وتشریح**>اوکه غلا اوکړله مولی د مکاتب خپل نه نونه به شی کټ کولې (لاس دمولی)

**دلیله**> ځکه چه دمولی دپاره حصه ده په ګټه د مکاتب کښې، (نوپه دې سره په ملکیت کښې شبه پیدا شوه.اوپه شبه باندې حدساقط کیږی)

**دفوځی د بیت المال نه دغلا حکم**

| |
|---|
| (وَكَذٰلِكَ السَّارِقُ مِنَ الْمَغْنَمِ) |

**حل اللغة**> ① **المغنم**:مال غنیمت

**ترجمه و تشریح**> اودغه شان د (فوځی)حکم دې.چه غلا اوکړی د بیت المال نه، (نودهغه لاس به نشی کټ کولې.

---

[1] ) په دویم صورت کښې (چه محرم دخپل محرم نه غلا اوکړی) خلاف ثابت دې دامام شافعی رحمه الله (ځکه چه دهغوی په نیزپه دې صورت کښې به لاس کټ کولې شی)

**دلائله**> ① ځکه چه دده په مال غنيمت کښې حصه ده. (نوپه ملکيت کښې شبه پيدا شوه.اوپه شبه باندې حدساقط کيږي)

②حضرت علي رضي الله عنه نه ددې روايت تفصيل دا دې.چه دوی ته يوپه جهاد کښې يوفوځی راوستې شو.چه هغه د مال غنيمت نه داوسپې توپې يعنی خول پټ کړې وو.نوحضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل.په دې مال غنيمت کښې دده هم څه حصه ده.ددې نه پس ئې دهغه لاس کټ نکړلو) ([1])

## دحفاظت قسمونه

| (وَالْحِرْزُ عَلٰى نَوْعَيْنِ حِرْزٌ لِمَعْنًى فِيْهِ كَالْبُيُوْتِ وَالدُّوْرِ.وَحِرْزٌ بِالْحَافِظِ) |
|---|

**ترجمه وتشريح**> اوحفاظت په دوه قسمه دې.يوحفاظت دڅه معنی دوجې وی.چه هغه معنی موجود وی.په دغه ځيزکښې.لکه کوټې،کورونه، (صندوق،الماري وغيره) اوبل حفاظت دې په محافظ سره، (يعنی هغه ځيزکښې داسې څه معنی نه وی.چه محفوظ وی.بلکه دهغې دحفاظت دپاره محافظ مقررکړې شوې وی)

**دليله**> دغلاثابتولودپاره حفاظت ضروری دې.ځکه چه دغلاپه تعريف کښې په پټه د يوځيزاخستل رکن دې.او) پټوالې نه متحقق کيږی بغيردحفاظت نه، (يعنی يوځيزمحفوظ وی.نوغل د هغې دغلا دپاره دپټوالی طريقه اختياروی.اوچه يوځيزبنکاره اوغيرمحفوظ وی.دهغې د غلا دپاره د پټې تدبيرونه نشی کولې)

## د محفوظ مقام يا محافظ نه د غلا په کولودلاس کټ کولوحکم

| (فَمَنْ سَرَقَ عينا مِنْ حِرْزٍ أَوْمِنْ غَيْرِ حِرْزٍ وَصَاحِبُهُ عِنْدَهُ يَحْفَظُهُ وَجَبَ عَلَيْهِ الْقَطْعُ) |
|---|

**ترجمه و تشريح**> صاحب دقدوري رحمه الله فرمائی.چا چه غلا کړلو يو ځيز د محفوظ ځائې نه يا دغ. محفوظ نه.اومالك د ځيز موجود وود هغې مال سره،چه حفاظت ئې کولو(دهغې) نوکټ کولې به شي لاس دسارق)

**دليله**> ځکه چه ده غلا کړلو مال چه محفوظ وو په يو د دوو طريقو دحفاظت، (يعنی په اول صورت کښې مال په محفوظ مکان کښې وو.اوده غلا کړلو.اوپه دويم صورت کښې د مال سره محافظ موجود وو.اوده غلا کړلونود غلا تعريف پرې صادق شو.چه محفوظ ځيز غلا کول دی. نودې غل شو.اودغل سزا لاس کټ کول وی)

## دحمام نه دغلا په کولودلاس کټ کولوحکم

| (وَلَاقَطْعَ عَلٰى مَنْ سَرَقَ مِنْ حَمَّامٍ أَوْمِنْ بَيْتٍ أُذِنَ لِلنَّاسِ فِي دُخُوْلِهِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح**> اونشته کټ کول (دلاس) په هغه چا چه غلا کښې مال د حمام نه،اويا د داسې کورنه چه اجازت شوې وی خلقوته په داخليدوکښې هغې ته،دوجې د موجودوالی د اجازت نه په عادت کښې(يعنی بعضې داسې کورنه وی.چه عاموخلقو ته هغې ته د ورداخليدو اجازت وی.لکه د پښتنو په کلو کښې حجره راواخله)

**دليله**> د وجې د وجود د اجازت نه عادة يا حقيقة په داخليدو کښې (يعنی حمام ته د داخليدو اجازت دخلقو پ. .ادت کښې جاری دې.نوعادت په دې باندې قرينه ده.چه اجازت شته،اوکورته د داخليدو

---

[1] اخرجه عبدالرزاق في مصنفه والدارقطني في المؤتلف والمختلف كذا قاله الزيلعي رحمه الله نصب الراية ۳/۵۶۳_

دپاره حقيقي اجازت ضروري دي.چه دا ونيلي شوي وي.كه څوك دي كورته داخليږي.اجازت ورته شته) نونقصان راغلوپه حفاظت (دمال) كښې، (اوچه په حفاظت كښې نقصان راغلو.نوددې نه په غلا كولوسره دلاس كټ كول نه واجبيږي.ځكه چه حدالسرقه په هغه وخت كښې جاري كيږي.چه د محفوظ خانې نه څيز غلا شوي وي)

**په جمات كښې د موجود مال نه په غلا كولود لاس كټ كولوحكم**

| (وَمَنْ سَرَقَ مِنَ الْمَسْجِدِ مَتَاعًا وَصَاحِبُهُ عِنْدَهُ قُطِعَ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** > اوڅوك چه پټ كړي د جمات نه سامان اومالك دهغې موجود وي دهغې سره، كټ كولي به شي (لاس د سارق)

**دليله** > ځكه چه دا سامان محفوظ دې په محافظ سره، (اګرچه د ځائې په اعتبارسره داسامان محفوظ نه دې) ځكه چه جمات نه دې جوړ شوې دپاره دحفاظت د مالونو(دخلقو) نومال نشو محفوظ په اعتبارد مكان سره، (بلكه جمات دعبادت دپاره جوړشوې دې.اوخلق ورته ځي راځي)

**د ميلمه د كوربه نه په غلا كولودلاس كټ كولوحكم**

| (وَلَا قَطْعَ عَلَى الضَّيْفِ إِذَا سَرَقَ مِمَّنْ أَضَافَهُ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** > اونشته كټ كول (دلاس) په ميلمه باندې،كله چه دې غلا اوكړي دهغه چا نه چه ميلمه كړې وي هغه دې.

**دليله** > ځكه چه كور محفوظ پاتې نشو په حق د ده(ميلمه) كښې، ځكه چه ده ته كورته د داخليدو اجازت شوې دې. (اوپه حد سرقه كښې د مال حفاظت ضروري) اوبله دا چه دې پشان د كوربه دې. (ځكه چه دې هم په كوركښې دننه دې) نودده دا كارخيانت شو غلا نشوه. (اوپه خيانت كښې دلاس كټ كول نشته)

| (وَإِذَا نَقَبَ اللِّصُّ الْبَيْتَ فَدَخَلَ وَأَخَذَ الْمَالَ وَنَاوَلَهُ آخَرَ خَارِجَ الْبَيْتِ فَلَا قَطْعَ عَلَيْهِمَا) [1] |
|---|

**حل اللغة** > ① **نقب**:سورې اوكړي ② **اللص**:غل

**ترجمه و تشريح** > اوكله چه سورې اوكړي غل په كوركښې،نوداخل شي او رواخلي مال،او ورنې كړي بل كس ته چه بهروى د كورنه،نونشته دلاس كټ كول په دې (قسم غلا كښې)

**دليله** > ځكه چه اولنې غل نه دى موجود شوې دده بهرته ويستل د مال دوجې د وجود دقبضې معتبرې په مال باندې وراندې د وتلود غل نه(يعنې ترڅوچه سامان د كورنه نه وى بهرشوې.نوپه مال باندې د مالك قبضه برقرارده) اودويم كس (چه دكورنه بهروى) نه دې موجود شوې دده نه ماتول د حفاظت، (يعنى دې هغه خانې ته نه دې ورداخل شوې.كوم چه محفوظ وو) نوپوره نشوه غلا دهريو نه(كه خارج وى اوكه داخل.نوچه دهريوپه حق كښې غلا په كامله طريقه ثابته نشوه.نولاس كټ كول به هم نه كيږى)

**مسلك ابي يوسف** > دامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.كه راويستلو دننه كس لاس خپل او ورنې كړلو بهركس ته،نوكټ كول (دلاس دى) په داخل باندې،اوكه وردننه كړلو بهركس لاس خپل او واخې ځستلو د لاس د داخل نه،نوپه دواړوباندې(كه داخل دې اوكه خارج) كټ كول (دلاس) دى.

[1] القول الراجح هو قول الطرفين رحمهما الله كذا في مجمع الأنهر(١\٦٣٠) وفتح القدير(٥\١٥٠) وردالمحتار(٣\٢٢٣) والكفاية (٥\١٥٠) والبحر(٥\٦٠) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٦٦)-

(وَإِنْ أَلْقَاهُ فِي الطَّرِيقِ ثُمَّ خَرَجَ فَأَخَذَهُ قُطِعَ)

**حل اللغة** ﴿ ① الالقاء:غورځول

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوکه وې غورځول مال په لارکښې (يعنې داخل کس د کورنه مال په لاره کښې اوغورځولو) اوبيا روسته راوبهرشواو راواخستلو.نوکټ کولې به شي (لاس دده)

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه راغوځول (دمال د کورنه بهرلارې ته) يوه حيله اوچل دې.چه بلد دی پرې غلا خلق،ځکه چه ګران ورته وتل سره د سامانه،اويا ددې دپاره (سامان لارې ته راوغوځوي) چه فارغ شي جګړې ته د مالك د کور سره(يعنې کله غل سامان د کورنه بهرلارې ته راغورځوي.که دکور مالك پرې راپيدار شی.چه هغه سره جګړه کولې شی.اوځان ترې بچ کولې شی) اونه ده راغلې په دې مال باندې قبضه معتبره. (يعنې داسې نه ده.چه ده لارې ته راوغورځولو.اوبل کس دغه مال د لارې نه اوچت کړلو.بلکه هم دا غل رابهرشوې دې.اوهغه مال نې ورې دې) نوحساب شو ټول کارونه يوکار(دغلا،يعنی که دکورنه بهرته دمال راغورځول دی.اوبيا پخپله راوتل دی.اودا مال په خپله قبضه کښې راوستل دی.نودا ټول يوفعل حسابيږی.چه غلا ده.يعنی ددې ټولوکارونو مجموعه يوه غلا شوه) اوهرکله چه رابهرئې کړی.او وائې نخلی.نودا کس (دمال) ضائع کونکې شو.غل نشو.

**دبارشوي خرپه شړلو د غلا کولوحکم**

(وَكَذٰلِكَ إِنْ حَمَلَهُ عَلَى حِمَارٍ فَسَاقَهُ وَأَخْرَجَهُ)

**ترجمه و تشريح** ﴿ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي.اودغه شان که بارکړی سامان په خر باندې، اووې شړی او راوېباسی. (نوهم به دده لاس کټ کولې شی)

**دليله** ﴿ ځکه چه ددې (خر) مزل مضاف دې ددې شړونکی ته، (يعنې که دغه کس دا خرشړلې نه وو.نوسامان به په هغه باندې په کورکښې دننه پروت وو.اوچه دننه وو.نودمالك په قبضه کښې وو.نودغلا تعريف پرې نه صادق کيدلو.خوهرکله چه ده اوشړل،اوسامان بهرته اووتل.نودا هم ددې شړونکې فعل شونوځکه به دده لاس کټ کولې شی)

**دبوي ألي په شريکه دغلا کولوحکم**

(وَإِذَا دَخَلَ الْحِرْزَ جَمَاعَةٌ فَتَوَلَّى بَعْضُهُمُ الْأَخْذَ قُطِعُوا جَمِيعًا)

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوکله چه داخل شی محفوظ ځائې ته يوه ډله نوبعضې په دوی کښې راخستل اوکړی (دسامان) نو کټ کولې شی (لاسونه) د ټولو، دا (حکم) استحسان دې.

**دليلنا** ﴿ راويستل موجود شوې دی د ټولو نه په اعتبارد معنی سره(يعنی اګرچه په حقيقت کښې دسامان راويستونکې يودې.دغلا په دې کارکښې ورسره دا نورهم شريك دی.نومعنی ورسره دوی هم غله شول) دوجې د امداد کولو(دنوروددې حامل سره په کاردغلا کښې) لکه څنګه چه سرقه کبری کښې وی(د سرقه کبری نه شوکه مراد ده.چه په لاره ځوکسان راجمع شوی وی.اوپه هغوی کښې ټول کسان يوکس اودروی.اوهغه سره څه وی.صرف يوکس ترې هغه واخلی.نودا ټول غله شول.ددې ټولولاسونه به کټ کولې شی.اګرچه مال ترې صرف يوکس اخستې وی) اودا حکم ځکه دې.چه عادت په دې جاری دې دغلو په مينځ کښې (چه ټول کسان سامان نه بهرکوی بلکه) راواخلی بعضې کسان سامان (دکورنه) اوخواره وارهٔ شی باقی کسان دپاره د دفع کولو(اودځان دحفاظت) نوکه چرته منع کړې شی کټ کول (دلاسونود نورو غلودحامل نه سوا) نومفضی به شي دا خبره بنديدو باب د حد لره(يعنی که په جمع باندې ډيرکسان غلا اوکړی.اومونږ صرف دهغه کس لاس کټ کوو.چا چه سامان رابهرکړې

وي.نوپه دې کښې به دحد جاري کولودروازه بنده شي.اوخلق به جرمونه کوي.اوچه تولوته سزا ملاو شي.نوبيا به ټول د غلا نه منع شي)

**مسلک زفر** اوقياس دا دې.چه کټ دې کړې شي (لاس) د راوړونکي صرف اودا (قياس) قول د امام زفر رحمه الله دی. (دهغوی په نيزبه صرف دحامل لاس کټ کولې شي.

**دليله** اودليل د قياس دا دې.چه) راويستل (دمال) موجود شوی دی دده (حامل) نه، نوپوره شوه غلا په ده (حامل) باندې،

## كورته بغير د داخليدونه غلا كولوباندې دحد حكم

(وَمَنْ نَقَبَ الْبَيْتَ وَأَدْخَلَ يَدَهُ فِيهِ وَأَخَذَ شَيْئًا لَمْ يُقْطَعْ)

**ترجمه و تشريح** اوچاچه کنډراوکړلو دکور،اوداخل ئې کړلو لاس خپل په هغې کښې،او راوائې اخستل څه څيز،نو نه به شي کټ کولې لاس، (دغل)

**دليلهما** دليل دا دې.چه بې عزتي د محفوظ خانې،شرط کولې شي په دې کښې کمال(چه پوره داخليدل واقع شوې وي.اوډپوره داخليدو شرط لګول) دپاره دځان ساتلو د شبه دعدميت نه (يعنی دا پوره دخول ځکه شرط کړې شو.چه دا شبه په کښې پاتې نشي.چه بغيرد داخليدو نه د سامان راويستل غلا ده اوکه نه ده.اوچونکه شبه حدساقط کوي.ځکه مو په سرقه کښې حرز ته داخليدل شرط اوګرځول) اوکمال (دسرقه راځي) په دخول سره، (چه محفوظ خانې ته ورداخل شي.اوغلا اوکړي) اوممکن دې اعتبارد داخليدو ځکه چه (دغلا کولودپاره) داخليدل عادتي څيزدې. (يعنی کله چه هم څوك د محفوظ خانې نه څه څيزراوباسي.نوهغې ته ورداخليږي.نوحرز ته ورداخليدل غيرممکن نه دی.بلکه ممکن دی.نوچه ممکن دی.په حدسرقه کښې ئې شرط کول هم صحيح شو)

**مسلک ابي يوسف** دامام ابويوسف رحمه الله نه داملاء په روايت کښې دی.چه کټ کولې به شي(لاس دده)

**دليله** ځکه چه ده راويستې دې مال دمحفوظ خانې نه،اودمال راويستل مقصود دې. (يعنی دغل مقصددا وي.چه سامان په خپله قبضه کښې راولي.اودا مقصود حاصل شو.اګرچه کورته د ورداخليدو نه بغيروي) نونشي شرط کولې دخول دې (کور) ته (ځکه چه د داخليدو نه بغيرمقصود حل کيږي)

(وَإِنْ أَدْخَلَ يَدَهُ فِي صُنْدُوقِ الصَّيْرَفِيِّ أَوْفِي كُمِّ غَيْرِهِ وَأَخَذَ الْمَالَ يُقْطَعُ)

**حل اللغة** ① **الصيرفي**: صراف

**ترجمه و تشريح** اوکه داخل ئې کړلو لاس خپل د صراف په صندوق کښې يا په لستوڼي کښې،نوکټ کولې به شي لاس د(ګنرکپ)

**دليله** د صندوق نه د غلا په صورت کښې ځکه لاس کټ کولې شي.چه ګله ته سړې ورننوتې نشي.بلکه هم د لاس په ذريعه ترې پيسې راخلي.نو ګله ته ورداخليدل ناممکن شو.نوځکه به ترې لاس کټ کولې شي. اوپه دويم صورت کښې(چه تيلئ په لستوڼي کښې دننه وي) نوغوټه بهروي،نوپه کټ کولوسره متحقق کيږي اخستل د محفوظ خانې نه،چه لستوڼې دې. (نوځکه په دې کښې دلاس کټ کول شته)

## دغل دلاس كټ كولومحل

(وَيُقْطَعُ يَمِينُ السَّارِقِ مِنَ الزَّنْدِ وَتُحْسَمُ)

**تشریح** ﴿ **دلیل القطع** ﴾ نوکټ (دلاس) ثابت دی دهغه دلیل نه کوم چه مونږ تلاوت کړې دې وړاندې (یعنی دا آیت چه [وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا] اود نبی لاس ثبوت کیږی دقراءت دحضرت عبدالله بن مسعود ﷜ نه (ځکه چه دهغوی په قراءت کښې داسې دی.چه ﴿فَاقْطَعُوٓا أَيْدِيَهُمَا﴾

**دلیل القطع من الزند** ﴾ اودجوړنه کټ کول ځکه دی.چه د ،ید ، لفظ شاملیږی ترترخه پورې (یعنی د یداطلاق د ګوتو د سرنه واخله ترترخه پورې کیږی)اودا جوړ یعنی مړوند په یقین سره شامل دې په (تعریف د لاس) کښې، (نوداحیاط دپاره به په دې باندې عمل کولې شی.چه چونکه دومره اندازې ته هم لاس ونیلی شی.نوزمونږ به دا کوشش وی.حدهم قائم شی.اوسارق ته زیات نقصان هم اونه رسی.دا خوعقلی دلیل وو.اونقلی دلیل دا دې.چه) اوپه صحت سره ثابت شوی دی چه نبی ﷺ حکم کړې وو.دکټ کولو لاس دغل د مړوند نه.(۱)

**دلائل الحسم** ﴾ ① د داغ ورکولو د نبی ﷺ فرمان دې(په باره دغل کښې) کټ ئې کړئ (لاس) اوداغ ورته ورکړئ. (داخود داغ ورکولو نقلی دلیل شو.

② عقلی دلیل دا دې.چه) اوکه چرته داغ ورنکړې شی. (نوددې نه به وینه روانه وی.اوچه وینه ترې روانه وی)نو مفضی به شی (دا کټ کول دلاس) هلاکت د غل ته، (یعنی غل به هلاک شی) اوحد تنبیه ورکونکې دې. (چه مجرم ته په خپل جرم تنبیه ورکړی) هلاکونکې نه دې. (چه مجرم هلاک کړی)

**څو څوځله دغلا کونکی کس حکم**

(فَإِنْ سَرَقَ ثَانِيًا قُطِعَتْ رِجْلُهُ الْيُسْرَى، فَإِنْ سَرَقَ ثَالِثًا لَمْ يُقْطَعْ وَخُلِّدَ فِي السِّجْنِ حَتَّى يَتُوبَ)

**حل اللغة** ﴾ ① **السجن**:جیل ② **رجل**:پښه

**ترجمه و تشریح** ﴾ که غلا ئې اوکړله دوباره کټ به کړې شی پښه ګسه دده،که غلا ئې اوکړله په دریم ځل،نه به شی کټ کولې (دده هیڅ اندام) اوهمیشه دپاره به واچولې شی په قید کښې،تردې چه توبه اوباسی.اودا حکم(چه په دریم ځل به کټ کول نه وی.بلکه همیشه دپاره به په جیل کښې اچولې شی) داستحسان دې. (۲)

**دلیله** ﴾ دلیل قول دحضرت علی ﷜ دې.په داسې غل کښې، (چه په اولنی ځل ئې دغل ښې لاس کټ کړلو.اوپه دویم ځل ئې ګسه پښه کټ کړله.اوچه په دریم ځل ورته راوستې شو. وې فرمائیل) ماله دالله تعالی نه حیا راځی.چه زه دده یولاس هم پرې نږدم.چه دې پرې خوراک کوی.اواستنجا پرې کوی اویوه پښه ورله هم پرې نګدم.چه دې پرې تلل کوی.(۳)اوپه دې مسئله کښې خبرې اوکړې دوی (حضرت علی ﷜) سره نورصحابو﷢ نوقائل کړل هغوی په دې دلیل سره(چه زه ترې بل لاس اوبله پښه هم پرې کړم.نودې به په څه خپل ضروریات پوره کوی؟.نوپه دې باندې ورسره هغوی متفق شول.) نوپه دې

---

۱) من عمروبن شعیب عن أبیه عن جده ﷜ أخرجه الدارقطنی فی سننه ۳/۲۰٤)۔

۲) **مسلک الشافعي**:- اوفرمائی امام شافعی﷫ چه (په اول ځل به ښې لاس اوپه دویم ځل ګس لاس او) په دریم ځل کښې به کټ کولې شی ګسه پښه د ده،اوپه څلورم ځل کټ کولې به شی ښې پښه دده،

۳) أخرجه محمدبن الحسن فی کتاب الآثاروالدارقطنی فی سننه ۳/۱۸۰) رقم ۲۸۸)۔

اجماع منعقد شوه. (چه دغـل نـه بـه پـه دریـم ځـل لاس یـا پښـه نـشـی کـټ کـولی.بلکـه پـه جیـل کـښـې بـه اچولی شی) (۱)

**غل چه په ښو لاسو کښې شل یا کټ وی.لوددہ دغه حکم**

(وَإِن كَانَ السَّارِقُ أَشَلَّ الْيَدِ الْيُسْرَى أَوْ أَقْطَعَ أَوْ مَقْطُوعَ الرِّجْلِ الْيُمْنَى لَمْ يُقْطَعْ)

**ترجمه و تشریح** ﴿ اوکله چه وی غل چه ګس لاس ئې شـل وی.اوپـرې کـړې شـوې وی.پښـه ښـئ؛نـو(پـه دې صورتونو کښې به) نشی کټ کولی (لاس یا پښه دده)

**دلیله** ﴿ ځکه چه په دې کښې فوت کیدل د جنس منفعت د نیولواوتګ دی. (یعنی بیخی دې د نیولواود تللونه محرومه کیږی.اودا د جنس منفعت فوت کیدل دی.اوورانـدې تیـر شـوی دی.چه دجنس منفعت فوت معنوی هلاکت دې.نودا جائزنه شو) اودغه شان حکم دې(یعنی پښه یا لاس به ئې نشی کټ کولی) کله چه وی پښه ګسه دده شله،د هغې دلیل د وجې کـوم چه مونږ بیـان کـړلـو. (چه پـه دې کـښـې دجـنس منفعت فوت کیدل دی.اودا جائز نه دی)

**دلاس کټ کولوپه وخت کښې دمسروق منه حاضرول**

(وَلَا يُقْطَعُ السَّارِقُ إِلَّا أَنْ يَحْضُرَ الْمَسْرُوقُ مِنْهُ فَيُطَالِبُ بِالسَّرِقَةِ)

**ترجمه و تشریح** ﴿ اونه به شی کټ کولی لاس مګرپه داسې حالت کښې چه حاضر وی هغـه کـس چـه غـلا تری شوې وی.نوهغه (مسروق منه) به مطالبه اوکړی دغلا(چه ده زما نه غلا کړې ده)

**دلیله** ﴿ ځکه چه خصومت (یعنی د خپل غلاشوی څیزمطالبه کول) شرط دې.دپاره دښکاره کولـود غـلا، (یعنی غلا به هله ښکاره کیږی.چه مسروق منه دخپل غلاشوی څیزمطالبه اوکړی.اوکه بالفرض دچا نـه چه غلا شوې وی.هغه نه وی حاضرشوې.اوهغـه دعـوه نـه وی کـړې. نـو پـه دې کـښـې دا احتمـال شـته.چـه مسروق منه خپـل مـال مبـاح کـړې وی.یـا ئـې سارق تـه بخلـی وی.نوددې وجـې دهغـه وجـود اومطالبـه ضروری ده) اونشته فرق په مینځ د شهادت اواقرارکښې (یعنی که دغـل غـلا دګواهانوپه ګواهۍ ثابتـه شوې وی.اوکه غل په خپله دغلا اقرارکړې وی.په دواړو صورتونوکښې به لاس هله کټ کولی شی.چه مسروق منه حاضر شی)

**دقاضی دفیصلې نه پس دغل په مال مسروقه باندې ملک راتلل**

(فَإِنْ وَهَبَهَا مِنَ السَّارِقِ أَوْ بَاعَهَا مِنْهُ أَوْ نَقَصَتْ قِيمَتُهَا مِنَ النِّصَابِ لَمْ يُقْطَعْ)

**ترجمه و تشریح** ﴿ که مالك مسروقه مال غل ته هبه کړل یا ئې په هغه باندې خرڅ کړل یا کم شو قیمت د مسروقه مال د نصاب نه نو نه بشی کټ کولی (۲)

**دلیلــه** ﴿ دلیـــل دا دې.چـــه دحـــد جـــاری کـــول دقاضـــی دفیـــصلې پـــوره والـــې دې پـــه دې بـــاب (دحدودو)کښې،ځکه چه واقع کیږی بې پرواهی د دې قضاء نه په حد اخستلو سره. (یعنی قاضی چه دا اووائی.چه مـا د رجـم یـا د لاس کټ کولو یا د کوړو ورکولو حکم ورکړلو.نولکه څنګه چه دا الفاظ فیصله ده.دغه شان ددې الفاظو مطابق عمل کول اوحدجاری کول هم دقاضی فیصله ده. بالفرض که

---

۱) نقله الزيلعي رحمه الله بالتفصيل وعزاه إلى التنقيح نصب الراية ۵۷۳)

۲) **مسلك الشافعي**:- فرمائی امام زفراوشافعی رحمه الله چه کټ کولی به شی (لاس د سارق) اودا یو روایت دامام ابویوسف رحمه الله نه هم دی. (چه لاس به ئې کټ کولی شی.

قاضي فيصله واوروي.خوبه هغې باندې عمل اونشي.نود قاضي فيصله نافذه نشوه) څکه چه فيصله (دقاضي) دپاره د ښکاره کولو ده(چه خلقو ته ښکاره شي.چه فلانی غلاکړې وه.اودهغې سزا ورته دلاس کټ کولوپه صورت کښې ملاؤ شوه.) اوددې (قاضی د فیصلې اورولو نه پس) دلاس کټ کول دالله تعالى حق دې.اودا (حق دالله تعالى) ښکاره کیږی په وخت د لاس کټ کولوکښې،اوهرکله چه داسې شوه. (يعني دا چه دلاس کټ کول دقاضی د فیصلې پوره والې دې.که کټ والې اونشی.نودقاضی فیصله بې فائدې شوه) نوشرط کولې به شي قيام دخصومت په وخت د حدجاری کولوکښې(یعنی لکه څنګه چه د فیصلې په ابتداء کښې خصومت شرط دې.دغه شان دا هم شرط دې.چه دا خصومت د حدجاری کولوپه وخت کښې هم وی.خوکه خصومت د فیصلې په اول کښې وی.چه مالك د سارق دلاس کټ کولومطالبه کوی.اوبیا کله چه د لاس کټ کولووخت راشي.دهغه دطرفه مطالبه نه وی.څکه چه سارق ترې هغه مال مسروقه یا اخستې وی.یا ورته مالك هغه مال مسروقه بخلې وی.نودحدجاری کولوشرط مفقود شو.چه خصومت دې،اودا قاعده ده.چه کوم څیزد قضاء دپاره شرط وی.هغه څیزبه هغه وخت کښې هم شرط وی.چه کله په دغه قضاء باندې عمل کولې شي.اوحدجاری کولې شي.خوچونکه په موجوده صورت کښې د حدجاری کولوپه وخت کښې خصومت نشته.څکه چه مالك سارق ته مال مسروقه هبه کړې دې.یا ئې پرې خرڅ کړې دې) نودا داسې شوه.لکه چه مالك شوې ئې وی سارق وړاندې د قضاء نه (اودا مسئله وړاندې تیره شوې ده.چه مقدمه قاضی ته پیش شوې نه وی.سارق په څه طریقه باندې د مال مسروقه مالك جوړ شي.نوپه ده باندې د لاس کټ کول نشته.نودغه شان دلته په زیربحث مسئله کښې به هم په سارق باندې دلاس کټ کول نه وی.دهغه تقریرد وجې کوم چه مونږ بیان کړلو)

**دليل عدم القطع في نقصان النصاب** ﴿ دلیل دا دې.چه کمال دنصاب هرکله چه شرط وو(په وخت د قضاء دقاضی کښې.یعنی قاضی به هله دلاس کټ کولوفیصله کوی.چه مال مسروقه دسرقه نصاب ته رسی.که نه رسی.نوبیا دلاس کټ کولوحکم نشی کولې.نودغه شان) شرط کولې شي قيام ددې نصاب په وخت د پوره کولودحد(یعنی دلاس کټ کولوپه وخت کښې هم دا شرط دې.چه مال مسروقه به نصاب ته رسی.اوچه نه رسی.نولاس به نشی کټ کولې) دوجې دهغه تفصیل نه چه مونږ ذکرکړلو. (یعنی دحدجاری کول د قاضی د فیصلې یوه حصه ده.اودقاضی ذمه واری ده)

| |
|---|
| وَمَنْ سَرَقَ عَيْنًا فَقُطِعَ فِيهَا وَرَدَّهَا ثُمَّ عَادَ فَسَرَقَهَا وَهِيَ بِحَالِهَا لَمْ يُقْطَعْ |

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوچا چه غلا کړلو.عین مال (هغه مال چه یوځل غلا کړې شي.اوبیا مالك ته واپس شي) ،نوکټ کړی لاس (د ئمل) په هغې کښې،اوواپس ئې کړه (هغه مسروق مال خپل مالك ته) بیا واپس شو(دا غل) اوغلا ئې کړه دغه څیز(په کوم کښې چه ئې په اول ځل لاس کټ شوې وو)اوهغه مال هم په هغه حالت وو. (څنګه چه وړاندې وو) نونه به شي کټ کولې (لاس ددې غل دوباره) (١)

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه کټ کولو(دلاس) پیدا کړه دا خبره چه ساقط ئې کړلوعصمت دمحل (یعنی کوم مال چه غلا شو.نودغه مال هغه شان محترم باقی پاتې نشو.څنګه چه د غلا نه وړاندې وو)لکه چه اوبه پیژندې شي روستو انشاء الله تعالى اوپه واپس کولوسره مالك ته (یعنی دکوم مال په وجه چه د سارق لاس کټ کړې شي.اوهغه مال بیا خپل مالك ته واپس شي)اګرچه راګرځیدلو حقیقت دعصمت (یعنی

---

(١) **مسلك الشافعي**:- اوقیاس دا وائي.چه کټ دې کړې شي. (دوباره بل لاس دده) اودا (د دویم لاس کټ کول) روایت دې د امام ابویوسف رحمه الله نه،اودا قول دامام شافعي رحمه الله دې.

هغه مال چه ځنګه وراندې معصوم اومحترم وو.نوچه دغلا نه پس بیا مالك ته راورسی.نوبیا په حقیقت کښې هغه شان معصوم اومحترم شو.ځنګه چه دغلا نه وراندې وو)البته دومره ده چه باقي پاتې ده شبه د زائله کیدو(داحترام اوعصمت دمال مسروقه،یعنی اګرچه په ظاهره باندې دغه مال چه دمالك لاس ته راغلو.نوبیا محفوظ شو.لیکن دا یوه شبه باقی ده.چه کیدې شی.دغه مال اوس هغه شان معصوم اومحترم نه وی.ځنګه چه د غلا نه وراندې وو.اوددې شبهې دباقی پاتېدوکیدو ګمان ځکه کولې شی)چه کتلې شی اتحاد دملك ته(یعنی هم دا مال مسروقه اول هم ددې مالك په ملك کښې وو.اواوس هم دده په ملك کښې دې.اوکتل کولې شی) اتحاد د محل ته، (ځکه چه دا مال مسروقه چه وراندې دکوم کور نه غلا شوې وو.هم هغه ځائې ته واپس راغلو.اوکتل کولې شی) قیام د موجب ته کوم چه کټ کول دلاس دی.په دغه مال مسروقه کښې(یعنی ددې مال عین دغلا په وجه چه دلاس کټ کیدو کوم حکم صادر شوې وو. نودهغه حکم نتیجه چه کټ شوې لاس دې.اوس هم باقی دې.هرکله چه دا درې واړه خبرې موجود دی.نودا شبه پیدا کیږی.چه اوس دغه مال هغه شان معصوم اومحترم پاتې نه وی.ځنګه چه وراندې وو.اوچه دا شبه پیدا شوه.نوپه دویم ځل غلا کولوکښې حدساقط شو)

## د مال داولنی حالت نه د بدلیدو حکم

| وَاِنْ تَغَيَّرَتْ عَنْ حَالِهَا مِثْلُ اَنْ كَانَتْ غَزْلًا فَسَرَقَهُ فَقُطِعَ فِيهِ وَرَدَّهُ ثُمَّ نُسِجَ فَعَادَ وَسَرَقَهُ قُطِعَ) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **غزل:** غیرګندلې شوې ② **نسج:** اودلې شوې

**تشریح** ﴿ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که بدل شو(عین مال) دخپل حالت نه، (یعنی غل چه کوم څیزغلاکرلو.هغه دغل نه مالك ته واپس شو.اوبیا په کښې دمالك په قبضه کښې تبدیلې راغله) مثلاً چه وی مالوچ (دمالك سره) نودې (سارق) نې غلا کړی.او(ددغه مالوچوپه غلا کښې) دده لاس کټ کړې شی.اوواپس نې کړی(خپل مالك ته) اوبیا اودلې شی. (یعنی کپړه ترې جوړه شی) نو بیرته اوګرځی غل غلا دهغې ته(اودا ځل هغه کپړه غلا کړی.کومه چه داولنومالوچونه جوړه شوې وه.نوپه دې صورت کښې به نې) کټ کولې شی (لاس)

**دلیله** ﴿ ځکه چه عین مال (مسروقه څیز) بدل شو. (نودا داسې شوه.لکه چه غل په دوباره یونوې څیزغلا کرلو.) اوکله چه څیزبدل شو.نوختمه شوه هغه شبه چه پیدا شوې وه داتحاد د محل نه اود لاس کټ کیدونه په دې عین مال کښې، (یعنی په اولنی صورت کښې چه غل یوڅیزغلا کړی.اودهغې په غلا کښې ترې لاس کټ کړې شی.اوهغه څیزمالك ته واپس شی.اودا مقطوع الید غل دوباره هم هغه څیزدوباره غلا کړی.نو وراندې تیرشو.چه چونکه په دې صورت کښې مال مسروقه هم یودې.اومحل یعنی دمالك قبضه هم یوه ده.اولاس هم په دغه څیزکښې یوځل کټ شوې دې.نودوباره په ددغه غل لاس نشی کټ کیدې.خوپه دې دویم صورت کښې چه د څیزد اتحاد کومه شبه وه.هغه ختمه شوه.نوچه هغه ختمه شوه.نوکه دوباره نې بل لاس کټ کولې شی.دا به هم دهغه څیزپه غلاکښې نه وی.دکوم څیزپه غلا کښې چه نې اول بل لاس کټ شوې وو.هرکله چه داسې شوه) نو واجب شو لاس کټ کول دوباره.

## دلاس کټ کولونه پس د مال مسروقه مالك ته دواپس کولواحکام

| وَاِذَا قُطِعَ السَّارِقُ وَالْعَيْنُ قَائِمَةٌ فِي يَدِهٖ رَدَّهَا) |
|---|

**ترجمه و تشریح** ﴿ اوکله چه کټ کړې شی لاس دسارق،اوعین (مسروقه) موجود وی په لاس دده (سارق) کښې.نوواپس کولې به شی صاحب خپل ته (مسروق منه)

**دلیله** ﴿ د وجې د باقی پاتې کیدو ددې (مال مسروقه) په ملك دهغه (مسروق منه) کښې،

وَإِنْ كَانَتْ هَالِكَةً لَمْ يَضْمَنْ )

**ترجمه وتشريح**> اوكه وي(مال مسروقه) هلاك شوې نه به شي تاواني كولې (سارق چه مسروقه منه تړې د مال مسروقه تاوان واخلي)

**وجوب الضمان علي الاطلاق**- دا اطلاق (دابو الحسن قدوری چه وان كانت هالكة) شامليږی هلاك(چه مال مسروقه په خپله هلاك شوې وی.لكه څه خناوروی.اومړشی) اواستهلاك ته (چه سارق هلاك كړې وی.لكه مال مسروقه ګډ وی.اودې نې مړكړی) اودا (برابری په حكم د هلاك او استهلاك كښې) روايت دابويوسف رحمه الله دې د امام ابوحنيفه رحمه الله نه،اوهم دا روايت مشهور دې. (چه دهلاك اواستهلاك په مينځ كښې څه فرق نشته) (١)

**دليله**> دليل د نبی ﷺ ارشاد دې. لَا غُرْمَ عَلَى السَّارِقِ بَعْدَمَا قُطِعَتْ يَمِينُهُ } (١)چه نشته تاوان په غل باندې پس ددې نه چه كټ كړې شي ښې لاس دده،

**دليل عدم الضمان في صورة الاستهلاك**> اووجه دمشهو روايت (چه داستهلاك په صورت كښې هم په سارق باندې تاوان نشته.لكه څنګه چه د هلاك په صورت كښې نشته) دا ده.چه استهلاك پوره كول د مقصود دی. (يعنی سارق چه يو څيز غلا كوی.ددې دپاره ئې غلا كوی.چه زه دا په خپله فائده راولم. نو غل چه مال مسروقه هلاك كړی.دا څه جدا جرم نه دې.بلكه هم د سرقه جرم اتمام ته اورسيدلو.نوهركله چه جدا فعل نشو.بلكه هم د سرقه تكميل شو)نومعتبره به وی شبه په دې استهلاك كښې (يعنی كه داستهلاك په صورت كښې داباحت شبه راشی .نوچونكه استهلاك څه جدا جرم نه دې.بلكه د مقصد په اعتبار سره د سرقه تكميل دې.اوسرقه سبب د كټ كولودلاس دې.نوپه استهلاك كښې شبه راتلل په ثبوت سرقه كښې شبه راتلل دی) اودغه شان ښكاره كيږی سقوط د عصمت په حق د ضمان كښې (په صورت د استهلاك كښې) ځكه چه دا (سقوط دعصمت)من جمله د ضروورياتو د ددې (عصمت) دې په صورت د هلاك كښې،د وجې د نشتوالی د مماثلت نه (په مينځ د مال مسروقه اوضمان كښې،ځكه چه ضمان مال معصوم دې دپاره دحق العبد په دواړو صورتونوكښې هلاك او استهلاك كښې.اومال مسروق د حق العبد په وجه صرف په صورت د استهلاك كښې معصوم دې.نوهركله چه مماثلت نشته.نوضمان هم منتفی شو)

## دسارق د مال مسروقه دملكيت دعوه كول

(وَإِذَا ادَّعَى السَّارِقُ أَنَّ الْعَيْنَ الْمَسْرُوقَةَ مِلْكُهُ سَقَطَ الْقَطْعُ عَنْهُ وَإِنْ لَمْ يُقِمْ بَيِّنَةً )

**ترجمه و تشريح** > اوكله چه دعوه اوكړی غل چه د عين مسروقه دې مالك دې.نوساقط كيږی دلاس كټ كول دده نه اګرچه دې قائم نكړی ګواهان (په خپله دعوه باندې) مطلب ددې دا دې. (چه سارق د عين

---

(١) **مسلک الشافعي**:- فرمائيلی دی امام شافعی رحمه الله چه ضامن كيږی (سارق) په دواړوكښې (كه صورت د هلاك دې اوكه د استهلاك.

١) غريه الزيلعی رحمه الله هذا اللفظ ثم اخرج ما هو بمعناه من حديث عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا يغرم صاحب السرقة إذا اقيم عليه الحداخرجه النسائی فی قطع السارق رقم ٤٩٨٤ كذا فی نصب الراية ٥٧٧/٣)۔

مسروقه د ملکیت دعوه اوکړی.) پس ددې نه چه ګواهی کړې وی دوو ګواهانوپه غلا باندې (چه دده غلا کړې ده.اودې سارق دعین مسروقه د ملکیت دعوه کوی) ([1])

**دلیله** ﴿ دلیل دا دې.چه شبه لرې کونکې د حد ده.اوثابتیږی شبه صرف په دعوه کولوسره د وجې د احتمال نه (چه کیدې شی دا سارق رښتیا وائی.دا عین مسروقه هم دده خپل ملکیت وی.اوپه شبه باندې حدساقطیږی.نوپه دې صورت کښې به هم حد ساقط وی)

## د ډاکې تعریف

| |
|---|
| وَإِذَا خَرَجَ جَمَاعَةٌ مُمْتَنِعِينَ أَوْ وَاحِدٌ يَقْدِرُ عَلَى الِامْتِنَاعِ فَقَصَدُوا قَطْعَ الطَّرِيقِ فَأُخِذُوا قَبْلَ أَنْ يَأْخُذُوا مَالًا وَيَقْتُلُوا نَفْسًا حَبَسَهُمُ الْإِمَامُ حَتَّى يُحْدِثُوا تَوْبَةً، |

**حل اللغة** ﴿ ① **ممتنعین**:جمع د ممتنع:منع کونکې ② **الحبس**:بندول ③ **یحدثوا**:نوې کړی

**ترجمه و تشریح** ﴿ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.کله چه اوځی (دتابعدارئ داامام نه) یوه ډله (که په دغه ډله کښې مسلمان وی اوکه ذمی که آزاد وی اوکه غلام) چه منع کونکی (یعنی کوم کسان چه دوی سره مقابلې کولوډپاره کول غواړی.چه دهغوی مقابله کولې شی) یا یوکس وی.اوقادر وی په منع کولو(یعنی په یواځې ورته دومره غلبه حاصله وی.چه د خلقو مقابله کولې شی.لکه دې مسلح وی.اوخلق خالی لاس وی) نواراده اوکړی دوی د شوکولو دلارې (یعنی چه دخلقونه هغه څه واخلی.چه هغوی سره وی) اودوی اونیولی شول وراندې ددې نه چه مال واخلی.اویا قتل کړی یوکس(یعنی چه نه ئې دخلقو نه مال اخستې وی.اونه ئې په هغوی کښې څوک قتل کړې وی) نوګرفتاربه کړی دوی لره امام تردې چه اوباسی توبه،

## د ډاکوانود جرم مختلف صورتونه

| |
|---|
| وَإِنْ أَخَذُوا مَالَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ، وَالْمَأْخُوذُ إِذَا قُسِمَ عَلَى جَمَاعَتِهِمْ أَصَابَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ عَشَرَةَ دَرَاهِمَ فَصَاعِدًا أَوْ مَا تَبْلُغُ |
| قِيمَتُهُ ذَلِكَ قَطَعَ الْإِمَامُ أَيْدِيَهُمْ وَأَرْجُلَهُمْ مِنْ خِلَافٍ، |

**ترجمه و تشریح** ﴿ ①اواخلی دوی مال د مسلمان یاد ذمی اوچه اخستې شوې مال (یعنی کوم مال چه دوی اوشوکوی) کله تقسیم کړې شی په ډله ددوی(ډاکوانو) نو رسی هریوته په دوی کښې لس درهم یا زیاتې اویا هغه څیز وی چه رسیږی قیمت دهغې دې (لسو روپوته یعنی د سرقه نصاب ته) نوکټ به کړی امام لاسونه ددوی اوپښې ددوی ادل بدل(یعنی ښې لاس اوګسه پښه.دا یوحالت شو.چه دوی صرف مال لوټ کړی)

| |
|---|
| وَإِنْ قَتَلُوا نَفْسًا وَلَمْ يَأْخُذُوا مَالًا قَتَلَهُمُ الْإِمَامُ حَدًّا) |

**ترجمه و تشریح** ﴿ (②دویم صورت دا دې.)اوکه دوی قتل اوکړی.اوواخلی مال،نوقتل به کړی دوی لره امام حداً (یعنی د دوی دا قتلول به د قطع الطریق د سزا په طورنه وی.بلکه دقصاص په طوربه وی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه دوی مسلمان قتل کړې دې.نویوکس به د بل کس په مقابله کښې قتل کولې شی)

---

[1] **مسلک الشافعی**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه نه ساقط کیږی (دلاس کټ کول دغل نه) صرف په دعوه کولو سره،

اودلیل په دې کښې قول دالله تعالی دې.﴿ إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ﴾ الایه، (یعنی سزا دهغه کسانوچه جګړه کوی الله سره یعنی دهغه دوستانومسلمانانو سره، اودهغه پیغمبر سره، ① چه قتل کړې شي. ② اويا په سولئ کړې شي. ③ اويا کټ کړې شي لاسونه اوپښې ددوی ادل بدل ④اويا اوشړلی شي د زمکې نه)

**وچه اشتراط القدرة علي الامتناع** > اوشرط کړې ئې دې قدرت دمقابله (یعنی په ډاکوانوکښې دا شرط دې.چه داسې ډاکوان وی.چه چاسره مخامخ کیږی.دهغوی مقابله کولې شي)خکه چه جنګ نه (په مینځ دډاکوانواوخلقوکښې) نه متحقق کیږی.مګرپه طاقت سره (یعنی په قرآن پاك کښې الله تعالی فرمائیلی دی.چه کوم کسان الله تعالی د دوستانواوپیغمبرسره محاربه یعنی جنګ کوی.ددې نه دا معلومه شوه.چه قطاع الطریق به هغه کسان وی.چه دجنګ طاقت اوقوت ورسره وی.که دا ورسره نه وی.نودې به قطاع الطریق کښې نه داخلیږی.اوچه په قطاع الطریق کښې داخل نشو.نودقطع الطریق سزا به ورته هم نشي ورکولې) اودویم حالت هغه دې.کوم چه مونږ بیان کړلو. (یعنی چه مال واخلی.اوقتل اونکړی.نوپه دې صورت کښې به ترې ښې لاس اوګسه پښه کټ کولې شي) دوجې د هغه آیت نه کوم چه مونږ تلاوت کړلو. (چه ﴿إِنَّمَا جَزَٰٓؤُاْ ٱلَّذِينَ يُحَارِبُونَ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ وَيَسۡعَوۡنَ فِي ٱلۡأَرۡضِ فَسَادًا أَن يُقَتَّلُوٓاْ أَوۡ يُصَلَّبُوٓاْ أَوۡ تُقَطَّعَ أَيۡدِيهِمۡ وَأَرۡجُلُهُم مِّنۡ خِلَٰفٍ أَوۡ يُنفَوۡاْ مِنَ ٱلۡأَرۡضِ﴾)

**وچه اشتراط كون المال ماخوذا من مسلم او ذمي** > اوشرط کړی دی ابو الحسن قدوری رحمه الله.چه وی اخستې شوې مال د مسلمان اویاد ذمی، (دا شرط اولګولې شو) دې دپاره چه وی عصمت (دمال) همیشه دپاره، (اونشته همیشه دپاره عصمت مګردمال د مسلمان یا د ذمی دپاره) اوددې وجې (یعنی د وجې د شرطیت د مال ماخوذه چه دا د مسلمان یا د ذمی وی) که اوشکوی لار په مستامن باندې(یعنی که ډاکوان داسې کس اوشوکوی.چه هغه کافر وی.خوامان ئې اخستې وی.اودارالاسلام ته داخل شوې وی) نونه واجبیږی کټ کول (دلاس. خکه چه د مستامن مال همیشه دپاره محفوظ نه دې.بلکه چه ترڅوپورې دې په مسلمانانو په امن کښې وی.مال به ئې محفوظ وی.چه کله ئې امن ختم شو.نومال ئې غیرمعصوم اوګرخیدلو)

**وچه اشتراط كمال النصاب في حق كل واحد** > اوشرط کړې دې (ابو الحسن قدوری رحمه الله کمال د نصاب په حق دهریوکس (یعنی وړاندې ددې بیان اوشو.چه په ډاکه کښې به هله حدجاری کولې شی.چه کوم مال ډاکوانواخستې وی.که هغه په هغوی باندې تقسیم کړې شي.چه دیوکس په حصه کښې دومره مال راخی.چه د سرقه نصاب ته رسی.اوکه نه رسی.نوبیا به د قطع الطریق حدنشی جاری کولې.نوددې وجه دا دې) دې دپاره چه مباح نشي اندام دده (یعنی چه د قاطع الطریق لاس اوپښې کټ کول مباح اونه ګرخی) مګرپه اخستلودده (ډاکو) هغه مال چه قیمتی وی. (اودقیمتی مال ادنی مقدارد شریعت په رڼړا کښې لس روپئ دی.لکه وړاندې چه تفصیل تیرشوې دې)

**المراد من الايدي والارجل** > اومراد د (الله تعالی ددې قول نه چه ﴿أَوۡ تُقَطَّعَ أَيۡدِيهِمۡ وَأَرۡجُلُهُم مِّنۡ خِلَٰفٍ﴾) کټ کول د ښې لاس اود ګسې پښې دی. (اود عالمانوپه مینځ کښې په دې حکم کښې څه اختلاف نشته.اوبلـه دا چه دا جنایت د خپل سنګینئ د وجې د دوو غلاګانوپشان اوګرخیدل،اوپه دووغلاګانوکښې هم دا حکم دې.که په اول خل غلا اوکړی.ښې لاس به ئې کټ کولې شي.که دوباره اوکړی.نوګسه پښه به ئې کټ کولې شي.اوکه څوك دا اووائي.چه ډاکه د دوو غلاګانوپشان ده.نوبیکارده چه نصاب د سرقه په کښې شل روپئ وې.دهرې یوې غلا دپاره به لس لس روپئ وې.نومونږ جواب ورکوو.چه په ډاکه کښې سختوالې د ډاکوانود فعل په اعتبارسره دې.خکه چه دا

دالله تعالی اودهغه د رسول سره جنګ دي.دمالیت په اعتبار سره نه دي.تردې که لس درهمې اوشکوی.نوهم به د قطع الطریق سزا ورکولې شي.او دا د ښي لاس اوګسې پښې د کټ کولوحکم څکه ورکړې شوي دې) چه اونه ګرځي دا کټ کول فوت کیدل جنس منفعت لره، (یعني داسې مواونکړلو.چه د دوارو لاسونو یا د دوارو پښو کټ کولوحکم موکړې وې.څکه چه په هغې کښې جنس منفعت فوت کیږي.یعني که دواړه لاسونه کټ کړي شي.نود نیولوصلاحیت به ختم شي.اوکه دواړه پښې کټ کړي شي. نود تللو صلاحیت به ختم شي.اودا دجنس منفعت فوت کیدل دی.کوم چه جائز نه دی.ددې وجې مو د یولاس اود یوې پښې کټ کولوحکم اوکړلو.چه قوت د نیولواودقوت د تللو باقي پاتې وی.څکه چه په یولاس باندې هم نیول کولی شي.اوپه یوه پښه باندې هم تلل کیدې شي)

(فان عفا الأولياء عنهم لا يلتفت إلى عفوهم)

**حل اللغة** ➤ ① **يلتفت**:کتلې شي ② **العفو**:معافی کول

**ترجمه وتشريح** ➤ که معافی اوکړله په اولیاو د مقتول کښې دوی (ډاکوانو) ته، نه به شي کتلې معافئ د دوی ته (بلکه حدبه پرې جاری کولې شي)

**دليله** ➤ څکه چه دا (ددوی قتلولول) حق د شرع دي. (اوپه حق الله کښې د بنده معافی معتبر نه ده.تردې چه پیغمبر ﷺ هم د چا نه حدنشی ساقط کولې.اوپه دې خبره باندې د ټولوعالمانو اتفاق دې)

**دقتل اومال لوټ کولواجتماعی سزا**

(وإن قتلوا وأخذوا المال فالإمام بالخيار إن شاء قطع أيديهم وأرجلهم من خلاف وقتلهم وصلبهم، وإن شاء قتلهم، وإن شاء صلبهم.[1])

**حل اللغة** ➤ ① **صلب**:په سولئ کړلو

**ترجمه و تشريح** ➤ اودځلورم (صورت دا دې) کله چه قتل کړی (ډاکوان خلقو لره) او واخلی مال (دهغوی) نوامام ته اختیاردې. (په یوددې کارونوکښې) ① که خوښه ئې وی.نوکټ دې کړی لاسونه ددوی اوپښې ددوی ادل بدل اوقتل دې کړی دوی یا دې په سولئ کړی(دا یو قسم سزا شوه) ② اوکه خوښه ئې شي.نوقتل دې کړی دوی (بغیرد کټ کولودلاسونواوپښو نه، دا دویمه قسم سزا شوه) ③اوکه اوغواړي.نو په سولئ دې کړی دوئ، (دا د شیخینواودامام احمد رحمهماالله قول دې)

**دليلهما** ➤ دشیخینو رحمهماالله دلیل دا دې.چه دا یوه ګناه ده. (څکه چه مجموعی دې ته ډاکه ونیلی شي. اګرچه قتل اومال لوټ کول دواړه په کښې جمع شوی وی.البته دومره ده چه) دا سزا سخته ده.د وجې د سختوالی د سبب ددې نه (چه ډاکه ده) اودا (ډاکه) فوت کول د امن دی په اعتبارد انجام.چه قتل کول اود مال لوټ کول دی.اوددې وجې (چه دا یوه ګناه ده) وی کټ کول دلاس اودپښې په یوځائې په ډاکه کښې،حد یو.اګرچه دی دا دواړه سزاګانې په سرقه صغری کښې دوه حدونه (یعني دلاس کټ کول د یو خل غلا حد دې.اوپښه کټ کول د دوباره غلا دې) اوتداخل راځي په حدودو کښې نه په یو حد کښې، (اودلته دلاس کټ کول اوقتل دواړه یوحد دې.نوتداخل په یوبل کښې نشته.اوکه نه دا اوواني،چه دلاس کټ کول اوقتل کول دواړه یوحد دې.نوبیا خودقاضی دپاره دا جائز نه ده.چه په یوحد کښې څه قائم

[1] القول الراجح هوهذا قول الشيخين كذا في العناية (١٨٠\٥) والحاشية (٤١٥\٤) والبحرالرائق (٦٦\٥) والهندية (١٨٦\٢) نقلاً عن القول الراجح (٤٧٧\١)-

كړي.اوځه پريږدي.نوموږ وايو.چه دا يوحد دې.خوترتيب په كښې لازم نه دې.چه اول به لاس كټ كولې شي.اوبيا به قتل كولې شي .نوچه ترتيب لازم نشو.اوده په قتل شروع اوكړله.نودلاس كټ كول په خپله ختم شو.ځكه چه د مرګ نه پس د لاس په كټ كولو كښې څه فائده نشته.لكه څنګه چه په حدقذف كښې چاته كوړې وركولې شي.اودكوړو وركولوپه مينځ كښې هغه مړشي.نوباقي چه كومې كوړې پاتې وي.هغه ساقطې شوې.ځكه چه د مرګ نه پس كوړو وركولو كښې څه فائده نشته)

**مسلک محمد** ﴿ فرمائيلي دي.امام محمد رحمه الله چه قتل كولې به شي يا به په سولئ كولې شي.اوكټ كولې به نشي(لاس اوپښې)

**دليله** ﴿ ځكه چه دا (ډاكه) ګناه ده يوه نو نه به واجبيوي دوه حدونه (چه حدسرقه اوقصاص دې. ځكه چه جرم يووي.نوحد به هم يو وي.اوبل دليل دا دې.چه) كم د نفس نه داخليږي په نفس كښې په باب د حدودو كښې، (يعني چه په كس باندې دوه حدونه لازم شوي وي.يود نفس دقتل وي.اوبل دقتل نه كمه سزا وي .نو وړه سزا په غټ سزا كښې شاملولې شي.اووړه سزا مستقله نشي اخستې) لكه حد د سرقه او رجم (كښې چه تداخل راځي.مثلاً په زيدباندې دغلا په وجه د لاس كټ كول واجب شوي دي.اود زنا په وجه ئې سنګسارواجب شوي دې.نوپه دې صورت كښې به صرف سنګسار وركولې شي.دا نه چه اول به ئې لاس كټ كړې شي.اوبيا به سنګساركولې شي.بلكه دلاس كټ كولوسزا په رجم كښې داخله شوه)

**د حدجاري كولوطريقه**

| (وَيُصْلَبُ حَيًّا وَيُبْعَجُ بَطْنُهُ بِرُمْحٍ إِلَى أَنْ يَمُوتَ) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **يبعج**:څيرې كولې شي ② **بطن**:خيټه

**ترجمه و تشريح** ﴿ بيا فرمائي(ابو الحسن قدوري) اوپه سولئ به كړې شي. (ډاكو) په ژوندوني،اوڅيرې به كړې شي خيټه دده په نيزه باندې تردې چه (په دغه حالت كښې) مړشي.

**دليله** ﴿ سولئ كول په دې طريقه په دې كښې زياته مبالغه ده.په حيثيت د زجر(اوزورني) اوهم دا (زجراوتنبيه) مقصود ده په دې (حد) سره،

**په سولئ د پريخودو موده**

| (وَلَا يُصْلَبُ أَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** ﴿ فرمائي (ابو الحسن قدوري رحمه الله اونه شي پريخودې په سولئ زيات د درې ورځونه،

**دليله** ﴿ ځكه چه دې (مړې) متغيركيږي پس ددې نه،نو(كه داسې پريخودې شي) تكليف به رسي خلقونه په ده (يعني دده په بدبوئې)

**مسلک ابي يوسف** ﴿ دامام ابويوسف رحمه الله نه روايت دې.چه پريخودې به شي (لاش) په لرګي (د سورلئ) باندې،تردې چه اورژيږي.بعضې حصه دده،چه عبرت واخلي دده نه نورخلق،

**الجواب عنه** ﴿ موږ (جمهوراحناف) وايو.چه حاصليږي عبرت په هغه څه چه موږبيان كړلو. (چه درې ورځې دي) اوآخري حد ته رسيدل مقصود نه دې. (يعني په حد قائمولو كښې صرف تنبيه او زورنه مقصود ده.هغه په درې ورځوسره حاصليږي)

**په ډاكوانوكښې دغيرمكلف يا محرم وجود**

| (فَإِنْ كَانَ فِيهِمْ صَبِيٌّ أَوْ مَجْنُونٌ أَوْ ذُو رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنَ الْمَقْطُوعِ عَلَيْهِ سَقَطَ الْحَدُّ عَنِ الْبَاقِينَ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوكه وي په ډاكوانوكښې ماشوم يا ليونې يا محرم دهغه چا دپاره چه شوكولې ئې وي څوك، (يعني په ډاكوانوكښې څوك داسې وي.چه څوك لوټ شوې وي دهغه محرم وي.لكه پلار،څوئې

وغيره) نوساقطيږي حدد نورو نه، نوذکرشوې په ماشوم اوليونی کښې قول دامام ابوحنيفه اوزفر رحمهماالله دی.(¹)

**دليلهما** > اودهغوی دواړو(طرفينو رحمهماالله دپاره دليل دا دی.چه دا (ډاکه) جنايت دی يو،چه قائم دی په ټولوډاکوانوپوري(يعنی ټول ډاکوان د ډاکه په دې فعل کښې شريك دی) نوهرکله چه نه واقع کيږی جرم د بعضې کسانو ددوی (چه ماشوم اومجنون دی) موجب (دحد.دشبه دوجې نه) نووی به فعل د نورو(ډاکوانو) بعضې علت(يعنی ډاکه ټوله يو جرم دی.اوټول په دې جرم کښې شريك دی.نوددوی دا جرم به په ټولو تقسيمولې شی.خوچه دجرم بعضې حصه د ماشوم اوليونی په حق کښې موجب د حد نشوه.نود نورو په حق کښې به هم موجب د حد نه وی.خکه چه حدسرقه خوتجزی نه قبلوی.چه دخپل جرم په سزا کښې ترې څه لاس کټ کړې شی.اودنوروډ سزا په حساب دی پريخودې شی.بلکه لاس به يا ټول کټ کولې شی اويا به پريخودې شی) اوپه دې (بعضې علت) سره نه ثابتيږی حکم (دقتل کولو) نوشوه دا مسئله پشان د خطا کار سره د قصدکونکی نه، (يعنی چه دوه کسان غشې اولی.يوکس پرې ښکار ولی. او زيد پرې اولګی.اوبل کس پرې هم زيد وولی.اوهغه د دواړو غشود ګذارنه مړ شو.نوپه دې صورت کښې په هغه کس باندې هم قصاص نشته.چا چه د زيد دويشتلو قصد کړې وی.خکه چه د مقتول قتل د خاطی اوعامد دواړوپه فعل سره واقع شوې دی.نود خاطی فعل په قتل کښې شبه پيدا کړه.دهغې د وجې د عامدقصاص هم ساقط شو)

**مسلك ابي يوسف** > اوامام ابويوسفؒ نه روايت دی.که کړې وی مباشرت (دقتل سره) عاقلانو(يعنی په ډاکوانوکښې ماشوم اوليونې هم وی.ليکن چا چه قتل کړې وی.هغه عاقلان يعنی مکلف وی) نوحد به ورکولې شی نوروډاکوانوته،

**دليله** > دليل دا دی.چه مباشر(دفعل دقتل سره) اصل دی. (خکه چه جرم دقتل د ده نه صادرشوې دی) اومدګار تابع دی. (داصل) اونشته څه خلل په مباشرة د عاقل کښې(يعنی په قاتل کښې داسې څه علت نشته.چه دهغې د وجې دهغه په جرم کښې نقص راشی.اوموږ دهغه نه حدساقط کړو.خکه هغه په خپله ماشوم نه دی ليونې نه دی) اونشته اعتبارخلل لره په تبع کښې (يعنی دی قاطع قاتل سره که په ډله کښې ماشوم يا ليونې وی.نوپه هغوی کښې دعقل د نيشتوالی يا د عقل د نقص د وجې خلل شته . خو د هغوی خلل چه تابعين دی.د اصل په جرم کښې چه قاتل دی څه نقص نه راولی.يعنی نقص د عقل په تابع کښې دی په اصل کښې نه دی.اوموږ حد جاری کوو په اصل باندې نه په تبع باندې)

**دحدساقط کيدو په صورت کښې دقصاص حکم**

| |
|---|
| وَصَارَالْقَتْلُ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ) فَإِنْ شَاءُوْاقَتَلُوْاوَإِنْ شَاءُوْاعَفَوْا) |

**ترجمه و تشريح** > اوګرځی حق دقصاص اولياؤ (دمقتول ته)

**دليله** > دوجې دښکاره کيدود حق العبد نه،) نوکه غواړی (اولياء دمقتول) قتل دې کړی (قاتل) اوکه غواړی نو معافی دې اوکړی. (قاتل ته دالله دپاره)

**په ډاکوانوکښې ديوکس په قتل دقصاص حدحکم**

| |
|---|
| (وَإِنْ بَاشَرَ الْقَتْلَ وَاحِدٌ مِّنْهُمْ أُجْرِيَ الْحَدُّ عَلَى جَمَاعَتِهِمْ |

¹) القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفةؒ كذا في فتح القدير(١٨٤\٥) والعناية (١٨٤\٥) وردالمحتار (٢٣٥\٣) والبحرالرائق (٦٩\٥) نقلاً عن القول الراجح (٤٧٨\١)-

**تشريح** > **اقسام الخمر** > امام قدوري رحمه الله دلته كښې د شرابو څلور قسمونه بيان كړي دي.او دا څلور هغه قسمونه دي.چه حرام دي. ① اول د انګورو كچه شراب كله چه دا جوش اووهي.او زګ اونيسي.او د سختوالى نه مراد دا دې.چه هغه ددې قابل شي.چه نشه راوستونكې وي.او هم دې ته خمر(شراب) واني.

② دويم قسم طلاء يعني د انګورو شيره كله چه دا پخه كړې شي.او په ددې په دريو حصو كښې دوه حصو نه لږ كم ختم شي.خو په محيط كښې دي.چه طلاء ثلث (دريمې حصې) ته واني.يعني چه دكوم چه دوه حصې ختمه شي.او دكوم چه دوه ثلثه ختم شوې نه وي.بلكه كم وي.نو دې ته باذوق واني.

③ دريم قسم سكر دې.يعني اوبو كښې چوارې اچولې شوې وي.او اوبه پخې كړې شوې نه وي.كله چه دا جوش اووهي.او خګ اونيسي.

④ څلورم قسم نقيع الزبيب يعني اوسكې (مَويز) په اوبو كښې اچولې شوې وي.او په دې كښې جوش او سختوالى پيدا شي.

**تعريف الخمر** > د انګورو كچه اوبه كله چه دا نشه پيدا كونكې شي.دې ته خمر واني.ددې نه علاوه نورو څكونكو څيزونو نه چه شراب جوړ كړې شي.هغې ته به خمر نشي وئيلې.د اهل لغت او د اهل علم په منځ كښې هم دا مشهوره ده.چه خمر صرف هم دې ته واني. (١)

**دلائله** > ① د اهل لغت اتفاق دې.چه خمر صرف د انګورو شراب دي.او ددې دليل دا دې.چه د خمر استعمال هم د انګورو په دې شرابو كښې معروف او مشهور دې.او ددې نه علاوه چه كوم نور شراب دي.د هغې دپاره خپل نومونه دي.لكه سكر، او نقيع وغيره.

② دخمر حرمت قطعي او د خمر نه د علاوه شرابو حرمت ظني دې.كه د انګورو شرابو نه علاوه نورو شرابو ته خمر اووئيلې شي.نو بيا به ددې حرمت قطعي منل ضروري وي.حالانكه دا بې دليله ده.

**د انګورو د شيرې بيان**

| |
|---|
| وَالْعَصِيْرُ اِذَا طُبِخَ حَتّٰى يَذْهَبَ اَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ اوشيره د انګورو كله چه پخه كړې شي.تردې چه ددې د دوه ثلثه نه كم ختم شي |

**تشريح** > د خمر د بحث نه د فراغت نه پس د طلاء (د انګورو د شيرې) بيان دې.او ددې نوم باده دې.چه دا معرب كولو سره باذوق وئيلې شوې دى.او دا تول د انګورو د شيرې نه جوړيږي.او دا معمولى شان پخولې شي.تردې چه دريو حصو كښې د دوه حصو نه كم ختم شي.او يو قسم ددې منصف دې.چه ددې په پخولو سره نيم ختم شي.بهرحال دا دواړه قسمونه حرام دي.او دا زمونږ مسلك دې.خو حرام به هله وي.كله چه د تيزجوش سره زګ هم راشي.،،كذا قال الإمام رحمه الله،،

**مسلك الصاحبين** > او د صاحبينو رحمهما الله په نيز د خګ راتلو نه بغير به هم د تيزوالى نه پس دې ته حرام وئيلې شي.

**د نقيع تمر (يعني د كجورو د كچه اوبو) بيان**

| |
|---|
| وَنَقِيْعُ التَّمْرِ او نقيع تمر |

---

(١) **مسلك الائمة**:- د آئمه ثلاثه رحمهم الله او د اصحاب ظاهر دا وينا ده.چه هر نشه ور څيز خمر دې.د انګورو نه جوړ شي.او كه د بل څيز نه.

**حل اللغة >** ① **نقيع:** رس،نچوړ ② **التمر:**قجوره

**تشريح >** دا د دريم قسم د نقيع تمر بيان دې.چه په دې كنبې لمدې كجورې اوبو كنبې اچولې شوې وى.نو ددې حكم دا دې.چه دا حرام مكروه دې.

### د نقيع الزبيب (يعنى د اوسكو د كچه اوبو) بيان

| |
|---|
| وَنَقِيعُ الزَّبِيبِ او نقيع زبيب إِذَا اشْتَدَّ وَغَلَى كله چه تيزې شي.او جوش اووهى |

**تشريح >** او نقيع زبيب،دا د اوسكو او مويزو كچه اوبه دى.كله چه په دې كنبې جوش او تيزى پيدا شى.نو دا حرام دى.

### د نبيذ تمر او نبيذ زبيب د معمولى شان پخولو او څكلو حكم

| |
|---|
| وَنَبِيذُ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ إِذَا طُبِخَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَدْنَى طَبْخَةٍ حَلَالٌ او نبيذ تمر او نبيذ زبيب كله چه دې كنبې هر يو معمولى شان پاخه كړې شى.نو حلال دى وَإِنْ اشْتَدَّ اګرچه جوش اووهى إِذَا شُرِبَ مِنْهُ مَا يَغْلِبُ عَلَى ظَنِّهِ كله چه دا اوڅكى دومره مقدار چه دده غالب ګمان دا وى أَنَّهُ لَا يُسْكِرُهُ مِنْ غَيْرِ لَهْوٍ وَلَا طَرَبٍ، چه دا به نشه نه كوى.(كله چه اوڅكى) بغير د مشغولتيا او خوشحالى (حاصلولو) نه |

**حل اللغة >** ① **نبيذ:** رس،نچوړ ② **الزبيب:** اوسكې]

**تشريح >** نبيذ تمر او نبيذ زبيب كله چه دا معمولى شان پاخه كړې شى.د شيخينو رحمهما الله په نيز حلال دى.خو① رومبې شرط معمولى شان پخول دى. ② دويم شرط چه دومره مقدار اوڅكى.چه په دې سره نشه نه راځى③دريم شرط د څكلو مقصد مشغولتيا او خوشحالى حاصلول نه وى.بلكه د بدن طاقت وى.

### د كجورو او اوسكو ګډ شرابو حقيقت او ددې حكم

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِالْخَلِيطَيْنِ او خليطين (كجورې او انګور ملاؤ شوى) كنبې هيڅ باك نشته. |

**تشريح >** د خليطينو حقيقت دا دې.چه كجورې او انګور، يا اوسكې او كجورې ملاوكړې شى.او شربت جوړ كړې شى.او دا حلال دى.په دې شرط چه معمولى شان پوخ كړې شى.
**دليل >** ابن زياد فرمائيلى دى.چه په ما ابن عمر رضي الله عنهما يو شربت اوڅكلو.هغې سره زما دا حالت جوړ شو.چه كوره پورې تلل راته ګران شو.په بله ورځ ما هغوى ته دا واقعه بيان كړله.نو وې فرمائيل.چه مونږ تا ته د كجورو او اوڅكو نه بغير زيات څه نه دى څكولى.دې ته خليطين وائى.او دا پخكړې شوى هم وو.چه ددې دليل دا دې.چه د ابن عمر رضي الله عنهما نه نقل دې.چه د اوڅكو وغيره كچه اوبه حرام دى. [1] نو ددوى ددې خبرې نه معلومه شوه.چه دا پخكړې شوى وو.ګنى هغوى به دا په ابن زياد باندې څنګه څكل.
**الاشكال >** كه څوك دا اعتراض اوكړى چه تاسو خليطينو ته جائز وايې:حالانكه حديث كنبې ددې ممانعت راغلې دې. نَهَى عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ، وَالزَّبِيبِ وَالرُّطَبِ، وَالرُّطَبِ وَالْبُسْرِ [2] چه انګور او

---

[1] غريبه الزيلعي رحمه الله (نصب الرايه:۵\۱۰۱)۔
[2] – من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه البخارى فى الأشربة باب ۸ ومسلم فى الأشربة رقم ۱۷ وأبوداود فى الأشربة باب ۸ والترمذى فى الأشربة باب ۹ والنسائى فى الأشربة باب ۹ وابن ماجه فى الأشربة باب ۱۱)۔

چواري او انګور اوکجورې او کجورې او چوارې ملاؤ (يوځاني) استعمال کړې شي؟

**الجواب عنه** نو د دې جواب دا دې چه دا ممانعت په ابتداء د اسلام کښې هغه وخت وو.کله چه د قحط زمانه وه.او مقصد دا وو.چه دا مه جمع کوئ.بلکه په يو باندې اکتفاء (او بسوالي) کوئ.او دويم غريبانانو ته ورکوئ.

**د شهدو، انځرانو، د چوارو او اوربشو د نبيذو حکم**

وَنَبِيذُ الْعَسَلِ وَالتِّينِ وَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالذُّرَةِ حَلَالٌ وَإِنْ لَمْ يُطْبَخْ او د شهدو او انځرانو نبيذ او د غنمو او اوربشو چوارو نبيذ حلال دی. اګرچه پاخه نکړې شي

**حل اللغة** ① **العسل**:شهد ② **التين**: انځر ③ **الحنطة**: غنم ④ **الذرة**:چواره ⑤ **الشعير**:اوربشې[

**تشريح** دا ټول ذکر شوی نبيذ حلال دی.اګرچه پخکړې شوې هم نه وی.خو شرط دا دې.چه د لهو او خوشحالولو نه بغير د بدن د طاقت دپاره ئې استعمال کړی.وراندې تيرشوی دی.چه نبی کريمﷺ د احکامو د بيان دپاره راليګلې شوې دې.او نبی کريمﷺ چه کوم ارشاد فرمائيلې دې. (الخمر من هاتين.....)ددې مطلب دا دې.چه کوم شراب حرام دی.هغه د انګورو او کجورو نه جوړولې شی.نو ددې نه معلومه شوه.چه کوم د شهدو او انځيرانو وغيره نه جوړولې شی.نو هغه به حرام نه وی.

**د انګورو شيره چه پخولو سره دوه حصې ختم شی نو ددې حکم**

وَعَصِيرُ الْعِنَبِ إِذَا طُبِخَ حَتَّى ذَهَبَ منه ثُلُثَاهُ حَلَالٌ وَإِنْ اشْتَدَّ او د انګورو شيره چه کله پخه کړې شی.ترڅو چه ددې دوه ثلثه ختم شوې وی.او يو ثلث باقی پاتې شی.نو دا حلال دی.اګرچه جوش اووهی

**تشريح** د انګورو نچوړ شوې رس دومره پوخ کړې شی.چه په دريو کښې دوه حصې ختمې شی.او صرف يوه حصه باقی پاتې شی.او په دې کښې جوش او تيزی راغلې وی.نودا جائز دی. کله چه مقصد په طاعاتو به قوت حاصلول وی.اوکه عبث او خوشحالی مقصد وی.نو بالاتفاق حرام دی.

**دليلهما** د شيخينو رحمهماالله دليل نبی کريم ﷺ حديث دې حُرِّمَتْ الْخَمْرُ لِعَيْنِهَا وَالسُّكْرُ مِنْ كُلِّ شَرَابٍ يعنی خمر حرام لعينه دی.ددې قليل او کثير حرام دې.او د هرشراب مسکر حرام دې.نو عطف چونکه د مغايرت تقاضه کوی.نود حديث نه ثابته شوه.چه د خمر عين حرام دې.او د غيرخمر سکر (نشه راوستونکې) حرام دې.او د سکر نه مخکښې حلال دی.

**مسلک محمد** امام محمد، امام مالك، او امام شافعی ﷺ دا حرام ګرځوی.او د امام محمد ﷺ په قول باندې فتوی ده.د امام محمد ﷺنه دري نور روايات هم نقل دی① پشان د شيخينو رحمهماالله ② مکروه ③ توقف.

**دليله** د امام محمد ﷺوغيره دليل دې.چه په دې کښې دري حديثونه او يو عقلی دليل دې① كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ هرنشه راوستونکې حرام دي

**په کدو، چاټئ، او مزفت کښې د نبيذ جوړولو حکم**

وَلَا بَأْسَ بِالْإِنْتِبَاذِ فِي الدُّبَّاءِ او هيڅ باك نشته. په نبيذ جوړولو سره.د کدو په لوخی کښې وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ وَالنَّقِيرِ او په حنتم (چاټئ) کښې او مزفت موړلی شوی لوخی کښې.

**حل اللغة** ① **الانتباذ**: نبيذجوړول ② **الدباء**: کدو ③ **الحنتم**: چاټئ ④ **المزفت**:پالش شوې لوښی[

**تشريح** د باء: د کدو لوخې، حنتم: د شين رنګ د خاورو کندولې(منګې)، مزفت: د تارکولو پشان بر

ځیز دې.چه هغې ته زفت وائي.کله چه په یو لوخي باندې ددې پالش اوکړې شي.نو دې لوخي ته مزفت وائي.بهرحال دا خو د لوخي نوم دې.لکه زمونږ په علاقو کښې چاټۍ (کوزه، منګې) نو په دې کښې څه باك نشته.

**دلیله>** خلقو به په دې لوخو کښې شراب جوړول.کله چه د شرابو حرمت نازل شو.نو نبي کریمﷺ ددې لوخو د استعمال نه منع فرمائیلې وه.چه د شرابو نفرت په زړونو کښې ښه کینې.بیا څه موده پس کله چه مقصد حاصل شو.نو ددې لوخو د استعمال اجازت ملاؤ شو.او ړومبې حکم منسوخ شو.دا حدیث په مشکواة کښې ستاسو په وړاندې تیر شوې دې.چه هلته کښې ددې ممانعت دې.

**که شراب پخپله سرکه جوړه شي نو څه حکم دې ؟**

| |
|---|
| وَإِذَا تَخَلَّلَتِ الْخَمْرُ حَلَّتْ سَوَاءٌ صَارَتْ بِنَفْسِهَا خَلًّا أَوْ بِشَيْءٍ يُطْرَحُ فِيهَا او کله چه خمر سرکه جوړه شوه.نو حلال شو.که هغه پخپله سرکه جوړه شوې وي.یا په څه داسې ځیز سره (سرکه جوړه شوې وي) کوم چه دې کښې اچولې شوې وي وَلَا يُكْرَهُ تَخْلِيلُهَا او ددې سرکه جوړول مکروه نه دی. |

**حل اللغة >** ① **التخلیل**:سرکه جوړول

**تشریح >** که د شرابو نه پخپله سرکه جوړه شي.او که جوړه کړې شي.اوس به دا حلال وي.او ددې نه سرکه جوړول مکروه هم نه دی.[1]

**دلیله>** دلیل دا دې.چه حدیث کښې سرکې ته غوره سالن (ترکاری) فرمائیلې شوې دې.بیا سرکه جوړول حلال کیدل پکار دی.ځکه چه اوس مفسد وصف زائل شو.او ښه (صالح) وصف پیدا شو.یعنې صفراء ته په دې سره سکون ملاویږي.او شهوت ختمیږي.او په دې سره غذا حاصلیږي.او داسې اصلاح صحیح ده.او دا په انسانی ضروری فائدو کښې د کار راتلو قابل جوړیږي.نو لکه څنګه چه خمر پخپله سرکه جوړه شوه.او هغه حلال ده.نو دا هم حلال کیدل پکار دی.او لکه څنګه چه مرداره څرمن په رنګ کولو سره پاکیږي.او دې ته رنګ ورکول د کراهت نه بغیر جائز دې.نو هم دغه شان دلته کښې پکار دی.او هرکله چه حرام ځیز ته نیزدې کیدل ددې د فساد لرې کولو دپاره وي.نو داسې نیزدې کیدل جائز دې.لکه که شراب بهیول وي.نو دې ته نیزدې کیدل بالاتفاق جائز دې.

# كِتَابُ الصَّيْدِ

**ترجمه>** (دا) کتاب د ښکار (د احکامو په بیان کښې) دې.

**تشریح> الربط بماقبله>** لکه څنګه چه شرابو سره خوشحالي حاصلولې شي.دغه شان ښکار سره هم خوند او مزه حاصلولې شي.(کمالایخفی) نو بیا د دواړو په منځ کښې وجه د مناسبت ښکاره ده.او ښکار د خوراکونو ځنې دې.چه ددې شرابو سره مناسبت ښکاره دې.بیا لکه څنګه چه شراب څه حلال او څه

[1] )**مسلک الشافعي**:- امام شافعي رحمه الله سرکه جوړول مطلق مکروه ګرځوي.اوس پاتې شوه حاصل شوې سرکه نو په دې کښې تفصیل دې① که په خمر کښې څه ځیز شاملولو سره سرکه جوړه کړې شوې ده.نو د امام شافعي رحمه الله په دې کښې صرف یو قول دې.چه دا سرکه حلال نه ده. ②او که د څه اچولو نه بغیر سرکه جوړه شوې وي.نو په دې کښې د امام شافعي رحمه الله دوه قوله دی[1] یو دا چه حلال ده.[2] دویم دا چه حلال نه ده.

حرام دی.دغه شان په ښکار کښې هم څه حلال او څه حرام دی.بیا د اشربه مخکښې ذکر کولو وجه دا ده.چه په دې کښې د حرمت غلبه ده.او په دې کښې د حلت،،کماهوظاهر،، .
د دې نه وړاندې چه د دې کتاب په مسائلو شروع اوکړو د ښکارد شرطونو بیان مناسب ګڼړم نو زده کړه دا خبره چه د ښکار د جواز پنځلس شرطونه دی.
**الشروط التي تتعلق بالصائد>** په دې کښې پنځه هغه دی.چه دهغې تعلق ښکار کونکی (ښکاری) سره دې.او هغه دا دی. ① د ذکاة (ذبح) اهل وی.
② دده د طرفه لیګل اومونډې شی.
③ دده سره په لیګلو کښې داسې کس شریك نه وی.چه د هغه ښکار حلال نه دې.
④ په قصد سره ئې تسمیه (بسم الله) نه وی پریخودې.
⑤ د لیګلو او نیولو په منځ کښې بل څه کار کښې نه وی مشغول شوې.
**الشروط التي تتعلق بالكلب>** او پنځه شرطونه هغه دی.چه د هغې تعلق سپی سره دې.او هغه پنځه دی:
① سپې معلم وی.چه ددې تفصیل اوس راروان دې.
② سپې ئې چه په کومه طریقه (او رفتار) باندې پریخودې وی.هم په هغه طریقه باندې روان شی.
③ په ښکار نیولو کښې دده سره داسې سپې نه وی شریك شوې.چه د هغه مرښکار حلال نه دې.
④ سپې ښکار زخمی کړی.داسې نه چه پخپل بوج سره ئې مړ کړی.
⑤ سپی ددې نه هیڅ او نخوری.
**الشروط التي تتعلق بالصيد>** او پنځه شرطونه هغه دی.کوم چه په ښکار کښې دی.او هغه دا دی:
① ښکار د حشرات الارض څنې نه وی.
② د کب (مې) نه علاوه بل څه دریابی څناور نه وی.
③ دا ښکار داسې وی.چه هغه پخپلو لاسونو او پنجویا ښکرو (وغیره) سره د خپل ځان حفاظت کونکې وی.
④ داسې څناور نه وی.چه هغه پخپلو غاښونو سره شلول کوی.او خوری.یا پخپلو پنجو سره راشوکه وی.او خوری.لکه بابښه، باز او لکه شرمخ، زمرې،
⑤ دا د ذبح کولو پورې په لاس نه وی راغلې.بلکه د ښکاری څناور په زخمی کولو سره مړ شوې وی.نو هله په لاس راغلې وی.نو که دا په لاس راغې.نو اوس د ذبح نه بغیر حلال نه دې.او ددې خلاصه دا ده.چه اصل کښې پخپل لاس سره ذبح کول لازم دی.او کله چه اختیاری ذبح ممکن نه وی.نو اضطراری ذبیحه به په ذریعه د غشی او ښکاری څاروی هلاکولو سره حلال وی.نو کله چه ده ښکاری څناور پریخودو.او ده اونیولو.او مالك ورته اورسیدو.حالانکه اوسه پورې ښکار ژوندې دې.نو اوس په ده باندې اختیاری ذبح کول واجب دی.تردې که دا مړ شو.او ده ذبح نکړو.نو مردار شو.

**الصيدلغة>** د،،صید،،دوه معانې دی① هغه څاروې کوم چه ښکار کړې شی. ② ښکار کول

**په تعلیم یافته سپی،پړانګ، او باز سره د ښکار حکم**

| |
|---|
| **وَيَجُوزُ الِاصْطِيَادُ بِالْكَلْبِ الْمُعَلَّمِ وَالْفَهْدِ وَالْبَازِي وَسَائِرِ الْجَوَارِحِ الْمُعَلَّمَةِ** او په تعلیم یافته سپی، او پړانګ، او باز، او ټولو تعلیم یافته څناورو سره ښکار کول جائز دی |

**حل اللغة >** ① **الاصطياد:** ښکار کول ② **الفهد:**پړانګ ③ **البازي:** باز

**تشریح >** کوم (درنده یا مارغه) نه چه تا تعلیم ورکړو.(چه ددې تفصیل نزدې راروان دې) که هغه ښکار

کونکي درنده وي.اوکه مارغه وي.نو د هغې کړي ښکار حلال دي.

**دلیله>** دلیل دا آیت دي[يَسْئَلُونَكَ مَاذَآ أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ فَكُلُوْا مِمَّآ أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ] خلق ستانه تپوس کوي.چه ددوی دپاره څه څیز حلال دي.تاسو اوفرمایئ:چه ستاسو پاکیزه څیزونه حلال دی.او هغه چه تاسو اوښایئ ښکاری ځناورو نه په ښکار پسې ورتلل، چه تاسو ئې ورته ښایئ:د هغه خبرو نه کوم چه الله تعالی تاسو ته خودلی دی.نو تاسو خورئ د هغې نه کوم چه هغوی اوساتي. ستاسو دپاره، او په دې د الله نوم اخلئ، ،

**تعریف الجوارح>** د مکلبینو جوارح هغه ټولو ځناورو ته شامل دي.کوم چه پخپلو غاښونو او پنجو سره ښکار کونکی دی.چونکه جوارح د کواسب په معنی کښې دي.او ښکار کول ګټه کول دی.نو دا ټول ځناور ګټه کونکی دی.او دلته د مکلبین معنی سپې نه دي.بلکه ددې معنی مسلطین ده.یعنی تاسو دا جوارح (مزدوری او ګټه کونکی) په ښکار باندې ور پرېږدئ. او دا په ښکار باندې مسلط کړئ.

**د سپي او باز په تعلیم کښې فرق**

| |
|---|
| تَعْلِيمُ الْكَلْبِ أَنْ يَتْرُكَ الْأَكْلَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، او د سپي په تعلیم کښې فرق دا دې.چه دا درې خله خوراك پرېږدي وَتَعْلِيمُ الْبَازِي أَنْ يَرْجِعَ او د باز تعلیم دا دې.چه هغه واپس راشي وَيُجِيبَ إِذَا دَعَوْتَهُ او د ده بلنه قبلوی کله چې ئې راؤبلې |

**تشریح >** بیا د سپي او باز په تعلیم کښې فرق دې.سپي ته به هغه وخت معلم (تعلیم یافته) ونیلې شي.کله چه په ده د تعلیم او تادیب دا اثر ښکاره شي.چه دې ښکار اوکړي.او دا اونه خوري.بلکه مالك دپاره ئې اوساتي.او دا فعل دده نه درې خله صادر شوې وي.او د باز تعلیم دا دې.چه هغه ستا په رابللو باندې راشي.

**دلیله>** مرغیناني رحمه الله په هدایه کښې فرمائیلی دی.چه دا تفصیل د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دې.علامه زیلعي رحمه الله ددې اثر په باره کښې فرمائي.،،لم أجده،،(۱)

**وجه الفرق بین الکلب والبازي>** بیا په سپي او باز کښې فرق څکه شوې دې.چه سپي ته تعلیم ورکول آسان دی.څکه چه دا وهل برداشت کولې شي.او د باز بدن وهل نه برداشت کوي.او دویمه خبره دا ده.چه د تعلیم علامت دا دې.چه ځناور د خپل خوښ څیز د خوراك د عادت او فطرت نه منع شي.او سپې چونکه سړي سره اوسیدونکې (او اموخته) دې.نو په رابللو باندې راتلل به دده د تعلیم علامت نه وي.البته د سپي عادت دې.چه څه ملاؤ شي.هغه اوخوري.او لوټ مار اوکړي.او کله چه دده ښکار اونیولو.او وې نه خوړلو.نو دا به دده د معلم او مؤدب کیدو علامت وي.او باز خو وحشي مارغه دي.کله چه دا تا سره دومره عادت شي.چه په رابللو سره راشي.نو هم دا به د تعلیم علامت شمارلې شي.

**اشتراط الترک ثلاثا>** د سپي د تعلیم شرط دا دې.چه دا درې خله ښکار او نخوري.او دا د صاحبینو رحمهماالله مذهب دي.

---

۱ – قال الزيلعي رحمه الله غريب ثم قال ول البخاری وقال ابن عباس رضی الله عنهما ان اکل الکلب فقد افسده انما امسک علی نفسه والله تعالی یقول تعلمون مما علمکم الله فیضرب ویعلم حتی یترک اخرجه البخاری فی الذبائح

**دلیله** > دلیل دا دی.که ده یو ځل یا دوه ځله خوراك پریخودلی وی.نو په دې کښې اوس هم دیر احتمالات دی.چه کیدې شی د ګیدې د ډکوالی په وجه ئې نه وی خوړلی.البته کله چه ده درې ځله پورې اونخوړله.نو دا د عادت کیدو دلیل دې.او دریو ته په عادت معلومولو کښې او په نورو عذرونو کښې کافی دخل دې.او د موسی او خضرعلیهما السلام په واقعه کښې هم د دریو دخل دې.حضرت موسی ﷺ د دریم ځل په باره کښې فرمائیلی وو. ﴿إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي﴾

## د تعلیم یافته سپی یا باز د زخمی ښکار حکم

| |
|---|
| وَإِذَا أَرْسَلَ كَلْبَهُ الْمُعَلَّمَ أَوْ بَازِيَهُ او هرکله چه ښکاری پریخودو خپل تعلیم یافته سپی، یا تعلیم یافته باز أَوْصَقْرَهُ عَلَى صَيْدٍ اویا خپل شکرې په یو ښکار پسې وَذَكَرَ اسْمَ اللَّهِ تَعَالَى علیه عِنْدَ إِرْسَالِهِ او ده دالله نوم واخستلو.دده د پریخودو په وخت فَأَخَذَ الصَّيْدَ وَجَرَحَهُ فَمَاتَ حَلَّ أَكْلُهُ نو ده ښکار اونیولو.او دا ئې زخمی کړو.نو ښکار مړ شو.نو ددې خوراك جائز دې. |

**تشریح** > کله چه ښکاری بسم الله اووئیله.او خپل معلم سپی یا باز ئې پریخودو.او سپی یا باز ښکار اونیولو .او دا ئې زخمی کړو.او ښکار مړ شو.نو ددې خوراك حلال دې.

**دلائله** > ① دحضرت عدي بن ثابت په حدیث کښې هم د دې مسئله ذکر دې او نبی صلی الله علیه وسلم د حلت فتوی ورکړې وه

② لکه څنګه چه چاړه وغیره د ذبح آله ده.دغه شان سپی او باز هم د ذبح آله ده.او ښکاره ده.چه چاړه د استعمال نه بغیر ذبح کول نه کوی.تردې که چاړه پرته وی.او چیلۍ په دې دپاسه پریوتله.او ددې مرئ کټ شوه. نو دا ذبح نشوه.ځکه چه استعمال او نه موندې شو.دغه شان سپی او باز هم د ښکاری دپاره د ذبح آلې دی.او آله د استعمال نه بغیر کار نه کوی.او په سپی او باز کښې استعمال دا دې.چه دا په ښکار پسې پریږدی.نو ددې په ښکار پسې پریخودل داسې دی.لکه غشې ویشتل، او چاړه چلول،نو لکه څنګه چه د چاړې چلولو په وخت او د غشی ویشتو په وخت تسمیه ضروری ده.دغه شان د سپی او باز پریخودو په وخت هم تسمیه ضروری ده.

## د سپی یا پړانګ د ښکار نه د خوړلو حکم

| |
|---|
| فَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْكَلْبُ أَوِ الْفَهْدُ که د ښکار نه سپی یا پړانګ اوخوړلو لَمْ يُؤْكَلْ نو ښکار به نشی خوړلی وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْبَازِي أُكِلَ او که ددې نه باز اوخوړلو.نو خوړلی به شی |

**حل اللغة** > ① **الکلب:** سپی ② **الفهد:** پړانګ]

**تشریح** > که سپی یا پړانګ د ښکار نه خوراك اوکړو.نو دا ښکار خوړل جائز نه دی.که باز اوخوړلو.نو د هغې خوراك جائز دې.

**دلیله** > چه ددې تفصیل وړاندې تیر شوې دې.او د عدی رضی الله عنه د حدیث نه ددې تائید کیږی.

## د ښکاری سپی د ژوندی ښکار ذبح کولو حکم

| |
|---|
| وَإِنْ أَدْرَكَ الْمُرْسِلُ الصَّيْدَ حَيًّا که لیکونکی ښکار ژوندې اوموندلو وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يُذَكِّيَهُ نو په ده واجب دی.چه دا ذبح کړی فَإِنْ تَرَكَ تَذْكِيَتَهُ حَتَّى مَاتَ لَمْ يُؤْكَلْ اوکه ده ذبح کول پریخودل.تردې چه ښکار مړ شو.نو خوړلی به نشی |

**تشریح** > ښکاری په ښکار باندې خپل تعلیم یافته سپی، یا تعلیم یافته باز پریخودو.یا ئې غشې

اوویشتلو .چه په دې سره ښکار اونیولې شو.نو اوس به کټلې شي.چه هغه ژوندې دې.اوکه مړ دې.که مړ شوې وي.نو د هغې خوراك جائز دې.اوکه ژوندې وي.نو دا به هغه وخت حلال وي.چه دا ذبح کړې شي.ګنې که ذبح نکړې شو.تردې چه مړ شو.نو حلال به نه وي.

**دليله>** ځکه چه اصول دا مقرر دې.که په بدل سره د مقصود حاصلیدو نه مخکښې مخکښې اصل باندې قدرت اوشي.نو د بدل حکم به باطل وي.مثلاً یوکس تیمم اوکړو.او تر اوسه نې مونځ نه دې کړې.چه اوبه باندې قادر شو.نو د تیمم حکم باطل شو.او اودس کول او مونځ کول به واجب وي.دغه شان دلته کښې مقصود د خوراك جواز دې.او ښکاره ده.چه د خوراك د جواز ښکاره کیدل به د ښکار د مرګ نه پس کیږي.ګنې ددې ژوندې خوراك حلال نه دې.او اصول ذکاة اختیاری دې.او بدل ذکاة اضطراری دې.نو په ذکاة اضطراری سره اوس مقصود حاصل شوې نه وو.چه دې په اصل باندې قادر شو.نو ذکاة اضطراری کوم چه بدل دې.هغه به باطل وي.

**د زخم نه بغیر صرف مرئ زورلو سره د ښکار حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ خَنَقَهُ الْكَلْبُ وَلَمْ يَجْرَحْهُ لَمْ يُؤْكَلْ اوکه سپی د ښکار مرئ خفه کړه.او دا نې زخمی نکړله.نو خوړلې به نشی |

**حل اللغة >** ① **الخنق:** مرئ خفه کول، بندول

**تشريح >** اوکه سپی د ښکار په مرئ زور کړو.(مرئ نې خفه کړله) او زخم نې اونه لګولو.نو دا به حلال نه وي.

**دليله>** زخم داسې کیدل شرط دی.چه دهغې نه وینه اوبهیږي.او دا مقصد په خپه ماتولو سره نه حاصلیږي.نو دا داسې شوه.لکه چه مرئ نې خفه کړې وي.او مړکړې نې وي. دا ظاهر روایت دې.

**رواية عن ابي حنيفة>** خو د امام ابوحنیفه رحمه الله نه نقل دی.که سپی د ښکار یو اندام مات کړو.هغه حلال دې.

**دليله>** ځکه چه دلته کښې اګرچه ښکاره زخم نشته.خو پټ زخم شته.او زخم لګول شرط دی.او هغه موجود دې.

**د معلم سپی د ښکار بعض حرام صورتونه**

| |
|---|
| وَإِنْ شَارَكَهُ كَلْبٌ غَيْرُ مُعَلَّمٍ أَوْ كَلْبُ مَجُوسِيٍّ قدوری اوفرمائیل.که شریك شو.دتعلیم یافته سپی سره بې تعلیمه سپې،یا د مجوسی سپې أَوْ كَلْبٌ لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ یا داسې سپې چه هغې باندې د الله تعالی نوم نه دې اخستې شوې لَمْ يُؤْكَلْ نو نه به شی خوړلې |

**تشريح >** که د مسلمان هغه تعلیم یافته سپی سره کوم چه بسم الله وئیلو سره پریخودې شوې دې.بل یو سپې شریك شو.چه یا خو بې تعلیمه دې.یا د مجوسی دې.یا په دې باندې قصداً بسم الله نه ده وئیلې شوې.نو دده دا نیولې شوې ښکار به نه خوړلې کیږي.

**دلائله >** ① د حضرت عدی رضی الله عنه په حدیث کښې ددې صراحت موجود دې.

② او دویمه وجه دا ده.چه کله د حلال او حرام اجتماع اوشي.نو غلبه حرام ته حاصلیږي. داسې ولې کیږي؟ ځکه چه په دې باره کښې حدیث موجود دې.کوم چه په مسند عبدالرزاق کښې په ابن مسعود رضی الله عنه موقوف دې.یاددې وجه احتیاط ده.ځکه چه حرام واجب الترك دې.او حلال جائز الترك دې.نو احتیاط په ترك کښې دې.

واذارمى الرجل سهماالى الصيد اوكله چې غشى اولى يو كس په ښكار پسې فسمى الله تعالى عندالرمى يؤكل او د الله تعالى نوم ئې د غشى چلولو په وخت كښې واخستل اكل مااصابه لمونوغشى چې كوم ښكار ته اورسيږى هغه دې خورى اذاجرحه السهم فمات خو په دې شرط چې غشى زخمى كړى وى او مړ شوې وى وان ادركه حياذكاه او كه ده ژوندې رالاندې كړو ذبح به ئې كړى وان ترك تذكيته اوكه د هغه ذبح كول ئې اونكړل نو نه به ئې خورى

**تشريح ﴿ شروط حلة الصيد بالسهم ﴾** په تير يا ټوپک سره د ښكار كولو درې شرطونه دى ① بسم الله وئيل كه د بسم الله نه بغير ئې غشى چلولې وې نو ښكار حلال نه دې ② چې ښكار زخمى شوې وى دې دپاره چې ذبح اضطرارى شى. او په ذبح اضطرارى دومره كافى ده چې ښكار زخمى شوې وى.

③ چې په لاس كښې لا راغلى نه وى او مړ شوې وى. ځكه كه د مرګ نه وړاندې لاس ته راغلو نو د هغې ذبح كولو ضرورى دى. كه لاس ته د لاتلونه پس ئې هم ذبح نكړل تردې چې مړ شونو ښكار حلال نه دې.

(صفحه ۴۰۳) واذا وقع السهم بالصيد اوكله چې واقع شى غشى په ښكار باندې فتحامل حتى غاب عنه اوهغه مشقت برداشت كړو تردې چې د ښكارى نه پټ شو. ولم يزل فى طلبه او ښكارى د هغه په تلاش كښې لګيدلې وو. حتى اصابه ميتا تردې چې مړ ئې بيا مومى اكل نو خورى دې فان قعد عن طلبه اوكه د هغه د تلاش نه كيناستل ثم اصابه ميتا او بيا ئې هغه مړ بيا موندلو لم يؤكل نه به ئې خورى

**تشريح ﴿** كه يو كس ښكار اوويشتلو او ښكار مشقت اوزغملو او په زخمى حالت كښې ئې ځان پټ كړو. چې د ښكارى نه غائب شو. په صبا باندې بيا دغه ښكار ښكارى ته په داسې حالت كښې ملاو شى چې هغه مړ شوې وى. نو اوس په دې كښې دوه صورتونه دى كه ښكارى مسلسل د ښكار په طلب كښې وو. آرام ئې نه وو كړې. او بيا ورته ملاو شو. نوده دپاره حلال دې. اوكه ده د هغې په تلاش او لټون كښې وقفه كړې وه. مثلاً څه لټون ئې اوكړو اوبيا ئې وئيل چې بس بريګده ئې اود هغې نه پس ئې بيا لټون شروع كړو. اوبيا ئې اوموندلو. نوپه دې صورت كښې د هغې خوراک جائز نه دې.

**دليله ﴿** په اول صورت كښې ځكه جائز دې چې څه دومره وخت په كښې نه دې تير شوې. اوپه دويم صورت كښې ځكه ناجائز دې كيدې شى چې ښكار د غشى په وجه نه وى مړ شوې بلكه په څه بله وجه مړ شوې وى. نو احتياط هم په دې كښې دې چې ښكار دې حلال نشى.

### د راغورځيدلى ښكار حكم

وَاِنْ رَمَىٰ صَيْدًا او كله چه ده ښكار په غشى اوويشتلو فَوَقَعَ فِى الْمَاءِ نو دا ښكار اوبو كښې پريوتلو وكذلك ان وَقَعَ عَلٰى سَطْحٍ او هم دغه شان كم دې چې واقع شى په چت باندې پريوتو اَوْجَبَلٍ يا په غر باندې پريوتو ثُمَّ تَرَدّٰى مِنْهُ اِلَى الْاَرْضِ لَمْ يُؤْكَلْ بيا ددې نه راوزغرځيدو. او په زمكه راپريوتو. نو دا به نشى خورلې ا

**حل اللغة ﴿** ① **سطح**: چت

**تشريح ﴿** د متردیه (راغرځيدلي ښاروى) بيان وړاندې تير شوې دې. په نص د قرآن سره ددې حرمت ثابت دې. نوكه يو ښكار ته غشي اولګيدو. او هغه زخمى شو. او په اوبو كښې پريوتلو. يا په يوچت باندې، يا په غر باندې پريوتو. بيا د هغه ځائې نه راوزغرځيدو. او په زمكه راپريوتو. او دا مړ شو. نودا حرام دې.

**دلائل** ﴿١﴾ ځکه چې دا مترديه دي. په دې کښې احتمال دې.چه دا په غشي مړشوې دي.او دا احتمال هم شته.چه د اوبو په وجه مړ شوې وي.يا د پورته ځائي نه راڅغړيدو سره مړ شوې وي.نو هرکله چه دوه سببونه جمع شو.نو د ذکر شوي اصول مطابق به د حرمت سبب ته ترجيح ورکولې شي.

﴿٢﴾ او د حضرت عدي رضي الله عنه حديث د ابن حاتم طائی نه کوم چه نبی کريم ﷺ ارشاد فرمائيلې وو.هغې کښې هم دا حکم ذکر دې.نبی کريم ﷺ اوفرمائيل.چه کله ستا په غشي لګيدلې ښکار اوبو کښې پريوځي.نو دا مه خوره.[١]ځکه چه دلته کښې دا معلومه نه ده.چه ددې مرګ اوبو کښې پريوتلو سره واقع شوې دې.او که د غشي په وجه.

**د غشي لګيدو نه پس د ښکار په زمکه پريوتل او مړ کيدل**

> وَإِنْ وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ ابْتِدَاءً أُكِلَ او که ښکار د شروع نه په زمکه پريوتلو.نو خوړلې به شي

**تشريح** که ښکار په غشي اولګيدو.او فی الحال زمکې له راغې.نو دا حلال دې.

**دليله** ځکه چه ښکار به په زمکه خامخا غورځيږي.ددې نه خو خلاصې نشته.او په غر وغيره باندې پريوتل، څه لازم او ضروری نه دی.په نورو الفاظو کښې داسې چه د غورزيدو نه بچ کيدل ممکن نه دی.نو ددې اعتبار اونکړې شو.او ښکار ته حلال اووئيلی شو.ګنی د ښکار کولو دروازه به بنده شي.او په غر وغيره باندې غورزيدل داسې څيز دې.چه ددې نه بچ کيدل ممکن دی.په دې وجه دا حرام اوګرځولی شو.

**القاعدة** د تيرشوي تقرير نه يوه قاعده کليه معلومه شوه.چه کله يو څيز کښې د حلت او حرمت دواړو سببونه جمع شي.نو اګرچه د حرمت سبب ته ترجيح ورکولې شي.خو ددې نه مخکښې به د حرمت په سبب باندې غور کولې شي.چه ددې نه بچ کيدل هم ممکن دی.اوکه نه؟ که بچ کيدل ممکن وی.نو ذکر شوي قاعده به جاری کولې شي.يعنی حرمت ته به ترجيح ورکولې شي.اوکه ددې نه بچ کيدل ممکن نه وی.لکه د ښکار په زمکه پريوتل شو.نو دا به کالعدم شمارلې شي.او هرکله چه دا معدوم (نيشت) شمار کړې شو.نو اوس صرف د حلت سبب باقي پاتې شو.نو ښکار به حلال وی.ځکه چه اصول مقرر دې.چه تکليف په اندازه د قدرت وی.د الله تعالی فرمان دې﴿لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ إِلَّا وُسْعَهَا﴾.

**د غشي په پلن والي سره د مړ شوي ښکار حکم**

> وَمَا أَصَابَ الْمِعْرَاضُ بِعَرْضِهِ او هغه ښکار چه هغې ته د سوکې نه بغير غشي اولګيدو.خپل پلن والي (پيړې غاړې) سره لَمْ يُؤْكَلْ نه به شي خوړلې وَإِنْ جَرَحَهُ يُؤْكَلُ اوکه زخمی ئې کړو نو خوړلې به شي

**حل اللغة** ﴿١﴾ **المعراض**: دسوکې نه بغيرغشي ﴿٢﴾ **الجرح**: زخم

چه ددې دواړه غاړې نرئ وی.او منځنئ حصه ئې پيړه وی.عرض: ډنډه،(پلن والې) کومه چه د تيره والي نه علاوه ده. مطلب دا دې.چه ښکار په غشي اولګيدو.او هغه مړ شو.خو هغې ته د غشي منځ اولګيدو.کوم چه ډنډې سره تعبير شوې دې.نو دا شلول او ماتول شو.کټ کول نشو.په دې وجه به دا حلال ښکار نه وی.البته که غشي دا زخمی کړې وی.نو خوړلې به شي.خو دلته د زخمی کولو نه مراد شلول، ماتول نه دی.بلکه مراد دا دې.چه د غشي سوکه ده.چه تيره ده.که دا سوکه ښکار ته اولګيده.او

---

[١] – اخارجه البخاری فی الذبائح باب ٨ ومسلم فی الصيد رقم ٧ والترمذی فی الصيد سباب ٥ والنسائي فی الصيد باب ١٨ والدارمی فی سننه ٢٩٤\١٤)رقم ٩٠)

هغه ني زخمي كړو.او مړ ئې كړو. نو ښكار به حلال وي.اوكه ډنډې زخمي كړو.نو حلال به نه وي.[والبسط فى الشامى ص۳۰۴ج۵]

**دليله>** دا مضمون په حديث د عدى بن حاتمﷺ سره ثابتيږي.د نبى كريمﷺ ارشاد مبارك دي.ما أَصَابَ بِحَدِّهِ فَكُلْ، وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ فَلَا تَأْكُلْ [1] كه غشي ښكار ته د سوكې د طرفه اولګيدو.نو خورئ.كه د غشى ډنډه اولګيده.نو مه خورئ.او د مخكښې نه مراد ماتول نه دى. بلكه زخم او پريكول دى.چه دا نوكدار (او د سوكې والا) څيز سره حاصليږي.

**په ټوپك سره د لګيدلى ښكار حكم**

| |
|---|
| وَلَا يُؤْكَلُ مَا أَصَابَتْهُ الْبُنْدُقَةُ اذامَاتَ بِهَا او خوړلې به نشي.كوم (ښكار) ته چه مرزكې (د ټوپك ګولۍ) اولګيده.او هغه په دې سره مړ شو |

**تشريح >** غله:ګولۍ، مرزكې كوم چه ټوپك كښې چليږي.اوهم دغه شان چاره او د ټوپك ګولۍ:كټ كول نه كوي.بلكه شلول او ماتول كوي.نو كله چه ددې په وجه ښكار مړ شو.نو خوړلې به نشي.او دا ټول د معراض (بغيرسوكى والا غشى) په درجه كښې دى.

**التفريعات>** ① ښكار ني په كانړي اوويشتو.او مړ ئې كړو.نو دا به حلال نه وي.د ذكر شوى دليل په وجه.

② كانړې درونډ وو.او په هغې كښې تيره غاړه هم شته.په هغې ئې ښكار اوويشتلو.او ښكار زخمي شو .نو اوس به نشي خوړلې.ځكه چه اوس په دې كښې دا احتمال شته.چه كانړي ښكار پخپلې تيره جانې نه دې زخمي كړې بلكه په بوج ئې مړ كړې دې.

③ كانړې سپك وي.او په دې كښې تيره جانې (غاړه) وي.او ددې په ويشتلو سره ښكار مړ شو.نو ښكار حلال دې.ځكه چه دلته دا خبره متعين ده.چه د زخم په وجه مرګ واقع شوې دې.

④ كانړې سپك دې.چه دا ئې د غشى پشان اوګد ساز كړې دې.او په دې كښې تيره غاړه ده.نو ددې ښكار به هم حلال وي.ځكه چه دا كانړې به ښكار د زخم كولو په وجه مړ كوي.پخپل بوج سره به ئې نه مړ كوي.

**په غشي ويشتلو سره د ښكار څه حصه كټ شوه نو ددې ښكار حكم**

| |
|---|
| وَإِذَا رَمٰى صَيْدًا اوكله چه ده ښكار په غشى اوويشتلو فَقَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ أُكِلَ الصَّيْدُ نو په دې سره دده يو اندام كټ شو.نو ښكار به خوړلې شي. |

**تشريح >** كه ښكار ئې په غشي اوويشتلو.چه په دې سره د ښكار د بدن څه حصه كټ شوه.او پريوتله.نو اوس څه حكم دې؟ نو وې فرمائيل.چه ښكار خو بالاتفاق حلال دې.

**دليله>** ځكه چه هركله اندام كټ شو.نو زخم كوم چه د حلت شرط وو.اوموندې شو.نو ښكار حلال شو.

| |
|---|
| وَلَمْ يُؤْكَلِ الْعُضْوُ او اندام به نشي خوړلې. |

[1] – من حديث عدى بن حاتمﷺ اخرجه البخارى فى البيوع باب ۳ ومسلم فى الصيد ر٤م ۲ وابوداود فى الأضاحى باب ۲۲ والترمذى فى الصيد باب ۷ والنسائى فى الصيد باب ۷ وابن ماجه فى الصيد باب ۲ والدارمى فى الصيد باب ٤ واحمد فى المسند (٤\٢٥٦)_

**تشریح >** اوس پاتې شوه مسئله د هغه ټکړې کومه چه کټ شوې ده.او پریوتلې ده.نو ددې خوراك حرام دې.(١)

**دلیله >** دلیل دا دې چه(المطلق إذا أطلق مراد به الفرد الکامل) او د ژوندی فرد کامل دا دې.چه په ده کښې حقیقتاً او حکماً ژوند وی.د کوم ښکار نه چه اندام جدا کړې شوې دې.نو په وخت د جدا کولو په دې کښې حقیقی ژوند موجود دې.دا حقیقی ژوند دې.او ددې اندام د جدا کیدو نه پس که دا ژوندې پاتې کیدې شی.نو دا دده حکمی ژوند دې.هرکله چه دا تقریر په ذهن کښې کیناستو.نو اوس په دلیل پوهه شې:حدیث کښې راغلی دی.(ما أبین من الحی فهو میت) (٢)کوم اندام چه د ژوندی نه جدا کړې شوې وی.او کټ کړې شوې وی.هغه مړ دې.اومړ حرام وی.نو نبی کریم ﷺ دلته کښې مطلق حیّ (ژوندې) ارشاد فرمائیلې دې.نو ددې نه به فرد کامل مراد وی.او فرد کامل دا دې.کوم چه مونږ ذکرکړې دې.چه په ښکار کښې فی الحال ژوند شته.او روستو ژوندې پاتې کیدې شی.رومبې ژوند حقیقی او دویم حکمی دې.نو هرکله چه د ژوندی د بدن ټکړه حرام ده.نو دا اندام به هم حرام وی.ځکه چه مبان منه اوس هم ژوندې دې.او روستو هم دده د ژوند احتمال شته.اوهم دا وجه ده.که ددې احتمال وی.او په داسې حالت کښې اوبو کښې پریوځی.نو دا به حرام وی.او داسې به ونیلې شی.چه اوبو دا هلاك کړې دې.نو معلومه شوه.چه شریعت د داسې ژوند اعتبار کړې دې.او اوس ئې دا ژوندې شمارکړې دې.او د ژوندی اندام په نص د حدیث سره حرام دې.

| |
|---|
| وَاِنْ قَطَعَهُ اَثْلَاثًا او که دا ئې درې ټکړې کړو وَالْاَكْثَرُ مِمَّا يَلِيَ الْعَجُزَ او زیات هغه وی کوم چې د کوناټی سره نزدې وی اُكِلَ الْجَمِيْعُ نو ټول به خورلې شی وَاِنْ كَانَ الْاَكْثَرُ او که زیاته حصه هغه وه مِمَّا يَلِيَ الرَّأْسَ کوم چې سر ته نزدې وی اُكِلَ الْاَكْثَرُ نو زیات به خورلې شی. |

**تشریح >** که ښکار یې درې حصې کړل په داسې طریقه چې یوه حصه کمه وی او یوه حصه زیاته وی مثلاً یو طرف ته یوه حصه وی او بل طرف ته دوه حصې وی یعنی د ښکار لاس او پښې نه وی کټ شوې بکله بدن دوه ټکړې شوې اوس که چرته د کوناټی طرف ته دوه حصې د بدن وې او سر طرف ته یوه حصه وه نو د کوناټی والا حصه هم حلاله ده او د سره حصه هم حلاله ده.لکه چې داسې ذبح شوې دې چې د سر سره د بدن هم څه حصه کټ شوې ده.او کله چې د بدن نه س رجدا وی نو بدن او سر دواړه حلال وی او که د سر طرف ته د نیمې نه زیاته حصه کټ شوې وی اود کوناټو طرف ته د نیمې نه کمه حصه وی.نو داسې به ګنړلې شی چې دا د ژوندې ځناور نه یو اندام کټ شوې دې.او وړاندې مسئله تیره شوې ده که د ژوندی ځناور نه یو اندام کټ کړې شی نوهغه حصه حلاله نه ده نو دغه شان دلته د کوناټی حصه هم حلاله نه ده.

**د مجوسی، مرتد، او بت پرست د ښکار حکم**

| |
|---|
| وَلَا يُؤْكَلُ صَيْدُ الْمَجُوسِيِّ وَالْمُرْتَدِّ وَالْوَثَنِيِّ او د مجوسی او بت پرست ښکار به نشی خورلې |

**تشریح >** په ښکار کښې ذکاة اضطراری داسې دې.لکه څنګه چه په غیرښکار کښې ذکاة اختیاری،نو

---

(١) **مسلک الشافعي:**-د امام شافعی رحمه الله په مذهب کښې تفصیل دې.که ښکار ددې نه پس ژوندې وی. او مړ نشی.نو حلال نه دې.او که مرشی.نو دا اندام حلال دې.لکه څنګه چه ښکار حلال دې.رومبی (کټ شوی اندام) په مبان او دویم (ښکار) په مبان منه سره تعبیر کړې شوې دې.

(٢) من حدیث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه ابن ماجه فی سننه فی الصیدباب ٨ رقم ٣٢١٦.

کوم کس چه د ذکاة اختیاری اهل نه وی.هغه به د ښکار کولو هم اهل نه وی.او کوم کس چه د ذکاة اختیاری اهل وی.نو هغه به د ذکاة اضطراری او ښکار کولو اهل هم وی.ددې تفصیل نه معلومه شوه.چه آتش پرست او بت پرست د ذبح اهل نه دی.نو دوی به د ذکاة اضطراری اهل هم نه وی.لکه څنګه چه د دوی ذبیحه حرام وی.د هغوی ویشتلې شوې ښکار به هم حرام وی.او د نصرانی او یهودی ذبیحه حلال ده.ددوی ویشتلې شوې ښکار به هم حلال وی.

**ښکار کښې د بچ کیدو قوت نشته چه دویم کس په غشی اوویشتلو نو ددې د ملکیت مسئله**

| |
|---|
| وَمَنْ رَمَى صَيْدًا او چا چه ښکار په غشی اوویشتلو فَأَصَابَهُ وَلَمْ يُثْخِنْهُ وَلَمْ يُخْرِجْهُ عَنْ حَيِّزِ الِامْتِنَاعِ او هغه په دې اولګیدو.او هغه ئې سخت زخمی نکړو.او هغه ئې د د خان بچ کولو د قوت نه خارج نکړو فَرَمَاهُ آخَرُ فَقَتَلَهُ نو دویم سړی دا په غشی اوویشتلو.نو دا ئې مړ کړو فَهُوَ لِلثَّانِي وَيُؤْكَلُ نو ښکار به د دویم کس وی.او خوړلې به شی؛ |

**تشریح** ﴿ یو سړی ښکار په غشی اوویشتلو.او هغه اولګیدو.خو په وحشی ځناور کښې چه د خپل ځان بچ کولو کوم قوت وی.هغه په ده کښې موجود دې.چه هغه خپل ځان بچ کولې شی.چه بل کس دا(ښکار) په غشی اوویشتلو. او دا ئې هلاك کړو.اوس دلته کښې دوه سوالونه جوړ شو. ① دا حلال دې اوکه نه؟ ② ددې مالك به څوك وی.نو جواب ئې ورکړو.چه ښکارحلال دې.څکه چه دا اوس د ښکار کیدو نه خارج شوې ئه وو.چه ددې نه وړاندې دویم کس دا په غشی اوویشتلو.نو غشی باندې ښکار اولګیدو.چه دلته کښې ذکاة اضطراری کافی کیږی.او ددې مالك دویم کس دې.څکه چه نیونکې او په دې باندې قبضه کونکې دویم سړې دې.

**دلیله** ﴿ په حدیث کښې دی.الصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَ(١) چه ښکار د هغه کس وی.څوك چه دا اونسی.او نیونکې دویم کس دې.ذکر شوې حدیث غریب دې.چه ددې هیڅ اصل نشته.

**د ړومبی غشی نه د بچ کیدو احتمال نه پس د بل په غشی سره مړکیدل او ددې حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ أَثْخَنَهُ او که ړومبی دا سخت زخمی کړو فَرَمَاهُ الثَّانِي فَقَتَلَهُ نو دویم دا په غشی اوویشتلو.نو دا ئې مړکړو فَهُوَ لِلْأَوَّلِ وَلَمْ يُؤْكَلْ نوهغه د اول دپاره ده او نه به شی خوړلې |

**حل اللغة** ﴿ ① **الثخن:** سخت زخم ② **الرمي:** ویشتل]

**تشریح** ﴿ که ړومبی غشی دا سخت زخمی کړې وی.چه په دې سره ئې د ځان بچکیدو نه اوښکلې وی.بیا دویم کس غشې اوویشتلو.او دا ئې هلاك کړو.نو اوس څه حکم دې؟ نو وې فرمائیل.چه دلته کښې درې حکمونه دی① ښکار د ړومبی کس ملکیت اوګرځولې شی. ② دا ښکار به نشی خوړلې. ③ دویم به ددې د قیمت ضامن وی.

**دلیله** ﴿ د ړومبی سړی ملکیت به په دې وجه وی.چه هغه دا د بچکیدو (ژوند) نه اوښکلې دې.او خوړلې به څکه نشی.چه دې کښې احتمال دې.چه په دویم غشی سره مړ شوې وی.او په دویم غشی سره مرګ ذکاة نه دې.څکه چه ړومبی غشی سره هرکله ښکار د صیدیت (ښکار کیدو) نه خارج شو.نو ددې ذبح کول لازم شو.او په ذبح باندې قدرت موجود دې.چه دویم په دې حالت کښې غشې

(١) اخرجه الزیلعی رحمه الله ثم نقل عن سعیدبن زید قال قال رسول الله ﷺ من احی ارضافهی له وعزاه الی کتاب الذکرة لابی عبدالله محمد بن حمدون (نصب : ٥\ ٣٩) ١٢

او ویشتلو.چه اوس دا ښکار نه دي.نو حرام شو.په ړومبی صورت کښې دا د ښکار کیدو نه خارج شوې نه وو.په دې وجه دا دویم غشې ذکاة اضطراری وو.دا په دواړو مسئلو کښې وجه د فرق ده.خو د خوراك حرمت هغه وخت دې.کله چه ړومبې غشې په داسې طریقه لګیدلې وی.چه ښکار بچ کیدې شی.او ژوندې پاتې کیدې شی.نو دغه وخت به ددې مرګ دویم غشی طرف ته منسوب کولې شی.

**د ښکار بچ کیدو احتمال کښې د دویم کس د ضامن کیدو حکم**

| |
|---|
| وَالثَّانِي ضَامِنٌ بِقِيمَتِهِ لِلْأَوَّلِ غَيْرَ مَا نَقَصَتْهُ جِرَاحَتُهُ او دویم ضامن دې.د ښکار د قیمت د اول دپاره، علاوه ددې نه کوم چه ښکار ته نقصان رسیدلې دې،د ړومبی زخم |

**تشریح** دا د ذکر شوی صورت دریم حکم دې.چه دویم کس چا چه ښکار په غشی ویشتلې دې.دا حرام کړې دې.هغه به د ړومبی دپاره د ښکار د قیمت ضامن وی.

**دلیله** ځکه چه ښکار د ړومبی مملوك شوې وو.کله چه ده داسې غشې ویشتلې وو.چه هغه د بچکیدو د امکان نه خارج شو.خو په دویم کس به د ښکار پوره قیمت واجب نه وی.بلکه د ړومبی زخم لګیدو په وجه چه کوم ددې قیمت کم شوې دې.هغه نقصان به اوښکلې شی.او باقی قیمت به واجب وی.مثلاً د زخم لګیدو نه مخکښې ددې قیمت پنځه روپۍ وو.او د زخمی کیدو په وجه ددې څلور روپۍ پاتې شو.نو هم دا څلور روپۍ به واجب وی.بیا دا سوال باقی پاتې شو.چه د هلاکولو په ورځ د ښکار قیمت پنځه روپۍ وو.او د اداکولو په ورځ شپږ روپۍ دې.نو د کوم قیمت اعتبار به کولې شی؟ نو وې فرمائیل.چه د هلاکولو د ورځې د قیمت اعتبار به کولې شی.

**د ماکول اللحم او غیر ماکول اللحم ښکار حکم**

| |
|---|
| وَيَجُوزُ اصْطِيَادُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الْحَيَوَانِ وَمَا لَا يُؤْكَلُ |

**تشریح** ښکار د ماکول اللحم او غیر ماکول اللحم دواړو جائز دې.

**دلیله** ځکه چه ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ مطلق دې.او لفظ د صید(ښکار) ماکول اللحم سره خاص نه دې.

**د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده**

| |
|---|
| وَذَبِيحَةُ الْمُسْلِمِ وَالْكِتَابِيِّ حَلَالٌ او د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده |

**تشریح** د مسلمان او کتابی ذبیحه حلال ده.

**دلیله** په قرآن پاك کښې الله تعالی فرمائیلی دی «وَطَعَامُ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ حِلٌّ لَكُمْ» چې ستاسو دپاره د اهل کتابو ذبیحه حلاله ده.

اوپه آیت کښې طعام نه مراد ذبیحه ده.که ذبح کونکې سړې وی.اوکه ښځه وی.بچې وی.او که لیونې وی.تول جائز دی

**د مجوسی د ذبیحې حکم**

| |
|---|
| وَلَا تُؤْكَلُ ذَبِيحَةُ الْمَجُوسِيِّ) او د مجوسی ذبیحه به نشی خوړلې شو،وَالْمُرْتَدِّ او خوړلې به نشی د مرتد ذبیحه، |

**تشریح** آتش پرست چونکه توحید پریخودونکي دی.نو د هغه ذبیحه به حلال نه وی.او ددې حدیث نه هم دا خبره ثابته ده.ددې حاصل دا دې.چه لکه څنګه کتابیانو ته د جزیة ادا کولو په وجه امان ملاویږی.هغوی ته به هم ملاویږی.فرق دا دې.چه د کتابیانو ښځو سره نکاح جائز ده.د مجوسی ښځو

سره جائز نه ده.او د کتابیانو ذبیحه حلال ده.د مجوسي نه ده.

**دليل عدم صحة ذبح المرتد>** مرتد به پخپل حال باقی نشی ساتلې.نو د هغه هیڅ دین نشته.نو د هغه ذبیحه هم حلال نه ده.

| وَالْوَثَنِي او خورلې به نشي د بت پرست ذبيحه ځکه چه هغه د دين اعتقاد نه لري. |
|---|

**تشريح >** البته که کتابی دویم دین اختیار کړی.نو هغه به په هغه دین قائم ساتلې شی.کوم طرف ته چه اوختې دې.اوس به کتلې شی.چه د ذبح په وخت هغه په کوم دین دې.که په داسې دین باندې دې.چه د هغه ذبیحه حلال ده.نو د هغه ذبیحه به حلال وی.اوکه په داسې دین باندې دې.چه د هغه ذبیحه حلال نه ده.نو دهغه ذبیحه به حلال نه وی.مثلاً یو یهودی وو.نصرانی شو.نو دهغه ذبیحه حلال ده.اوکه مجوسی (آتش پرست) شو.نو د هغه ذبیحه به حلال نه وی.خلاصه د کلام دا چه په وخت د ذبح هغه په کوم حال دې.د هغه حال اعتبار به کولې شی.د بت پرستو ذبیحه هم حلال نه ده.ځکه چه د هغوی هیڅ دین نشته.

**په حالت د احرام یا په حرم کښې د ښکار ذبح کولو حکم**

| وَالْمُحْرِمِ او خورلې به نشي د محرم ذبيحه، |
|---|

**تشريح >** په حرم شریف کښې د چیلئ وغیره ذبح جائز ده.د ښکار ذبح کول جائز نه دی.دغه شان محرم چیلئ وغیره ذبح کولې شی.ښکار نشی ذبح کولې.که محرم په حرم کښې وی.اوکه په جل کښې وی.

**دليله>** ذکاة یو مشروع فعل دې.او په حرم کښې ښکار ذبح کول، یا د محرم ښکار ذبح کول ممنوع فعل دې.حرام دې.نو دا ذبح به ذکاة نه وی.

**د قصداً بسم الله پريښودونکي د ذبيحې حکم**

| وَإِنْ تَرَكَ الذَّابِحُ التَّسْمِيَةَ عَمْدًا اوکه ذبح کونکی قصداً تسمیه (بسم الله) پریخودله فَالذَّبِيحَةُ مَيْتَةٌ نو ذبیحه مرداره ده لَا تُؤْكَلُ خورلې به نشی وَإِنْ تَرَكَهَا نَاسِيًا اوکه تسمیه ئې په هیره پریخودله أُكِلَ نو خورلې به شی |
|---|

**تشريح >** په ذبیحه باندې تسمیه ونیل ضروری دی. ([1])که په هیره ئې پریږدی.نو ذبیحه حلال ده.اوکه قصداً ئې پریږدی.نو ذبیحه مرداره او حرام ده.دا به نه خورلې کیږی.صحابه کرام رضي الله عنهم او تابعین رحمهم الله ټول متفق دی.چه په کوم باندې قصداً تسمیه پریخودې شوې وی. نو هغه حرام دې.

**دلائلهم>** دا درې دلیلونه دی: ① **کتاب الله:** د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ﴾ یعنی،، په کومو ذبیحو چه تسمیه اونه ونیلې شوه.هغه مه خورئ. ﴿لَا تَأْكُلُوا﴾ د نهی صیغه ده.چه دا تحریم دپاره ده.معلومه شوه.چه د قصداً تسمیه پریخودې شوی خوراك حرام دې.

② **اجماع دامت:** یعنی د امام شافعی رحمه الله نه وړاندې ټول امت ددې په حرمت باندې متفق دې.

③ حضرت عدی ابن حاتم رضي الله عنه د رسول الله ﷺ نه تپوس اوکړو.چه دیر خل زه پخپل ښکار باندې خپل سپې پریږدم.نو زما سپی سره بل سپې شریکیږی.اوس دا معلومه نه ده.چه کوم یو سپی ښکار نیولې

[1]) **مسلك الائمة:**- امام مالك رحمه الله فرمائی.که په هیره یا قصد سره ئې تسمیه پریخودې وی.نو ذبیحه به حلال نه وی.او امام شافعی رحمه الله بالکل ددې عکس فرمائی.یعنی که قصداً ئې پریږدی او که په هیره، دواړو صورتونو کښې ذبیحه حلال ده.

دي.نو آيا زه دا خورم؟ نو رسول الله ﷺ اوفرمائيل.چه تا پخپل سپى باندي تسميه وئيلي ده.په دويم دي نه ده وئيلي.يعنى ددي خوراك حرام دي .اود حرمت علت تسميه پريخودل دى.معلومه شوه.چه قصداً تسميه پريخودل د ذبيحي د حرمت موجب دى.

## د ذبح مقام

| |
|---|
| وَالذَّبْحُ بَيْنَ الْحَلْقِ وَاللَّبَّةِ اوفرمائيل امام قدورى رحمه الله او ذبح د حلق او سيني په منځ كښي ده |

**حل اللغة** ﴿ ① **اللبة:** سينه

**تشريح** ﴿ دا مسئله وراندي تيره شوي ده. دلته صرف دومره خبره د تشريح قابل ده. چه د حلق هره يوه حصه وى.كه پورتني وى او كه د منځ يا لاندينى وى.كه د هر ځائي نه ذبح كړي شي. برابر ده.

**دليله** ﴿ د نبى كريم ﷺ حديث دي الذَّكَاةُ مَا بَيْنَ اللَّبَّةِ وَاللَّحْيَيْنِ(١) چه ذكاة (ذبح) د سيني او دواړو ژامو په منځ كښي دي.

## په ذبح كښي كوم كوم رګونه كټ كول ضروري دي؟

| |
|---|
| وَالْعُرُوقُ الَّتِي تُقْطَعُ فِي الذَّكَاةِ أَرْبَعَةٌ: امام قدورى رحمه الله اوفرمائيل.او هغه رګونه كوم چه ذبح كښي كټ كولي شى.څلور دى. الْحُلْقُومُ، وَالْمَرِيءُ، وَالْوَدَجَانِ )حلقوم (د ساه نالئ)، نرخره (د خوراك داخليدو ترتړو) او دواړه اوداج (د سټ دننه طرف ته دوه رګونه) فَإِنْ قَطَعَهَا حَلَّ الْأَكْلُ اوكه دا ئي كټ كړل نو خوراک ئي جائز شو. |

**حل اللغة** ﴿ په ذبح كښي چه كوم رګونه كټ كولي شي.هغه څلور دي① حلقوم ② مرئ ③ اوداج.ـ حلقوم ددي اصل حلق دي.په دي كښي واو او ميم زيات كړي شوي دي.نوحلقوم شو.د ساه نالئ ته حلقوم وائي.② مرئ: هغه نالئ كومه كښي چه خوراك او اوبه ځي. ودجان: د ودج تثنيه ده.دا د سټ په دننه حصه كښي دوه رګونه وى.او حلقوم او مرئ ددي دواړو په منځ كښي وى.اردو كښي مرئ ته نرخره (او په پښتو كښي ورته ترتړو) وائي.بهرحال دا څلور رګونه دى.چه په ذبح كښي كټ كولي شي.نوچي دا رګونه ئي كټ كړل خوراک ئي جائز شو(٢)

**تشريح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.

**دليله** ﴿ دليل دا حديث دي (أَفْرِ الْأَوْدَاجَ بِمَا شِئْتَ(٣)، د نبى كريم ﷺ د فرمان په وجه ،، چه په كوم څيز سره غواړي رګونه كټ كړه،، او دا د اوداج جمع ده.چه ددي اقل فرد دري دى.نو په دي كښي نرخره او ودجان (د سټ دننه دوه رګونه) داخل دى.او چونكه دا دري واړه د حلقوم كټ كولو نه بغير نشى كټ كيدي.نو په طريقه د اقتضاء حلقوم هم داخل شو.او په دي طريقه ټول رګونه څلور شو.

---

(١) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه أخرجه الدارقطنى فى سننه وابوداو فى الأضاحى باب ١٥ رقم ٢٨٢٤ والنسائى فى الضحايا رقم ٤٠٩٩ وابن ماجه فى الذبائح باب ٥ رقم ٣١٧٧ـ

(٢) **مسلک الشافعي:**- امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه د حلقوم او مرئ په كټ كولو باندي اكتفاء جائز ده.

(٣) – غربه الزيلعي رحمه الله ثم قال وروي ابن أبي شيبه في مصنفه....عن رافع بن خديج رضي الله عنه قال سألت رسول عن الذبح بالسطية، فقال كل مافري الأفري الأوداج ، الاسنااوظفراً (ذكره الهيثمي في مجمع الزوائد(٣٤/٤) وعزاه للطبراني (نصب : ٤/ ٤٧٢) –

وَإِنْ قَطَعَ أَكْثَرَهَا اوکه په دې کښې ئې اکثر کټ کړل. فَكَذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله. (۱) نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز هم دغه شان ده وَقَالَا .او صاحبين رحمهما الله فرمائي. لَا بُدَّ مِنْ قَطْعِ الْحُلْقُومِ وَالْمَرِيءِ وَأَحَدِ الْوَدَجَيْنِ چه په حلقوم او مرئ او دوارو رګونو کښې د يو کټ کول ضروري دی.

**تشريح** په دې څلورو کښې دريو باندې اکتفاء جائز ده.بيا دا درې کوم کوم دی.نوامام صاحب رحمه الله فرمائي. (لاعلى التعيين) چه کوم درې هم کټ کړې شو. نو ذبيحه به حلال وی.

**دليل ابي حنيفة** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې چه په ډيرو احکامو کښې اکثر د کل قائم مقام وی او کوم درې چه ده کټ کړی دی ،نو ده په څلورو کښې اکثر کټ کړل او کوم چه مقصود دې هغه به د دريو په کټ کولو سره حاصل شی او دا (مقصود) بهيدونکې وينه اوبشکل دی

**مسلک الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه حلقوم او مرئ کټ کول ضروري دی.البته ودجان کښې که په يو باندې اکتفاء اوکړې شي.نو غوره ده.

**توضيح صاحب الهداية** مرغيناني رحمه الله په هدايه کښې فرمائي.چه امام قدوري رحمه الله پخپل مختصر کښې هم دا اختلاف ذکرکړې دې. خو د مشائخو په کتابونوکښې مشهورتيا سره دا منقول دې.چه په دې کښې صرف د امام صاحب او د امام ابويوسف رحمهما الله اختلاف دی.يعني امام ابويوسف صاحب رحمه الله په دريو باندې اکتفاء ته جائز وائي.خو په دې شرط چه په ودجان کښې يو باندې اکتفاء اوکړې شي.او باقي تول کټ کړې شي.او امام صاحب رحمه الله مطلقاً دريو باندې اکتفاء جائز ګرخوی.يعني په دې کښې د امام محمد رحمه الله قول ذکر نه دې.

**الخلاصة** ددې تفصيل خلاصه دا ده.چه د امام صاحب رحمه الله مذهب دا دې.چه په څلورو وارو رګونوکښې د څه تعين نه بغير کوم درې هم چه کټ کړې شي.نو صحيح ده.او ذبيحه حلال ده.او د امام ابويوسف رحمه الله رومبې قول هم دا دې.بيا امام ابويوسف رحمه الله هغه قول اختيار کړو.کوم چه ذکر شو.يعني حلقوم او مرئ او په دوو اوداجو کښې د يو کټ کول ضروري دی.

**دليل ابي يوسف** د امام ابويوسف رحمه الله دليل دې.ددې خلاصه دا ده.چه حلقوم او نرخره به د يو بل نيابت نه کوی.څکه چه دې دوارو‌کښې يوه د خوراك او اوبو نالئ ده.او بله د ساه اخستلو ده.خو په دوارو اوداجو کښې وينه ده.نوکه په يو باندې اکتفاء اوکړې شي.نو جائز ده.څکه چه وينه به اوس هم اوخی.صرف دومره خبره ده.چه لږ وخت روستو به اوخی.او د دوارو کټ کولو په صورت کښې زر اوخی.

**د بانړس په پوستکی،بکره، او د غابونو او نوکانو والا څيز سره د ذبح کولو حکم**

وَيَجُوزُ الذَّبْحُ او ذبح جائز ده بِاللِّيطَةِ وَالْمَرْوَةِ د بانړس په پوستکی (چه دا تيره وی) او بکرې (سپين کانړې چه دا تيره وی) سره وَبِكُلِّ شَيْءٍ أَنْهَرَ الدَّمَ او په هر داسې څيز سره چه دا وينه اوبهيه وی إِلَّا السِّنَّ الْقَائِمَ وَالظُّفُرَ الْقَائِمَ علاوه د لګيدلی غابښ او لګيدلی نوك

**حل اللغة** ① **الليطة**: دبانړس پوستکي ② **ميتة**: مرداره ]

**تشريح** هر هغه څيز کوم چه وينه اوبهيه وی.هغې سره ذبح جائز ده.که هغه د بانړس پوستکې وی.او

---

(۱) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في رد المحتار (٥٢٠٧) وخلاصة الفتاوى (٣٠٦\٤) والبحر (٣١٠\٨)-

که کانړي وي.چه دا تیره وي.البته هغه نوك او غابن کوم چه لګیدلي دي.هغې سره ذبح جائز نه ده.بلکه ذبیحه به مرداره وي.

**دليله** خکه چه دې صورت کښې به ځاروې بوج سره مړ کيږي.نو د منخنقه (مرئ خفه کړې شوې) په درجه کښې به وي.

**اصول محمد** د امام محمد رحمه الله عادت دا دې.چه چرته هغوی ته نص ملاو نشي.نو احتياط نه کار اخلي.او دغه وخت د حرمت په صورت کښې ،،يکره،، يا ،،لم يؤكل،، وائي.او د حلت په صورت کښې ،،لا باس به،، وائي.خو د لګيدلي نوك او غابن په باره کښې دوی په جامع صغير کښې دا صراحت کړې دې.چه ذبيحه مرداره ده.چه دا ددې خبرې دليل دې.چه هغوی به په دې باره کښې نص نه وی موندلې.

**د ذبح مستحبات**

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يُحِدَّ الذَّابِحُ شَفْرَتَهُ او مستحب دی.چه ذبحه کونکې خپله چاړه تیزه کړی |

**حل اللغة** ① شفرة: چاړه

**تشريح** چاړه تيره کول مستحب دی.او مستحب دی.چه د ځاروی سملولو نه وړاندې چاړه تيره کړی.

**دليله** نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمائيلي دی إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى كَتَبَ الْإِحْسَانَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ فَإِذَا قَتَلْتُمْ فَأَحْسِنُوا الْقِتْلَةَ وَإِذَا ذَبَحْتُمْ فَأَحْسِنُوا الذِّبْحَةَ وَلْيُحِدَّ أَحَدُكُمْ شَفْرَتَهُ وَلْيُرِحْ ذَبِيحَتَهُ[1] ( بې شکه الله تعالى په هر څيز باندې احسان کول فرض کړې دې نو کله چه تاسو قتلوئ نو په ښه طريقه قتلوئ او کله چه تاسو ذبح کوئ نو په ښه طريقه ذبحه کوئ،، او پکاره ده.چه تاسو کښې هر يوکس چاړه تيره کړئ ،او خپلې ذبيحې ته آرام اورسوئ.

**د ذبح مکروهات**

| |
|---|
| وَمَنْ بَلَغَ بِالسِّكِّينِ النُّخَاعَ او چا چه چاړه حرام مغز پورې اورسوله أَوْ قَطَعَ الرَّأْسَ يا ئې سر کټ کړو كُرِهَ ذَلِكَ لَهُ نو دا دده دپاره مکروه دی وَتُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ او دده ذبيحه به خوړلې شي |

**حل اللغة** ① السكين: چاړه ② نخاع: حرام مغز

**تشريح** هر هغه کار چه ددې په ذبحه کښې ضرورت نه وی.او ددې نه مذبوح ته تکليف اورسيږي.هغه مکروه دې.خو ذبيحه به حلال وی.چونکه دلته خرابی په نفس ذبح کښې نه ده.بلکه د يو زياتی معنی په وجه خرابي راغلې ده.او دا بې وجه (بې فائدې) تکليف ورکول دی.نو دا به د ذبيحه حرمت نه ثابتوی.بلکه ذبيحه حلال ده.البته دا فعل مکروه دې.

هغه کوم افعال دی.چه مکروه دی؟ ① حرام مغز پورې د ذبح کولو په وخت کټ کول. ② سر راښکل چه د مذبوح د ذبح کولو ځانې ښکاره شي. ③ د يخيدو نه وړاندې سټ جدا کړې شي. ④ خپې نيول او د ذبح کولو ځانې پورې راوستل. ⑤د يخيدو(اوحرکت ختميدو) نه وړاندې څرمن اوښکل.ـ رومبی درې واړه د حرام مغز په تفسير کښې بيان کړې شوی دی.

[1] – من حديث شدادبن اوس رضي الله عنه اخرجه مسلم في الصيدرقم ۵۷ وابوداودفي الأضاحي باب ۱۱ رقم ۲۸۱۵والترمذي في الديات باب ۱۴والنسائي في الضحاياباب ۲۲ وابن في الذبائح باب ۳ والدارمي في الأضاحي باب ۱۰–

**دليله** > نبی کریم صلی الله علیه وسلم په چیلۍ کښې حرام مغز پورې رسیدل منع کړی دی (۱)

**د ستې د طرفه د چیلۍ ذبح کولو حکم**

| |
|---|
| وَإِنْ ذَبَحَ الشَّاةَ او که چیلۍ ئې ذبح کړله مِنْ قَفَاهَا ددې د ستې نه فَإِنْ بَقِيَتْ حَيَّةً نو که هغه ژوندۍ باقي پاتې شوه. حَتّٰى قَطَعَ الْعُرُوقَ تردې چه ټول رګونه کټ کړې شو جَازَ نو حلال ده وَيُكْرَهُ او دا مکروه دې وَإِنْ مَاتَتْ قَبْلَ قَطْعِ الْعُرُوقِ اوکه دا د رګونو کټ کولو نه مخکښې مړه لَمْ تُؤْكَلْ نو خوړلې به نشي |

**حل اللغة** > ① **شاة**: ګډه ② **العروق**: جمع د عرق، رګ

**تشریح** > که چیلۍ ئې د ستې د شا طرفه ذبح کړله.نو اوس به دا کتلې شي.چه د ذبح د رګونو کټ کولو پورې دا ژوندۍ ده.او که ددې نه وړاندې مړه شوه.په ړومبی صورت کښې دا حلاله ده.او په دویم صورت کښې حلاله نه ده.البته په دواړو صورتونو کښې دا فعل مکروه دې.ځکه چه دا د ضرورت نه بغیر زیات تکلیف ورکول دی.

**په څومو څاروو کښې به ذبح اختیاري وي اوپه څومو کښې اضطراري؟**

| |
|---|
| وَمَا اسْتَأْنَسَ مِنَ الصَّيْدِ او کوم ښکار چه اموخته (او بلدی) شو فَذَكَاتُهُ الذَّبْحُ نو ددې ذکاة ذبح ده وَمَا تَوَحَّشَ مِنَ النَّعَمِ او کوم چه د څاروو نه وحشی (ځنګلی) شو فَذَكَاتُهُ الْعَقْرُ نو د هغې ذکاة اندام کټ کول، وَالْجُرْحُ او زخمی کول دی |

**حل اللغة** > ① **استأنس**: اموخته وی ② **توحش**: نفرت کوی ③ **العقر**: اندام ګټ کول ④ **الجرح**: زخم]

**تشریح** > وړاندې بیان شوی دی.چه د ذکاة دوه قسمونه دی① اضطراری ② اختیاری.ــ دا دواړه کوم کوم ځائې کښې مشروع دی.دا هم معلومه شوې ده.اوس دا ښائی.چه ساتلې شوې څاروې دې.لکه میښه وغیره،خو دا اوتختیدله.او وحشی (ځنګلی) شوه.نو اوس دلته ذکاة اضطراری جائز ده.اوکه وحشی څاروې د ساتلو په وجه عادت شو.نو اوس به دلته د ذکاة اختیاری نه کار اخستلې شی.

**په اوښ کښې نحر،او غوا اوچیلۍ کښې ذبح مستحب ده**

| |
|---|
| وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْإِبِلِ النَّحْرُ او په اوښ کښې نحر مستحب دی فَإِنْ ذَبَحَهَا نو که دا ئې ذبح کړو جَازَ...نو جائز دی ،وَيُكْرَهُ.او مکروه دی وَالْمُسْتَحَبُّ فِي الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ الذَّبْحُ او مستحب په غوا او چیلۍ کښې ذبح ده فَإِنْ نَحَرَهُمَا نو که دا دواړه ئې نحر کړل جَازَ نو جائز دی وَيُكْرَهُ او مکروه دی. |

**تشریح** > د نحر او ذبح تفصیل وړاندې تیر شوی دې.اوس فرمائی.چه چیلۍ وی.اوکه اوښ یا غوا وی.په هر یو کښې ذبح او نحر جائزدې.او ذبیحه حلال ده.خو په اوښ کښې نحر مستحب او ذبح مکروه ده.او په چیلۍ او غوا کښې ذبح مستحب او نحر مکروه ده.

**دلائل الاستحباب** > ① داستحباب دلیل دا دې.چه دا متوارث سنت دې. ([2]) یعنی د اول نه واخله تر اوسه پورې په هغه زمانه کښې د ټولې دنیا مسلمانانو په دې په اوښ کښې نحر اوپه غواه ګډه کښې ذبح اختیا رکړې ده.

---

[1] – تقدم تخریجه فی النفقات)

[2]) تقدم تخریجه الحج)ـــ

②او په اوښ کښې د ټولو رګونو اجتماع په منحر کښې ده.او په غوا او چیلۍ کښې (د رګونو اجتماع) مذبح (په خانې د ذبح) کښې ده.

**دلیل الکراهة**> دا خبره معلومه شوه چې په اوښ کښې نحر او په غوا او چیلۍ کښې ذبح سنت او مستحب ده.او د سنت په مخالفت سره کراهت راځي.نوکه يو کس د نحر په خانې ذبح اوکړه يا ئې د ذبحې په خانې نحر اوکړو.نودا به مکروه وي.

**د ذبح شوکو نه پس د خیټې د مړ بچي حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ نَحَرَ نَاقَةً او چا چه اوښه نحر کړله أَوْذَبَحَ بَقَرَةً يا ئې غوا ذبح کړله فَوَجَدَفِي بَطْنِهَا جَنِينًا مَيِّتًا لَمْ يُؤْكَلْ نو وې موندلو ددې په خیټه کښې مړ بچې نو خوړلې به نشی أَشْعَرَ که ددې ایخته راختلې وی اولَمْ يُشْعِرْ او که نه وی راختلې |

**حل اللغة**> ① **نحر**: د اوښ ذبح کول ② **بطن**: خیټه]

**تشریح**> اوښه یا غوا وغیره ذبح کړې شوه.او ددې د خیټې نه مړ شوې بچې راو وتلو.نو د امام ابوحنیفه، امام زفر او د امام حسن بن زیاد رحمهم الله مذهب دا دې.چه دا به خوړلې نشی.که ددې ایخته راختلې وی.او که نه وی راختلې.او که پیدائش کښې پوره وی.او که پوره نه وی.په ټولو صورتونو کښې هم دا حکم دې.[1]

**دلیله**> جنین پخپل ژوند کښې مستقل دې.هم دا وجه ده.چه د مور د مرګ نه روستو د جنین ژوند متصور(او منلې شوې) دې.بلکه داسې واقع شوی دی.لکه څنګه چه امام طحاوی رحمه الله سره دا واقعه پیښه شوې وه.یعنی امام طحاوی رحمه الله چه پیدا شونو مور ئې د دوی په ولادت کښې شهیده شوه.هرکله چه د جنین مستقل کیدل ثابت شو.نو ددې به جدا ذکاة کول ضروری وی.

**مسلک الصاحبین**> صاحبینو رحمهما الله قول دا دې.چه کله دا پیدائش کښې پوره شوې وی.نو خوړلې به شی.ګنی خوړلې به نشی.اودا د امام شافعی مذهب هم دې.

**دلائلهما**> ① د صاحبینو دلیل نقلی دا دې.چه د نبی کریم ﷺ ارشاد دې.ذَكَاةُ أُمِّهِ ذَكَاةُ الْجَنِينِ[2] چه ،، د مور ذکاة د جنین ذکاة دې،، ددې حدیث نه معلومه شوه.چه مور ذبح کول، دا د بچی ذبح کول دی.نو بیا به ددې خوراك جائز وی.

② عقلی دلیل دا دې چه جنین حقیقتاً هم او حکماً هم، د مور جزء دې.هرکله چه دا هر اعتبار سره د مور جزء دې.نو د مور ذکاة د جنین ذکاة کیدل پکار دی.حقیقتاً د جزء کیدو دلیل دا دې.چه جنین مور سره متصل دې.اوکه دا جدا کول وی. نو د مور نوم وغیره کټ کولو سره به جدا کولې شی.او د مور د غذا نه دا غذا حاصلوی.د مور په ساه اخستلو سره دا ساه اخلی.ددې ټولو خبرو نه معلومه شوه.چه جنین د حقیقت په اعتبار سره دمور جزء دې.

حکماً د مور د جزء کیدو دلیل دا دې.چه کله مور خرڅولې شی.نو په دې کښې جنین هم داخلیږی. او کله چه مور آزادولې شی.نو جنین هم آزادیږی.بهرحال هرکله چه جنین د مور جزء اوګرځیدو.نو د مور

---

[1] القول الراجح هذا قول ابي حنيفة كذا في الدرالمنتقى (١٦٠/٤) والبحرالرائق (٣١٢/٨) ورد المحتار (٢١٤/٤) والجوهرة النيرة (٢٧٨/٢) نقلاً عن القول الراجح (٢٨٩/٢).

[2] من حديث ابي سعيدالخدري رضي الله عنه اخرجه ابوداودفي الضحاياباب ١٨ رقم ٢٨٢٨ والبيهقي في السنن الكبري (٩/ ٥٦١) رقم ١٩٤٨٨).

ذکاة د جنین ذکاة کیدل پکار دی.او دا داسې ده.لکه څنګه چه ښکار کښې د ذکاة اختیاری نه د عاجز کیدو په وجه د ذکاة اضطراری نه کار اخستلې شی.دغه شان دلته هم د جنین د ذکاة نه عجز دې.نو ددې د مور په ذکاة باندې به اکتفاء کولې شی.

## د کومو ځاروو او مارغانو خوراك حلال دي ؟

وَلَا يَجُوزُ أَكْلُ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ او جائز نه دی په درنده ګانو کښې ذوناب (په غابنونو سره ښکار کونکی) خوړل وَلَا ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُورِ او نه په مارغانو کښې ذومخلب (په پنجو سره ښکار کونکې د) خوړل

**حل اللغة** ① ناب: هغه غاښ دې.چه دا پورته او لاندې مخامخ څلورو غابنونو (رباعیاتو) سره ملاو شوی وی.چه دې ته داړه وائی.او مخلب پنجه، خو مراد دا دې.کوم چه مونږ ذکرکړې دې.چه کوم په خوله او پنجو سره ښکار مر کوی. ② الطیور:جمع د طیر: پرندې، مرغۍ ③ مخلب: مخوکه ]

**تشریح** په ځناورو کښې بعضې څلور خپو والا دی.او بعضې الوتونکی ځناور دی.بیا په دې دواړو کښې بعضې داسې دی.چه دا نور ځناور ماتوی.او خوری.او بعضې داسې نه دی.لکه کونتره، او کوترکوره وغیره چه مارغان دی.خو درندې نه دی.اولکه میښې او غواګانې اوښ وغیره چه څلورو خپو والا دی.خو درندې نه دی.او لکه شیر،پړانګ، پیشو، لومبړه، زمرې وغیره څلورو خپو والا دی.او ماتونکی درندې دی.او دغه شان باښه، باز،او کارغه وغیره مارغان دی.خو پخپلو خپو سره ښکاره مر کوی.او شلوی.او خوری.نو دا د مارغانو نه درندې دی.بهرحال درنده که څلورو خپو والا وی.یا مارغه وی.ددې خوراك حرام دې.

**دلیله** څکه چه د نبی کریم ﷺ حدیث دې نَهَى عَنْ أَكْلِ كُلِّ ذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطُّيُورِ وَكُلِّ ذِي نَابٍ [1] چی دوی ﷺ د هرقسمه ذی مخلب مارغانو نه،او د هرقسمه ذی ناب د درنده ګانو نه،

**الاستدلال** مرغینانی رحمه الله په هدایه کښې فرمائی.چه په ذکر شوی حدیث کښې ،، من السباع ،، د ،، ذی مخلب،، او،، ذی ناب ،، نه روستو راغلې دې.نو ،،سباع ،، به ،، ذی مخلب،، او،، ذی ناب ،، دواړو ته شامل وی.یعنی په سباع کښې درنده ګان هم داخل دی.او مارغان هم.هرهغه ځناور چه دهغې ناب (غاښ) وی.او مخلب (پنجه) وی.د هغې په سباع کښې شاملیدل ضروری نه دی.بلکه ضروری دا ده.چه دا شلونکې وی.،، کما مر،، بیا نې د درندې تعریف اوکړو.چه کوم غټه کونکې وی.د هغې تعلق که مارغانو سره وی.او که څلورو خپو والا سره وی.او لوټ کونکې وی.نوکه شیر صوفی جوړ شی.او حمله نه کوی.نو اوس هم هغه درنده دې.څکه چه دده په عادت کښې دا مذکوره صفات شامل دی.

## د فصل د کارغه خوړلو حکم

وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ غُرَابِ الزَّرْعِ او د فصل په کارغه کښې هیڅ حرج نشته

**تشریح** کوم کارغه چه د فصل دانې خوری.او ګندګی نه خوری.د هغې په خوړلو کښې هیڅ باك نشته.

**دلیله** څکه چه دا ګندګی هم نه خوری.او په درنده ګانو کښې هم نه شمارلې کیږی.

**الفائدة** کارغان په درې قسمه دی ① کوم چه صرف دانې خوری.او دا مکروه نه دی.

[1] من حدیث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه مسلم فی الصید والذبائح رقم ۱۶)۔

② کوم چه صرف گندگی خوري.او دا مکروه دی.
③ کوم چه کله دانې خوري.او کله گندگی خوري.دا د امام صاحب رحمه الله په نیز مکروه نه دی.او د امام ابویوسف رحمه الله په نیز مکروه دی.[کذا فی مجمع الانهر ص:۴۹۵،ج۲]
په حضرت مولانا رشید احمد گنگوهی رحمه الله باندې چه کومو خلقو د غراب (کارغه) د حلت په مسئله کښې اعتراض کړې دې.هغوی د احنافو امامانو د اقوالو نه ناخبره دی.

**د ابقع او غداف (کارغانو) خوړلو حکم**

| |
|---|
| وَلَا يُؤْكَلُ الْأَبْقَعُ او ابقع (تور او سپین کارغه) به نشی خوړلې الَّذِي يَأْكُلُ الْجِيَفَ کوم چه گندگی خوري ، |

**حل اللغة** ① **الابقع:** تور او سپین کارغه

**تشریح** ،،ابقع،، هغه کارغه کوم تور او سپین وی.یعنی دیسی کارغه، چه ددې د سټ رنگ د خپو په نسبت سپین وی.گویا چه دا د ذکر شوو دریو اقسامونو نه د یو قسم بیان دې.،،غداف،، هم یو قسم کارغه دې.چه دا د سختې گرمۍ په زمانه کښې راځي.او په قول د ابن فارس غټ، دروند ،د غټو خپو والا وی.چونکه دا هم گندگی خوري.نو ددې خوراك به هم د ابقع (تور اوسپین کارغه) پشان مکروه وی.

**د کومو ځاروو خوراك مکروه دې ؟**

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَكْلُ الضَّبُعِ وَالضَّبِّ وَالْحَشَرَاتِ كُلِّهَا او کوك او سمساره او ټول په زمکه باندې توخیدونکی (خوئیدونکی) ځناور (چینجي وغیره) مکروه دی |

**حل اللغة** ① **الضبع:** کوك ② **الضب:** سمساره

**تشریح** کوك (غوښه خوړونکی ځناور)، سمساره، مچۍ او د ټولو حشرات الارض خوراك مکروه دې.

**دلیل کراهة الضبع** د کوك د کراهت دلیل دا دې چې دا درنده دې.او د درنده گانو د خوراك عدم جواز وړاندې سره د دلیل نه ذکر شوې دې.

**دلیل کراهة الضب** د سمساره د کراهت دلیل دا دې.چه حضرت عائشه رضی الله عنها د نبی کریم ﷺ نه د سمساره دخوراك په باره کښې تپوس اوکړو.نو نبی کریم ﷺ منع اوفرمائیله. ([1])

**دلیل کراهة حشرات الارض** د ټولو حشرات الارض مکروه کیدو دلیل دا دې.چه سمساره مکروه دې.او سمساره د حشرات الارض ځنې دې.نو د باقی حشراتو به هم دا حکم وی.

**د ساتلو شوو خرو او خچرو غوښه خوړل حرام ده**

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ أَكْلُ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَالْبِغَالِ او د ساتلو شوو خرو او خچرو خوراك جائز نه دې |

**حل اللغة** ① **الحمر:** جمع د حمار، خر ② **البغال:** جمع د بغل، قچر

**تشریح** د ساتلو شوو خرو او خچرو غوښه خوړل جائز نه ده.

**دلائله** ① د حضرت خالد رضی الله عنه نه روایت دې چې أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ نَهَى عَنْ لُحُومِ الْخَيْلِ وَالْبِغَالِ وَالْحَمِيرِ

[1]) اخرجه ابوداود فی الأطعمة باب ۲۷ رقم ۳۷۹۶)_

(١) چه نبی کریم ﷺ د اسونو او خچرو او خرو د غوښو نه منع فرمائیلې ده

② د حضرت علی رضی الله عنه نه روایت دې أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَهْدَرَ الْمُتْعَةَ وَحَرَّمَ لُحُومَ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ يَوْمَ خَيْبَرَ (٢)چه نبی کریم ﷺ د خیبر په ورځ متعه باطل ګرځولې ده او د ساتلو شوو خرو غوښې ئې حرام اوګرځولې.

حدیث پیش کړې شوې دې.چه په دې کښې د ممانعت صراحت دې.

## د اس د غوښې حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَكْلُ لَحْمِ الْفَرَسِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د اس غوښه مکروه ده |

**حل اللغة** ﴿ ① **الفرس:** اس ② **الاهلية:** په کور کښې پاللې شوې ③ **لحوم:** جمع د لحم،غوښه]

**تشریح** ﴿ د امام صاحب رحمه الله په نیز د اسونو غوښه مکروه ده.

**دلائله** ﴿ ① امام ابوحنیفه رحمه الله د آیت نه استدلال کړې دې.آیت دا دې.﴿وَالْخَيْلَ وَالْبِغَالَ وَالْحَمِيرَ لِتَرْكَبُوهَا وَزِينَةً﴾ او الله تعالی اسونه او خچر او خره پیدا کړی دی.چه تاسو په دې باندې سواره شئ.او د ښائست دپاره،، نو الله تعالی په دې آیت کښې بنده ګانو باندې خپل احسان زباتی.نو که ددې خوراك جائز وې.نو خوراك دټولو نه اعلی منفعت دې.نو بیا به ددې ضرور ارشاد فرمائیلو.یعنی الله تعالی به فرمائیلی وو.چه مونږ دا پیدا کړل.چه تاسو دا خورئ.او الله حکیم ذات دې.او حکیم چه کله احسان زباتی.نو لوئې نعمت نه پریخودلو او وړوکی نعمت سره احسان نه زباتی.نو ددې آیت نه معلومه شوه.چه د اس غوښه به نشی خوړلې.

② او اس سره په دښمن رعب اچولې شی.نو بیا به احتراماً ددې خوراك مکروه وی.او په دې وجه چه اس د دښمن مرعوب کولو آله ده.نو ددې دپاره د مال غنیمت نه حصه مقرر شوې ده.چه ددې تفصیل د هدایة په دریم جلد کښې ذکر دې.

③ اوکه دا جائز اوګرځولې شی.نو د جهاد آله کمول به لازمیږی.په دې وجه هم ددې خوراك مکروه دې.

**مسلك الصاحبين** ﴿ د صاحبینو په نیز جائز ده.او دامام شافعی هم دا مذهب دې. (٣)

**دليلهما** ﴿ د حضرت جابر رضی الله عنه حدیث دې أَنَّهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ عَنْ لُحُومِ الْحُمُرِ الْأَهْلِيَّةِ وَأَذِنَ فِي لُحُومِ الْخَيْلِ يَوْمَ خَيْبَرَ (٤) چه رسول الله ﷺ د خیبر په ورځ د ساتلو شوو خرو د غوښو نه منع اوفرمائیله او د اسونو د غوښو ئې اجازت ورکړو.

**الجواب عنه** ﴿ ددې جواب دا دې چه د حضرت خالد بن ولید رضی الله عنه په حدیث کښې حرمت ښکاره دې.نو په دې دواړو حدیثونو کښې تعارض شو.او کله چه په حلال اوحرام کښې تعارض وی.نو حرام ته ترجیح ورکولې شی.نو د حضرت خالد رضی الله عنه حدیث چونکه محرم دې.په دې وجه به دې ته ترجیح ورکولې شی.

---

(١) من حدیث خالد بن ولید رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الأطعمة باب ٣٢ رقم ٣٨٠٦ وابن ماجه فی الذبائح باب ١٤ رقم ٣١٩٨ والنسائی فی الصید باب ٣٠ رقم ٤٣٣١)_

(٢) اخرجه البخاري في المغازي باب ٣٠رقم ٤٢١٩ ومسلم في الصيدوالذبائح رقم ٣٦)

(٣) القول الراجح هو هذا قول الصاحبين. رحمهما الله كذا في ردالمحتار (٥\٢١٤) والدر المنتقى (٤\١٦١) ومجمع الأنهر (٤\١٦٢) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٩٠)-

(٤) اخرجه البخارى فى المغازى باب ٤٠ رقم ٤٢١٩ ومسلم فى الصيد والذبائح رقم ٣٦)_

**نوعية الكراهة** ﴿ بيا د امام صاحب ﷫ په نيز كراهت تحريمى دې.او كه تنزيهى دې.نو دواړه قوله شته.خو كراهت تحريمى زيات صحيح دې.پاتې شو د اسپې پۍ، نو په دې كښې د جهاد په آله كښې هيڅ كمې نه لازميږي.نو دا جائز دي.په [سكب الانهر ص:۴۳۶،ج۲] باندې ددې زيات تفصيل موجود دې.چه په دې كښې مفتى به قول كراهت تنزيهى نقل كړې دې.

**د سويه (خرگوش) خوړلو حكم**

| |
|---|
| (وَلَابَأسَ بِأَكْلِ الْأَرْنَبِ) او په سويه خوړلو كښې هيڅ باك نشته |

**حل اللغة** ﴿ ① **الارنب**: سويه

**تشريح** ﴿ سويه خوړل جائز دى.

**دلائله** ﴿ ① ځكه چه نبى كريم ﷺ پخپله هم اوخوړله.او خپلو اصحابو ﷺ ته ئې د خوراك حكم اوفرمائيلو. ([1])

② او دا نه درنده ده.او نه گندگى خورى.نو دا د اوسۍ مشابه شوه.

**په ذبح سره د كومو ځناورو غوښه او څرمن پاكيږى او د كومو نه پاكيږى؟**

| |
|---|
| وَإِذَاذُبِحَ او كله چه هغه ځناور ذبح كړې شو مَالَايُؤْكَلُ لَحْمُهُ د كوم غوښه چه نشى خوړلې طَهُرَجِلْدُهُ وَلَحْمُهُ نو ددې څرمن او غوښه به پاكيږي |

**حل اللغة** ﴿ ① **جلد**:څرمن

**تشريح** ﴿ ذكاة سره چه لكه ځنگه په ماكول اللحم ځناورو كښې غوښه حلاليږي.په غير ماكول اللحم ځناورو كښې غوښه او څرمن پاكيږي.اگرچه غوښه نه حلاليږى. ([2])

**دليله** ﴿ ځكه چه ذكاة شرعى سره بهيدونكى وينه او نجس رطوبات خارجيږي.نو غوښه پاكيږي.

| |
|---|
| إِلَّاالْآدَمِي وَالْخِنْزِيرَ خو سړي (بنيادم) او خنزير(ددې نه مستثنى دى)، |

**تشريح** ﴿ البته د سړي او خنزير څرمن نه دباغت (رنگ كولو) سره پاكيږي.او نه ذكاة سره،

**دليله** ﴿ د بنيادم څرمن ځكه نه پاكيږى.چې ده ته الله تعالى عزت وركړې دې.اوده نه په مرونى څرمن وستل دده اهانت دې.اود خنزير څرمن ځكه نه پاكيږي.چې هغه نجس العين دې.

**د اوبو په ځناورو كښې د كومو ځناورو خوراك حلال دې ؟**

| |
|---|
| وَلَايُؤْكَلُ مِنْ حَيَوَانِ الْمَاءِ إِلَّا السَّمَكُ او د اوبو په ځناورو كښې د كب نه علاوه به هيڅ نه خوړلې كيږي |

---

[1]) قال الزيلعى ﷫ كالهما حديثان فالأول ...عن انس ﷺ قال نفجنا ارنباً بمرالظهران فسعى القوم فلغبوا فادركتها فاخذها فاتيت بها اباطلحة فذبحها وبعث بوركها الى رسول الله ﷺ اوقال فخذيها فقبله قلت واكل منه؟ قال اكل منه ثم قال بعد قبله اخرجه البخارى فى الهبة باب ۵ ومسلم فى الصيد والذبائح رقم ۵۳ والترمذى فى الأطعمة باب ۳۲ والنسائى فى الصيد باب ۲۵ وابن ماجه فى الصيد باب ۱۷) وفى حديث ابى هريرة ﷺ قال جاء أعرابى الى رسول الله ﷺ بارنب قد شواها فوضعها بين يديه فامسك رسول الله ﷺ فلم ياكل وامرالقوم ان ياكلوا قال الزيلعى ﷫ اخرجه النسائى (نصب:۴\۴۸۸)_

[2]) **مسلك الشافعي**:-د امام شافعى ﷫ نقل دى.چه په غير ماكول اللحم كښې به ذكاة اثر نه كوى.

**حل اللغة** ① **السمك:** کب ماهی

**تشریح** د دریاب په خناورو کښې صرف کب جائز دې.نور هیڅ جائز نه دی.(۱)

**دلیله** په کومه دوائی کښې چه چیندخ اچولې شوې وی.د داسې دوائی نه رسول الله ﷺ منع فرمائیلې ده. (۲) که چندخ جائز وې.نو د دوائی به ئې منع نه فرمائیله. دویم حدیث: په حدیث کښې د سرطان (کونی کبر) د بیع نه ممانعت فرمائیلې شوې دې.او وړاندې معلومه شوې ده.چه د بیع او خوړلو حکم یو دې.

## پخپله مړلې د مړشوی کب حکم

| |
|---|
| .وَيُكْرَهُ أَكْلُ الطَّافِي مِنْهُ او په کبانو کښې طَافی (کوم چه مړشی.او التهٔ شی) مکروه دې |

**تشریح** هرقسم کب حلال دې.که ژوندې وی.او که مړ وی.البته کوم کب چه پخپله دځه آفت او مصیبت نه بغیر مړ شی.او په دریاب کښې التهٔ شی.چه خیټه ئې پورته شی.او شا ئې لاندې شی.چه دې ته طَافی وائی.دا مکروه تحریمی دې. (۳)

**دلیله** دلیل د حضرت جابر رضی الله عنه هغه حدیث دې.چې نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی مَا نَضَبَ عَنْهُ الْمَاءُ فَكُلُوا وَمَا لَفَظَهُ الْمَاءُ فَكُلُوا وَمَا طَفَا فَلَا تَأْكُلُوا (۴) د کوم کب نه چه اوبه اوچې شوې وی نو ته هغه اوخوره.او کوم چه دریاب راوغورځولو هغه خوره او کوم چه التهٔ شو نو هغه مه خوره،

## کب سره د خپلو ټولو اقسامو حلال دې .او د امام مالک رحمه الله نقطه نظر

| |
|---|
| (وَلَا بَأْسَ بِأَكْلِ الْجِرِّيثِ وَالْمَارْمَاهِي وَالْجَرَادِ بِلَا ذَكَاةٍ او جریث (یوقسم کب دې) مار مهي او د کب د ټولو اقسامو او د ملخ په خوراك کښې هیڅ باك نشته |

**حل اللغة** دکب په قسمونو کښې یو جریث (یوقسم کب دې) دې.چه دا تور وی.او یو مارمهي دې.چه دې ته بام وائی.چه دا د مار مشابه وی.

**تشریح** که هر قسم کب وی.او ملخ دواړه د ذکاة (ذبح) نه بغیر خوړلو کښې هیڅ باك نشته. (۵)

---

(۱) **مسلك الائمة:**-او امام مالك، ابن ابی لیلی او اصحاب الظواهر او د امام شافعی رحمه الله په یو قول کښې د دریاب هر خناور حلال دې.اګرچه دا د دریاب خنزیر، او سپې، او انسان ولې نه وی.
د امام شافعی رحمه الله یو قول دا دې.چه ټول خناور حلال دی.خو دریابی خنزیر او سپې او انسان جائز نه دې.هم دا د لیث رحمه الله قول دې.او د امام شافعی رحمه الله دریم قول دا دې.چه د چیندخ نه علاوه ټول خناور حلال دی.

(۲) من حدیث عبدالرحمن بن عثمان القرشی ان طبیباً سال رسول الله ﷺ عن الضفدع یجعلها فی دواء فنهی عن قتلها) اخرجه أبوداود فی الطب باب ۱۱ وأحمد فی المسند(۳\۴۵۳) والحاکم فی المستدرك (۴\۴۴۵) والنسائی فی الصید باب ۳۶ رقم ۴۰۶۲)_

(۳) **مسلك مالك والشافعي:**-امام مالك او امام شافعی رحمهما الله دا هم حلال ګرځولې دې.

(۴) – قال الزیلعی رحمه الله غریب بهذا اللفظ وأخرج أبوداود (أی فی الأطعمة باب ۳۵ رقم ۳۸۱۵) عن جابر رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال ما ألقاه البحر أو جزر عنه فکلوه وما مات فیه وطفا فلا تأکلوه (نصب:۴۹۲)_

(۵) **مسلك مالك:**-امام مالك رحمه الله فرمائی.چه ملخ ذبح کول ضروری دی.یعنی دا چه ددې سر جدا کړې شی.

**دلائله** ① حدیث کښې راغلی دی.چه (أحلت لنا میتتان) په دې کښې کب او ملخ دواړه داخل دی.نو لکه څنګه چه کب د ذکاة نه بغیر خوړل جائز دی.دغه شان به ملخ هم د ذکاة نه بغیر خوړل جائز وی.
② د حضرت علی رضی الله عنه نه دهغه ملخانو په باره کښې تپوس اوکړې شو.چه په دې کښې بعضې مړه شوی وی.او بعضې ژوندی وی.نو هغوی اوفرمائیل کُلُّهُ کُلُّهُ (¹)،،کله کله ،،دا ټول خورئ.نو ددوی دا فرمان په اباحت باندې دلالت کوی.اګر چه دا پخپله مړ شوې وی.او دا جمله د حضرت علی رضی الله عنه په فصاحت کښې شمار کړې شوې ده.څکه چه دوه د یو شکل جملې ئې اوفرمائیلې.او معنی ئې جدا جدا ده.
**القاعدة في السمک** د کب په باره کښې دا قاعده کلیه ده.چه کله دا په څه آفت سره مړ شی.نو دا به حلال وی.اوکه د څه آفت نه بغیر مړ شی.نو دا به حلال نه وی.رومبې لکه مثلاً هغه کب کوم چه ښکاری اونیولو (نو حلال دې).او دویم لکه طافی،(او دا) مکروه دې.

# كِتَابُ الْأُضْحِيَّةِ

**ترجمه** (دا) کتاب د قربانئ (د احکامو په بیان کښې) دې.
**تشریح** د لفظ ،، اضحیه ،، تحقیق په ذبح او قربانئ کښې د عموم خصوص مطلق نسبت دې.رومبې عام او دویم خاص دې.لکه حیوان او انسان، او د عام نه پس د خاص ذکر کول زیات مناسب دی.څکه چه عام د خاص جزء وی.مثلاً حیوان د انسان جزء دې.څکه چه د انسان ماهیت حیوان ناطق دې.او جزء طبعاً مقدم وی.نو وضعاً هم جزء مقدم کړې شوې دې.
**الاضحیة لغة** **الأضحیة** اصل کښې د ،،**أفعولة**،،په وزن باندې، ،**أضحوية**،، وو.په علم الصیغه کښې د ذکر شوې څوارلسم نمبر قاعدې مطابق ،، **اضحیة** ،، شو.د لغت په اعتبار سره ،، **أُضْحِيَّة**،، هغه څاروی ته وئیلې شی.کوم چه د قربانئ په ورځو کښې ذبح کړې شی.یعنی دا (تسمية الشئ بإسم وقته) د قبیل نه دې.
**الاضحیة شرعاً** شریعت کښې د ،، **اضحیة**،، تعریف دا دې.(ذبح حیوانٍ مخصوصٍ بنیة القربة فی وقت مخصوصٍ)
**رکنها** د قربانئ سبب وخت دې.یعنی ایام نحر (د قربانئ ورځې) او په قول د بعضو راس (نصاب) دې.او ددې رکن داسې څاروې ذبح کول دی.د کوم ذبح کول چه دلته جائز دی.،، کما سیأتي،، نو چرګه وغیره دلته ذبح کول د مجوسیانو سره د مشابهت په وجه مکروه دی.او ددې حکم دنیا کښې د واجب د ذمه دارئ نه وتل دی.او په آخرت کښې د صحیح نیت په شرط د الله تعالی په فضل ثواب حاصلول دی.
**شروطها** ① اسلام ② مقیم کیدل ③ دومره مالداره کیدل چه ددې په وجه صدقة فطر واجب شی.په نورو الفاظو کښې داسې چه د قربانئ وجوب د صدقة فطر پشان د ممکن قدرت په وجه دې.د قدرت میسره په وجه نه دې.،، والتفصیل فی درس الحسامی ،،

---

¹) قال الزیلعی رحمه الله غریب بهذا اللفظ وروی عبدالرزاق فی مصنفه ...عن علی رضی الله عنه قال الحیتان والجراد ذکی کله (نصب:٤\٤٩٥)_

**د قربانۍ حکم،چه دا په چا،کله او د کوم طرفه واجب ده**

| |
|---|
| الْأُضْحِيَةُ وَاجِبَةٌ چه قرباني كول واجب دی عَلَى كُلِّ حُرٍّ مُسْلِمٍ په هر یو داسې آزاد باندې چه هغه مسلمان وی، مُقِيمٍ مُوسِرٍ مقيم وی، مالدار وی فِي يَوْمِ الْأَضْحَى په يوم الاضحى (ورځ د لوئي اختر) كښې |

**تشریح** ﴿ **وجوب الاضحية** ﴾ امام طحاوی رحمه الله ذکر کړی دی چه د امام ابوحنیفه رحمه الله د قول مطابق واجب ده
**دلائله** ﴿ ① د وجوب دلیل دا حدیث دې. مَنْ وَجَدَ سَعَةً وَلَمْ يُضَحِّ فَلَا يَقْرَبَنَّ مُصَلَّانَا [۱] چا ته چه د قربانۍ قدرت وی.بیا هم قربانی اونکړی.نو هغه دې زمونږ عیدګاه ته نیزدې نه راځي.دا ډیر سخت وعید دې.چه دا د واجب په پریخودو کښې وارد کیدې شی.نو ددې نه د قربانۍ وجوب ثابت شو. [۲]
② اضافت سره ،، **يوم الأضحى** ،، وئیلې شی.یعنی قربانۍ طرف ته د قربانۍ د وخت اضافت کولې شی.او دا اضافت اختصاص دپاره دې.یعنی دا مختص ده.قربانۍ سره، او اختصاص به هغه وخت ثابتیږی.کله چه د قربانۍ وجود وی.او کیدې شی چه د سنت په صورت کښې ټول متکلفین په قربانۍ باندې اتفاق اوکړی نو وجود د قربانۍ دپاره وجوب ضروری دې.چه اختصاص ثابت شی.لکه یوم الجمعه، وقت الظهر، شهر رمضان کښې هم دا خبره ده.
**مسلک الصاحبين** ﴿ د صاحبینو رحمهما الله په نیز سنت مؤکده ده.بهرحال فتوی د قربانۍ په وجوب ده.
**دلائلهما** ﴿ ① د نبي کریم صلى الله عليه وسلم حدیث دې مَنْ أَرَادَ أَنْ يُضَحِّيَ مِنْكُمْ فَلَا يَأْخُذْ مِنْ شَعْرِهِ وَأَظْفَارِهِ شَيْئًا [۳] چه کوم کس د قربانۍ اراده اوکړی. نو خپل ایختـه وغیره دې نه کټ کوی.نو قربانی ئې په اراده باندې معلق کړې ده.او دا دجوب الفاظ نه دی.
② په مالی عبادتونو کښې مقیم او مسافر وی.حالانکه مسافر باندې قربانی واجب نه ده.نو معلومه شوه.چه په مقیم باندې هم واجب نه ده.ګنی د دواړوحکم مختلف کیدل به لازم شی.لکه څنګه چه زکاة مالی عباد دې.لکه څنګه چه مقیم باندې واجب دې.دغه شان مسافر باندې هم واجب ده.او لکه څنګه چه عتیره مسافر باندې واجب نه ده.نو مقیم باندې هم واجب نه ده.
**المراد من القبلة** ﴿ دلته د ارادې نه مراد دغه نه دې.کوم چه تاسو ګنړلې دې.چه اختیار ورکول مقصود دی.چه قربانی اوکړله.یا ئې پریږده.بلکه اراده په معنی د قصد ده.یعنی څوك چه ددې واجب ادا کولو قصد لری.نو هغه له دا کول پکار دی.چه ایختـه وغیره نه کټ کوی .او دا داسې ده.لکه (من أراد الصلاة فليتوضأ، ومن أراد الجمعة فليغتسل) نو په لفظ د ارادې سره سنت کیدو باندې استدلال صحیح نه دې.
**اشتراط الحرية** ﴿ ① رومبې شرط آزاد کیدل دی.ددې وجه دا ده.چه قربانۍ دپاره ملك پکار دې.او په غلام کښې د مالك کیدو صلاحیت نشته.بلکه دا مملوك دې.یعنی مالك کیدل صرف آزاد دپاره

[۱] من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه ابن ماجه في الأضاحي باب ۲ رقم ۳۱۲۳) واحمد في المسند(۲\۳۲۱) والدارقطني في سننه (۲\۵۴۵) والحاكم في المستدرك (۲\۳۸۹)_
[۲] كما في حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه البخاري في العقيقة باب ۳ ومسلم في الأضاحي رقم ۳۸ وابوداود في الأضاحي باب ۱۱ والترمذي في الأضاحي باب ۱۵ والنسائي في الفزع باب ۱ وابن ماجه في الذبائح باب ۲)_
[۳] – من حديث ام سلمة رضي الله عنها أخرجه مسلم في الأضاحي رقم ۴۱ والترمذي في الأضاحي باب ۲۲ وابوداود في الأضاحي باب ۲ والنسائي في الضحايا باب . وابن ماجه في الأضاحي باب ۱۱)_

مخصوص دی.

**اشتراط الاسلام** ﴿ ② دویم شرط مسلمان کیدل دی.ځکه چه قربانی قربت دي.او کافر د قرباتو ادا کولو اهل نه دي.

**اشتراط التقييد** ﴿ ③ دریم شرط مقید کیدل دی.چه ددې دلیل وړاندې بیان شوې دې.یعنی (هوان الأداء يختص بأسباب يشق....الخ)

**اشتراط الغنى** ﴿ ④ څلورم شرط مالدار کیدل دی. چه دا وړاندې ذکر شوی حدیث نه معلومیږی.یعنی (من وجد سعة....الخ)

**اشتراط الوقت** ﴿ ⑤ پنځم شرط د قربانۍ وخت کیدل دی.یعنی ایام نحر(د قربانۍ ورځې) ځکه چه قربانی هم دې ورځو سره مخصوص ده.

**قربانی د کوم کوم کس د طرفه واجب ده؟**

| |
|---|
| وَيَذْبَحُ عَنْ نَفْسِهِ او قربانی واجب ده.د خپل طرفه، . |

**تشریح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ﴿ ځکه چه انسان اصل دې پخپل ځان باندې د وجوب په سلسله کښې دهغه تفصیل مطابق کوم چه مونږ (په باب د صدقة الفطر کښې) بیان کړی دې

| |
|---|
| وَعَنْ وَلَدِهِ الصَّغِيرِ او قربانی واجب ده.د خپل وړوکی بچی د طرفه، |

**تشریح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ﴿ ځکه چه دا (وړوکی بچې) دسړی د نفس په درجه کښې دې نو دا بچې به هم دده سره متعلق وی لکه څنګه چه صدقة فطر کښې (متعلق دې).

**د قربانۍ کوم څاروی د څومره کسانو د طرفه کافی دې ؟**

| |
|---|
| وَيَذْبَحُ او سړی دې ذبح کړی عَنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ شَاةً په دوی (یعنی د خپل ځان او پخپل اولاد) کښې د هر یو د طرفه یو چیلۍ أَوْيَذْبَحُ بَدَنَةً اوبَقَرَةً یا دې ذبح کړی یو اوبښ یا غوا أَوْعَنْ سَبْعَةٍ) یا یو اوبښ د اووه کسانو د طرفه |

**حل اللغة** ﴿ ① **بدنة**: د بدنة اطلاق په غوا اوبښ وغیره باندې کیږی په کوم کښې چه اووه کسان شریکیدې شی]

**تشریح** ﴿ د چیلۍ قربانی صرف د یوکس د طرفه کیدې شی.او غټو څاروو لکه د غوا او اوبښ وغیره د اووه کسانو د طرفه کیدې شی.

**دلیله** ﴿ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ نَحَرْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبَقَرَةَ عَنْ سَبْعَةٍ وَالْبَدَنَةَ عَنْ سَبْعَةٍ(١)

---

١ - اخرجه مسلم فی الحج رقم ١٣٨ وابوداود فی الأضاحی باب ٢ والترمذی فی الحج باب ٦٦ وابن ماجه فی الأضاحی باب ٥ والدارمی فی الأضاحی باب ٥ ومالك فی الضحایا رقم ٩)۔

حضرت جابر ﷺ فرمائي چې مونږ د نبی کریم ﷺ سره د اووه کسانو د طرفه غواه او د اووه کسانو د طرفه اوښ قرباني کړې وو.

**القياس>** د قياس تقاضا په غټ څاروی کښې دا وه.چه صرف د یو کس د طرفه وی.

**دليله>** ځکه چه دا هم يو نفس دې.او وينه توېول هم دواړوکښې يو دی.زيات نه دی.او وينه توېول قربت دې.

**په مسافر او غريب باندې قرباني واجب نه ده**

| |
|---|
| وَلَيْسَ عَلَى الْفَقِيرِوَالْمُسَافِرِأُضْحِيَّةٌ او په فقير او مسافر باندې قرباني نشته |

**تشريح>** په مسافر او غريب باندې قرباني نشته.

**دليله>** حضرات شيخين رحمهماالله چې به کله مسافر وو.نو هغوی به بعضې ځل مطلقاً قرباني پريخودله.(١)په دې يره چه خلق دا فرض او نه ګنړی.

**د قربانئ وخت او ورځې**

| |
|---|
| وَوَقْتُ الْأُضْحِيَّةِ يَدْخُلُ او د قربانئ وخت داخليږی بِطُلُوعِ الْفَجْرِمِنْ يَوْمِ النَّحْرِ د يوم النحر (د قربانئ د ورځې) د فجر (سحر) راختلو نه إِلَّاأَنَّهُ لَايَجُوزُلِأَهْلِ الْأَمْصَارِالذَّبْحُ، خو دا چه د ښار خلقو دپاره ذبح جائز نه ده حَتَّى يُصَلِّيَ الْإِمَامُ صلاة الْعِيدَ تردې چه امام د اختر مونځ اوکړی فَأَمَّاأَهْلُ السَّوَادِ نو بهرحال دکلو خلق فَيَذْبَحُونَ بَعْدَطُلُوْعِ الْفَجْرِنو هغوی دې ذبح کوی د صبا نه روستو، |

**حل اللغة>** ① **السواد:** کلي والی ② **الامصار:** جمع د مصر،ښار]

**تشريح>** ايام نحر (د قربانئ ورځې) درې دی.(١٠، ١١، ١٢) خو د ښار خلقو دپاره د اختر مانځه نه وړاندې قرباني کول جائز نه دی.البته کوم ځائې چه د جمعې او اخترونو مونځ مشروع (روا) نه دې.هغوی د قربانئ په ورځ د صبح صادق (سحر) نه پس ذبح کولې شی.

**دليله>** إِنَّ أَوَّلَ نُسُكِنَا فِي هَذَاالْيَوْمِ الصَّلَاةُ ثُمَّ الْأُضْحِيَّةُ (٢) نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی چې زمونږ روميې عمل نن ورځ مونځ دې بيا قرباني ده.

**د قربانئ ورځې**

| |
|---|
| وَهِيَ جَائِزَةٌ فِي ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ او قرباني جائز ده درې ورځو کښې يَوْمُ النَّحْرِ په يوم نحر (د قربانئ په ورځ کښې وَيَوْمَانِ بَعْدَهُ او ددې نه روستو دوو ورځو کښې، |

**تشريح>** د قربانئ ورځې درې دی.(١٠، ١١، ١٢) او د تشريق ورځې درې ورځې دی.(١١، ١٢، ١٣) (٣)

**دليله>** دليل د حضرت عمر،حضرت علی،او د حضرت ابن عباس ﷺ حديث دې.چه (أيام النحر ثلاثة أيام

---

[١] - قال الزيلعی رحمه الله رواية غريبة وجهل من استشهد بحديث مخنف بن سليم المتقدم(نصب: ٤\٢٠٥)_

[٢] من حديث براء بن عازب ﷺ اخرجه البخاری فی العيدين باب ٨ ومسلم فی الأضاحی رقم ٧ والنسائی فی العيدين باب ٨)

[٣] **مسلک الشافعي:**- امام شافعی رحمه الله د تشريق ورځې د قربانئ ورځې ګنړی.اوفرمائی چې د اختر د څلورمې ورځې پورې قرباني کيږی.

**اشتها اولها ، (۱)** او دا داسې څیز دې.چه دلته قیاسی پابندئ کار نه کوی.نو معلومه شوه.چه دې حضراتو کوم څه فرمائیلی دی.د نبی کریم ﷺ نه ئې اوریدلی دی.نو فرمائیلی ئې دی.یعنی دا په سماع باندې محمول ده.

**افضلة الیوم الاول >** رومبئ ورځ غوره ده.

**دلیله >** ددې دلیل دغه دې.کوم چه دغه حضراتو فرمائیلې دې.

### د څومو عیبدارو څاروو قربانی جائز نه ده؟

| |
|---|
| وَلَا يُضَحِّى بِالْعَمْيَاءِ وَالْعَوْرَاءِ چه قربانی به نه کوی.د ړندو،او نه د کاڼړ(چه په یو سترګه ړوند وی)، وَالْعَرْجَاءِ الَّتِي لَا تَمْشِي إِلَى الْمَنْسِكِ اونه هغه ګوډ ، کوم چه مذبح (خائې د حلالی) ته نشی تللې وَلَا الْعَجْفَاءِ او نه د ډیر کمزور (او تې څاروی). |

**تشریح >** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله >** دنبی کریم ﷺ فرمان دې لَا تُجْزِئُ فِي الضَّحَايَا أَرْبَعَةٌ: الْعَوْرَاءُ الْبَيِّنُ عَوَرُهَا وَالْعَرْجَاءُ الْبَيِّنُ عَرَجُهَا وَالْمَرِيضَةُ الْبَيِّنُ مَرَضُهَا وَالْعَجْفَاءُ الَّتِي لَا تُنْقِي([1]) په قربانو کښې څلور څاروی جائز نه دی هغه کاڼړا (چغوت) چه دده کاڼړاتوب ښکاره وی او هغه ګوډ چه دده ګوډ کیدل ښکاره وی او هغه بیمار چه دده مرض ښکاره وی دې او هغه کمزور چه دده سرب کیدل نه کیږی

| |
|---|
| وَلَا تُجْزِءُ مَقْطُوعَةُ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ او جائز نه ده غوږ او لکئ کټ شوې |

**تشریح >** قاعده دا ده.چه د معمولی عیب نه خو څاروې خالی نه وی.نو ددې نه خالی کیدا شرط نه دی. البته د زیات عیب نه خالی وی.نو ددې نه خالی کیدل شرط دی.باقی خبرې ښکاره دی.ددې قاعدې مطابق که غوږ یا لکئ ئې کټ وی نو قربانی پرې جائز نه ده.

**دلیله >** د نبی کریم ﷺ فرمان دې اسْتَشْرِفُوا الْعَيْنَ وَالْأُذُنَ([2]) چه سترګه او غوږ ښه ګورئ یعنی ددې دواړو سلامتیا ګورئ او لکئ چې کټ وی نو هم پرې قربانی نه کیږی ځکه چې چه دا یو کامل اندام دې او دا مقصودنو دا د غوږ پشان شو.

### څومره مقدار به عیب شمارلی شی؟

| |
|---|
| وَلَا الَّتِي ذَهَبَ أَكْثَرُ أُذُنِهَا وَذَنَبِهَا او جائز دې هغه څاروې چه دده د غوږ او لکئ زیاته حصه ختم شوې وی ،وَإِنْ بَقِيَ أَكْثَرُ مِنَ الْأُذُنِ وَالذَّنَبِ او که د غوږ او لکئ زیاته حصه باقی وی جائزنو جائز ده |

**حل اللغة >** ① **الاذن:** غوږ ② **الذنب:** لکئ

---

[1] – قال الزیلعی رحمه الله غریب جداً وتقدم نحوه فی الحج فی الحدیث الرابع والستین وروی مالك فی الموطاء عن نافع عن ابن عمر رضی الله عنهما انه کان یقول الاضحی یومان بعد یوم الاضحی انتهی وقال مالك انه بلغه أن علی بن أبی طالب رضی الله عنه کان یقول مثل ذلك(نصب: ٤\٥٠٥)۔

[2] – من حدیث براء بن عازب رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الأضاحی باب ٦ رقم ٢٨٠٢ والترمذی فی الأضاحی باب ٦٥ والنسائی فی الضحایا باب ٥ وابن ماجه فی الأضاحی باب ٨ رقم ٣١٤٤ ومالك فی الضحایا رقم ١)۔

[3] – من حدیث علی رضی الله عنه اخرجه ابوداود فی الأضاحی باب ٦ رقم ٢٨٠٤ والترمذی فی الأضاحی باب ٦ والنسائی فی الضحایا رقم ٤٣٧٢ وابن ماجه فی الأضاحی باب ٨ رقم ٣١٤٢)۔

**تشریح** ﴿ دکوم څاروي چې زیاته حصه د غوږ یا د لکۍ نه وي نو په هغې قرباني نه کیږي.اوکه زیاته باقي وي نو په هغې قرباني کیږي.

**دلیله** ﴿ ځکه چه کومه حصه باقي وي او کومه ختمه شوې وي نو په دې کښې اکثر لره د کل حکم دې یعنې که باقي زیاته وي نو دا به کل حسابیږي اوکه ختمه شوې زیاته وي نو هغه به کل حسابیږي. او وړاندې تیر شو چې غوږ یا لکۍ ئې نه وي نو په هغې قرباني نه کیږي.دغه شان به په دې هم نه کیږي.چې اکثره حصه ئې نه وي.اوکه معمولي عیب وي.نو ددې نه بچ کیدل ممکن نه دی.نو دا به معاف ګرځولې شي.

## که ښکرې بالکل نه وي یا مات شوي وي نو د قربانۍ حکم

| |
|---|
| وَيَجُوزُأَنْ يُضَحِّيَ بِالْجَمَّاءِاو د جماء قرباني جائز ده |

**حل اللغة** ﴿ ① **الجماء**: بې ښکرو

**تشریح** ﴿ ښکرې ئې بالکل نه وي.یا ماتیدل، د قربانۍ د جواز دپاره مانع نه دی.البته که ښکرې د جرړې نه اوخي.چه د ماتیدو اثر دننه پورې اورسیږي.نو ددې قرباني به جائز نه وي.[شامي ص: ۲۰۵، ج۵]

**دلیله** ﴿ ځکه چه ښکرپورې هیڅ مقصود متعلق نشته.نه دا غوښه ده چې څوك ئې اوخوري.اونه بل څه د فائدې څیز دې.

## د خصي د قربانۍ حکم

| |
|---|
| وَالْخَصِيِّ او د خصي قرباني جائز ده. |

**تشریح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ﴿ ځکه چه ددې غوښه خوږه (ترسکونه) وي او دا خبره د صحت درجې پورې رسیدلې ده چه نبي کریم ﷺ د دوو ګډانو قرباني اوکړله چه دا تور او سپین وو.(برګی) چه دا دواړه خصي وو. ([1])

## د لیوني څاروي قرباني کولو حکم

| |
|---|
| وَالْجَرْبَاءِ او په هغه څاروي چې خارښ پرې وي وَالثَّوْلَاءِ او د ثولاء یعنې د لیوني قرباني جائز ده |

**حل اللغة** ﴿ ① **الثولاء**: لیونۍ ② **الجرباء**: خارښتې، چه ښارښ وي پرې

**تشریح** ﴿ څاروي خو غیر ذوي العقول وي.نو دلته د لیونتوب نه مراد هسې بیسه اخوا دیخوا تختې راتختې مراد دی.نو که ګیا خوري.نو ددې قرباني جائز ده.ګنې نه ده.او که خارښ دې.نو دوه صورتونه دی.چه دې خارښ سره بدن کمزورې شوې دې.او که نه؟ که کمزورې شوې دې.نو معلومه شوه.چه خارښ په غوښه کښې هم دې.نو جائز نه ده.او که بدن کمزورې شوې نه دې.نو معلومه شوه.چه خارښ په څرمنه کښې دې.نو ددې قرباني جائز ده.

## قربانۍ دپاره درې څاروي دي

| |
|---|
| وَالْأُضْحِيَةُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْبَقَرِ وَالْغَنَمِ او قرباني به د اوښ، غوا او چیلۍ وي |

[1] من حديث عائشة وأبي هريرة رضي الله عنهما اخرجه ابن ماجه في سننه في الأضاحي باب ١ رقم ٣١٢٢ واحمد في المسند(٦\٢٢٠)ـ

**تشریح** ﴿ د قربانئ دپاره صرف دا درې څاروی مخصوص دی ① اوښ ② غوا، غوئې، میښه ③ چیلئ، ګډه او ګډ ـــ.

**دلیله** ﴿ د دې نه سوا په نورو څاروی قربانی ځکه نه کیږی.چې زمونږ دپاره مقتدا نبی کریم ﷺ او حضرات صحابه کرام دی.او په هغوی کښې چا هم د دې نه علاوه په بل څاروی قربانی نه ده کړې . ([1])

**د ګډو او چیلو د ..جذع.. او د باقی څاروو د.. ثنی.. قربانی جائز ده**

| |
|---|
| وَيُجْزِءُمِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ الثَّنِيُّ فَصَاعِدًا او په دې ټولو کښې ثنی یا ددې نه زیات کافی دی إِلَّا الضَّأْنَ علاوه د ګډې نه فَإِنَّ الْجَذَعَ مِنْهُ يُجْزِءُ ځکه چه ددې جذع کافی ده |

**حل اللغة** ﴿ ① **جذع**: د ګډې یا چیلئ هغه بچې چه د شپږو میاشتو شوې وی. ② **ثني**: د ګډې یا چیلئ هغه بچې کوم چه د یو کال وی.او د غوا او میښې هغه بچې کوم چه د دوو کالو وی.او د اوښې هغه بچې کوم چه د پنځو کالو وی.

**تشریح** ﴿ په قربانئ کښې دې دریو وارو کښې ثنی جائز ده.یعنی چیلئ د یو کال، غوئې د دوو کالو،او اوښ د پنځو کالو.البته چه ګډه کله چه د شپږو میاشتو وی.او سربه وی.چه دا د یو کال د ګډ برابر معلومیږی.نوددې قربانی جائز ده.د میښې او غوا یو جنس دې.

**دلائله** ﴿ ① د نبی کریم ﷺ فرمان دې ضَحُّوا بِالثَّنَايَا إِلَّا أَنْ يَعْسِرَ عَلَى أَحَدِكُمْ فَلْيَذْبَحِ الْجَذَعَ مِنَ الضَّأْنِ ([2]) چه د دریو وارو قربانی کوئ خوداچه دا په تاسو کښې په چاباندې ګران وی نو د ګډو جذع ذبح کوئ.

② د نبی کریم ﷺ ارشاد دې نِعْمَتِ الْأُضْحِيَةُ الْجَذَعُ مِنَ الضَّأْنِ [3] د ګډو جذع قربانی کول غوره قربانی ده.

**د قربانئ د غوښې پخپله خوړل،یا په خلقو خوړل،یا د اوچولو حکم .**

| |
|---|
| وَيَأْكُلُ مِنْ لَحْمِ الْأُضْحِيَةِ او اودې خوری د قربانئ د غوښې نه وَيُطْعِمُ الْأَغْنِيَاءَ وَالْفُقَرَاءَ وَيَدَّخِرُ او خوراك دې اوكړی.په مالدارو اوغريبانانو، |

**تشریح** ﴿ نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله** ﴿ دلیل د نبی کریم ﷺ حدیث دې چې دوی فرمانیلی دی كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ أَكْلِ لُحُومِ الْأَضَاحِيِّ فَكُلُوا مِنْهَا وَادَّخِرُوا.

([4])د نبی کریم ﷺ د فرمان په وجه، چه ما به تاسو د قربانئ د غوښو نه منع کولئ نو د دې نه خورئاو ذخیره کوئ (ایږدئ).

**د دریمې حصې صدقه کول مستحب دی**

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ لَا يَنْقُصَ الصَّدَقَةَ او مستحب دی چه صدقه کمه نکړی.مِنَ الثُّلُثِ د دریمې حصې نه، |

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله اما الإبل ففي مسلم في حديث جابر الطويل ان النبي ﷺ نحر بيده يوم النحر ثلاثا وستين بدنة وأما البقر ففي الصحيحين عن جابر وعائشة رضي الله عنهما أن النبي ﷺ ضحى عن نسائه بالبقر واما الغنم ففي الصحيحين أيضاً عن أنس رضي الله عنه ضحى بكبشين أملحين فلم ينقل خلافه (نصب: ٤\٥٠٩)ـ.

[2]) من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه مسلم في الأضاحي باب ١٣ وأبوداود في الأضاحي باب ٤ والنسائي في الضحايا باب ١٣ وابن ماجه في الأضاحي باب ٧)ـ.

[3]) من حديث أبي هريرة رضي الله عنه اخرجه الترمذي في الأضاحي باب ٧ وأحمد في المسند(٢\٤٤٥)ـ.

[4]) من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه مسلم في الأضاحي رقم ٢٩)ـ ١)

**تشریح** ﴿ د دریمې حصې صدقه کول مستحب دی.
**دلیله** ﴿ ځکه چه دلته درې طرفه دی. ① پخپله خوړل ② په بل خوړل ③ ایښودل. نو د هر طرف په حصه کښې دریمه راغله.نو صدقه دې د دریمې نه نه کمه وی.قانع صبر کونکې،څوک چه په نورو خلقو خپل ضرورت نه ښکاره کوی.معتر: بې صبره،کوم چه په نورو پورې اینخلی.او د غوښتلو عادت ئې وی.

## د قربانۍ د څرمنې حکم

| |
|---|
| وَيَتَصَدَّقُ بِجِلْدِهَا او صدقه دې کړی د قربانۍ څرمن أَوْيَعْمَلُ مِنْهُ آلَةً یا دې د څرمنې نه داسې څیز جوړ کړی تُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْتِ کوم چه په کور کښې استعمال کړې شی |

**حل اللغة** ﴿ ① جلد:څرمن
**تشریح** ﴿ د خپلې قربانۍ څرمن پخپله کور کښې ایښودل، او فائده اخستل جائز دی.خو غوره دا ده.چه صدقه کړې شی.
**دلیله** ﴿ ځکه چې د دې نه فائده اخستل جائز دی.او د څرمنې په بدله کښې داسې څیز هم اخستلې شی.کوم چه د څرمنې پشان وی.چه ددې څیزونو باقی ساتلو سره ددې نه فائده اخستلې شی.لکه کتب، او صندوق او مصلی (جا نماز) وغیره.البته که د روپو پیسو په بدله کښې ئې څرمن خرڅه کړله.یا ئې د داسې څیز په بدله کښې (خرڅه کړله).چه دهغې نه هغه وخت نفع اخستلې شی.چه دغه څیز ختم شی.نو اوس به د څرمن قیمت صدقه کول واجب وی.او په دې باب کښې چه کوم حکم د څرمن دې.هم هغه د غوښې دې.

## قرباني پخپله ذبح کول افضل دي

| |
|---|
| وَالْأَفْضَلُ او غوره دا ده أَنْ يَذْبَحَ أُضْحِيَّتَهُ بِيَدِهِ چه خپله قربانی پخپل لاس ذبح کړی إِنْ كَانَ يُحْسِنُ الذَّبْحَ که دې ښه ذبح کولو باندې پوهیږی |

**تشریح** ﴿ که پخپله ذبح کولو باندې پوهیږی.نو پخپله دې ذبح کړی.اوکه نه پوهیږی.نو د بل نه دې مدد حاصل کړی.خو افضل هم دا ده.چه پخپله هلته حاضر وی.لکه څنګه چه د مذکوره حدیث نه ثابته ده.
**دلیله** ﴿ نبی کریم ﷺ حضرت فاطمه ته فرمائیلی وو.قال علیه السلام لفاطمة قومي فاشهدي أضحيتك فإنه يغفر لك بأول قطرة من دمها كل ذنب [1] حضرت فاطمې رضي الله عنها ته چه اودریږه.خپلې قربانۍ سره حاضره شه ځکه.چه ددې د وینې رومبی څاسکی سره به ستا هره ګناه معاف کولې شی

## په کتابی سره د ذبح کولو حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْبَحَهَا الْكِتَابِيُّ او مکروه دی.چه قربانی کتابی ذبح کړی |

**تشریح** ﴿ د کتابی ذبیحه اګرچه حلاله ده.خو په ده باندې ذبح کول مکروه دی.
**دلیله** ﴿ ځکه چه دا یو قربت دې.او کتابی د قربت اهل نه دې.بهرحال که مسلمان کتابی ته قربانۍ ذبح کولو حکم ورکړو.نو قربانی به جائز نه وی.ځکه چه مسلمان دې نائب جوړ کړې دې.او مسلمان د قربت

---

[1] من حدیث عمران رضي الله عنه اخرجه الحاکم فی المستدرک (۲۲۲\٤)۔

خپل ضرورت نه ښکاره کوی.معتر: بې صبره،کوم چه په نورو پورې اینخلی.او د غوښتلو عادت نې وی.

### د قربانئ د څرمنې حکم

| |
|---|
| وَيَتَصَدَّقُ بِجِلْدِهَا او صدقه دې کړی د قربانئ څرمن أَوْيَعْمَلُ مِنْهُ آلَةً یا دې د څرمنې نه داسې څیز جوړ کړی تُسْتَعْمَلُ فِي الْبَيْتِ کوم چه په کور کښې استعمال کړې شي |

**حل اللغة** ﴿ ① **جلد**:څرمن

**تشریح** ﴿ د خپلې قربانئ څرمن پخپله کور کښې ایخودل، او فائده اخستل جائز دی.خو غوره دا ده.چه صدقه کړې شي.

**دلیله** ﴿ ځکه چې د دې نه فائده اخستل جائز دی.او د څرمنې په بدله کښې داسې څیز هم اخستلې شي.کوم چه د څرمنې پشان وی.چه ددې څیزونو باقی ساتلو سره ددې نه فائده اخستلې شي.لکه کټ، او صندوق او مصلی (جا نماز) وغیره.البته که د روپو پیسو په بدله کښې نې څرمن خرڅه کړله.یا نې د داسې څیز په بدله کښې (خرڅه کړله).چه دهغې نه هغه وخت نفع اخستلې شي.چه دغه څیز ختم شي.نو اوس به د څرمن قیمت صدقه کول واجب وی.او په دې باب کښې چه کوم حکم د څرمن دې.هم هغه د غوښې دې.

### قربانی پخپله ذبح کول افضل دی

| |
|---|
| وَالْأَفْضَلُ او غوره دا ده أَنْ يَذْبَحَ أُضْحِيَّتَهُ بِيَدِ پخپله قربانی پخپل لاس ذبح کړی إِنْ كَانَ يُحْسِنُ الذَّبْحَ که دې ښه ذبح کولو باندې پوهیږی |

**تشریح** ﴿ که پخپله ذبح کولو باندې پوهیږی.نو پخپله دې ذبح کړی.اوکه نه پوهیږی.نو د بل نه دې مدد حاصل کړی.خو افضل هم دا ده.چه پخپله هلته حاضر وی.لکه ځکه چه د مذکوره حدیث نه ثابته ده.

**دلیله** ﴿ نبی کریم ﷺ حضرت فاطمه ته فرمائیلی وو.قال علیه السلام لفاطمة قومي فاشهدي أضحيتك فإنه يغفر لك بأول قطرة من دمها كل ذنب [1] حضرت فاطمې ﷺ ته چه اودریږه.خپلې قربانئ سره حاضره شه ځکه.چه ددې د وینې رومبی څاڅکی سره به ستا هره ګناه معاف کولې شي

### په کتابی سره د ذبح کولو حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَنْ يَذْبَحَهَا الْكِتَابِيُّ او مکروه دی.چه قربانی کتابی ذبح کړی |

**تشریح** ﴿ د کتابی ذبیحه اګرچه حلاله ده.خو په ده باندې ذبح کول مکروه دی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه دا یو قربت دې.او کتابی د قربت اهل نه دې.بهرحال که مسلمان کتابی ته قربانئ ذبح کولو حکم ورکړو.نو قربانی به جائز نه وی.ځکه چه مسلمان دې نائب جوړ کړې دې.او مسلمان د قربت نیت کړې دې.نو دده نیت کافی دې.

### په غلطئ سره د یو بل د قربانئ ذبح کولو حکم

| |
|---|
| وَإِذَا غَلِطَ رَجُلَانِ اوکله چه دوو سړو غلطی اوکړله فَذَبَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أُضْحِيَّةَ الْآخَرِ نو ذبح کړله |

[1] من حدیث عمران ﷺ اخرجه الحاکم فی المستدرك (۴\۲۲۲)_

په دوی دوارو کښې هریودبل قربانی أَجْزَأَ عَنْهُمَا نو دا ددوی دوارو د طرفه کافی ده وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِمَا او په دوی دوارو باندې ضمان نشته

تشریح> دوو سړو د قربانۍ دپاره خپله خپله چیلۍ اخستې وی.بیا په ذبح کولو کښې غلطی واقع شوه.زید د خالد چیلۍ ذبح کړله.او خالد د زید،نو ذبح جائز ده اوپه یو کس باندې هم ضمان او تاوان نشته.

دلیله> دلیل دا دې.چه په دې کښې هره یوه چیلۍ دکوم کار دپاره متعین وه.هغه کار اوشو.یعنی دا چیلۍ قربانۍ کښې د ذبح کولو دپاره متعین وې.او دواړه په قربانۍ کښې ذبح کړې شوې.ځکه چه کومه چیلۍ وغیره قربانۍ دپاره متعین وی.نوپه دې کښې ګویا مالك دلالتاً د هر هغه کس نه مدد غواړی.کوم چه د ذبح کولو طریقه پیژنی.او د ذبح اهل وی.او ګویا دلالتاً هر داسې سړی ته دې د ذبح کولو اجازت ورکوی.ځکه دا خبره فیصله شوې ده.چه د قربانۍ ورځو تیریدو سره قربانی فوت کیږی .او ډیر وخته داسې کیږی.چه سړې پخپله د قربانۍ کولو نه عاجز کیږی.نوهغه له د نورو نه مدد اخستل ضروری وی.

نظیره> د مذکوره حکم بالکل داسې شو.لکه چه یو قصاب د چیلۍ خپې اوتړلې.او د ذبح تیاری ئې اوکړله.چه بل کس تسمیه سره په دې باندې چاړه راښکله.نو په دې چاړې راښکونکی باندې به ضمان واجب نه وی.ځکه چه دا خو د قصاب (ذبح کولو دپاره) معین شوه.دغه شان به دلته هم په زید او خالد کښې په هیڅ یوکس باندې ضمان واجب نه وی.او د هر یوکس قربانی به صحیح وی.

ملحوظه> دا حکم د جواز استحسان دی.د قیاس تقاضا عدم جواز دی.

# كِتَابُ الْأَيْمَانِ

ترجمه> (دا) کتاب د قسمونو(په بیان کښې) دې.

تشریح> یمین دکوم قسم په پابندی نه کولوچه جزاء لازمیږی. (دا واحد دې اوایمان ئې جمع ده)لکه والله زه به دا څیز نه خورم.نوکه هغه څیزئې اوخوړلو.نوکفاره به پرې لازمیږی.اوکه دا اووائی. که مادا څیز اوخوړلو .نو زما غلام دې آزاد وی.فقهاء داسې کلام ته یمین وائی.تردې که هغه څیزئې اوخوړلو نو غلام آزاد شو.اوحنث یعنی قسم ماتیږی.اوحانث قسم ماتونکې ګرځی.

**د یمین درې قسمونه**

(الْأَيْمَانُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَضْرُبٍ) يَمِينٌ غَمُوسٌ وَيَمِينٌ مُنْعَقِدَةٌ، وَيَمِينُ لَغْوٍ

حل اللغة> ①ایمان، جمع د یمین قسم ته وائی ② اضرب: جمع د ضرب ده دلته په معنی د قسم اوصنف دې ③ الغموس: په اصل کښې غوپه کیدو ته وائی اودلته هم چونکه په دروغه قسم خوړونکې په ګناه کښې غوپه کیږی ځکه ورته یمین غموس وائی

ترجمه> قسم په درې قسمه دې. ①یمین غموس②یمین منعقده③یمین لغو،

فَيَمِينُ الْغَمُوسِ هِيَ الْحَلْفُ عَلَى أَمْرٍ مَاضٍ يَتَعَمَّدُ الْكِذْبَ فِيهِ فَهٰذِهِ الْيَمِينُ يَأْثَمُ بِهَا صَاحِبُهَا وَلَا كَفَّارَةَ فِيهَا إِلَّا التَّوْبَةَ وَالْإِسْتِغْفَارُ

ترجمه> نویمین غموس په یو تیر شوی کار باندې قسم خوړل دی چې قصدا ئې په کښې دروغ ونیلی وی نودا قسم ددې خوړونکې ګناهګاریږی اوپه دې کښې کفاره نشته سوا د توبې او استغفار نه

**تعریف الغموس** غموس قسم خوړل دی په یو کار په زمانه تیره شوې کښې چه قصد نې کړې وی د دروغو په دې (قسم) کښې،

**حکمه** نودا قسم چه دې، گناهگاریږی په دې کښې صاحب د دې (یعنی قسم خوړونکې)

**دلیله** د نبی ﷺ ارشاد دې مَنْ حَلَفَ كَاذِبًا أَدْخَلَهُ اللهُ النَّارَ (۱) چاچه قسم اوخوړلو په دروغه داخل به نې کړی الله تعالی اور ته،

| |
|---|
| (وَلَا كَفَّارَةَ فِيهَا إِلَّا التَّوْبَةَ وَالِاسْتِغْفَارَ) |

**ترجمه وتشریح** او (دا دومره لویه گناه ده.چه) نشته کفاره په دې (یمین غموس) کښې،سوا د توبې اواستغفارنه، (۲)

**تشریح** په قسم غموس کښې د توبې اواستغفار نه سوا بل څه نشته.یعنی دا داسې گناه نه ده.چه په کفارې سره به معاف شی.بلکه دا داسې لویه گناه ده.چه د توبې اواستغفارنه سوا په بل څه نه معاف کیږی.

**دلیله** دشریعت احکام په دری قسمه دی.① عبادت محضه چه سبب نې صرف مباح څیزوی.لکه چه یوڅیزواخلی نوپه هغې باندې ملکیت راځی.اوددې ملکیت راتلوچه سبب ددغه څیزقیمت ادا کول دی.

② عقوبة محضه (صرف سزا ورکول) چه سبب نې صرف د ناجائزه کارارتکاب وی.لکه قصاص چه سبب نې قتل ناحق دې.

③ کفارات.دا د عبادت اوعقوبت دواړه په مینځ کښې دی.لکه روژه راواخله.دا دعبادت اوعقوبت په مینځ کښې شك واقع کونکې ده.څکه چه روژه د فرضی اونفلی هم وی.اود غیرشرعی کارپه ارتکاب سره هم لازمیږی.لکه دقسم ماتولوپه کفاره کښې چه دری روژې نیول شو.ددې تفصیل نه پس دمتن مسئلې ته راشه،یمین غموس چونکه گناه محضه ده.نودا چه د کوم څیزدپاره سبب گرځی.هغه به صرف سزا وی.دعبادت معنی به په کښې نه وی.لکه څنگه چه قتل گناه محضه ده.اودا چه د کوم سبب څیزسبب گرځی.هغه سزا ده.چه قصاص دې.دعبادت معنی په کښې نشته.اوس که مونږ یمین غموس د کفاره دپاره سبب اوگرځو.نودا صحیح نه ده.څکه چه کفاره صرف سزا نه ده.بلکه په دې کښې دعبادت معنی پرته ده.

**دیمین منعقده تعریف**

| |
|---|
| وَالْمُنْعَقِدَةُ مَا يَحْلِفُ عَلَى الْأَمْرِ الْمُسْتَقْبَلِ أَنْ يَفْعَلَهُ أَوْلَا يَفْعَلَهُ فَإِذَا حَنِثَ فِي ذَلِكَ لَزِمَتْهُ الْكَفَّارَةُ |

---

۱) خرجه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم نقل حديث اشعث بن قيس رضي الله عنه قال خاصم رجل من الحضرميين رجلاً منا يقال له الجفشيش الى النبي ﷺ في ارض له فقال النبي ﷺ للحضرمي جئ بشهودك على حقك والا حلف لك،فقال ارضي اعظم شانا من ان يحلف عليها فقال النبي ﷺ إن يمين المسلم ما وراءها اعظم من ذلك فانطلق ليحلف فقال ﷺ إن هو حلف كاذبا ليدخله الله النارفذهب الأشعث رضي الله عنه فاخبره فقال اصلح بيني وبينه،قال فاصلح بينهما اخرجه الطبراني في معجمه وروى بمعناه عن ابي امامة رضي الله عنه اخرجه ابن حبان في صحيحه وروى عن ابن مسعود رضي الله عنه في ذلك اخرجه البخارى في الأيمان والنذور باب ۱۱ ومسلم في الأيمان رقم ۲۲۰)۔

۲) **مسلك الشافعي**:- فرمائی شافعی رحمه الله په دې کښې کفاره شته.

**حل اللغة** ﴿ ①**لايؤاخذ: آخذ يؤاخذمؤاخذة** :نيول ②**عقد:** قصد كول

**ترجمه** ﴿ اويمين منعقده هغه قسم دي چه اوخورلي شي په يوكارپه مستقبل «راروانه زمانه» كنبې چه دا كار به كوي اويا به ئې نه كوي.اوهركله چه حانث شي«يعنې هغه كاراوكړي» لازميږي پرې كفاره،

**تشريح** ﴿ **دليله** ﴿ د الله تعالى ارشاد دې لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْ أَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُؤَاخِذُكُمْ بِمَا عَقَّدْتُمُ الْأَيْمَانَ نه نيسي تاسوالله تعالى په لغوسره په قسمونوستاسوكنبې «مثلاً چه تاسوپه خپل ګمان كنبې يوكاركړې وي.اوبه هغې قسم اوخورئ حالانكه په حقيقت كنبې مو هغه نه وي كړې» بلكه نيسي مو په هغه كوم چه تاسو مضبوط كړي وي په قسمونو.

**دیمین لغو تعریف**

(وَيَمِيْنُ اللَّغْوِهُوَأَنْ يَّحْلِفَ عَلٰى أَمْرٍمَاضٍ وَهُوَأَنَّهُ يَظُنُّ كَمَا قَالَ وَالْأَمْرُبِخِلَافِهِ فَهٰذِهِ الْيَمِيْنُ نَرْجُوْأَنْ لَا يُؤَاخِذَاللّٰهُ بِهٖ صَاحِبَهَا)

**حل اللغة** ﴿ ①**يظن:** ګمان كوي

**ترجمه** ﴿ اويمين لغو دا دې.چه قسم اوخوري په يوكارتيرشوي باندې اودې. ګمان كوي چه دا كارهم هغه شان دې څنګه چه دې وائي.خوكارهغه شان نه وي.نودا قسم مونږ اميد كوو چه نه به نسي الله تعالى په دې باندې خوړونكي ددې

**تشريح** ﴿ **دليله** ﴿ اصل «دليل» په دې «يمين لغو» كنبې قول دالله تعالى دې.چه «نه نيسي الله تعالى تاسو په لغو سره په قسمونوستاسوكنبې بلكه نيسي تاسو د آيت آخره پورې «اوايه»

البته ابو الحسن قدوري رحمه الله دا قسم په اميد سره مقيد كړلو«چه مونږ اميدساتو.چه الله تعالى به ئې نه نيسي.حالانكه الله تعالى د عفو وعده كړې ده.» دوجې داختلاف نه په تفسير ددې كنبې،

**الاختلاف في تعريف يمين اللغو** ﴿ چه ددې په تفسير كنبې اختلاف دې.①دحضرت عائشې رضي الله عنها نه د دې په تفسيركنبې نقل دي.چه د يمين لغو صورت دا دې.چه سړې اووائي.چه «لاوالله يا بلى والله» «دا حديث امام بخاري روايت كړې دې.اوامام ابوداود رحمه الله مرفوعاً روايت كړې دې.اوامام بيهقي اوابن حبان» هم مرفوع نقل كړې دې.اودارقطني رحمه الله فرمائيلي دي.چه ددې موقوف روايت هم صحيح دې.دغه شان امام شافعي اوامام مالك» هم روايت كړې دې.)_ ددې معنى دا ده.چه يوكس بل ته اووئيل.نن ته هلته نه ئې تلې.اوهغه ورته جواب وركړي.چه نه والله زه نه يم تلې. اودې په حقيقت كنبې هم هلته نه وي تلې.نودا يمين لغو شو.يا ورته اووائي.والله اوګوره زه په دې زير كاغذباندې ليكل كوم.اوهغه زير كاغذ وي.نودا هم لغو دې.څكه چه هركس دا ويني.چه دې په زيركاغذ باندې ليكل كوي.

②اوعبدالرزاق په خپل مصنف كنبې دحضرت مجاهد رحمه الله نه روايت كړې دې.چه لغو دا ده.چه يوكس په دې خبره قسم اوخوري.اودا پيژني.چه دا هم داسې دې.حالانكه په حقيقت كنبې هغه شان نه وي.نودا يمين لغودې.

③ اوسعيدبن جبير رحمه الله فرمائيلي دي.چه لغو دا ده.چه يوكس په حرام څيزقسم اوخوري.چه زه داسې نه كوم.

④اوحسن بصري اوابراهيم نخعي» فرمائيلي دي.چه يوكس په يوه خبره باندې قسم اوخوري.اويا ترې هيرشي.

⑤اوامام سرخسي رحمه الله په اصولوكنبې فرمائيلي دي.چه لغوهغه قسم دې.چه هغه شرعاً اووصفاً دقسم د فائدې نه خالي وي.څكه چه د قسم فائده دا ده.چه د يوداسې څيرخبرور كړي.چه په هغې كنبې د

دروغواحتمال وي.اویا قسم دهغې رښتیاوالي ثابت کړي.اوکه داسې نې اونکړلو.بلکه په داسې څیزنې قسم اوخوړلو.چه په هغې کښې د غلطۍ احتمال نه وي.نوهغه د فائدې نه خالی وي.

**په قسم کښې د زبردستۍ اوهیرۍ برابري**

| |
|---|
| (وَالْقَاصِدُ فِي الْيَمِينِ وَالْمُكْرَهُ وَالنَّاسِي سَوَاءٌ) |

**حل اللغة** ﴿ ① **القاصد:** قصد کونکې ② **المکره:** صیغه د اسم مفعول چا باندې چه زور اوزبردستی شوې وی ③ **الناسي:** هیرونکې

**ترجمه** ﴿ ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.قصدکونکی په قسم کښې اومجبوره شوې او هیرونکې برابردی (په حکم کښې)

**تشریح** ﴿ (په دې درې واړو صورتونوکښې) کښې کفاره واجبیږی

**دلیله** ﴿ دنبی ﷺ ارشاد دې ثَلَاثٌ جِدُّهُنَّ جِدٌّ وَهَزْلُهُنَّ جِدٌّ: النِّكَاحُ، وَالطَّلَاقُ، وَالْيَمِينُ } (۱)درې څیزونه دی.چه قصد خونې هسې هم قصد دې اوټوقې نې هم قصد دې. ① نکاح② طلاق ③ اوعتاق،

| |
|---|
| (وَمَنْ فَعَلَ الْمَحْلُوفَ عَلَيْهِ مُكْرَهًا أَوْنَاسِيًا فَهُوَسَوَاءٌ) |

**ترجمه** ﴿ اوچا چې اوکړلو هغه څیزچه قسم نې پرې خوړلې وی.په زبردستۍ یا په هیره نودا برابر دی.

**دلیله** ﴿ ځکه چه فعل حقیقی نه نشت کیږی په زبردستۍ سره (یعنی دفعل حقیقت موجود شوې دې.که په رضا وی اوکه په زبردستۍ،لکه څنګه چه ګلاس مات کړی.که په زور وی اوکه په رضا ګلاس خومات شوکه نه،) اوهم دا (وجود د فعل) شرط دې (د حانث کیدو دپاره)

| |
|---|
| (وَالْيَمِينُ بِاللّٰهِ تَعَالٰى أَوْبِاسْمٍ مِنْ أَسْمَائِهِ كَالرَّحْمٰنِ وَالرَّحِيمِ أَوْبِصِفَةٍ مِنْ صِفَاتِ ذَاتِهِ كَعِزَّةِ اللّٰهِ وَجَلَالِهِ وَكِبْرِيَائِهِ) |

**ترجمه** ﴿ یمین (منعقد) کیږی په (اسم د) الله اوپه بل نوم باندې دالله تعالی د نومونو ځنی،لکه رحمن رحیم اویا په یوصفت سره دده د صفتونوځنی، لکه عزت دالله جلال دالله کبریاء دالله

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ ځکه چه قسم په دې (الفاظو) متعارف دې.اومعنی د یمین چه قوت دې هغه حاصل ده ،ځکه چه دې (حالف) اعتقاد کوی د تعظیم دالله اودتعظیم دصفاتود هغه،نوصلاحیت لری ذکردې چه اماده کونکی شی (په کولودیوکار) اومانع شی. (حالف لره د کولود یوکارنه)

| |
|---|
| (إِلَّا قَوْلَهُ وَعِلْمِ اللّٰهِ فَإِنَّهُ لَا يَكُونُ يَمِينًا) |

**ترجمه** ﴿ (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمائی.خونه منعقد کیږی (قسم) په وینا دده چه په علم دالله

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ ځکه چه (په عرف کښې) دا یمین نه دې.اوبله دا چه دا ذکرشی اومراد ترې معلوم وی.ونیلی شی ای الله ته خپل علم (کوم چه زمونږ په ګناهونو تاته حاصل دې) معلومات ماته اوبښه،

| |
|---|
| (وَإِنْ حَلَفَ بِصِفَةٍ مِنْ صِفَاتِ الْفِعْلِ كَغَضَبِ اللّٰهِ وَسَخَطِهِ لَمْ يَكُنْ حَالِفًا) |

---

١) قال الزيلعي رحمه الله هكذا!! ذكره المصنف وبعض الفقهاء يجعل عوض اليمين العتاق ومنهم صاحب الخلاصة والغزالي في الوسيط وغيرهما وكلاهما غريب وإنما الحديث ((النكاح والطلاق والرجعة)) أخرجه أبوداود في الطلاق باب ٩ رقم ٢١٩٤ والترمذي في الطلاق باب ٩ وابن ماجه في الطلاق باب ١٣ رقم ٢٠٣٩ـ

ترجمه> اوكه قسم اوكړي په صفت سره د صفاتو د فعل نه لكه غضب دالله اوپه غصه دهغه نو نه ګرځي قسم خوړونكي په الله اودغه شان (چه اووائي.قسم دې وى) په رحمت دالله ، (نوهم قسم خوړونكي نه ګرځي.

تشريح> دليله> ځكه چه قسم په دې (جملوباندې) نه دې متعارف اوبله دا چه رحمت كله مراد اخستې شي په دې سره اثر ددې (رحمت) او هغه (اثرد رحمت) باران يا جنت دې.اوغضب او غصه مراد ا خستې شي په دې سره سزا.

**په غيرالله باندې دقسم خوړلو حكم**

(وَمَنْ حَلَفَ بِغَيْرِاللّٰهِ لَمْ يَكُنْ حَالِفًا كَالنَّبِيِّ والقرآن وَالْكَعْبَةِ)

ترجمه> اوڅوك چه اوخوري قسم په غيرالله نونه ګرځي قسم خوړونكي لكه په نبي ﷺ په قران اوخانه كعبه باندې

تشريح> دليله> د نبي ﷺ ارشاد دې مَنْ كَانَ مِنْكُمْ حَالِفًا فَلْيَحْلِفْ بِاللّٰهِ أَوْلِيَذَرْ (۱)څوك چې په تاسوكښې قسم خوري نوقسم دې خوري په الله تعالى اويا دې نه خوري

انعقاد الحلف بالقرآن> صاحب دبدائع رحمه الله فرمائيلي دى.چه په نبي اوكعبه باندې قسم ځكه نه كيږي.چه دا غيردى دالله تعالى نه،البته په قرآن باندې قسم كيږي.ځكه چه قرآن اګرچه دالله تعالى ذات نه دې.خودهغه صفت ضرورودې.نودصاحب بدائع رحمه الله دقول مطابق په قرآن باندې قسم منعقد كيږي.البته صاحب دهدايه رحمه الله فرمائي.چه په قرآن باندې دخلقوقسم كول متعارف نه دى.نود تعارف دقيد نه دا معلوميږي.چه په كوموعلاقوكښې په قرآن باندې قسم كول متعارف وى اوپه رواج كښې وى.نوپه هغه علاقوكښې په قرآن قسم صحيح كيږي.لكه زمونږصوبه سرحد په علاقوكښې چه خلق په قران قسم كوى. اوداحنافوپه نيزهم دا قول مفتى به دې.چه په قران قسم منعقد كيږي.

**دقسم الفاظ**

(وَالْحَلِفُ بِحُرُوفِ الْقَسَمِ وَحُرُوفُ الْقَسَمِ ثَلَاثَةُ الْوَاوُ كَقَوْلِهِ وَاللّٰهِ وَالْبَاءُ كَقَوْلِهِ بِاللّٰهِ وَالتَّاءُ كَقَوْلِهِ تَاللّٰهِ)

ترجمه> صاحب دقدوري رحمه الله فرمائي.اوقسم كول په حروفو دقسم سره قسم وى. (كه حرف قسم په كښې نه وى.نوقسم به نه وى)اوحروف قسم واو دې.لكه دده قول چه ((والله)) اوباء لكه د ده قول چه ((بالله)) اوتاء لكه د ده قول چه ((تالله))

تشريح> دليله> ځكه چه دا ټول الفاظ په يمين كښې معلوم دى. (چه دقسم الفاظ دى)او ذكرشوى دى په قرآن كښې،

(وَقَدْ تُضْمَرُ الْحُرُوفُ فَيَكُونُ حَالِفًا كَقَوْلِهِ اللّٰهِ لَا أَفْعَلُ كَذَا)

حل اللغة> ① يضمر:پټول

ترجمه> اوكه كله حرف قسم پټ وى.لكه دده قول چه ((الله لاأفعل كذا)) په الله قسم چه زه به فلانې كارنه كوم،

۱)من حديث ابن عمر رضي الله عنه اخرجه البخارى فى الأدب باب ۷۴ رقم ۶۱۰۸ ومسلم فى الأيمان رقم ۲ وابوداود فى الأيمان والنذور باب ٤ رقم ۳۲۴۹ والترمذى فى النذور باب ۹ وابن ماجه فى الكفارات وباب ۲ رقم ۲۰۹٤)

**تشریح** دلیله خکه چه حذف کول دحرف دعربوعادت دي. (چه په خپل کلام کښې حذف د حرف قسم کوی) دپاره د اختصار(چه په کلام کښې لندوالي پیدا شي)

**په ((بحق الله)) دقسم په انعقادکښې اختلاف**

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ: إِذَاقَالَ وَحَقِّ اللّٰهِ فَلَيْسَ بِحَالِفٍ.(۱) |

**ترجمه** اوفرمائی امام ابوحنیفه رحمه الله کله چه اووائی قسم دې وی په حق دالله نو قسم خوړونکي نه دې .

**تشریح** دطرفینو په نیز په مذکوره صورت کښې قسم خوړونکي حالف نه دې د امام ابویوسف نه هم دا یو روایت دې.

**دلیلهما** د طرفین رحمهما الله دلیل دا دې.چه اراده کولې شی په حق سره طاعت دالله تعالی،خکه چه طاعات دالله تعالی حقوق دی.نودا قسم په غیرالله شو. (اوقسم په غیرالله نه صحیح کیږی.دغه شان دا هم نه صحیح کیږی)

**مسلک ابي یوسف** دامام ابویوسف په نیز په دویم روایت کښې دا دی چې بل روایت دا دې،چه دا یمین دې،

**دلیله** خکه چه حق دالله تعالی دصفاتوخنی دې،اودا حقیقت دې.نودا داسې شولکه چه دې اووائی قسم دې وی په الله چه حق دې،اوپه دې الفاظوباندې قسم (په خلقوکښې) متعارف (اومروج) دې.

| |
|---|
| (وَإِذَاقَالَ أُقْسِمُ أَوْأُقْسِمُ بِاللّٰهِ أَوْأَحْلِفُ أَوْأَحْلِفُ بِاللّٰهِ أَوْأَشْهَدُ أَوْأَشْهَدُ بِاللّٰهِ فَهُوَحَالِفٌ) |

**ترجمه** اوکه اووائی چه زه قسم کوم یا اووائی قسم کوم په الله باندې او حلف اوچتوم یا حلف اوچتوم په الله باندې اویا ګواهی کوم یا ګواهی کوم په الله باندې (نوپه دې ټولو صورتونوکښې) دې قسم کونکې دې.

**تشریح** **دلیله** کوم الفاظ چه په متن کښې ذکردی.په شریعت اوعرف دواړوکښې دا په الله تعالی باندې دقسم دپاره استعمالیږی.نوپه دې باندې قسم منعقد کیږی.که ده نیت دقسم کړې وی اوکه نه وی کړې.

| |
|---|
| (وَكَذٰلِكَ قَوْلُهُ وَعَهْدُ اللّٰهِ وَمِيثَاقُهُ |

**حل اللغة** ① **عهدالله**: وعده د الله ② **میثاق**: محکمه او مضبوطه وعده

**ترجمه** اودغه شان (قسم منعقد کیږی په) قول د ده (قائل) چه ((عهدالله)) اوپه ((میثاق الله)) باندې، (په عهدالله باندې منعقد کیږی)

**تشریح** **دلیله** خکه چه عهد یمین دې.الله تعالی فرمائیلی دی،، پوره کړئ وعده دالله تعالی،، اومیثاق عبارت دې د عهد نه(نولکه څنګه چه په عهد باندې قسم منعقد کیږی دغه شان په میثاق باندې هم)

| |
|---|
| (وَعَلَيَّ نَذْرٌ أَوْنَذْرُ اللّٰهِ فَهُوَيَمِينٌ |

**ترجمه** اوکله چه اووائی په ما باندې نذردې یا په ما باندې دالله تعالی نذردې.نودا قسم دې.

---

(۱) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(٣٥٨٠\٤) والهندية (٢\٥٢) وخلاصة (١٢٦\٢) ورد المحتار (٦٢\٣) نقلاً عن القول الراجح (٤٠٨/١)-

**تشريح﴾ دليله﴾** د نبي كريم ﷺ ارشاد دې مَنْ نَذَرَ نَذْرًا وَلَمْ يُسَمِّ فَعَلَيْهِ كَفَّارَةُ يَمِيْنٍ }(١)چا چه نذر اوكړلو په نذر كولو سره اوبيان ئې نكړلو.نوپه ده باندې كفاره د قسم ده.

**كفرد شرط جزاء ګرځول**

| (وَإِنْ قَالَ إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَهُوَ يَهُوْدِيٌّ أَوْ نَصْرَانِيٌّ اوجوسي اومشرك أَوْ كَافِرٌ يَكُوْنُ يَمِيْنًا) |
|---|

**ترجمه﴾** اوكه داسې ئې اووئيل.كه ده (يعني ما) فلاني كاراوكړلونودې (يعني زه) به يهودي يا نصراني (١ مجوسي يا مشرك يا كافريم. (كه په دې درې واړو الفاظوكښې ئې يولفظ اووئيل. نودا الفاظ د يمين دی)

**تشريح﴾ دليله﴾** كوم الفاظ چه دې قائل اووئيل.نوپه ظاهره دا د قسم الفاظ نه دی. خو د دې وجې يمين ګرځي.چه دلته دوه څيزونه دی.يوشرط چه دكاركول دی.اودويمه جزاء چه د يهوديت يا نصرانيت يا كفرواقع كيدل دی.نوده په خپل قول كښې شرط يعني دكاركول دجزاء يعني يهوديت وغيره دپاره يوه نښه اوګرځوله.اويقيني ده چه مسلمان دهرهغه كارنه ځان ساتل واجب ګڼړي.په كوم چه دې كافركيږي.نوده چه خپل كاركول دكفردپاره نښه اوګرځوله.نودې د دغه كارنه ځان ساتل ضروري ګڼړي.

**په غضب الله اوسخط الله پورې دتعليق حكم**

| (وَإِنْ قَالَ فَعَلَيَّ غَضَبُ اللهِ أَوْ سَخَطُهُ فَلَيْسَ بِحَالِفٍ) |
|---|

**ترجمه﴾** اوكه داسې ئې اووئيل.كه ما دا كاراوكړلو.نوپه ما دې دالله تعالى غضب يا غصه وی.نودې قسم خوړونكې نه دې.

**تشريح﴾ دلائله﴾** ① څكه چه دا خپل ځان ته خيرې كول دی. (قسم نه دې) اودا د شرطونوسره څه تعلق نه ساتی.

② اوبله دا چه (دقسم دانعقاد دپاره عرف هم يودليل دې.او)دا (په خلقوكښې) غيرمتعارف دې. (يعني رواج ئې نشته.څوك په دې الفاظوقسم نه خوري)

| وَكَذَا إِنْ قَالَ إِنْ فَعَلْتُ كَذَا فَأَنَا زَانٍ أَوْ شَارِبُ خَمْرٍ أَوْ آكِلُ رِبًا فَلَيْسَ بِحَالِفٍ |
|---|

**ترجمه﴾** اوداسې حكم ددې هم دې.كه اووائي.كه ما فلاني كار اوكړلو.نوزه دې زناكار يا دې شرابی يم يا سود خور يم.نو(په دې صورتونوكښې قسم خوړنكې نه ګرځي.)

**تشريح﴾ دليله﴾** څكه چه ددې څيزونوحرمت دمنسوخ كيدو اوبدليدو احتمال لرې.نود الله تعالى د نوم د حرمت پشان نشو. (څكه چه دالله تعالى نوم هميشه دپاره واجب الاحترام دې) اوبله دا چه په دې الفاظو قسم خوړل متعارف نه دې. (يعنى په خلقو كښې ئې رواج نشته)

**دكفاره قسمونه**

| كَفَّارَةُ الْيَمِيْنِ عِتْقُ رَقَبَةٍ يُجْزِئُ فِيْهَا مَا يُجْزِئُ فِي الظِّهَارِ وَإِنْ شَاءَ كَسَا عَشَرَةَ مَسَاكِيْنَ كُلَّ وَاحِدٍ ثَوْبًا فَمَا زَادَ، وَأَدْنَاهُ مَا يَجُوْزُ فِيْهِ الصَّلَاةُ وَإِنْ شَاءَ أَطْعَمَ عَشَرَةَ مَسَاكِيْنَ كَالْإِطْعَامِ فِي كَفَّارَةِ الظِّهَارِ) |
|---|

١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه أبوداود في الأيمان والنذور باب ٢٥ رقم ٣٣٢٢ وابن ماجه في الكفارات باب ١٧ رقم ٢١٢٨)۔

**حل اللغة** ﴿ ① **کسا:** واغوندی صیغه د مذکرغائب ② **ثوبا:** جامه ③ **ادنا:** معمولی ④ **اطعم:** خوراک دې اوکړی

**ترجمه** ﴿ دقسم کفاره د غلام آزادول دی په دې کښې هغه څیزکافی کیږي.کوم چه په کفاره دظهارکښې کافي کیږي.یا خودې لسومسکینانوته جامې واغوندوی.هریومسکین ته دې یوه جوړه جامې ورکړي.یا که د یوې جوړې نه زیاتې وی. (نوهم ښه خبره ده) او معمولی جامه هغه ده.چه مونځ په کښې جائز کیږي. (یعنی چه سترعورت پرې پټیږي) اوکه غواړي نو لسو مسکینانوته دې روټۍ ورکړي.لکه څنګه چه په کفاره د ظهارکښې دی. (چه لسومسکینانوته روټۍ ورکوی)

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ دلیل دالله تعالی دا ارشاد دې.[فَكَفَّارَتُهُ إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِينَ مِنْ أَوْسَطِ مَا تُطْعِمُونَ أَهْلِيكُمْ أَوْ كِسْوَتُهُمْ أَوْ تَحْرِيرُ رَقَبَةٍ] چه ددې (ظهار) کفاره لسو مسکینانوته روټۍ ورکول دی.

(فَإِنْ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى أَحَدِ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ الثَّلَاثَةِ صَامَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مُتَتَابِعَاتٍ)

**حل اللغة** ﴿ ① **يقدر:** قادر وی ② **ايام:** جمع د یوم ورځ ③ **متتابعات:** پرله پسې

**ترجمه** ﴿ صاحب دقدوری رحمه الله فرمائی.که په دې درې څیزونوکښې په یوڅیزهم قادر نه وو. نو (ددې په ځاې به) درې ورځې به پرله پسې روژې اونیسی.([1])

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ په تتابع اوپرله پسې والی باندې دلیل د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه قراءت دې.څکه چه دهغوی په قراءت کښې ((فصيام ثلاثة ايام متتابعات)) دی.اودا قراءت دخبرمشهور پشان دې.اوقاعده دا ده.چه د خبر مشهور په وجه په کتاب الله باندې زیادت جائز دې.

**د حنث نه وړاندې دکفاره ورکولو حکم**

(فَإِنْ قَدَّمَ الْكَفَّارَةَ عَلَى الْحِنْثِ لَمْ يُجْزِهِ)

**ترجمه** ﴿ اوکه حالف د حانث کیدونه وړاندې کفاره ورکړله.نوجائزنه ده. ([2])

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ دلیل دا دې.چه دکفاره وجوب د ګناه پټولو دپاره دې. (چه کفاره ورکړي.اوګناه نې پټه شي) اودلته خو ګناه نشته. (څکه چه صرف په یمین منعقده خوړلوکښې ګناه نشته.ګناه خوهله وی.چه حانث شی)

**په ګناه باندې دقسم کولوحکم**

(وَمَنْ حَلَفَ عَلَى مَعْصِيَةٍ مِثْلَ أَنْ لَا يُصَلِّيَ أَوْ لَا يُكَلِّمَ أَبَاهُ أَوْ لَيَقْتُلَنَّ فُلَانًا يَنْبَغِي أَنْ يُحْنِثَ نَفْسَهُ وَيُكَفِّرَ عَنْ يَمِينِهِ)

**حل اللغة** ﴿ ① **معصية:** ګناه ② **ينبغي:** پکار دی مناسب دی

**ترجمه** ﴿ که یوکس په ګناه باندې قسم اوخوری مثلاً دا چه مونځ به نه کوی.اویا خپل پلار سره به خبرې نه کوی،یا فلانې به قتلوی.نوپکار ده چه خان حانث کړی.اودخپل قسم کفاره ورکړی.

---

[1] **مسلک الشافعي:** - امام شافعی رحمه الله فرمائی. (چه په پرله پسې والی اوجدا جدا نیولوکښې) ده ته اختیاردې. (چه څنګه نې نیسی جائزدې)

[2] **مسلک الشافعي:** - امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه دمال نه کفاره ورکول جائزدې. (اګرچه د حنث نه نې وړاندې کړی)

**تشریح> دلیله>** ځکه چه د نبی ﷺ ارشاد دی. مَنْ حَلَفَ عَلَى يَمِينٍ وَرَأَى غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا فَلْيَأْتِ بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ ثُمَّ لِيُكَفِّرْ عَنْ يَمِينِهِ [1] چا چه په یوڅیزباندې قسم اوخوړلو.اوبیا ئې بل څیزدهغې نه ښه اولیدلو. نوهغه کاردې اوکړی.کوم چه غوره وی.اوبیا دې دخپل قسم کفاره ورکړی.

## دکافردقسم اوکفارې حکم

(وَإِذَا حَلَفَ الْكَافِرُ ثُمَّ حَنِثَ فِي حَالِ الْكُفْرِ أَوْ بَعْدَ إِسْلَامِهِ فَلَا حِنْثَ عَلَيْهِ)

**ترجمه>** اوکله چه کافرقسم اوخوری.اوبیا هم دکفرپه حالت کښې حانث شی.یا داسلام نه پس حانث شی. (یعنی قسم مات کړی) نوپه ده باندې کفاره نشته.

**تشریح> دلیله>** ځکه چه (دقسم خوړلوپه وخت کښې) دې د یمین اهل نه وو.ځکه چه قسم دالله تعالی دتعظیم دپاره خوړلې شی.اوچه کافروی نوده کښې دتعظیم صلاحیت نشته.او (کفاره پرې هم نه لازمیږی.ځکه چه) دې دکفارې اهل نه دې.ځکه چه کفاره عبادت دې. (کافردعبادت اهل نه دې.اول به ترې مطالبه دایمان کولې شی.بیا روستود نوروفروعی احکامو)

## دحلال څیزحرامولوحکم

(وَمَنْ حَرَّمَ عَلَى نَفْسِهِ شَيْئًا مِمَّا يَمْلِكُهُ لَمْ يَصِرْ مُحَرَّمًا وَعَلَيْهِ إِنِ اسْتَبَاحَهُ كَفَّارَةُ يَمِينٍ)

**حل اللغة>** ① **حرم:** حرام کړل ② **استباح:** مباح ګرځول

**ترجمه>** اوچا چه په خپل ځان باندې یوڅیزحرام کړل.چه دې ئې مالك وو.نوهغه په ده باندې نه حرامیږی.اوکه (دحرامولونه پس ئې) هغه مباح کړلو. (یعنی استعمال ئې کړلو) نوپه ده باندې دقسم کفاره ده. ([2])

**تشریح> دلیله>** مونږ د قائل الفاظوته ګورو.نوددې الفاظو تقاضا دا ده.چه دغه څیزدې حرام شی.ځکه چه د یوعاقل بالغ خبره به د لغویت نه بچ شی.نواوس په دې ځائې کښې دوه خبرې جمع شوې یود شریعت حکم چه حلت دې.اوبل د قائل دالفاظوحکم چه حرمت دې.نومونږ راولګیدو.داسې یوه طریقه مو اختیارکړه.چه نه سیخ اوسوزی اونه کباب،یعنی چه د شریعت حکم هم بدل نشی.اودقائل قول هم لغو نشی.هغه طریقه دا ده.چه حرمت په دوه قسمه دې.یوحرمت لذاته دې اوبل حرمت لغیره دې.نومونږ دا منوچه دغه څیزچه قائل حرام کړې دې.دا حرام لذاته دې.خود قسم د وجې حرام لغیره هم دې.نوهم یوڅیزحرام او حلال دواړه شو.خود ذات اودغیرپه اعتبار سره،ددې مثال به داسې وی.چه بیع مباح ده.خوچه کله د جمعې په ورځ د جمعې دپاره اذان اوشی.نوخرڅول اخستل حرام شی.نوګوره هم یوڅیزچه بیع ده.مباح لذاته ده.خوحرام لغیره ده.اوهغه غیرد جمعې مانځه ته تلل دی.هم دغه شان په زیربحث مسئله کښې یوڅیزحلال لذاته دې اوحرام لغیره شو.

## د ((كل حل علي حرام)) حكم

(فَإِنْ قَالَ كُلُّ حِلٍّ عَلَيَّ حَرَامٌ فَهُوَ عَلَى الطَّعَامِ وَالشَّرَابِ إِلَّا أَنْ يَنْوِيَ غَيْرَ ذَلِكَ)

**ترجمه>** اوکه یوکس داسې اووائی.چه هرحلال څیزپه ما باندې حرام دې. (نواګرچه دا عام لفظ دې په دې کښې هرڅیز داخل شو.خوبیا هم هرڅیزپرې نه حرامیږی.بلکه) د دې نه به دخوراك څکاك څیزونه

---

[1] من حديث أبي هريرة ﷺ اخرجه مسلم في الأيمان والنذور رقم ١٣)۔

[2] **مسلك الشافعي:** - امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په ده کفاره نشته.

مراد وي.البته دا ده.كه ددې دواړه قسمه څيزونونه علاوه هم ده په نيت كښې راوستې وي. (نوهغه به په كښې هم داخل وي.مثلاً دا چه زه به دفلانى كورته نه داخليږم.نودا هم يوحلال كاردې.خوكه ده نې نيت كړې وي.نودا به په كښې هم شامل وي.دا حكم چه ددې نه به صرف د خوراك څكاك څيزونه مراد وي. استحساني حكم دې)

**تشريح** ‹ **وجه الاستحسان** › د استحسان وجه دا ده.دقسم اصلى مقصد دهغې پوره كول وي. (چه محلوف عليه كاراونشى.اوقسم مات نشى)اودا مقصود (چه د قسم نه ماتيدل دى) په دې صورت كښې نه حاصليږى.كه مونږ ددې نه عامه معنى واخلو. (نومونږددې عامه معنى وانخستله) اوهركله چه د دې قول عموم ساقط شو.نوددې نه به صرف دخوراك څكاك څيزونه مراد وي.دعرف د وجې.څكه چه په عرف كښې داسې لفظ دخوراك څكاك د څيزونودپاره استعماليږى. (اودقسم په باب كښې عرف لره اعتبارشته.نوددې نه به صرف دخوراك څكاك څيزونه مراد وي.كه ددې نه علاوه بل مباح كاراوكړى.نونه به حانثيږى)

**القياس** ‹ دقياس تقاضا دا ده.چه څنګه دې ددې قول نه فارغ شى.نودې به حانثيږى.څكه چه (د دې قول نه پس سمدستى) ده يو مباح فعل اوكړلو(چه ده دپاره جائزوو) چه ساه اختسل يا بل څه (مثلاً قدم اختسل) دى.اودا (چه ددې نه پس سمدستى قائل حانثيږى) د امام زفر رحمه الله قول دې.خو

(وَمَنْ نَذَرَنَذْرًامُطْلَقًافَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ)

**ترجمه** ‹ اوچا چه مطلق نذراومنلو.نوپه ده باندې دهغې پوره كول واجب دى.

**تشريح** ‹ **دليله** › څكه چه د نبى ﷺ ارشاد دې . مَنْ نَذَرَ وَسَمّٰى فَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ بِمَا سَمّٰى } (۱)چا چه نذراوكړلو.اوهغه نذرئې متعين كړلو. (چه مثلا په مادې دالله تعالى دپاره يوه روژه وى) نوپه دې باندې ددغه نذرپوره كول واجب دى.

وَإِنْ عَلَّقَ النَّذْرَبِشَرْطٍ فَوُجِدَ الشَّرْطُ فَعَلَيْهِ الْوَفَاءُ بِنَفْسِ النَّذْرِ)

**ترجمه** ‹ اوكه په يوشرط پورې ئې نذرمعلق كړلو. (مثلاً كه زه په امتحان كښې پاس شوم. نوپه ما دې يوه ورځ روژه نذروى) نوچه شرط موجود شى. (لكه كوم زمونږ په وركړى مثال كښې چه روژه ده) نوپه ده باندې ددغه نذر پوره كول واجب شو.

**تشريح** ‹ **دليله** › څكه چه دحديث په اطلاق كښې دا هم داخل دى.يعنى په حديث كښې د دې خبرې ذكر دې چې چا نذر اوكړو.نوهغه دې پوره كړى او دا ذكر په كښې نشته چې نذرمطلق ئې كړې دې او كه نذر معلق .نودا نذر معلق په كښې هم داخل شو.او وفا به پرې كوى.

(وروي انا اباحَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ رَجَعَ عَنْ ذٰلك وَقَالَ :إذَاقَالَ إنْ فَعَلْتُ كَذَا فَعَلَيَّ حَجَّةٌ أوْصَوْمُ سَنَةٍ أوْصَدَقَةُ مَالٍ امْلِكُهُ أجْزَأَهُ مِنْ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ يَمِينٍ .وَهُوَقَوْلُ مُحَمَّدٍ رَحِمَهُ اللّٰهُ

**ترجمه** ‹ دامام ابوحنيفه رحمه الله نه دا هم نقل دى.چه دوى دخپل دې قول نه(چه نذرمعلق دنذر مطلق پشان

---

۱)غريب الزيلعي رحمه الله هذا اللفظ ثم اخرج احاديثاً في وجوب الوفاء بالنذر منها حديث عائشة رضي الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ من نذر أن يطيع الله فليطعه ومن نذران يعصى الله فلا يعصه اخرجه البخارى في الأيمان باب ۲۸ وابوداود في الأيمان باب ۱۹ والترمذى في النذور باب ۲ والنسائى في الأيمان باب ۲۷ وابن ماجه في الكفارات باب ۱٦ والدارمى في النذور باب ۳ ومالك في النذور رقم ۸ واحمد في المسند ٦/۳٦)۔

دي) رجوع کړې ده.اوامام اعظمؒ فرمائيلي دي.چه يوکس دا اووائي.که ما فلانې کاراوکړلو.نوپه ما دې حج يا روژه يا ديوکال روژې يا دهغه څيزصدقه واجب وي. کوم چه زه مالك يم.نوپه دې (خلورو وارو صورتونوکښې) ده دپاره دقسم کفاره کافي کيږي. (که د قسم کفاره ورکړي.اودغه څيزونه اونکړي.نوغاړه ئې نيولې نه ده)اودا دامام محمدؒ قول دي.

**تشريح** > د ترجمې اواضافي قيوداتونه مطلب واضح دي.

## کورته د داخليدو نه قسم خوړل

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ بَيْتًا فَدَخَلَ الْكَعْبَةَ أَوِ الْمَسْجِدَ أَوِ الْبِيعَةَ أَوِ الْكَنِيسَةَ لَمْ يَحْنَثْ)

**حل اللغة** > ① **البيعة**: د يهوديانو عبادت خانه ② **الکنيسة**: د عيسايانو عبادت خانه

**ترجمه** > څوك چه قسم اوخوري چه کورته به نه داخليږي. (ددې قسم نه پس) بيا دې خانه کعبه يا جمات يا کليسې(د يهوديانوعبادت خانه) يا ګرجې(دعيسايانوعبادت خانه) ته داخل شو.نوپه دې داخليدو دې) نه حانثيږي.

**تشريح** > **دليله** > خکه چه کورهغه خائې ته وائي.چه د شپې تيرولو دپاره جوړ شوې وي.اودا خايونه (چه کوم ذکر شول) د شپې تيرولودپاره نه دي تيارشوي.

## د خبرو کولوقسم نه پس قرآن پاك لوستل

(وَمَنْ حَلَفَ أَنْ لَا يَتَكَلَّمَ فَقَرَأَ الْقُرْآنَ فِي الصَّلَاةِ لَمْ يَحْنَثْ.

**ترجمه** > اوکه قسم ئې اوخوړلو.چه خبرې به نه کوي. (اوددې قسم نه پس ئې) په مانځه کښې قرآن اولوستلو . (نوپه دې صورت کښې) نه حانثيږي. ([1])

**تشريح** > **دليله** > دليل دا دې.چه په مانځه کښې دننه دا څيزونه د عرف اوشريعت په رنړا کښې کلام نه دې. (په شريعت کښې خوځکه کلام نه دې.چه) نبي ﷺ فرمائيلي دي.إِنَّ صَلَاتَنَا هَذِهِ لَا يَصْلُحُ فِيهَا شَيْءٌ مِنْ كَلَامِ النَّاسِ }([1])زمونږپه دې مونځ کښې دخلقود خبرو څه ګنجائش نشته. (چه خلق په مانځه کښې خبرې کوي.نوکه په مانځه کښې دقرآن لوستل کلام وو.پکاردا وه.چه په دې باندې مونځ ماتيدلو.حالانکه مونږ په مانځه کښې قرات لولو.خوځوك هم دا نه وائي.چه دده.قرآت خبرې دی.اوپه دې باندې مونځ ماتيږي)

**قول بعض العلماء** > اووئيلي شوي دي.چه په عرف کښې دمانځه نه سوا په بل څه کښې هم د قرآن لوستلوباندې نه حانثيږي.ځکه چه (چه سړې قرآن لولي.) هغه ته خبرې کونکې نه وائي.بلکه قاري يا تسبيح ويونکې ورته وائي. (دا دويم قول دفقيه ابوالليث،شيخ الاسلام اوصدرشهيدؒ دي.اوهم په دې باندې فتوی ده.که دمانځه نه بهرقرآن اولولي.يا تسبيح اووائي.نودې نه حانثيږي)

## د لباس دپاره د جاموا غوستونه قسم کول

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَلْبَسُ هَذَا الثَّوْبَ وَهُوَ لَابِسُهُ فَنَزَعَهُ فِي الْحَالِ لَمْ يَحْنَثْ) وَكَذَا إِذَا حَلَفَ لَا يَرْكَبُ هَذِهِ

---

[1] **مسلك الشافعي**: - د قياس تقاضا دا ده.چه په دوارو صورتونوکښې حانث شي. (ځکه چه تکلم دخولې نه الفاظ راويستلو ته وائي.که قرآن وي اوکه غيرقرآن وي.که په مانځه کښې وي اوکه دمانځه نه بهروي) اودا قياس دامام شافعيؒ قول دې.

١) تقدم تخريجه ﻓﻰ باب مفسدات الصلاة_

الدَّابَّةَ وَهُوَ رَاكِبُهَا فَنَزَلَ فِي الحَالِ لَمْ يَحْنَثْ، (فَإِنْ لَبِثَ عَلَى حَالِهِ سَاعَةً حَنِثَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **يلبس**: اغوندی ② **الثوب**: جامه ③ **يركب**: سوريږی ④ **دابة**: سورلئ ⑤ **نزل**: كوز شو

**ترجمه** ﴿ (صورت دمسئلې دا دې که) يوكس قسم اوخوړلو.چه دا جامې به نه اغوندی. (حالانکه د قسم په وخت كښې) ده هغه جامې اغوستې وی. (اوس به گورو) كه ده فی الحال دغه جامې اوويستلې.نه حانثيږی. (اوكه دومره وخت په كښې ايسارشو.چه په هغې كښې ئې جامې ويستلې شوې.نوحانثيږی) اودغه شان چه په سورلئ سور وی.اودا قسم اوخوری.چه دې سورلئ باندې به نه سوريږی. (اودقسم خوړلونه پس) دې سمدستی راكوز شی.نه حانثيږی.

**تشريح** ﴿ **دليله** ﴿ دليل دا دې.چه دقسم انعقاد د پوره كولودپاره وی. (چه قسم پوره كړی اوحانث نشی) نوددې نه به دومره وخت مستثنا كولې شی.چه په هغې كښې د شرط وجود متحقق كيدې شی.نو(كه د قسم خوړلو نه پس) دې هم په خپل حالت پاتې شو.حانثيږی.خكه چه دا كارونه د دوام تقاضا كوی.هروخت كښې ددې پشان نوركارونه پيدا كيږی. ولې كتلې نشی.چه ددې افعالوسره موده يادولې شی.ونيلې شی.زه يوه ورځ سور ووم.اوما يوه ورځ جامې اغوستې وې.په خلاف د داخليدو خكه چه د مودې او وخت په معنى كښې داسې نشی ونيلې.چه زه پوره ورځ داخليدم.اوكه حالف د خالص ابتداء نيت كړې وی.نوتصديق به ئې كولې شی.خكه چه خالصه ابتداء هم دده د كلام احتمال لری.

**مفهوم الابتداء الخالص** ﴿ په سورلئ اوجامواغوستلوكښې كه لږ ساعت پاتې شو.نوحانث كيږی. خكه چه ركوب او لبس د دوام تقاضا كوی.البته كه ده دا نيت كړې وی.چه اوس خومې جامې اغوستې دی.چه دا اوباسم.نوبيا به جامې نه اغوندم.يا ئې دا نيت وی.چه اوس خو په سورلئ باندې سوريم.چه ددې نه كوز شم. نوبيا به پرې نه سوريږم.نوپه دې صورت كښې به نه حانثيږی.اودا تصديق ئې خكه كولې شی.

چه دا لفظ چه «لاألبس اولاأركب» د دې احتمال لری.چه دده مراد وی.چه ددې نه پس به زه جامې نه اغوندم.اوددې نه پس به زه په سورلئ نه سوريږم.نوهركله چه احتمال شته.نودده د نيت اعتباربه كولې شی.

**په كوركښې دناست كس دا قسم چه«لا أدخل هذه الدار» حكم**

وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّارَ وَهُوَ فِيهَا لَمْ يَحْنَثْ بِالقُعُودِ حَتّٰى يَخْرُجَ ثُمَّ يَدْخُلَ

**حل اللغة** ﴿ ① **القعود**: ناسته ② **الدوام**: هميشه والې

**ترجمه** ﴿ صاحب قدوری رحمه الله فرمائی.كه يوكس قسم اوخوړلو.چه دې كورته به نه داخليږی. او(دقسم په وخت كښې) دې هلته وو.نوپه كيناستوباندې نه حانثيږی.ترڅوچه دهغې نه وتلې نه وی.اوبيا داخل شوې نه وی.

**تشريح** ﴿ **وجه الاستحسان** ﴿ دا د استحسان حكم دې. اود استحسان وجه دا ده.چه د داخليدو دپاره دوام نشته.خكه چه داخليدل خود بهرنه دننه تلل دی. (اودلته په دې كيفيت سره داخليدل نه دی موجود شوی.نوخكه نه حانثيږی)

**كندركور ته داخليدو سره د قسم احكام**

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ دَارًا فَدَخَلَ دَارًا خَرَابًا لَمْ يَحْنَثْ، وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّارَ فَدَخَلَهَا بَعْدَ مَا انْهَدَمَتْ وَصَارَتْ صَحْرَاءَ حَنِثَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **دار**: كور ② **خرابا**: كندر ③ **صحراء**: بيابان ④ **انهدمت**: نوريدلې،غورزيدلې

**ترجمه>** اوڅوک چه قسم اوخوري چه (مطلق) کور ته به نه داخليږي.اوکندرکورته ورداخل شو.نه حانثيږي. اوکه قسم اوخوري چه دې کورته به نه داخليږي. (یعنی دقسم په وخت کښې دهغې کور آبادي موجود وي) اودهغې د نړيدو نه پس ورته داخل شي.چه هموار ميدان ترې جوړ شوې وي.نوحانثيږي.

**دليله>** ځکه چه د عربواوعجموپه نيزكورميدان اوغولى ته وئيلى شي. (چه ګيرچاپيره ديوال ترې وي.که آباد وي اوکه کندر. اوپه دې باندې دليل دا دې.چه) دارعامرة (په عين مهمله) هغه کورته وئيلې شي.چه آباد وي.اودارغامرة (په غين معجمه) هغه کورته وئيلى شي.چه آباد نه وي.اود عربواشعارهم په دې باندې ګواه دى. (چه چارديوارى ترې تاؤ وي.نودارآباد اوکندر دواړو ته وئيلى شي) نوآبادي په کورکښې (یوزياتي) صفت دې. (لکه څنګه چه په انسان کښې علم يوزياتي صفت دې.كه علم په کښې وي اوکه نه وي.دواړو ته انسان وئيلى شي) البته دومره ده چه په حاضرکور کښې (يعنى چه مخامخ موجود وي) د آبادئ صفت لغو اوعبث دې. (ځکه چه اشاره ورته کولې شي. که ته صفت بيان کړې اوکه نه دغه کورپه خپله متعين دې) اوپه غائب کورکښې (چه اشاره ورته نه وي شوې.دآبادي) صفت معتبر دې. (نود قسم تعلق به صرف دهغه کورسره وي.چه آبادي په کښې وي)

(وَمَنْ حَلَفَ لَايَدْخُلُ هٰذَاالْبَيْتَ فَدَخَلَ بَعْدَمَا انْهَدَمَ لَمْ يَحْنَثْ)

**ترجمه>** اوکه قسم ئې اوخوړلو چه دې کورته به نه داخليږي.اودهغې د نړيدو نه پس چه ميدان ترې جوړشوې وي ورته داخل شي.نو(په دې صورت کښې) نه حانثيږي.

**تشريح> دليله>** ځکه چه د کورنوم ترې زائله شوې دې. (اوس ورته څوك کورنه وائي.حالانکه ده خود كورد داخليدو نه قسم خوړلې دې.ځکه چه کورخو هغه ځائې ته وئيلى شي.چه شپه په کښې کولې شي)اوپه دې کښې اوس شپه نشي کولې. (ځکه دا ځائې محفوظ نه وي.)

(وَمَنْ حَلَفَ ان لَايُكَلِّمُ زوجة فلان فطلقها فلان ثم كلمها حنث

**ترجمه>** اوچاچه قسم اوخوړلوچه دفلانى د ښځې سره به خبرې نه کوم نو فلانى ورته طلاق ورکړو او بيا ورسره ده خبرې اوکړې نو حانثيږى

**تشريح> دليله>** ځکه چې په اصل کښې دده مقصود د فلانئ ښځې نه د خپل خفګان اظهار دې.په دې وجه د خبرو کولو نه قسم نه خوري چې د فلانى ښځه ده.دا فلانى ته چې ئې د زوجيت نسبت کړې دې.صرف د تعارف دپاره نو چې خبرې ورسره اوکړې حانثيږى به اګرچې د فلانى په زوجيت کښې باقي پاتې نه وي.

**د فلانى دغلام يا ښځې يا ملکيرې سره د خبروکولونه قسم کول**

(وَمَنْ حَلَفَ ان لَايُكَلِّمُ عَبْدَ فُلَانٍ اَوْلَايَدْخُلُ دَارَفُلَانٍ فَبَاعَ فُلَانٌ عَبْدَهٗ اَوْدَارَهٗ ثُمَّ كَلَّمَ الْعَبْدَ اَوْ دَخَلَ الدَّارَ لَمْ يَحْنَثْ

**ترجمه>** اوچاچه قسم اوخوړلوچه دفلانى يومعين غلام سره به خبرې نه کوى.اويا د فلانى په کورته به نه داخليږى نو(په اول صورت کښې) فلانى خپل غلام خرڅ کړلو. (اوپه دويم صورت کښې) هغه کور نه ورداخل شونو(په دې دواړو صورتونوکښې) دې نه حانثيږى.

**تشريح> دليله>** ځکه چه ده خپل يمين په داسې فعل باندې منعقد کړې دې.چه هغه فعل په داسې محل کښې واقع کيږي.دکوم تعلق چه د فلانى سره دې. (يعنى ده خپلې خبرې کول داسې کسانو سره متعلق کړې.دچا چه د فلانى کس سره تعلق وي) برابره ده که دغه تعلق د ملکيت وي. (لکه د فلانى غلام او د

فلاني کور) اوس چونکه دهغه سره ئې تعلق پاتې نشو. (ځکه چه غلام آزاد شو.کور خرڅ شو. نونه حانثیږي.

**د شړۍ دخاوند سره دخبروکولونه قسم کول**

(وَإِنْ حَلَفَ اَنْ لَايُكَلِّمُ صَاحِبَ هٰذَا الطَّيْلَسَانِ فَبَاعَهُ ثُمَّ كَلَّمَهُ حَنِثَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **طیلسان:** شړۍ

**ترجمه** ﴿ (امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کښې) فرمائي.که یوکس(زید) قسم اوخوړلو.چه ددې شړۍ خاوند (بکر) سره به خبرې نه کوی.نوهغه دغه شړۍ خرڅه کړه.اوده (د هغې د خرڅولونه پس) ده (زید) ورسره خبرې اوکړې.نودې حانثیږي.

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ ځکه چه دا اضافت (د شړۍ) صرف د پیژندګلودپاره دې. (چه زما مراد هغه کس دې. چه شړۍ ئې اغوستې ده)ځکه چه انسان د شړۍ د وجې دشمني نه کوی. (چه د شړۍ د وجې بکرسره دشمني اوکړي.بلکه د شړۍ دخاوند سره دشمني کوی) نودا صورت داسې شو.لکه چه ده ورته اشاره کړې وی. (چه زما دې قسم وی.بکرسره به خبرې نه کوم. او شړۍ ئې په کښې هډو یاده کړې نه وی.نوپه دغه صورت کښې که زید دبکرسره خبرې اوکړې.حانثیږي.دغه شان به د شړۍ په مسئله کښې هم حانثیږي)

(وَكَذٰلِكَ اِذَا حَلَفَ لَايُكَلِّمُ هٰذَا الشَّابَّ فَكَلَّمَهُ وَقَدْ صَارَ شَيْخًا حَنِثَ)

**حل اللغة** ﴿ ① **الشاب:** خوان ② **شیخ:** بوډا

**ترجمه** ﴿ اودغه شان حکم دې کله چې ئې قسم اوخوړلو.چه ددې خوان(بکر) سره به خبرې نه کوی.اوده ورسره په داسې حالت کښې خبرې اوکړې.چه هغه بوډا شوې وو.نوپه دې صورت کښې) حانثیږي.

**تشریح** ﴿ د مسئلې وضاحت دا دې.چه زید ،بکرطرف ته اشاره اوکړه.چه زه به ددې خوان سره خبرې نه کوم. یعني د خوانۍ په صفت سره ئې ذکرکړلو.بیا وخت تیریدلو.تردې چه بکر بوډا شو.اوزید ورسره خبرې اوکړې .نوپه دې صورت کښې دې حانثیږي.

**دلیله** ﴿ اودې ځکه حانثیږي.چه په قسم کښې د برۍ کیدو اوحانث کیدو تعلق د هغه کس سره وی.چاته چه اشاره شوې وی.اوچه کله یوکس ته اشاره اوشي.نوصفت په کښې لغو وی. مثلاً ته بکرته اشاره اوکړې.اوهغه خوان وی.نوکه ته هغه د خوانۍ په صفت موصوف کوې اوکه نه.په دواړو صورتونوکښې محلوف علیه بکرشو.دهغه د خوانۍ صفت محلوف علیه نه دې.ددې وجې که په بوډا توب کښې ورسره خبرې اوکړي.نوهم حانثیږي.

**د ماشوم یا خوان سره د خبرو کولونه قسم**

(وَاِنْ حَلَفَ اَنْ لَايَأْكُلَ لَحْمَ هٰذَا الْحَمَلِ فَاَكَلَ بَعْدَمَا صَارَ كَبْشًا حَنِثَ)

**ترجمه** ﴿ اوکه قسم ئې اوخوړلو . چه د دې حمل (د ګډې یوکلنیز بچی) نه به خوراك نه کوی. بیا د ګډ کیدونه پس ترې خوراك اوکړي. (نوپه دې صورت کښې) حانثیږي.

**تشریح** ﴿ **دلیله** ﴿ ځکه چه په حمل کښې د صغرصفت د یمین داعی نه دې. (یعني داسې نه ده. چه یوسړې د یوکلیز ګډ خوښې خوړلو نه نفرت کوی.اوچه کله ګډ شي.نوبیا ئې غوښه خوری) ځکه چه نفرت کونکې ددې (حمل د غوښې خوړلو)نه زیات نفرت کوی (ددې حمل دغوښې په نسبت) د غوښې د ګډ نه (نوځوك چه دحمل د غوښې خوراك نه قسم اوخوری.که دې د ګډ غوښه اوخوری.نوهم به

حانثیږی.ځکه چه د یوکلیز بچی غوښه چه څوك نه خوری.دې به په طریقه اولی سره د ګډ غوښه نه خوری.ځکه چه د یوکلیزبچی غوښه د ګډ دغوښې نه ترسکونه اومزیداره وی)

**د قجورې د ونې نه د نه خوړلو قسم کول**

| (وَاِنْ حَلَفَ اِنْ لَایَاْکُلُ مِنْ هٰذِهِ النَّخْلَةِ فَهُوَعَلٰی ثَمَرِهَا) |
|---|

**حل اللغة** ① **النخلة**: قجوره ② **ثمر**: میوه ③ **النخل**: سرکه

**ترجمه** اوکه قسم نې اوخوړلو.چه د قجورې ددې ونې نه به خوراك نه کوم.نوددې قسم اطلاق به ددې په میوه باندې کیږی.

**دلیله** ځکه چه ده د قسم نسبت هغه څیزته اوکړلو.چه هغه نه خوړلې کیږی. (چه وونه ده) نوهغه څیزته ترې مراد وی.چه ددې ونې نه راوځی. اوهغه میوه ده.ځکه چه ونه د میوې پیدا کیدو سبب دې. (هرکله چه ونه د میوې د پیدا کیدوسبب دې) نودا صلاحیت لری.چه ونه د میوې نه مجاز شی. (اودقبیلې د ذکرد سبب مراد ترې نه مسبب شی)

**تشریح** دترجمې اواضافی قیوداتونه مطلب ښکاره دې.

**د کچه قجورو خوړلو نه قسم کول**

| (وَمَنْ حَلَفَ اِنْ لَایَاْکُلُ مِنْ هٰذَاالْبُسْرِفَصَارَرُطَبًافَاَکَلَهُ لَمْ یَحْنَثْ وَاِنْ حَلَفَ لَایَاْکُلُ بُسْرًافَاَکَلَ رُطَبًالَمْ یَحْنَثْ |
|---|

**حل اللغة** ① **البسر**: کچه قجورې ② **رطبا**: پخې قجورې

**ترجمه** اوچا چې قسم اوخوړلو.چه دا کچه قجورې به نه خوری. (په هغه وخت کښې نې اونه خوړلې.خو) چه کله هغه پخې شوې.نووې خوړلې. (په دې صورت کښې) نه حانثیږی.اوکه قسم اوخوری.چه ددې پخوقجورو نه به نه خوری.او(دقسم خوړلو نه پس) هغه پخې قجورې چوارې شوې اوخوری. نوپه دې (دولوصورتونوکښې) نه حانثیږی.

**دلیله** ځکه چه د کچه والی اوپوخ والی صفت قسم خوړلو ته اماده کونکی دی. (یعنی خلق کچه اوپخې قجورې دواړه دبل څیزد ګډون نه بغیر خوری.نوچه په کوم صفت باندې قسم خوړلې شوې وی.هم) په هغه صفت به مقید کولې شی.

**د کچه اوپخوقجورو د خوړلونه د قسم خوړلواحکام**

| (وَاِنْ حَلَفَ اِنْ لَایَاْکُلُ رُطَبًافَاکَلَ بُسْرًامُذَنِّبًاحَنِثَ عِنْدَاَبِیْ حَنِیْفَةَ،[1]) |
|---|

**حل اللغة** ① **بسرا**:کچه قجورې ② **رطبا**: پخې قجورې ③ **مذنبا**:هغه چواره چه د لکۍ د طرفه پخه وی نوره کچه وی

**ترجمه** اوچاچه قسم اوخوړلو.چه پخې قجورې به نه خوری. (اود قسم نه پس نې) بسرمذنب (هغه چواره چه دلکۍ د طرف نه پخه شوې وی.اوباقی کچه وی.نوپه دې صورت کښې) نې اوخوړله.نودامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز حانثیږی.

**دلائله** ①دامام اعظم رحمه الله دلیل دا دې.چه رطب مذنب هغې ته وائی.چه دهغې په لکۍ کښې لږ

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في فتح القدير(٤\٣٩٨) وردالمحتار(٣\٩٨) والبحرالرائق (٤\٣٢٠) والهندية (٢\٨٢) نقلاً عن القول الراجح (١/٤١١) –

غونديٍ كچه والې وي.اوبسرمذنب ددې په عكس دي. (يعنې چه دهغې په لكئ كنبې لږ غونديٍ پوخ والې وي.نوره ټوله كچه وي) نود دې (يعنې رطب مذنب اوبسرمذنب) خوړل به لكه د رطب اوبسرخوړلوپشان وي. (ځكه چه قاعده دا ده.چه اكثرلره حكم د كل وي.نورطب مذنب به هم د رطب په حكم كنبې وي.اوبسرمذنب به هم د بسرپه حكم كنبې وي چه لكه څنګه د رطب نه دقسم خوړلوپه صورت كنبې د رطب په خوړلو حانثيږي.دغه شان به د رطب مذنب په خوړلو هم حانثيږي.اولكه څنګه چه د بسرنه د قسم كولوپه صورت كنبې دبسرپه خوړلو حانثيږي.دغه شان به د بسرمذنب په خوړلوهم حانثيږي)

② اوبل دليل دا دې.چه ټول (كه رطب وي اوكه رطب مذنب اودغه شان كه بسروي اوكه بسرمذنب) ټول په خوړلوكنبې مقصود دى. (يعنې دبل څيز د ګډون نه بغيرخلق ټول خوري.په خوړلوكنبې خانله حيثيت لري.

**مسلک الصاحبين**> اوصاحبين رحمهماالله فرمائي.چه د رطب په صورت كنبې نه حانثيږي.كه دا قسم ئې خوړلې وي.چه رطب به نه خوري.اوپه رطب مذنب باندې به هم نه حانثيږي.كه دا قسم ئې خوړلې وي.چه بسربه نه خوري.

**دليلهما**> ځكه چه رطب مذنب ته هم رطب وائي.اوبسرمذنب ته هم بسر وائي.نودا داسې شو.لكه چه په اختلوباندې قسم اوخوري (دكوم بحث چه به په راروانه مسئله كنبې راشي)

**دغوښې نه په قسم كولوكنبې دكب عدم شموليت**

| (وَلَوحَلَفَ لَايَأْكُلُ لَحْمًا فَأَكَلَ لَحْمَ السَّمَكِ لَايَحْنَثُ) |
|---|

**حل اللغة**> ① **لحم**:غوښه ② **السمک**: كب

**ترجمه**> چا چه قسم اوخوړلو.چه غوښه به نه خوري.نوده د كب غوښه اوخوړله. (په دې باندې) نه حانثيږي.

**وجه الاستحسان**> داستحسان وجه دا ده.چه دكب غوښې ته لحم ونيل مجازاً دى.ځكه چه غوښه د وينې نه پيدا كيږي.اوپه كب كنبې وينه نشته.ځكه چه دې په اوبوكنبې اوسيږي. (اود وينې څيزپه اوبوكنبې ژونديٍ نشي پاتې كيدې)

**القياس**> قياس دا وائي.چه حانث دې شي.ځكه چه په قرآن كنبې دې(دكب غوښې) ته غوښه ونيلې شوې ده. (الله تعالى فرمائيلى دى.﴿ وَمِن كُلٍّ تَأْكُلُونَ لَحْمًا طَرِيًّا﴾

**د دجلې نه دڅكاك نه كولوقسم**

| وَمَنْ حَلَفَ لَايَشْرَبُ مِنْ دِجْلَةَ فَشَرِبَ مِنْهَا بِإِنَاءٍ لَمْ يَحْنَثْ) حَتّٰى يَكْرَعَ مِنْهَا كَرْعًا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ(ˡ) |
|---|

**حل اللغة**> ① **اناء**:لوښي ② **الكرع**:په خوله لګولو سره اوبه څكل

**ترجمه**> چا چه قسم اوخوړلو.چه ددجلې نه به نه څكى.بيا ئې ددې نه په لوښي كنبې اوبه اوڅكلې. (نوپه دې صورت كنبې) نه حانثيږي.تردې چه ددې نه په خوله اوبه اوڅكى. (بيا به) د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزحانثيږي.

ˡ) القول الراجح موهذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١٤\٣) والكفاية (٣١١\٤) والعناية (٣١١\٤) والدرالمختار(١٠٨\٣) والبحرالرائق (٣٢٨\٤) والهندية (٩٥\٢) نقلاً عن القول الراجح (٤١٥\١)_

**دليله** دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه كلمه د ((من)) د تبعيض دپاره ده.اوپه (بله دا چه) اودا معنى (په خلقو كښې) مستعمله ده.اودا جمله په خوله لګولوسره په اوبوڅكلو كښې حقيقت دي. (څکه چه داسې وائي.چه د دجلې نه به اوبه نه څکم.د څکلو د آله ذكرپه كښې نشته) هم دا وجه ده.كه په خوله ئې ترې اوبه اوڅكلې.نوپه اجماع سره حانثيږي. (نوهركله چه په حقيقت عمل ممكن دي.) مجازته تګ منع شو.اګرچه (د دجله نه په لوښى كښې اوبه څکل متعارف دى)

**مسلك الصاحبين** صاحبينو رحمهما الله فرمائيلى دى.كله چه ددې نه په لوښيى كښې اوبه اوڅكى. (نوحانثيږي)

**دليلهما** څكه چه په لوښى كښې اوبه څکل متعارف دى. (په خلقو كښې ئې رواج دي) اوددې لفظ نه لا اشرب من دجلة) نه هم دا مطلب اخستې شي.

| (وَإِنْ حَلَفَ لَا يَشْرَبُ مِنْ مَاءِ دِجْلَةَ فَشَرِبَ مِنْهَا بِإِنَاءٍ حَنِثَ) |
|---|

**ترجمه** اوكه ده داسې اووئيل.چه زه به د دجلې داوبو نه څكاك نه كوم.اوبيا ئې دهغې اوبه په لوښى كښې اوڅكلې.نوپه دې صورت كښې حانثيږي.

**دليله** څكه چه په لوښى كښې راخستلونه پس هم هغه د دجلې اوبه دى.اوهم دا په كښې شرط وو. (چه د دجلې اوبه به نه څکم) نودا داسې شوه.لكه چه دنهر د اوبو نه اوڅكى.چه هغه نهرد دجله نه راوتلې وى. (نوپه هغې صورت كښې هم حانثيږي.دغه شان به د لوښى په ذريعه اوبوڅكلوياندې هم حانثيږي)

**داوړود خوراك نه قسم خوړل**

| (وَلَوْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ مِنْ هَذَا الدَّقِيقِ فَأَكَلَ مِنْ خُبْزِهِ حَنِثَ) |
|---|

**حل اللغة** ① **الدقيق**: اوړه ② **خبز**: روټۍ

**ترجمه** كه قسم ئې اوخوړلو.چه دا اوړه به نه خورى.اوبيا ئې دهغې د روټۍ اوخوړله.نوپه دې صورت كښې) حانثيږي.

**دليله** څكه چه اوړه نشى خوړلې.نوهغه څيزبه ترې مراد وى.چه ددې نه جوړيږي.

| وَلَوِ اسْتَفَّهُ كَمَا هُوَ لَا يَحْنَثُ) |
|---|

**حل اللغة** ① **استف**:اوړه اومه اوخوړل

**ترجمه** اوكه اوړه ئې دغه شان اومه اوخوړل.نه حانثيږي. (ددې په خوراك)

**دليله** څكه چه دلته مجازى معنى مراد اخستل متعين ده.يعنى خلق روټۍ خورى اومه اوړه څوك نه خورى.اوچې ده اوړه اوخوړل نو نه حانثيږي.

| وَمَنْ حَلَفَ لَا يُكَلِّمُ فُلَانًا فَكَلَّمَهُ وَهُوَ بِحَيْثُ يَسْمَعُ إِلَّا أَنَّهُ نَائِمٌ حَنِثَ) |
|---|

**حل اللغة** ① **نائم**:اوده

**ترجمه** چا چه قسم اوخوړلو.چه فلانى سره به خبرې نه كوى.اوبيا ده د هغه فلانى سره خبرې اوكړې.اوهغه په داسې ځائې كښې وى.چه (ده) خبرې اوريدې شى.خو دومره وى.چه هغه اوده وى. (ددې وجې ده خبرې وانورى. (نوپه دې صورت كښې) حانثيږي.

**دليله** (دليل دا دي.چه) ده دهغه سره خبرې اوكړې.اودهغه غوږو ته خبرې اورسيدلې.خو دهغه دخوب د وجې دده په خبرو پوهه نشو.نودا داسې شو.چه دې ورته آواز اوكړى.اوهغه په داسې ځائې كښې

وی.چه دده په خبره دغفلت د وجې پوهه نشي. (نوپه دغه صورت کښې حانثيږی.نوداسې به په زيربحث مسئله کښې هم حانثيږی)

**نسخة المبسوط** اود مبسوط په بعضې نسخوکښې ئې د رابيدارولو شرط لګولې دې. (چه هله به حانثيږی.چه دا حالف هغه د خوب نه رابيدار کړی.اوصاحب دهدايه فرمائی زمونږ مشائخ هم ددې قول قائلين دی.

**دليله** ځکه چه حالف هغه کس اودهٔ کس رابيدارنکړلو.نودا داسې شوه لکه چه دې ورته د لرې نه آواز اوکړی.چه هغه په دومره فاصله کښې وی.چه دده آواز واوْنه ری. (نوپه دغه صورت کښې نه حانثيږی.نودغه شان چه اودهٔ وی.اودې ورته خبرې اوکړی.هم به نه حانثيږی)

**د خبرونه کولوتعليق په اذن اواجازت پورې**

(وَاِن حَلَفَ ان لَّايُكَلِّمَهُ اِلَّابِاِذْنِهٖ فَاَذِنَ لَهٗ وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْاِذْنِ حَتّٰی كَلَّمَهٗ حَنِثَ)[1]

**ترجمه** اوکه (زيد) قسم اوخوړلو.چه بغيراجازته به خبرې نه کوی.بيا ده ته اجازت ملاوْ شو.خوده ته داجازت علم نه وو. (اودعلم نه وړاندې) ده دهغه سره خبرې اوکړې.نو(په دې صورت کښې) حانثيږی.

**دليلهما** (دحنث وجه ئې دا ده.چه) اذن د اذان نه مشتق دې.اواذان اعلان ته وائی. (اوحالف اعلان نه دې اوريدلې.نودا داسې شوه لکه چه هډو اجازت شوې نه وی) يا اذن په غوږ کښې د واقع کيدو نه مشتق دې. (چه د سړی په غوږ کښې اجازت واقع شی.يعنی داجازت کلمات واوری) اوپه دې دواړو کښې هر يو(که اجازت د اعلان نه عبارت شی.اوکه په غوږ کښې د واقع کيدونه) اجازت صرف په اوريدو سره متحقق (اوواقع) کيږی. (يعنی اجازت به هله اجازت وی.چه حالف دغه د اجازت الفاظ واوری.اوپه زيربحث مسئله کښې اګرچه اجازت شوې دې. خوحالف د اجازت الفاظ نه دی اوريدلې.ځکه په خبرو کولوسره دې حانث کيږی) دا دطرفينو مسلك دې.

**مسلك ابي يوسف** امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه (په زيربحث مسئله کښې) نه حانث کيږی.

**دليله** (د دوی دليل دا دې.چه) اذن د اطلاق په معنی ده. او دا اطلاق په اعلان سره پوره کيږی. (يعنی اذن د بنديزختمولو ته وائی.چه وړاندې په يوځيز پابندی لګيدلې وی.اوروستو هغه ختمه شی.په دې کښې د اسماع اوعدم اسماع څه ضرورت نشته.يعنی که ده اوريدلې وی اوکه نه.خوچه اعلان اواجازت اوکړې شو.نودده خبرې د اجازت نه پس واقع شوې.اوچه د اجازت نه پس واقع شوې.نونه حانثيږی) لکه د رضا په صورت کښې.

**الجواب عنه** مونږ(جمهوراحناف رحمهم الله) وايو.چه رضا د زړه عمل دې. اواعلان داسې نه دې. (يعنی د زړه عمل نه دې.نود دواړو په مينځ کښې فرق راغلو.نود اجازت مسئله د رضا د مسئلې پشان نشوه) لکه څنګه چه وړاندې تيرشوی دی. (يعنی چه اذن يا د اعلان نه مشتق دې.اوپه اعلان کښې اوريدل ضروری وی.اويا په غوږ کښې د غږ کولو نه مشتق دې.اوپه زيربحث مسئله کښې نه اعلان شته.ځکه چه حالف د اجازت الفاظ نه دی اوريدلې.اونه په غوږ کښې غږ کول شته.ځکه چه دحالف په غوږ کښې داجازت الفاظ نه دی وئيلی شوی.

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في العناية (٤١٩\٤) وردالمحتار(١١٢\٣) والهندية (٩٧\٢) نقلاً عن القول الراجح (٤١٨\١)-

## دحاکم یوکس ته د شرپسندخبر کولوقسم ورکول

(وَإِذَا اسْتَحْلَفَ الْوَالِي رَجُلًا لِيُعْلِمَنَّهُ بِكُلِّ دَاعِرٍ دَخَلَ الْبَلَدَ فَهٰذَا عَلٰى حَالِ وِلَايَتِهِ خَاصَّةً)

**ترجمه**> که حاکم یوکس ته قسم ورکړلو.چه دې ملك ته څوك شرپسند راشی.یعنی غل، داکو ،وغیره ،نود هریوبه مونږ ته خبرراکوي.نوداقسم به ترهغه وخته پورې باقی وی.ترڅوچه دغه حاکم برقرار وی.

**دلیله**> څکه چه ددې قسم ورکولومقصد دا دې.چه دې شرپسند ته سزا ورکړې.اودده د شرپا دنورو دشر نه بچ شی.نوچه د دغه حاکم اختیارختم شی.نوبیا د خبر ورکولو فائده نشته.اودا اختیار به په هغه صورت کښې ختمیږی.چه دې مړ شی.یا دې ددغه عهدې نه معزوله کړې شی.نوبیا هم په ظاهره هم دا حکم دې.

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَرْكَبُ دَابَّةَ فُلَانٍ فَرَكِبَ دَابَّةَ عَبْدٍ مَأْذُونٍ لَهُ مَدْيُونٍ لَمْ يَحْنَثْ)

**ترجمه**> اوچا (زید) چه قسم اوخوړلو.چه دفلانی (بکر) په سورلئ به نه سوریږم. (اوددې نه پس) دهغه د عبد ماذون په سورلئ باندې سور شو.نوحانثیږی.

**دلیله**> څکه چې حالف دپه هغه دابه باندې د سوریدو نه قسم کړې دې کومه چې براه راست د فلانی په ملکیت کښې وی اود عبد ماذون دابه اګرچې د فلانی په ملکیت کښې ده.خوپه دې کښې ورسره عبد ماذون هم په تصرف کولو کښې شریك دې.

## د کورپه چت اودریدو باندې دحانث کیدوحکم

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَدْخُلُ هٰذِهِ الدَّارَ فَوَقَفَ عَلٰى سَطْحِهَا أَوْ دَخَلَ دِهْلِيزَهَا حَنِثَ)

**حل اللغة**> ① وقف: اودریدلو ② سطح: چت ③ دهلیز: غولي،صحن

**ترجمه**>اوچاچه قسم اوخوړلو.چه دې (متعین) کورته به نه داخلیږی. (دقسم خوړلونه پس) دهغې په چت باندې اودریدلو.اوکله چې داخل شی دودئ د کور ته نوحانثیږی.

**دلیله**> څکه چه چت د کورحصه ده.ولې ته نه ګورې چه د معتکف اعتکاف په دې نه ماتیږی.چه دې د جمات چت ته اوخیژی. (څکه چه دجمات چت دجمات حصه ده.که چرته د جمات حصه نه وه.نودمعتکف اعتکاف به پرې ماتیدلو) البته دیودئ ته د داخلیدو په صورت کښې دا تفصیل دې که د کور د دروازې په بندلوهغه دیودئ دننه پاتې کیږی.اوچت پرې دپاسه وی.نو دې به حانثیږی.اوکه دننه حصه نه جوړیږی.بلکه هم بهروی.نوبیا نه حانثیږی)

(وَإِنْ وَقَفَ فِي طَاقِ الْبَابِ بِحَيْثُ إِذَا أُغْلِقَ الْبَابُ كَانَ خَارِجًا لَمْ يَحْنَثْ)

**ترجمه**> اوکه د دروزاې په چوکاټ کښې داسې اودریږی.که دروازه بنده کړې شی.نودې بهر پاتې کیږی.نو نه حانثیږی.

**دلیله**> څکه چه دروازه د کوراوپه کورکښې چه څه وی دهغې دحفاظت دپاره وی.نوچه کومه حصه د دروازې نه بهروی.هغه په کورکښې نه داخلیږی. (څکه په دې صورت کښې نه حانثیږی)

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَأْكُلُ الشِّوَاءَ فَهُوَ عَلَى اللَّحْمِ دُونَ الْبَاذِنْجَانِ وَالْجَزَرِ

**حل اللغة**> ① الشوآء: وریته شوې غوښه

**ترجمه**> اوکه قسم ئې اوخوړلو.چه ورته شوې به نه خوری.نوددې اطلاق به په غوښه کیږی. (که وریته شوې غوښه اوخوری.حانثیږی به) نه په باټنګړو اوپه ګازرو باندې.

**دلیله** > څکه چه کله وریت شوې څیزمطلقا ذکرشي.مراد ترې وریته شوې غوښه وي.البته دا ده.که (په قسم کښې) دهغه څیزنیت اوکړي.چه وریتولې شي.لکه هګۍ وغیره.دحقیقي معنی د وجې(یعنی د وریت شوي څیز حقیقي معنی چه ورتیدل په کښې وي.په هګۍ وغیره باندې صادقیږي.البته په عرف کښې چه وریت شوې څیز یاد کړې شي.نو مراد ترې هګۍ نه وي.خوچونکه دده کلام ددې احتمال هم لري.چه ددې نه وریته شوې هګۍ مراد شي.اوچه ده ئې نیت هم کړې وي.نودده نیت به معتبر وي.اوکه هګۍ اوخوري.حانث به شي)

(وَإِنْ حَلَفَ لَايَأْكُلُ الطَّبِيخَ فَهُوَعَلٰى مَا يُطْبَخُ مِنَ اللَّحْمِ)

**ترجمه** > اوکه قسم اوخوري چه پوخ شوې څیزبه نه خوري.نوددې اطلاق به په پخه شوې غوښه کیږي.
**دلیله** > اودا د استحسان حکم دې.دعرف د اعتبار په وجه (څکه چه په عرف کښې چه پخ شوې څیزیاد کړې شي.نومراد ترې پخه شوې غوښه وي.اوپه قسم کښې خوعرف معتبر دې) اودا غوښه ترې څکه مراد اخلو.چه د پخ شوي څیزعامه معنی اخستل متعذر دی. (څکه چه په دې کښې سبزي وغیره هرپخ شوي څیزشامليږي.نوکه مونږ ددې نه هرپخ شوې څیز واخلو.نوپه ده به غوښه اوسبزیان اوبکری متي غرض دا چه هرهغه څیزچه په اور پخ شوي وي.هغه حرام شي.نودا غریب به څه خوري؟.ددې وجې مونږ د پخ شوي څیزعامه معنی وانخستله) نود دې پخ شوي څیزنه به خاص متعارف څیزمراد وي.یعنی هغه غوښه چه په اوبوکښې پخ شوې وي.

**دسرد خوړلونه د قسم کولواحکام**

(وَمَنْ حَلَفَ أَنْ لَايَأْكُلَ الرُّءُوسَ فَيَمِينُهُ عَلٰى مَا يُكْبَسُ فِي التَّنَانِيرِوَيُبَاعُ فِي الْمِصْرِ)

**حل اللغة** > ① **یکبس**: پخولې شي ② **التنانیر**:تنورونه
**ترجمه** > اوچا چه قسم اوخوړلو.چه زه به سر(یعنی دسرمغزوغیره) نه خورم.نوده د قسم نه به هغه سرونه مراد وي.کوم چه په تنوررونوکښې پخیږي. (لکه د چیلۍ اوګډ سرونه شول) اوپه ښاررونوکښې خرڅیږي.
**روایة جامع الصغیر** > اوپه جامع صغیرکښې دی.که قسم اوخوري.چه زه به سر نه خورم.نودابوحنیفه رحمه الله په نیزددې قسم اطلاق به د غوا اوچیلۍ دواړو په سرونوباندې کیږي. (که د غوا یا د چیلۍ سرئې اوخوړلو.نوحانث کیږی به) اوامام ابویوسف اومحمد رحمه الله فرمائي. چه ددې اطلاق به صرف د چیلۍ په سر باندې کیږي. (دبل څه د سرپه خوراك به نه حانثیږي)
**بناء الاختلاف** > اوددې اختلاف بنیاد د زمانې اووخت اختلاف دې.لکه چه د ابوحنیفه رحمه الله په زمانه کښې په عرف کښې د سراطلاق د غوا اوچیلۍ دواړو په سرباندې کیدلو. (څکه هغوی د سرنه د غوا او چیلۍ سرا مراد اخستې دې) اودصاحبینورحمهماالله په زمانه کښې صرف د چیلۍ په سرباندې کیدلو.اوزمونږ په زمانه کښې به د عادت (اوعرف) په بنیاد فتوی ورکولې شي.په مختصر القدوری کښې هم دا خبره ذکرشوې ده.

(وَمَن حَلَفَ ان لَايَأْكُلَ خُبْزًا فَيَمِينُهُ عَلٰى مَا يَعْتَادُ أَهْلُ الْبَلَدِ أَكْلَهُ خُبْزًا)

**ترجمه وتشریح** > اوچا چې قسم اوخوړلو.چه روټۍ به نه خوري.چه دښارخلق چه د څه روټۍ خوري. د ده په قسم کښې به هغه مراد وي.اوهغه دغنمویا جوارو روټۍ ده.څکه چه زیاتو ښاررونو کښې هم ددې رواج دې. زمونږ په پاکستان کښې د غنمو د روټۍ رواج دې.نو د غنمو روټۍ به ترې مراد وي.

(فَانْ أَكَلَ خُبْزَالْقَطَايِفِ)

**ترجمه وتشریح>** او که دقطائف (یعنی دکدو،خربوزې،بادامود دانود مغزنه جوړې شوې) روټۍ نې اوخوړله.نونه حانثیږي.

**دلیله>** ځکه چه عام طوردې ته روټۍ نشی وئیلې.البته که ددې روټو نیت نې کړې وی.نوبیا حانثیږي. ځکه چه د ده په کلام کښې ددې روټو احتمال هم شته.

(اَوۡخُبۡزَالۡاُرۡزِبِالۡعِرَاقِ لَمۡ یَحۡنَثۡ)

**ترجمه و تشریح>** اوکه په عراق کښې نې د وریخو روټۍ اوخوړله.نونه حانثیږي .

**دلیله>** ځکه چه د وریخو د روټۍ په دوی کښې رواج نشته.اوکه په بنګله دیش کښې نې د وریخو د روټۍ نه قسم اوخوړلواوبیا نې اوخوړله نو حانثیږي به ځکه چې په دې ملك کښې د دې رواج دې.

(وَمَنۡ حَلَفَ لَایَبِیۡعُ اَوۡلَایَشۡتَرِیۡ اَوۡلَایُؤَاجِرُفَوَکَّلَ مَنۡ فَعَلَ ذٰلِكَ لَمۡ یَحۡنَثۡ)

**حل اللغة>** ① **یواجر**:په مزدوری به څوک نه نیسی

**ترجمه>** که یوکس قسم اوخوړلو.چه زه به نه اخلم،نه به خرڅوم.په کرایه باندې به نه اخلم.بیا نې خپل کارد بل په ذمه کړلو.اوهغه دغه کار اوکړلو.نونه حانثیږي.

**دلیله>** دفعل په حقیقي طورفاعل هم هغه وی.څوك چه دفعل مرتکب اوکونکې وی.اوس چه وکیل د خرڅولواخستلووغیره کارونه اوکړل.نوددې کار اوټول عمل نسبت وکیل طرف ته کیږي.نوچه په کومو معاملاتوکښې دکارنسبت وکیل طرف ته کیږي.په هغه معاملاتوکښې به حالف نه حانثیږي.اوچه دکومو معاملاتو نسبت وکیل ته نه کیږي.نوپه هغې کښې به حالف حانثیږي.

**حکم صورة النیة>** البته که قسم خوړونکی د قسم کولوپه وخت کښې ددې نیت هم کړې وی. (چه دوکیل په ذریعه به هم دا کارونه نه کوم) نوحانثیږي.ځکه چه ددې خبرې په منلو(چه ما دا نیت کړې وو) په قسم خوړونکی باندې سختی زیاتیږي.یاقسم خوړونکې داسې حاکم یا صاحب د اختیار وی.چه هغه دا کارونه په خپله نه کوی.نوبیا هم دده د وکیل په ذریعه په معامله کولوباندې هغه حانثیږي.ځکه چه دده خپل ځان د داسې کارونه منع کړې دې.دکوموکول چه دهغه عادت نه وی.

(وَمَنۡ حَلَفَ اَنۡ لَایَجۡلِسَ عَلَی الۡاَرۡضِ فَجَلَسَ عَلٰی بِسَاطٍ اَوۡعَلٰی حَصِیۡرٍلَمۡ یَحۡنَثۡ)

**ترجمه>** اوچا چې قسم اوخوړلو.چه په زمکه به نه کینم.اوبیا په څادر یا پوزکی باندې کیناستلو.نودې نه حانثیږي.

**دلیله>** ځکه چه داسې کس ته په عرف کښې په زمکه باندې کیناستونکې نشی وئیلې.

ددې په خلاف که د قسم خوړونکی اود زمکې په مینځ کښې دده جامې وی.نودې به په زمکه کیناستونکې وی.ځکه چه دده جامې دده تابع دی.نوځکه دا حائل نشی شمارلې. (اوکه ده جامې اوویستې.اوپه زمکه نې واچولې.اوبیا په هغې باندې کیناستلو.نواوس نه حانثیږي.ځکه چه دا جامې د څادرپه حکم کښې دی)

(وَمَنۡ حَلَفَ اَنۡ لَایَجۡلِسَ عَلٰی سَرِیۡرٍفَجَلَسَ عَلٰی سَرِیۡرٍفَوۡقَهٗ بِسَاطٌ حَنِثَ)

اوکه یوکس قسم اوخوړلو.چه په دې معین تخت به نه کینم.اوبیا نې په هغې باندې بستره واچولو.اوپه هغې باندې کیناستلو.نوحانثیږي. (ددې تخت نه مراد معین تخت دې. الجوهره)

**دلیله>** په ګدئ باندې که نرې څادر واچولې شی نو هغه تبعاً ګدئ شمارلې شی د مستقل څادر حیثیت نه لری ځکه چه عام طور په بستره یا ګدئ باندې نرې څادر یا په دې غرض اچولې شی چه هغه بستره یا ګدئ خیرنه وی نو په څادر باندې د هغې خیرنوالې پټ کړی یا د ډیکوریشن او ښائست دپاره په

ګډیٔ باندې نرۍ اوښانسته څادر اچولي شي نوهرکله چه دغه څادر تبعا هم د ګډیٔ په حکم کښې دي په دې حالت حانثیږی البته که د دغه درۍ دپاسه بله درۍ واچوی نو بیا دې نه حانثیږی ځکه چه هغه دویمه درۍ مستقل حیثیت لری د لاندینۍ درۍ تابع نشی ګرځولې.

| |
|---|
| وان جعل فوقه سريراً آخر فجلس عليه لم يحنث |

**ترجمه**> اوکه د هغې دپاسه ئې بل کټ کیخودواوپه هغې باندې کیناستلو نو نه حانثیږی.

**تشریح** > که د کټ دپاسه ئې پوزکې وغیره خورکړې وی.په هغې باندې دویم تخت کیږدی.اوپه هغې باندې کینی. نو نه حانثیږی.

**دلیله**> ځکه چې په کوم باندې ئې د کیناستو نه قسم خوړلې وو.په هغې باندې کې نه ناسته بلکه په بل کیناستونو نه حانثیږی.

**په فرش باندې د اوده کیدو نه قسم کول اوبیا په بستره څملاستل**

| |
|---|
| (وَانْ حَلَفَ انْ لَايَنَامَ عَلٰى فِرَاشٍ فَنَامَ عَلَيْهِ وَفَوْقَهٗ قِرَامٌ حَنِثَ) |

**ترجمه**> اوچا چې قسم اوخوړلو.چه په فرش به نه څملم.اوبیا په داسې فرش باندې څملاستل.چه په هغې باندې نرۍ څادروو.نودې به حانثیږی.

**دلیله**> ځکه چه دا څادرددې فرش تابع دې.نوځکه به دې هم په دې فرش څملاستونکې ګنړلې شي.

| |
|---|
| (وَانْ جَعَلَ فَوْقَهٗ فِرَاشًا آخَرَ فَنَامَ عَلَيْهِ لَايَحْنَثُ) |

**ترجمه**> اوکه په فرش یعنی څادر دپاسه ئې بل څادرواچولو.اوپه هغې باندې اوده شو.نونه حانثیږی.

**دلیله**> ځکه چه یوڅیزدبل پشان وی.نوهغه ددغه څیزتابع نه وی.یعنی پورتنې څادر د لاندینی څادر تابع نه دې.نوځکه په لاندینی څادرباندې د څملاستلونسبت باقی پاتې نشو. (بلکه دې په پورتنی څادرباندې اوده کیدونکې ګنړلې شی)

**په قسم کښې متصل د انشاء الله وئیلو حکم**

| |
|---|
| (وَمَنْ حَلَفَ بِيَمِيْنٍ وَقَالَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ مُتَّصِلًا بِيَمِيْنِهٖ فَلَاحِنْثَ عَلَيْهِ |

**ترجمه**> چا چه په څه څیزقسم اوخوړلو.اوورپسې ئې انشاء الله اووئیل.نو(که دغه کاراوکړی.) نه حانثیږی.

**دلیله**> ځکه چه نبی ﷺ فرمائیلی دی. مَنْ حَلَفَ عَلٰى يَمِيْنٍ وَقَالَ اِنْ شَاءَ اللّٰهُ فَقَدْ بَرَّ فِيْ يَمِيْنِهٖ } (١)چا چه په یوڅیزقسم اوخوړلو.اوورپسې ئې انشاء الله اووئیل.نودې په خپل قسم کښې بری شو(یعنی په استثناء سره د قصد معنی لغو شوه.قسم نه کیږی)

البته دا ضروری ده.چه انشاء الله به ورپسې متصل (اوسمدستی) وی.ځکه چه دانشاء الله وئیل په خپل قسم نه رجوع (او واپس کیدل دی) اوپه قسم کښې رجوع نه وی. (بلکه په قسم کښې خو تاکید وی.نو د انشاء الله وئیل د یمین د ماهیت اوتعریف نه خلاف دې.ځکه چه په یمین کښې د تاکید معنی پرته ده.اوپه استثناء کښې رجوع ده)

---

١)غريبه الزيلعي رحمه الله بهذا اللفظ ثم اخرج احاديثاً بمعناه منها حديث ابن عمر رضي الله عنهما عن النبي ﷺ قال من حلف فاستثنى فإن شاء مضى وإن شاء ترك غيرحنث اخرجه أبوداود في الأيمان باب ٩ رقم ٣٢٦٢ والترمذي في النذور والأيمان باب الإستثناء في اليمين والنسائي في الأيمان والنذور رقم ٣٥٥١ وابن ماجه في الكفارات باب ٦ رقم ٢١٠٥)۔

(وَلَوْحَلَفَ لَيَأْتِيَنَّهُ إِنْ اسْتَطَاعَ فَهٰذَا عَلٰى اسْتِطَاعَةِ الصِّحَّةِ دُوْنَ الْقُدْرَةِ)

**ترجمه>** اوکه دا قسم ئې اوخوړلو.چه ده ته (یعنی تاته) بـه درخم.خوبـه دې شرط کـه طاقت لرم.نوددې اسطاعت نه استطاعت صحت مراد وی.

**تفسیرالاستطاعة>** او(امـام محمـد رحمه الله) پـه جـامع صـغیرکښې ددې (اسـتطاعت صـحت) تفسیرکړې دې.اوفرمائیلی ئې دی.چه (د قسم خوړلونـه پس) دې بیمار نشی. (چه دهغې دوجې ورسره ملاویدې نشی.) اوبادشاه ئې (دهغه سره د ملاقات نه) منع نه کړی.اوداسې څه بل عذرپیدا نشی.چه دې هغه ته ئې ورتلوقادر نشی.نو(په دې ټولو صورتونوکښې دې) حانثیږی.

**د حین او زمان په لفظ سره قسم خوړل**

(وَإِنْ حَلَفَ أَنْ لَا يُكَلِّمَهُ حِيْنًا أَوْزَمَانًا أَوْالْحِيْنَ أَوْالزَّمَانَ فَهُوَعَلٰى سِتَّةِ أَشْهُرٍ)

**حل اللغة>** ① **حین**:وخت ② **ستة**:شپږ ③ **اشهر**:جمع د شهر ،میاشت

**ترجمه>** (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمـائي.اوچا (زید) چه قسـم اوخوړلـو.چه دهغـه (بکر) سره بـه څه وخت یا څه زمانې پورې خبرې نه کوی. (دالف لام نه بغیرحین او زمان ذکرکړی) اویا (داسې اووائی.چه بکرسرد به) تریو وخت یا زمانې پورې خبرې نه کوی.نودا قسـم بـه پـه شپږو میاشـتوباندې حمل کولې شی. (یعنی ددې وخت او زمانې نه به شپږ میاشتې مراد وی.

**دلیله**:دا شپږ میاشتې ترې ځکه مراد اخلو) چه دحین د لفظ نه کله لږه زمانـه مراد وی اوکلـه څلوېښت کاله، (د څلوېښتو کالودپاره دلیل دا دې.چه) الله تعالی فرمـائیلی دی.﴿ هَلْ أَتٰى عَلَى الْإِنْسَانِ حِيْنٌ مِّنَ الدَّهْرِ﴾ (مفسرینو فرمائیلی دی.چه دلته د حین نه مراد څلوېښت کاله دی) اوکله د حین د لفظ نه شپږ میاشتې مراد وی. (د شپږو میاشتو دپاره دلیل دا دې.چه) الله تعالی فرمائیلی دی.﴿ تُؤْتِيْ أُكُلَهَا كُلَّ حِيْنٍ ﴾ (دابن عباس رضی الله عنه د قول مطابق دا شپږ میاشتې دی) اودا (شپږ میاشتې) درمیانـه مودهٔ ده. (نوچه د حین او زمان په لفظ کښې د څه مودې نیت نه وی شوې.نو) دا شپږ میاشـتې بـه قسـم تـه اړولې شی. (اودحین او زمان نه به شپږ میاشتې مراد وی)

**وجه الحمل علی ستة اشهر>** دا (یمین په شپږومیاشتو) حمل کولې شی.ځکه چه (په قسم کښې د) لږ وخت دپاره خبرې نه کول مقصود نه وی.ځکه چه د لږ وخت دپاره خبروکولو نه منع کیدل خو عـام طور هسې هم وی. (که قسم ئې خوړلې وی.اوکه نه.نوبیا دقسم فائده څه شوه) او(لکه څنګه چه پـه قسم کښې لږه مودهٔ خبرې نه کول مقصود نـه وی.نودغـه شان) ډیرې زمانې پورې خبرې کول هم اکثرپـه دې (لفظ د حین سره) مقصود نه وی.ځکه چه دا (ډیره زمانه چه څلویښت کالـه دی) پشان د همیشه ده. (نود حین په لفظ سره ډیره زمانه مراد نه وی.بلکه دهغې دپاره په عرف کښې د ابد لفظ استعمالیږی) اوکه (زید) دومره (اوږده) زمانه (چه څلوېښت کالـه دی) چپ شی.نوهمیشوالې بـه ثابت شی. (حالانکـه پـه لفظ د حین سره همیشوالې مراد نه وی،نوددې تفصیل نه) هغه مودهٔ متعین شوه.کومه چه مـاتن ذکرکړه. (چه شپږ میاشتې دی) اودغه شان زمانه (یعنی چه په قسم کښې د حین په ځائې زمان استعمال کړی) هم د ،،حین،، په ځائې استعمالیږی (په محاوره کښې) ونیلی شی.مـا تـه د دومره وخت نـه نهٔ وې لیدلې. (حین په کښې استعمالوی) اود دومره زمانې نه مې نه وې لیدلې. (زمان پـه کښې استعمالوی) دوا ړه (که حین دې اوکه زمان دې) یوه معنی ورکوی.اودا حکم (چه کله په قسم کښې حین یـا زمـان استعمال کړی.نوشپږ میاشتې به ترې مراد وی.) په هغه وخت کښې دی.ده (حالف د قسم خوړلوپـه وخت کښې) دڅه نیت نـه وی کړې.اوکه ده د یوې مودې نیت کړې وی. (کـه شپږ میاشتې وی اوکـه ددې کمې یا

زياتي چه دومره موده به ورسره خبري نه کوم) نوده (حالف) چه څه نيت کړي وي.په هغې باندې به حمل کولې شي. (اوهم هغه به تري مراد وي.اودده تصديق به کولې شي.اوتصديق به ئې ځکه کولې شي.چه) ده د خپل کلام د حقيقي معنى نيت کړې دې. (اوکله چه د کلام د حقيقي معنى نيت اوکړې شي.نوهم هغه حقيقي معنى به تري مراد وي.اګر که عرف اوظاهري نه خلاف وي)

(وَكَذٰلِكَ الدَّهْرُ عِنْدَ اَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ(¹)

**ترجمه**> اودغه شان د صاحبينو رحمهما الله په نيزد ،الدهر، لفظ هم دې. (يعنى کوم احکام چه د حين اوزمان دى.هم هغه شان د ،الدهر، د لفظ هم دى)

**دليلهما**> صاحبين رحمهما الله فرمائى.چه لفظ د دهر لکه د حين اودزمان د لفظ پشان استعماليږى .ددې په حکم کښې څه فرق نشته.هم دا وجه ده.که يوکس ((ما رأيتك منذ دهر)) اووئيل.يا ئې ((ما رأيتك منذ حين)) اووئيل.نوپه دواړو قولونوکښې څه فرق نشته.نودا دواړه الفاظ د معنى په اعتبارسره يوه معنى ورکوى.

**مسلک ابي حنيفة**> امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.که ،دهر، بغيرد الف لام نۀ وى. نو د دې نه چه څومره زمانه مراد ده.شپږ مياشتې دى اوکه ددې نه کم يا زيات.په دې باندې زه نه پوهيږم.نودوى په کښې توقف کړې دې.البته که ،الدهر، په الف لام سره معرفه وى.نوبيا د ټولوپه نيز په عرف کښې ددې نه دوام اوهمشوالي مراد دې.

**دليله**> امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائى.چه کله ،دهر،نکره ذکرکړې شى.نوپه دې صورت کښې به خاموشى اختيارولې شى.دخپل طرفه به څه موده نشى مقررکولې.ځکه چه نومونه کيخودل اومقدارونه مقرر کول د نقل سره تعلق ساتى.چه په عرف اورواج کښې ددې نه څه استعمال وى.هغه به تري مراد وى.اود دهردپاره په عرف کښې څه موده متعين نه ده.نوځکه به په دې مسئله کښې د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيزتوقف کولې شى.

**په ايام اوالايام باندې قسم خوړل**

(وَلَوْ حَلَفَ اَنْ لَا يُكَلِّمَ اَيَّامًا فَهُوَ عَلٰى ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ)

**حل اللغة**> ① **ايام**:جمع د يوم ،ورځ

**ترجمه**> اوکه يوکس (په عربۍ کښې) دا قسم اوخوړلو.چه ((لايکلم اياماً)) (بغيرد الف لام نه) يعنى څو ورځې به خبرې نه کوى.نودا به په درې ورځو محمول وى. (اوددې نه به درې ورځې مراد وى.درې ورځې به ورسره خبرې نه کوى.

**دليله**> د درې ورځو دليل دا دې.چه) دا ايام اسم جمع ده.اونکره ذکرشوې ده.نود جمع اقل اوکم عدد چه وى.هغه به مراد وى.چه درې ورځې دى.

وَلَوْ حَلَفَ اَنْ لَا يُكَلِّمَهُ الْاَيَّامَ فَهُوَ عَلٰى عَشَرَةِ اَيَّامٍ عِنْدَ اَبِي حَنِيْفَةَ،(¹) وَقَالَ ابوسف ومحمد: هُوَ عَلٰى اَيَّامِ الْاُسْبُوْعِ.

---

¹) القول الراجح هوهذا قول الصاحبين رحمهما الله كذا في الدرالمختار(۱۱۸\۳) وشرح عقود ص،۶۹) والبحرالرائق (۳۲۹\۴) وردالمحتار(۱۱۸\۳) والهندية (۱۰۵\۲) نقلاً عن القول الراجح (۴۲۴\۱)-

**ترجمه** اودا که قسم ئې اوخوړلو.چه «لايکلمه الأيام» نوداما م ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه دا لفظ په لسو ورځو باندې حمل کولې شي. (يعنی لس روځې به ترې مراد وی)

**مسلک الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه په يوه هفته به حمل کولې شي. (يعنی اووه ورځې به ترې مراد وی

| |
|---|
| وَلَوْحَلَفَ اِنْ لَايُكَلِّمَهُ الشُّهُورَفَهُوَعَلٰى عَشَرَةِ أَشْهُرٍعِنْدَأَبِي حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللّٰه.وَقَالَ ابويوسف ومحمد: هُوَعَلٰى اِثْنَيْ عَشَرَشَهْرًا |

**ترجمه** اوکه دا قسم اوخوری.«لايکلمه الشهور» (په الف لام سره) نوداما م ابوحنيفه رحمه الله په نيزبه لسو مياشتو به حمل وی. (يعنی لس مياشتې به ترې مراد وی) اودصاحبينو رحمهما الله په نيزبه په دولسو مياشتو حمل وی.

**دليله** داما م ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دی.چه دا (لفظ د الايام او د الشهور) جمع ده.اوپه الف لام سره معرفه شوې ده.نود جمعې د لفظ چه زيات نه زيات چه په، کوم عدد باندې اطلاق کيږي.هغه به ترې مراد وی. اوهغه لس ورځې دی.

**دليلهما** (په دواړو مسئلوکښې د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دی.)څکه چه الف لام (په الايام او الشهور کښې) د عهد دپاره دی. (يعنی په عرف اوخلقو کښې دخاص عدد دپاره دی) اودغه عدد هغه دی.کوم چه مونږ ذکرکړلو. (يعنی په الايام کښې يوه هفته ده.اوپه الشهورکښې دولس مياشتې دی) څکه هم ددې نه تاويږي راتاويږي. (يعنی ورځې اووه په هفته کښې، يوچکرلګوی.اوپه هفته کښې اووه ورځې دی.نوهم اووه به ترې مراد وی. او مياشتې په کال کښې يوچکرلګوی.اوپه کال کښې دولس مياشتې وی.نوهم دولس مياشتې به ترې مراد وی)

| |
|---|
| (وَلَوحَلَفَ لَايَفْعَلُ كَذَاتَرَكَهُ أَبَدًا) |

**ترجمه** که يوکس دا قسم اوخوړلو.چه زه به فلانې کارنه کوم.نوهغه به هميشه دپاره پريږدی.څکه چه ده ددغه فعل د نه کولومطلق نفی اوکړله.نودنفی دعموم دوجې به په هره زمانه کښې ددې نه بچ اوسی.

**دليله** په مذکوره صورت کښې حالف د مطلق فعل د کولو نه قسم خوړلې دې څکه چه قول او فعل د دوو حالتونو نه خالی نه وی يا به مطلق وی او يا به مقيد وی، د مطلق مطلب دا دې چه د متکلم قول او فعل د هرقسم توقيت او تمکن نه خالی نوچه کوم قول يا فعل ددې نوعيت وی هغې ته مطلق وئيلی شی په زيربحث صورت کښې هم حالف د مطلق فعل نه قسم خوړلې دې نو هميشه دپاره به دې دغه کار نه کوی او که وې کړلو نو حانث به وی.

دیوکارد کولوقسم خوړل.اويو ځل هغه کول

| |
|---|
| (وَإِنْ حَلَفَ لَيَفْعَلَنَّ كَذَافَفَعَلَهُ مَرَّةً وَاحِدَةً بَرَّفِي يَمِيْنِهِ) |

**ترجمه** اوکه دا قسم اوخوری.چه زه به دا کارخامخا کوم.او: هغې نه پس دغه کاريوځل اوکړی.نود خپل قسم پوره کړلو.

---

[1] القول الراجح هو قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (٤\٤٢٩) ورد المحتار (٣\١١٩) ومجمع الأنهر (١\٥٧٧) والهندية (٢\١٠٦) والبحرالرائق (٤\٣٤١، ٣٤٠) نقلاً عن القول الراجح (١/٤٢٥)–

**دلیله>** ځکه چه کوم څیزده په خپل ځان باندې لازم کړې وو.هغه صرف یوځل بغیرد تعین نه کول وو.ځکـه چـه دا موقـع د اثبـات ده.کومـه چـه ددې تقاضـا کـوی.چـه دې یوځـل کارپـه وجـود کښـې راولی.اووې کړی.نوځکه چه کله هم دې یوځل دغه کاراوکړی.په خپل قسم کښې به بری شی.اوکله چه ددغه کار د کولو نه مایوسه شی.نوبیا بـه حانثیږی.اودا مایوسی به په هغه وخت کښې وی.چه قسم خوړونکې مړ شی.یا چه په کوم محل باندې دا کارکیږی.هغه محل پاتې نشی. (مثلاً چه دا قسم اوخوری.چه په دې پوزی به مونځ کوم.نوچه کله ئې هم په دغه پوزی باندې هرقسم مونځ اوکړلو.که فرض وی اوکه نفل،نودا قسم پوره شو.اوکه په دغه باندې د مونځ کولونه وړاندې مړ شو.یا پوزې اوسوزیدلو.نودې به حانث شی.

## بغیراجازة د بنځې په وتلوقسم خوړل

| |
|---|
| (وَمَنْ حَلَفَ لَا تَخْرُجُ امْرَأَتُهُ إِلَّا بِإِذْنِهِ فَأَذِنَ لَهَا مَرَّةً واحدة فَخَرَجَتْ ورَجعَتْ ثم خَرَجَتْ مَرَّةً أُخْرَى بِغَيْرِ إِذْنِهِ حَنِثَ |

**ترجمه>** اوڅوك چه قسم اوخوری.چه دده (یعنی زما) ښځه به د ده د اجازت نه بغیر (د کورنه) نه وځی. (ددې قسم نه پس) ده ورته یوځل (کورنه د وتلو) اجازت اوکړلو.اوهغه اووتله.خوبیا دوباره دده د اجازت نه بغیراووتله. (نوپه دې صورت کښې) دې حانثیږی.

**دلیله>** (ځکه چه شرط موجود شو.چه دده داجازته بغیروتل وو.اوپه دې صورت کښې)

| |
|---|
| وَلَابُدَّ مِنَ الْإِذْنِ فِي كُلِّ خُرُوجٍ) |

**ترجمه>** اودهرځل وتلودپاره اجازت ضروری دې.

**دلیله>** ځکه چه مستثنی هغه وتل دی .چه دهغې سره اجازت وی.اوداجازت نه بغیرچه هرڅنګه وتل وی.نوهغه به په ممنوع وتلوکښې داخل وی. (یعنی کـه داجازت نـه بغیرښځه پـه هرصـورت کښـې اووتله.خاوند به ئې حانثیږی.

**صورة نية الزوج مرة واحدة>** اوپه ذکرشوی صورت کښې) که خاوند صرف یوځل د اجازت نیت کړې وی. (چه صرف یوځل به رانه اجازت غواړی.دهرځل وتلودپاره داجازت غوښتو نیت ئې نه وی کړې.نوپه دې صورت کښې) دیانةً به دده تصدیق کولې شی. (اودې به نه حانث کیږی)خوقضاء به ئې تصدیق نشی کولې. (بلکه قاضی به پرې کفاره دیمین واجبوی.اودیانة ئې تصدیق کولې شی)

**دلیله>** ځکه ده چه دکوم څیزنیت کړې دې.دده په کلام کښې ددغه نیت احتمال شته. (چه ده هم یوځل د اجازت غوښتلونیت کړې وی) خوچونکه دده دا قول د ظاهرنه خلاف دې. (نوقاضی به دده د نیت اعتبارنه کوی.ځکه چه قاضی د مسئلې په ظاهری صورت باندې حکم لګوی)

| |
|---|
| (وَإِن قَالَ إِلَّا أَنْ آذَنَ لَكِ فَأَذِنَ لَهَا مَرَّةً وَاحِدَةً ثُمَّ خَرَجَتْ بَعْدَهَا بِغَيْرِ إِذْنِهِ لَمْ يَحْنَثْ) |

**ترجمه>** اوکـه (خاونـدښځې تـه اووائـی.تـه بـه د کورنـه نـه اوځـی.) مګردا چـه زه تاتـه اجـازت اوکړم. (نوداجازت په صورت کښې د کورنه وتلې شی. (او د دې قسم نه پس) یوځل اجازت ئې ورته اوکړلو. اود دې نه پس بیا دده د اجازت نه بغیر اووتله. (نوپه دې صورت کښې) نه حانثیږی.

**دلیله>** ځکه چه دا د کلمه د غایت، ده.نوپه دې باندې به قسم ختمیږی.لکه په دې صورت کښې (چه قسم ختمیږی.چه) دې ورته اووائی. (ته به د کورنه بهرته نه وځې.) تردې چه زه تاته اجازت اوکړم.

## دناشته کولونه قسم خوړل

| |
|---|
| (وَإِذَا حَلَفَ ان لَا يَتَغَدَّى فَالْغَدَاءُ هو الْأَكْلُ مِنْ طُلُوعِ الْفَجْرِ إِلَى الظُّهْرِ وَالْعَشَاءُ مِنْ صَلَاةِ الظُّهْرِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ) |

**حل اللغة** ① **الغداء**: د صبا ناشته ② **سحور**: پیشمني

**ترجمه** اوکله چه قسم اوخوری. چه ((لا أتغدی)) یعنی ناشته به نه کوم. نود ((غدا)) اطلاق په هغه خوراك کیږی. چه د صبا راختو نه پس ترماسپخین پورې وی. او ((عشاء)) هغه خوراك ته وائی. چه د ماسپخین نه ترنیمې شپې پورې وی.

**دلیله** ځکه چه د زوال نه پس خوراك ته ((عشاء)) وائی. اوددې وجې (چه د زوال نه پس ترنیمې شپې پورې خوراك ته عشاء وائی.) په حدیث کښې دماسپخین مونځ ته د عشاء په دوو مونځونو کښې یومونځ وئیلې شوې دې.

(وَالسُّحُورُ مِنْ نِصْفِ اللَّيْلِ إِلَى طُلُوعِ الْفَجْرِ)

**ترجمه** اودسحور اطلاق په هغه خوراك باندې کیږی. چه د نیمې شپې نه واخله ترصبا راختو پورې وی.

**دلیله** ځکه چه دا د سحر نه مشتق دې. اودغه شان (دسحور اطلاق) په هغه خوراك کیږی. چه دې ته نزدې وی. بیا غدا او عشاء هغه خوراك ته وئیلی شی. چه په هغې باندې عام طور مړیدل مقصود وی. (یعنی که د صبا یا ماښام په وخت کښې ئې یوه یا دوه نوړئ اوخوړلې. نودې ته غدا اوعشاء نشی وئیلې) اوهرښاردخلقو په حق کښې هم د هغوی عادت معتبر دې. (نوکه په ناشته کښې ددوی عادت د غوښې خوراك وی. نود غوښې په خوراك به حانثیږی. اوکه په ناشته کښې د دو خوراك روټئ وی. نوبه روټئ خوړلوبه حانثیږی)

**په زرقرض ادا کولوقسم خوړل**

(وَإِنْ حَلَفَ لَيَقْضِيَنَّ دَيْنَهُ إِلَى قَرِيبٍ فَهُوَ عَلَى مَا دُونَ الشَّهْرِ، وَإِنْ قَالَ إِلَى بَعِيدٍ فَهُوَ أَكْثَرُ مِنَ الشَّهْرِ)

**حل اللغة** ① **یقضي**: ادا کوی ② **شهر**: میاشت

**ترجمه** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی. که یوکس قسم اوخوړلو. چه زه به زرد هغه قرض ادا کړم. نوددې نه به دیوې میاشتې نه کمه موده مراد وی. یعنی که د یوې میاشتې نه په کمه موده کښې ئې ادا کړلو. نوبه قسم کښې بری شو. اوکه دا قسم ئې اوخوړلو. چه زه به ئې په زیاته موده کښې ادا کوم. نوددې نه د یوې میاشتې نه زیاته موده مراد ده.

**دلیله** که د قریب او بعید په لفظ باندې غور اوکړې شی نو معلومیږی چه قریب د لږې مودې یا د نزدې فاصلې دپاره استعمالیږی او بعید لفظ د ډیرې مودې اود لرې فاصلې دپاره استعمالیږی. اوفاصله او مسافت دواړه الفاظ مترادفین دی نو مسافت په دوه قسمه شو مسافت زمانی او مسافت مکانی. په زیربحث مسئله کښې د مسافت اولنې قسم یعنی مسافت زمانی مراد دې. اوس نفس مسئلې ته راشئ په متن کښې دی چه د قریب لفظ د میاشتې نه د کمې مودې دپاره اود بعید لفظ د میاشتې نه د زیاتې مودې دپاره استعمالیږی اود دې مودې تعین د خلقو عرف او رواج دې چه کله یو کس مثلا اووائی چه زه کراچئ ته ځم اوزربه واپس راځم نو مراد به دا وی چه د یوې میاشتې نه به وړاندې وړاندې راځم.

**دمحلوف علیه کورنه پخپله وتلواود نورې کډې پریښودلوحکم**

(وَمَنْ حَلَفَ لَا يَسْكُنُ هَذِهِ الدَّارَ فَخَرَجَ مِنْهَا بِنَفْسِهِ وَتَرَكَ فِيهَا أَهْلَهُ وَمَتَاعَهُ فِيهَا حَنِثَ)

**حل اللغة** ① **متاع**: سامان، کره

ترجمه> ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي. اوځوك چه دا قسم اوخوري.چه په دې كوركښې به نه اوسيږي. (اوددې قسم خوړلو نه پس) دې پخپله اووتلو. (خو) دده سامان او اهل وعيال په دغه كور كښې موجود وو. (نو په دې صورت كښې) دې حانث كيږي.

دليله> ځكه چه دده اهل وعيال اوسامان په كښې موجود وي.نو په عرف كښې ده ته ددې كور اوسيدونكې شمارلې شي. (ددې دپاره يونظيردا هم دې) چه د بازارى سړي توله ورځ په بازار كښې وي. (خواهل وعيال اوكډه ئې په كوركښې وي.اوځوك ترې تپوس اوكړي.چه ته كوم ځائې كښې اوسيږې.نو) هغه وائي.زه په فلانئ كوڅه كښې اوسيږم.

**دغيرممكن كارد كولوقسم خوړل**

| (وَمَنْ حَلَفَ لَيَصْعَدَنَّ السَّمَاءَ أَوْلَيَقْلِبَنَّ هٰذَا الْحَجَرَ ذَهَبًا انْعَقَدَتْ يَمِينُهُ وَحَنِثَ عَقِيبَهَا) |
|---|

حل اللغة> ① يصعد:پورته ختل ② يقلب:بدلوې ③ الحجر:كانړې ④ ذهب:سره زر

ترجمه> ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائي.چا چه قسم اوخوړلو.چه دې (يعني زه به) آسمان ته خيژم.يا به ددې كانړي نه سره زر جوړوي.نودده قسم منعقدشو.

دليله> دليل دا دې.چه په قسم كښې برې كيدل په حقيقت كښې متصور دى.ځكه چه آسمان ته حقيقة ختل ممكن دى.ته ګوري نه چه فرشتې آسمان ته خيژي.اودغه شان د كانړي نه سره زر هم جوړيږي.چه الله تعالى ئې په خپل قدرت سره سره زر كړي.اوهركله چه ددې تصور كيدې شي.نويمين منعقد كيږي.اودا يمين (چه منعقدشي.نو) د يمين خليفه (چه كفاره ده) هغه به واجبيږي.اويا چونكه دعادت په اعتبارسره دې د يمين پوره كولو نه عاجز شو .نوحانثيږي.

نظيره> دا مسئله داسې شوه.لكه چه يوقسم خوړونكې مړ شي. (اوده دا قسم خوړلې وي.چه دا كاربه كوم.اودمرګ نه وړاندې هغه كاراونكړي.نوپه دې صورت كښې) قسم خوړونكې حانثيږي.ددې باوجود چه ددې احتمال شته.چه دې دوباره راژوندې شي.

**په نن ورځ د قرض ادا كولوقسم خوړل**

| (وَمَنْ حَلَفَ لَيَقْضِيَنَّ فُلَانًا دَيْنَهُ الْيَوْمَ فَقَضَاهُ ثُمَّ وَجَدَ فُلَانٌ بَعْضَهَا زُيُوفًا أَوْنَبَهْرَجَةً أَوْمُسْتَحَقَّةً لَمْ يَحْنَثِ الْحَالِفُ) |
|---|

حل اللغة> ① زيوف هغه دراهم دى.كوم چه بيت المال كوټه اوګرځوي.او رد ئې كړي.خو تاجر(اوسوداګر) خلق ئې پخپلو معاملاتوكښې اخلي.② بنهرجه (بنهره) هغه دراهم دى.كوم چه سوداګرخلق هم ردكوي.ګويا بنهرجه د كوټه نه هم ادنى دى.خو بيا هم دراهم دى.

ترجمه> كه يوكس قسم اوخوړلو.چه زه به نن د زيد قرض ادا كوم.اوبيا هم په هغه ورځ قرض ادا كړلو.خوچه زيد په لاس كښې واخستلې.نومعلومه شوه.چه په هغې كښې كوټه روپئ دى.بنهرجه وي.يا دهغې بل يوكس مستحق وي.نوقسم خوړونكې نه حانثيږي.

دليله> ځكه چه سكه كوټه وي.نودا يوعيب دې.اودعيب دوجې هغه جنس معدوم اوور كيږي نه.ددې وجې كه اخستونكې زيد په هغې كښې نرمي اوكړي.اودعيب نه سترګې پټې كړي.اوهغه قبولې كړي.نوهغه دخپل قرض وصول كونكې دې.اودغه شان د قسم پوره كولوشرط موجود شو.اوپه ادا شوو روپوكښې چه د كومو يوبل كس مستحق اوخيژي.نوپه هغې باندې د زيد قبضه كول صحيح دى.اودقسم خوړونكى قسم پوره كيدو نه پس كه دغه روپئ خپل مستحق ته واپس شي.نوپه دې باندې د قسم په پوره كيدوكښې څه فرق نه راځي.يعنى قسم به هم پوره وي.

(وَإِنْ وَجَدَهَا رَصَاصًا أَوْسَتُّوقَةً حَنِثَ)

**حل اللغة** ① او ستوقه هغه دراهمو ته وائي.چه په دې کښې کوټ غالب او سپين زر مغلوب وي.ګويا دا د سره درهم هم نه دی.② رصاص ،قلعي نه جوړه شوې روپۍ.③ **ستوقه**،دسين په فتح سره فارسي ئې په عربۍ کښې استعمال کړي ده.ستوقه د درې طبقو واله،يعنې د پيتلوسکه په دې باندې د دواړو طرفونو نه سپين زرختلې وي.چونکه دا دواړه يعني رصاص اوستوقه د سکو د جنس څنې نه دی.نوځکه په بيع صرف اوبيع سلم کښې ددې ورکول جائز نه دی.

**ترجمه** اوکه قرض غوښتونکي دا روپۍ ،رصاص،يا ،ستوقه، بيامونډي.نوقسم خوړونکې به حانث وي.

**دليله** ځکه چه دا دواړه د خالصې روپۍ دجنس څنې نه دی.تردې چه د چشم پوشۍ په طوردې دواړو بيع صرف اوبيع سلم کښې اخستل جائز نه دی.

**دلږ لږ قرض نه اخستلوقسم خوړل**

(وَمَنْ حَلَفَ لَايَقْبِضُ دَيْنَهُ دِرْهَمًا دُونَ دِرْهَمٍ فَقَبَضَ بَعْضَهُ لَمْ يَحْنَثْ حَتَّى يَقْبِضَ جَمِيعَهُ متفرقـاً)

**ترجمه** اوکه يوکس دا قسم اوخوړلو.چه زه به په خپل قرض باندې داسې قبضه نه کړم.چه په لږ باندې قبضه اوکړم.اوپه لږ باندې نه،يعني خپل قرض به متفرق اولږ لږ نه وصول کوم.اوبيا ده لږ قرض واخستلو.نونه حانثيږي.تردې چه ټول قرض داسې په لږه لږه وصول کړي.

**دليله** ځکه چه د حانث کيدو شرط دا دې.چه ټول قرض داسې وصول کړي.چه هغه لږ لږ وي.ولې دې ته نښې کتلې.که قسم خوړونکې قرض خپل خان ته منسوب کړي.اوقرض معرفه کړي.نوددې حکم به د ټول قرض وصولو ته منسوب وي.ددې وجې به په هغه وخت کښې حانثيږي.چه دا شرط په کښې موجود شي.يعني چه متفرق طور ئې وصول کړي.(خلاصه دا شوه.چه که په يومجلس اوپه يوه ناسته کښې ئې د وصولۍ په طورقرض جدا جدا حصې کړې.نونه حانثيږي.اوکه دټول قرض ټول مقدار ئې جدا جدا وصول کړلو.نوحانثيږي)

(وَإِنْ قَبَضَ دَيْنَهُ فِي وَزْنَيْنِ لَمْ يَتَشَاغَلْ بَيْنَهُمَا إِلَّا بِعَمَلِ الْوَزْنِ لَمْ يَحْنَثْ وَلَيْسَ ذَلِكَ بِتَفْرِيقٍ)

**ترجمه** بيا که خپله قبضه ئې دوه ځله اوتلله.اووصول ئې کړله.اوپه دواړو ځله تللوکښې د دغه کارنه سوا په بل کارکښې مشغول نشي.نونه حانثيږي.

**دليله** په متن کښې ذکرشوې صورت د مثال په رڼا کښې داسې زده کړئ که د حالف په زيد باندې شل زره روپۍ وې او هغه ورته په يومجلس کښې اول پنځه زره روپۍ د سلو نوټونه اوشمارل او بيا ئې پنځه زره روپۍ د پنځه سوو روپو نوټونه اوشمارل او بيا ئې لس زره روپۍ د زرو روپو نوټونه اوشمارل او هم په يومجلس کښې ئې ورته ورکړې نو دا وصولي په يوځائې وصولي ده متفرقه وصولي نه ده ددې وجې به حالف په خپل قسم کښې حانث نه وي اوکه د دوو قسطونو په مينځ کښې په موده کښې دومره وقفه اوشوه چه په عرف او رواج کښې هغه متفرق شمارلې اوګڼرلې شي نو په دې صورت کښې به حالف حانث وي.

**بصرې ته دتلوقسم خوړل اوددې حکمونه**

(وَمَنْ حَلَفَ لَيَأْتِيَنَّ الْبَصْرَةَ فَلَمْ يَأْتِهَا حَتَّى مَاتَ حَنِثَ فِي آخِرِ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَاءِ حَيَاتِهِ)

**ترجمه** اوکه دا قسم ئې اوخوړلو.چه بصرې ته به ځي.اوترمرګه پورې ورته لاتړلو.نود خپل ژوند په آخري حصه کښې حانثيږي.

**دلیله** خکه چه ددې امید کیدې شو.چه د مرګ نه وړاندې دې په خپل قسم وفااوکړي. (اوپه هغې کښې برې شي. (خوچه کله پرې مرګ راغلو.نود امید دغه شمع هم مړه شوه)

# كِتَابُ الدَّعْوٰي

**ترجمه** (دا) کتاب د دعوه (په بیان کې) دې.

**الربط بما قبله** د قسم په ذریعه په خبرو کې تاکید پیدا کولې شی د دې وجې نې د کتاب الایمان نه پس د کتاب الدعوی ذکر اوکړو.

**الدعوی في اللغة** دعوه په لغت کې د هغه قول نوم دې.په کوم سره چې انسان په بل سړی باندې د حق واجبولو اراده اوکړي.

**الدعوی في الإصطلاح** اودفقهاؤ په اصطلاح کې دعوه دهغه سړی (قاضی) په مجلس کې د حق د مطالبې نوم دې.کوم سړي چې د حق د ثبوت په صورت کې په خلاصی ورکولو قادر وی.د دعوه سبب هم هغه دې. کوم چې د بیع سبب دې.یعنی (تعلق البقاء المقدور بتعاطی المعاملات) خکه چې د مدعی دعوه به یا د نسل بقاء ارخ ته راجع وی.یا به د نفس بقاء ارخ ته، یا به ددې دواړو توابع ارخ ته راجع وی.اوپه درې واړه صورتونوکې ژوند باقی ساتل مقصود دی.

**شروطه** ① د مدعی دعوه کې به خصم حاضر وی ② مدعا به معلوم شئ وی. ③ مجلس د قاضی ④ دې دعوې سره مدعی علیه باندې حکم متعلق کیږي.خکه چې د قاضی دمجلس نه په علاوه کې دعوه نه صحیح کیږي. اوکه خصم حاضر نه وی.مدعی به مجهول وی.یا دعوې سره مدعی علیه باندې هیڅ نه لازمیږي.نو په دې صورتونو کې به دعوه فاسد وی.د دعوه حکم دادې.چه خصم باندې ،،نعم،، یا ،،لا،، سره جواب واجب وی.

### د مدعی دعوی پرېښودل

| |
|---|
| (اَلْمُدَّعِي مَنْ لَايُجْبَرُعَلَى الْخُصُومَةِ إِذَا تَرَكَهَا مدعی هغه کس دې.که هغه دعوه پرېږدی.نو هغه په خصومت باندې نشی مجبوره کولې.وَالْمُدَّعَى عَلَيْهِ مَنْ يُجْبَرُعَلَى الْخُصُومَةِ)او مدعی علیه هغه دې.چه په خصومت باندې مجبوره کولې شی. |

**تعریف المدعي والمدعي علیه** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.چه مدعی هغه سړې دې.کوم چې په خصومت باندې نشی مجبوره کولې.یعنی د دعوه کولونه روسته که هغه دعوه پرېښنول اوغواړي.نو هغه دې پرېږدی.په هغه هیڅ قسمه زبردستی نشته.او مدعی علیه هغه کس دې.کوم چې په خصومت باندې مجبوره کولې شی.یعنی مدعی علیه،اود دعوه کولو نه روسته هغه باندې خواب ورکول واجب دی.د خصومت نه د ډډې کولو(او مخ اړولو) اجازت نشته.

### دعوی په کله قبلولی شی؟

| |
|---|
| وَلَاتُقْبَلُ الدَّعْوَي حَتّٰى يَذْكُرَشَيْئًا مَعْلُومًا فِي جِنْسِهِ وَقَدْرِهِ)او دعوه به نشی قبلولې.تردې چې مدعی یو داسې شئ بیان کړي.چه د هغې جنس او مقدار معلوم وی. |

**تشریح** د مدعی دعوه به هغه وخت قبلولې شی.کله چې دې ددغه شئ جنس او مقدار ذکرکړي.د کوم چې دعوه کړې شوې ده.مثلاً داسې اووائی.چه زما په فلانی سړی باندې سل دینار دی.سل درهم دی.یو کر غنم دی.

**دليله** خکه د دعوې فائده داده.چه حجت قائم کړی.او مدعی عليه بانديې د مدعی حق لازم کړي شي.اود مجهول شي لازمول ممکن نه دی.په دې وجه د مدعی به شي جنس او مقدار بيانول ضروری دی.

(فَإِنْ كَانَ عَيْنًا فِي يَدِ الْمُدَّعَى) عَلَيْهِ نو که د مدعی عليه په قبضه کې څه مال عين وی.كُلِّفَ إِحْضَارَهَا نو مدعی عليه ته په تکليف ورکولې شی.يُشِيْرُ إِلَيْهَا بِالدَّعْوٰی چه مدعی د دعوی په وخت هغې ته اشاره کوی.

**ترجمه** که مدعی به(دکوم چې دعوه شوې ده) د مدعی عليه په قبضه کې مال عين منقول وی.نو مدعی عليه ته به تکليف ورکولې شي.چه هغه دغه مال د قاضی په عدالت کې حاضر کړی.چه مدعی د دعوه کولو په وخت دغه مال ارخ ته اشاره اوکړې شی.

**دليله** دليل دادې.چه د مدعی به په اړه کې څومره چې ممکن وی.خبرول شرط دی.او داسې خبرېدل په مال منقول کې اشاره سره کيږی.څکه چې مال منقول په عدالت کې منتقل کول هم ممکن دی.اوپه اشارې سره زياته پيژندګلو کيږی.څکه اشاره کول داسې دی.لکه چې په يوځيز باندې لاس ايخودلې وی.اود لاس ايخودلو نه روسته په شناخت او پيژندلو کې څه شبه کيدلې شی؟ بهرحال اشاره کولو لپاره ددې مدعی به شي د قاضی په مجلس کې حاضرول ضروری دی.

(وَإِنْ لَمْ تَكُنْ حَاضِرَةً) اوکه دغه مال منقول حاضر نه وی.ذَكَرَ قِيْمَتَهَا نود هغې قيمت به ذکرکوی.

**تشريح** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائی.که مال منقول د کوم چې دعوه کړې شوې ده.د مدعی عليه په قبضه کې موجود نه وی.بلکه ضائع شو.يا(مدعی عليه) غائب شو.چه د هغه د اوسيدلو ځائې معلوم نه دې.نو په دې صورت کې به مدعی ددغه مال قيمت ذکرکوی.

**دليله** دې دپاره چه مدعی معلومه شی.او دعوه صحيح شی.په دې صورت کې به د وصف بيانول کافی نه وی.څکه چې کله کله وصف په ډيرو اعيانو کې مشترك وی.نود اشتراك په وجه د وصف په ذريعه د عين شي شناخت (او پيژندګلو) نه کيږی.او هرکله چې داسې ده.نو ددې اشتراك په وجه به د وصف بيانول ګټور نه وی.او پاتې شو قيمت،نو ددې په ذريعه د شي شناخت کيدلې شی.نو هرکله چې د قيمت په ذريعه د شي شناخت کيدلې شی.اود عين شي مشاهده کول متعذر دی.نو قيمت ذکر کول به ګټور وی.څکه چې په داسې صورت کې قيمت ذکرکول د خبريدلو آخری ممکن درجه ده.فقيه ابوالليث رحمه الله فرمائی.چه په ذکر شوی صورت کې د قيمت بيانولو سره ددې بيانول هم ضروری دی.چه دکوم دعوه شوې ده.چه مذکر دې.اوکه مؤنث دې.

## دغير منقول څيز دعوی لپاره حدود اربعه بيانول

وَإِنِ ادَّعَى عَقَارًا که مدعی د يوغير منقول شي دعوه اوکړله.حَدَّدَهُ وَذَكَرَ أَنَّهُ فِي يَدِ الْمُدَّعَى عَلَيْهِ نو مدعی به د هغې حدود اربعه هم بيانوی.چه هغه د مدعی عليه په قبضه کې دې.وَأَنَّهُ يُطَالِبُهُ اودا چې مدعی هغه نه ددې مطالبه کړې ده.

**تشريح** مسئله داده.که مدعی د غيرمنقول شي مثلاً د زمکې يا د کور دعوه اوکړله.نو ددې دعوه صحيح کيدلو لپاره درې شيان ضروری دی.

① مدعی ددغه مدعی به شي حدود بيان کړی.يعنی دا بيان کړی.چه دمدعی به د مشرقی ارخ مالك فلانې دې.د مغربی ارخ فلانې،د شمالی ارخ فلانې، او د جنوب د ارخ فلانې مالك دې.

۳ مدعى دا هم بيان كړي.چه مدعى به شئ د مدعى عليه په قبضه كې دې.
۴ اودا هم بيان كړي.چه ما د مدعى عليه ددې مدعى به شئ مطالبه هم كړې ده. باقي تفصيل به په هدايه وغيره كتبې اوګورئ.

| |
|---|
| (وَإِنْ كَانَ حَقًّا فِي الذِّمَّةِ اوكه مدعى په ذمه كې كوم حق وي. ذُكِرَ أَنَّهُ يُطَالِبُهُ بِهِ) نو مدعى ذكركړي.چه دې د مدعى عليه ددې حق مطالبه كوي. |

**تشريح>** د كوم شئ دعوه كړې شوې ده.كه دا شئ په ذمه كې څه حق يعنې دين وي.نو مدعى لپاره دا بيانول ضروري دي.چه دې د مدعى عليه نه ددې حق مطالبه اوكړي.
**دليله>** دليل دا دې چه مطالبه د مدعى حق دې.نو دده دا مطالبه كول ضروري ده.اودا څكه چې دچا په ذمه كې حق دې.يعنې مدعى عليه، او هغه عدالت ته حاضر شو.نو اوس د مطالبې نه سوا هيڅ نه دى پاتې.خو چونكه دين مال معين نه دې.په دې وجه هغې ارخ ته اشاره كول نامكن دى.البته وصف بيانولو سره د هغې شناخت كول ضروري دى.څكه چې كوم حق په ذمه كې واجب وي.يعنې غيرمعين وي.د هغې شناخت او پيژندګلو هم په دې وصف بيانولو سره كيږي.مثلاً داسې اووائي.چه پنځه سوه كره درهم د فلاني وزن، د فلاني د خوى په ذمه دي.

**د دعوى صحيح كيدو نه روسته د قاضي د مدعى عليه نه معلومات كول**

| |
|---|
| (فَإِذَا صَحَّتِ الدَّعْوَى اوكله چې دعوه صحيح شوه. سَأَلَ الْقَاضِي الْمُدَّعَى عَلَيْهِ عَنْهَا) نو قاضي به مدعى عليه نه ددې دعوه په اړه كې معلومات كوي. (فَإِنِ اعْتَرَفَ نوكه مدعى عليه اقرار اوكړو. قُضِيَ عَلَيْهِ بِهَا) نو قاضي به مدعى عليه باندې ددې دعوه حكم كوي. |

**تشريح>** صورت د مسئلې دادې.چه هركله دعوه خپلو شرطونو سره صحيح شوه.نو قاضي به مدعى عليه نه ددې دعوه په اړه كې پوښتنه كوي.چه ته ددې دعوه اقرار كوې.او كه انكار كوې.چه قاضي مدعى عليه باندې ددې دعوه حكم اوكړي.
**دليله>** څكه چې اقرار پخپله موجب او حجت وي.اود قاضي په قضاء باندې موقوف نه وي.او وجه ددې داده.چه انسان ته پخپل ذات باندې مكمل ولايت حاصل دې.په دې وجه صرف په اقرار كولو سره د مدعى حق په ده باندې ثابتيږي.البته قاضي به مدعى عليه ته ددې خبرې حكم كوي.چه هغه دا حق اداكړي.او برى الذمه شي.

| |
|---|
| (وَإِنْ أَنْكَرَ اوكه مدعى عليه د دعوه نه انكار اوكړو. سَأَلَ الْمُدَّعِيَ الْبَيِّنَةَ) نو قاضي به مدعى نه ګواهان طلب كوي. |

**تشريح>** اوكه مدعى عليه ددې دعوه انكار اوكړو.نو ددې دعوه ثابتولو لپاره به قاضي د مدعى نه ګواهان طلبوي.
**دليله>** څكه چې د په بخاري او مسلم كې د وائل بن حجر حديث دې.چه حضر موت نه يو سړې راغئ.او يو سړى كنده نه راغئ.حضرمي اووئيل.اې د الله رسوله (ﷺ)! دې كندمي زما په مځكه باندې ظلماً قبضه كړې ده.كندمي اووئيل.اې د الله رسوله(ﷺ)! دا زما مځكه ده.زما په قبضه كې ده.زه په دې كې زميداري كوم.دده په دې كې هيڅ حق نشته.د الله رسول ﷺ حضرمي يعنې مدعى ته اووئيل.تا سره په دې دعوه باندې بينه موجود ده. حضرمي اووئيل.د الله رسوله(ﷺ) بينه خو موجود نه ده.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.اوس ستا لپاره ددې مدعى عليه قسم دې.يعنې ستا د حق په وجه به ددې

مدعی علیه نه قسم اخستلې شی.حضرمی اوونیل.ایْ د الله رسوله(ﷺ) دا کندمی فاجر،فاسق سړی دی.په دروغ قسم خوړلوکي به دي هیڅ پرواه نه کوی.د الله رسول ﷺ اوفرمانیل.ستا لپاره ددې نه سوا هیڅ حق نشته.نو کله چې دا کندمی یعنی مدعی علیه د قسم خوړلو لپاره لاړلو.نو نبی کریم ﷺ اوفرمانیل.که دی سړی په ناحق طور باندې د مال خوړلو لپاره دروغ قسم اوخوړلو.نو په قیامت کې به الله تعالی سره داسې حالت کې ملاویږی.چه الله تعالی به دده ناراضه وی. (۱)

**الاستدلال** ددې حدیث نه معلومه شوه.چه رسول الله ﷺ د مدعی نه اول بینه طلب کړل.اوبیا د بینه نه کیدلو په صورت کې ئې په دې باندې قسم مرتب کړو.حاصل داچه قسم په بینه نه کیدلو باندې مرتب دی.او هرکله چې قسم په بینه نه کیدلو باندې مرتب دی.نوقاضی به ړومبې د مدعی نه د بینه سوال کوی.چه قاضی لپاره مدعی علیه نه قسم اخستل ممکن شی.

(فَإِنْ أَحْضَرَهَا نوکه مدعی بینه پیش کړل.قُضِيَ بِهَا)نو قاضی به د بینه مطابق حکم کوی.

**تشریح** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمانی.که مدعی پخپله دعوه باندې بینه پیش کړل.نو قاضی به ددې بینه مطابق فیصله ورکوی.

**دلیله** ځکه په کومه دعوه کې چې د صدق او کذب دواړو احتمال وو.د بینه په وجه د صدق اړخ راجح شو.او دعوه سره د کذب تهمت لرې شو.او هرکله چې بینه سره د دعوه صادق کیدل راجح شو.نو قاضی به د بینه مطابق مدعی لپاره فیصله کوی.

(وَإِنْ عَجَزَ عَنْ ذَلِكَ او که هغه ددې نه عاجزه شو.وَطَلَبَ يَمِينَ خَصْمِهِ)او هغه د مدعی علیه نه قسم طلب کړو.اسْتَحْلَفَهُ(عَلَيْهَا)نوقسم به واخلی په دې دعوی باندې.

**تشریح** که مدعی د بینه پیش کولو نه عاجزه شو.او هغه د مدعی علیه نه د قسم مطالبه اوکړله.نو قاضی به په دې دعوه باندې مدعی علیه نه قسم اخلی.

**دلیله** دلیل هغه حدیث دی.کوم چې پورته تیر شو. چې ((والیمین علی من انکر)) ځکه چې مدعی علیه باندې قسم د مدعی یو حق دی.او دلیل ددې دادې.چه حدیث کې یمین په حرف لام سره مدعی اړخ ته منسوب دی.لکه فرمانی.چه (لك یمینه) یعنی ستا لپاره د مدعی علیه قسم دی.ددې نه معلومه شوه.چه د مدعی علیه قسم د مدعی حق دی.او صاحب حق ته دده حق هغه وخت ورکولې شی.کله چې هغه مطالبه کوی.نو دغه ډول کله چې مدعی خپل حق یعنی یمین طلب کړی.نو قاضی به مدعی علیه نه قسم اخلی.

### د ګواهانو موجود کیدو باوجود د قسم طلب کولو حکم

(وَإِنْ قَالَ اوکه مدعی اوونیل.لِي بَيِّنَةٌ حَاضِرَةٌ چې زما سره بینه موجود دی.وَطَلَبَ الْيَمِينَ او هغه مدعی علیه نه قسم طلب کړو.لَمْ يُسْتَحْلَفْ)عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ،(۲)نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز مدعی

---

۱) من حدیث وائل بن حجر رضی الله عنه اخرجه مسلم فی الإیمان رقم ۲۲ وابوداود فی الأیمان باب ۱۱ رقم ۳۲۴۵ والترمذی فی الأحکام باب ۱۲ رقم ۱۳۴۰)۔

۲) القول الراجح هو قول أبي حنيفة كذا في (تنوير الأبصار ۴۷۴\۹۴) ومجمع الأنهر(۳۵۳\۳) والدرالمنتقى (۳۵۳\۳) نقلا عن القول الراجح (۱۷۰\۱۲)

عليه څخه به قسم نشي اخستلي.

**تشريح> صورة المسئلة>** صورت د مسئلي دادي.که مدعي اووئيل.چه زما ګواهان حاضردی.او ده د مدعي عليه نه د قسم مطالبه اوکړله.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به مدعي عليه نه قسم نشي اخستلي. مرغيناني رحمه الله په هدايه کښي فرمائيلي دی.چه د ،،حاضرة،، نه مراد دا دي.چه زما ګواهان په دې ښار کي حاضر او موجود دي.دا مراد نه دي.چه زما ګواهان عدالت کي حاضر دی.څکه چي عدالت کي حاضريدلو په صورت کي بالاتفاق مدعي عليه نه قسم نشي اخستلي.بلکه که مدعي اووئيل.چه زما ګواهان په دې ښارکي حاضر دی.نوپه دې کي اختلاف دي.امام صاحب رحمه الله فرمائي.چه قسم به نشي اخستلي.

**دليله>** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادي.چه تير شوي حديث يعني د نبي کريم ﷺ ارشاد(ألك بينة تقال لا،تقال لك يمينه) سره دا خبره ثابته ده.چه قسم کي د مدعي حق ثابتيدل، ګواهانو قانمولو نه عاجز کيدلو باندي مرتب دی.نو ترکومه پوري چي مدعي د ګواهانو قانمولو نه عاجز نه وی.تر هغه وخته پوري به قسم د مدعي حق نه وی.لکه که ګواهان د قاضي په مجلس کي موجود وی.نو بالاتفاق قسم د مدعي حق نه دي.بهرحال هرکله چي د بينه په موجودګئ کي قسم د مدعي حق نه دي.نو مدعي که د بينه پيش کولو نه عاجز نه وی.يعني بينه په ښار کي موجود وی.نو مدعي ته به د مدعي عليه نه د قسم طلب کولو هيڅ حق نه وی.

**مسلک ابي يوسف>** په پورتنئ مسئله کي امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه قسم به اخستلي شي.

**دليله>** دامام ابويوسف رحمه الله دليل دادي.چه د حديث مشهور(البينة على المدعي واليمين على من أنكر) يا وراندي مذکور (لك يمينه) په وجه دا خبره ثابته ده.چه قسم د مدعي حق دي.نو هرکله چي مدعي دمدعي عليه نه دخپل حق يعني د قسم مطالبه کوی.نو قاضي به دا قبلوی.يعني مدعي عليه ته به د قسم حکم ورکوی.يا دا چه مدعي عليه به د مدعي دا مطالبه قبلوی.يعني قسم به خوری.

**محمد مع من؟>** صاحب د هدايه فرمائيلي دی چي د امام محمد رحمه الله نه دوه روايتونه دی.د امام خصاف د روايت مطابق امام محمد رحمه الله د امام ابويوسف رحمه الله سره دي.اود امام طحاوي رحمه الله د روايت مطابق امام محمد رحمه الله د امام ابوحنيفه رحمه الله سره دي.په غاية البيان کي مرغيناني رحمه الله باندي اعتراض شوي دي.فرمائي.چه د امام محمد رحمه الله قول نه خصاف رحمه الله نقل کړي دي.اونه طحاوي رحمه الله نقل کړي دي.خو صاحب دهدايه رحمه الله ددوی دواړو بزرګانو په حواله سره د امام محمد رحمه الله قول پته نه لګی.د کوم ځائي نه رانقل کړي دي.والله اعلم.

**د مدعي له د قسم اخستلو حکم**

وَلَاتُرَدُّ الْيَمِينُ عَلَى الْمُدَّعِي) چي يمين به مدعي باندي نشي واپس کولي. (الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ) (۱)اومنکر باندي يمين دي. قَسَّمَ الله رسول ﷺ ويش فرمائيلي دي.وَالْقِسْمَةُ تُنَافِي الشَّرِكَةَ،او ويش د شرکت منافي دي.وَجَعَلَ جِنْسَ الْأَيْمَانِ عَلَى الْمُنْكِرِينَ او جنس ايمان ني منکرينو باندي مقرر کړي دي.وَلَيْسَ وَرَاءَ الْجِنْسِ شَيْءٌ،او د جنس نه علاوه هيڅ شئ باقي نه دي.

۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البيهقي في السنن الكبرى (۵\۵۴۱) رقم ۱۰۸۰۳۔

**تشريح>** مدعی باندې په هيڅ حال کې هم قسم نشته.يعنې داسې به کله هم نه کيږي.چه د مدعی په قسم خوړلو باندې قاضی دده په حق کې حکم صادرکړي (١)

**دليله>** رسول الله ﷺ د مدعی او مدعی عليه په منځ کې دوه شيان ويش کړی دی. الْبَيِّنَةُ عَلَى الْمُدَّعِي وَالْيَمِينُ عَلَى مَنْ أَنْكَرَ} (٢) يعنی مدعی باندې ئې بينه مقرر کړی دی.او مدعی عليه باندې ئې قسم مقرر کړې دې.او ويش د شرکت منافی دې. نو رسول الله ﷺ په ،،اليمين،،کې الف لام جنس سره ذکرکړې دې.او جنس قسم ئې په منکر يعنې مدعی عليه باندې ضروری کړې دې.اود جنس نه علاوه بل څه شئ باقی نه دې.نو هرکله چې جنس قسم مدعی عليه سره مختص شو.نو اوس به دقسم هيڅ برخه داسې نه وی.چه هغه مدعی لپاره وی.او هرکله چې مدعی لپاره د قسم هيڅ برخه پاتې نشوه.نو مدعی باندې به قسم هم نه راځی.

**په ملك مطلق كښې د قابض د بينۍ حكم**

| |
|---|
| (وَلَاتُقْبَلُ بَيِّنَةُ صَاحِبِ الْيَدِفِي الْمِلْكِ الْمُطْلَقِ، چې په ملك مطلق کې به د قابض بينه نه قبليږي. |

**تشريح>** مسئله داده.که يوسړې په مال معين باندې قابض دې.او په دې باندې يو غيرقابض د ملك مطلق دعوه اوکړله.يعنې د ملك دعوه ئې اوکړله.خود مالك کيدلو سبب ئې بيان نکړو.مثلاً دا ئې اووئيل.چه دا شئ زما ملك دې.او ددې قابض په قبضه کې په ناحق طور دې.نود ملك مطلق په صورت کې که قابض د خپل مالك کيدلو باندې بينه پيش کړل.او غيرقابض پخپل مالك کيدلو باندې بينه پيش کړل.نو زمونږ په نيز به د غيرقابض بينه اولی (او غوره) وی.نوهم دا به قبلولې شی.اود غيرقابض بينه به نشی قبلولې. (٣)

**دليله>** دليل دادې.چه د غيرقابض بينه دده لپاره ملك ثابتوی.اود قابض بينه قابض لپاره ملك نه ثابتوی. ځکه چې د قابض ملك د هغه په قبضه سره ثابتيږی.نود قابض بينه به هغه لپاره مؤکد وی.کوم چې په ملك سره ثابتيږی.او تاکيد موجود لپاره د وصف ثابتولو نوم دې.د اصل ملك ثابتولو نوم نه دې.بهرحال هرکله چې د قابض بينه د ثابت شوی ملك لپاره مؤکد دی.اود غير قابض بينه د ملك اثبات يا اظهار دې.نود قابض د قبضې په وجه به ظاهری ملك باندې د غيرقابض بينه ته ترجيح ورکولې شی. او ددې ترجيح په وجه به دده بينه قبلولې شی.

---

(١) **مسلك الشافعي:-** په پورتنی حکم کې د امام شافعی رحمه الله اختلاف دې. دا يو روايت د امام مالك او امام محمد رحمهما الله هم دې.دوی فرمائی.چه کله مدعی سره بالکل ګواهان نه وی.او قاضی مدعی عليه نه قسم واخستلو.خو هغه د قسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو قسم به مدعی ارخ ته واپس کيږی.نو که مدعی قسم اوخوړلو.نو قاضی به د هغه په قسم باندې د هغه په حق کې فيصله ورکوی.دغه ډول که مدعی يو ګواه پيش کړو.اود دوهم ګواه نه عاجز شو(او پيش ئې نکړې شو).نو بيا به هم قسم مدعی ارخ ته واپس کيږی.نوکه دې ګواه سره مدعی قسم اوخوړلو.نو قاضی به دده په حق کې فيصله صادرکوی.اوکه مدعی د قسم نه انکار اوکړو.نود مدعی په حق کې به فيصله نه ورکوی.

١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البيهقي في السنن الكبرى (٥\٤٤١) رقم ٢٠٨٠١)_

(٣) **مسلك الشافعي رحمه الله:-** حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د قابض ګواه به قبلولې شی.او هم دده په حق کې به فيصله ورکولې شی.

## د مدعی علیه د قسم په انکار کولو سره د قاضي فیصله ورکول

(وَإِذَانَكَلَ الْمُدَّعٰى عَلَيْهِ عَنِ الْيَمِينِ او کله چې مدعی علیه د قسم نه انکار اوکړو. قُضِيَ عَلَيْهِ بِالنُّكُولِ نو قاضی به د انکار په وجه دده په خلاف فیصله ورکوی. وَأَلْزَمَهُ مَا ادَّعٰى عَلَيْهِ) او مدعی چې په ده باندې دڅه دعوه کړې ده.هغه به دده په ذمه لازم کړي.

**تشریح**› د مدعی د بینه نه پیش کولو په صورت کې که مدعی علیه دقسم خوړلو نه انکار اوکړو.نو د مدعی علیه د انکار په وجه به قاضی د مدعی علیه خلاف حکم ورکوی.او مدعی چې کومه دعوه په ده باندې کړې ده.قاضی به هغه د مدعی علیه په ذمه لازموی. (۱)

**دلیله**› دمدعی علیه د قسم خوړولو نه انکار کول په دې خبره باندې دلالت کوی.چه مدعی علیه مدعی به په بهادرئ او زړه ورتیا سره ردکول غواړی.یعنی دا وائی.چه دمدعی دعوه غلطه ده.خو زه قسم نه خورم.اومدعی به اداکړم.یعنی په ناحقه اداکول مې قبول دی.خو قسم خوړل راته منظور نه دی.یا مدعی علیه دده د دعوه اقرار کوی.یعنی دا وائی.چه د مدعی دعوه صحیح ده.نوزه به دروغ قسم نه خورم. وجه ددې داده.که په دې کې یوه خبره هم نه وی.نوهغه به د شریعت واجب کړې شوې قسم ادا کولو دپاره، او د خپل خان نه ضرر لرې کولو لپاره د قسم خوړلو اقدام ضرور کړې وو.نو دده د قسم خوړلو نه انکار کول، ددې خبرې دلیل دې.چه هغه د مدعی د دعوه اقرار کوی.یاقسم پریږدی.او بهادرئ سره مدعی به اداکول غواړی.

## د قاضي په مدعی علیه باندې درې ځله قسم پیش کول او فیصله کول

(وَيَنْبَغِي لِلْقَاضِي او قاضی لپاره مناسب دی.أَنْ يَقُولَ لَهُ چې هغه مدعی علیه ته داسې اووائی.إِنِّي أَعْرِضُ عَلَيْكَ الْيَمِينَ ثَلَاثًا، چې زه په تا باندې درې خله قسم پیش کوم.فَإِنْ حَلَفْتَ نوکه تا قسم اوخوړلو.وَإِلَّا قَضَيْتُ عَلَيْكَ بِمَا ادَّعَاهُ) خو صحیح ده.گنی زه به تا باندې د هغه شئ فیصله ورکوم.دکوم چې مدعی دعوه کړې ده.

**تشریح**› که مدعی سره بینه نه وی.او مدعی علیه د قسم لپاره تیار شو.نو قاضی به مدعی علیه ته دا وائی.چه زه تا باندې درې خله قسم پیش کوم.که تا قسم اوخوړلو.نو ډیره ښه ده.یعنی ته به د مدعی د دعوه نه خلاص شې.اوکه تا قسم اونه خوړلو.بلکه د قسم خوړلو نه دې انکار اوکړو.نو زه به ستا خلاف د مدعی د دعوه حکم ورکوم.

**فائدة التکرار**› د قاضی دا پرول.یعنی مدعی علیه ته دا وئیل.چه د انکار په صورت کې به ستا خلاف فیصله ورکوم.په دې غرض دی.چه هغه ته د قسم نه د انکار حکم اوخودلې شی.خکه چې دا د پټولو مقام دې.یعنی ممکن ده.چه مدعی علیه ته د امام شافعی رحمه الله مذهب معلوم وی.چه د قسم په انکار سره مدعی علیه باندې حکم نشی ورکولې.بلکه مدعی باندې قسم واپس کولې شی.نو قاضی به دې دخپل مذهب (چې د مدعی علیه د انکار نه روسته دهغه خلاف حکم ورکولې شی) نه خبردار کړو.چه

---

(۱) **مسلک الشافعی رحمه الله**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه د مدعی علیه په انکار کولو باندې قاضی ته د فیصلې ور کولو اجازت نشته.بلکه قسم به په مدعی باندې واپس کولې شی.که مدعی قسم اوخوړلو.نو قاضی به د هغه په حق کې حکم صادر کړی.اوکه مدعی هم انکار اوکړو.نو مقدمه به خارجولې شی.

مدعی علیه باندې دا خبره پټه پاتې نشي.

(فَإِذَا كَرَّرَ الْعَرْضَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ)نو هرکله چې قاضی مدعی علیه باندې درې ځله قسم پیش کړو. (قُضِيَ عَلَيْهِ بِالنُّكُولِ)نود انکار په وجه به د هغه خلاف حکم وركوي.

**تشريح** هرکله قاضی مدعی علیه باندې درې ځله قسم پیش کړو.او مدعی علیه هرځل انکار اوکړو.نو اوس به قاضی دده خلاف حکم ورکوي. مرغینانی رحمه الله فرمائیلي دي .چه دا تکرار یعنی درې ځله قسم پیش کول د امام صاحب رحمه الله د بیان مطابق د استحباب په درجه کې دي.د شرط او واجب په درجه کې نه دي.او ددې مقصد زیات احتیاط او په عذر ښکاره کولو کې مبالغه ده.لکه څنګه چې مرتد ته درې ورځې مهلت ورکولې شي.نو دا درې ورځې مهلت ورکول مستحب دي.واجب نه دي.

**الحكم المفتي به** بهرحال درې ځل قسم پیش کول د احتیاط په وجه دي.ګني مذهب مفتی به حکم دادې.که قاضي د یوځل قسم پیش کولو نه روسته د مدعی علیه د انکار په بنا (بنیاد) باندې حکم ورکړو.نوبیا هم جائز دي.او دلیل وړاندې تیرشوي دې.چه مدعی علیه انکار اوکړو.نو مدعی به په بهادرئ سره ورکول غواړي.یا د مدعی د دعوه اقرار کوی.او په دې دواړوکې په هیڅ یو کې تکرار شرط نه دې.نو په قسم پیش کولو کې به هم تکرار شرط نه وي. مرغینانی رحمه الله فرمانی.هم دا قول صحیح دې.یعنی د مدعی علیه د یو ځل انکار نه روسته که قاضی فیصله ورکړله. نودا فیصله به نافذ وی.اګرچه بعض خلق وائي.چه د یوځل انکار نه روسته که قاضی حکم ورکړو.نودا حکم به نافذ نه وی. مرغینانی رحمه الله فرمانی.چه ړومبی غوره دې.یعنی یوځل انکار کولو نه روسته فیصله ورکول اګرچه جائز ده.خو بهتره داده.چه درې ځله د قسم پیش کولو نه روسته قاضی حکم صادر کړي.

### د نکاح په دعوی کښې د منکر نه د قسم اخستلو حکم

(وَإِنْ كَانَتِ الدَّعْوَى نِكَاحًا)او که د نکاح دعوه وی. (لَمْ يُسْتَحْلَفِ الْمُنْكِرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللَّهُ)نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به منکر نه قسم نشی اخستلې. (وَلَا يُسْتَحْلَفُ فِي النِّكَاحِ وَالرَّجْعَةِ وَالْفَيْءِ فِي الْإِيلَاءِ وَالرِّقِّ وَالْإِسْتِيلَادِ وَالنَّسَبِ وَالْوَلَاءِ وَالْحُدُودِ وَاللِّعَانِ). اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به نکاح کې ،رجعت کې ، د ایلاء په رجوع کولوکې ، رقیت کې ،استیلاد کې ، نسب کې ، ولاء، حدود ، او لعان کې قسم نشی اخستلې.

**عدم الاستحلاف في الاشياء التسعة** نهه شیان دامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز داسې دی.چه هغې کې د منکر یعنی مدعی علیه نه قسم نشی اخستلې.او هغه نهه شیان دادی. ① نکاح: یعنی سړی په یوې ښځې باندې دعوه اوکړله.چه ما ددې ښځې سره نکاح کړې ده.او ښځه ددې انکار کوی.یا ښځې د نکاح دعوه اوکړله.او سړې ددې منکر دې.

② رجعت: یعنی سړی خپلې ښځې ته طلاق رجعی ورکړو.اود هغې عدت پوره شو.ددې نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه د عدت په زمانه کې ده رجعت کړې وو.خو ښځه ددې منکره ده.

③ ایلاء رجعت: یعنی د ایلاء موده تیریدلو نه روسته سړی دعوه اوکړله.چه ما د ایلاء په موده کې دې ته رجوع کړې ده.او ښځه ددې منکره ده.یا ښځې د رجوع کولو دعوه اوکړله.او سړی ددې انکار اوکړو.

④ رقیت: یعنی یوسړی د یو مجهول النسب سړی په اره کې دعوه اوکړله.چه دا زما غلام دې.او مجهول النسب ددې انکار اوکړو.یا مجهول النسب دعوه اوکړله.چه زه دده غلام یم.اوهغه انکار اوکړو.

خاروي د ده دي

## د بائع او مشتري په مبيع يا ثمن کښې د اختلاف مسئله

(وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَبَايِعَانِ فِي الْبَيْعِ که بائع او مشتري په بيع کې اختلاف اوکړو. فَادَّعَى الْمُشْتَرِي ثَمَنًا نو په دوی دواړو کې مشتري د ثمن دعوه اوکړله. وَادَّعَى الْبَائِعُ أَكْثَرَ مِنْهُ او بائع ددې نه د زياتو دعوه اوکړله. أَوْ اعْتَرَفَ الْبَائِعُ بِقَدْرٍ مِنَ الْمَبِيعِ وَادَّعَى الْمُشْتَرِي أَكْثَرَ مِنْهُ وَأَقَامَ أَحَدُهُمَا الْبَيِّنَةَ او په دوی دواړو کې يو کس بينه قائم کړل. قُضِيَ لَهُ بِهَا) نو دده د بينه مطابق به دده لپاره حکم ورکولې شي.

**تشريح** ﴾ صورت د مسئلې دادې. که بائع او مشتري د ثمن يا د مبيع په مقدار کې اختلاف اوکړو. مثلاً مشتري دعوه اوکړله. چه ثمن سل درهم دی. او بائع دعوه اوکړله. چه ثمن دوه سوه درهم دی. يا مثلاً بائع دعوه اوکړله. چه مبيع يو من غنم دی. اومشتري دعوه اوکړله. چه مبيع دوه منه غنم دی. نو دواړوکې يو کس خپله دعوه باندې بينه پيش کړل. او دوهم کس عاجز شو. نو کوم کس چې بينه پيش کړی دی. دهغه په حق کې به فيصله ورکولې شي.

**دليله** ﴾ ځکه چې دوهم اړخ ته صرف دعوه ده. او دې اړخ ته دعوه باندې بينه هم موجود دی. اود خالی دعوه نه بينه مضبوط دی. ځکه چې بينه قاضی باندې حکم صادرکول لازموی. او صرف دعوه حکم نه لازموی. بهرحال هرکله چې بينه اقوی (او مضبوط) دی. نو په کوم اړخ کې چې بينه دی. هم هغه اړخ کې به حکم صادرکولې شي.

(فَإِنْ أَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةً او که په دواړو کې هر يو بينه قائم کړل. كَانَتِ الْبَيِّنَةُ الْمُثْبِتَةُ لِلزِّيَادَةِ أَوْلَى) نود زياتوالی ثابتونکی بينه به اولی (غوره) وی.

**تشريح** ﴾ اوکه دواړو بينه قائم کړل. نود کوم کس بينه چې زياتوالې ثابتوی. د هغه په بينه باندې به حکم ورکولې شي.

**دليله** ﴾ ځکه چې شريعت کې بينات (ګواهيانې) د ثابتولو لپاره وضع شوی دی. نود کوم کس بينه چې زياتوالې ثابتونکې وی. د هغه بينه به زيات مثبت وی. او کوم بينه چې زيات مثبت وی. هغه به قبلولې شي. اود کوم بينه چې کموالې ثابتونکې وی. هغه به د زياتوالی ثابتونکو معارض هم نه وی. نو هرکله چې مثبت للزيادت د معارض نه محفوظ دې. نوهم دا به قبلولې شي.

فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بَيِّنَةٌ اوکه دواړو کې يوکس سره هم بينه نه وی. قِيلَ لِلْمُشْتَرِي نو مشتري ته به ونيلې شي. إِمَّا أَنْ تَرْضَى بِالثَّمَنِ الَّذِي ادَّعَاهُ الْبَائِعُ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ، يا خوته په دې ثمن باندې راضی شه. د کوم چې بائع مدعی دې. ګنی مونږ به بيع فسخ کړو. وَقِيلَ لِلْبَائِعِ او بائع ته به ونيلې شي. إِمَّا أَنْ تُسَلِّمَ مَا ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي مِنَ الْمَبِيعِ وَإِلَّا فَسَخْنَا الْبَيْعَ) يا خوته هغه مبيع اوسپاره. دکوم چې مشتري مدعی دې. ګنی مونږ به بيع فسخ کړو.

**تشريح** ﴾ اوکه دواړو کې يو کس سره هم بينه نه وی. نو حاکم به مشتري ته وائی. چه يا خوته په دې ثمن باندې راضی شه. د کوم چې بائع مدعی دې. ګنی مونږ به عقد بيع فسخ کړو. او حاکم به بائع ته وائی. چه يا خوته هغه مبيع اوسپاره. دکوم چې مشتري مدعی دې. ګنی نو مونږ به عقد بيع فسخ کړو.

**دليله** ﴾ ځکه چې مقصود جګړه ختمول دی. اودا هم د جګړې ختمولو يوه طريقه ده. ځکه چې په عامه توګه (عام طور) باندې عاقدين (بائع او مشتري) په فسخ د بيع باندې نه راضی کيږی. نو هرکله چې د حاکم په خبرولو سره دوی ته د فسخ علم اوشو. نو دوی دواړه به خپل منح کې د رضامندئ کوشش

كوي.اود دواړو خپل منځ كي رضامند كيدلو سره هم چونكه جګړه ختميږي.په دې وجه به قاضي نه ددې طريقې هم اجازت وي.

**د بائع او مشتري نه راضي كيدو په صورت كښې د قسم اخستلو طريقه**

(فَإِنْ لَمْ يَتَرَاضَيَا)بيا كه بائع او مشتري دواړه راضي نشو.اسْتَحْلَفَ الْحَاكِمُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَى دَعْوَى الْآخَرِ)نو حاكم به دوى دواړو كي هريو نه د دوهم په دعوه باندې قسم اخلي.

**تشريح** مسئله داده.كه بائع او مشتري دواړو اختلاف اوكړو.او دواړه خپل منځ كي رضامند هم نشو.نو حاكم به دواړو كي هر يو نه د بل كس د دعوه خلاف قسم اخلي.كه دواړو قسم اوخوړلو.نو بيع به فسخ كولې شي.كه مشتري په مبيع باندې قبضه كړې وي.اوكه قبضه نه وي كړې.

**دليله** خپل منځ كي د قسم خوړلو داحكم د مشتري د قبضې نه وړاندې د قياس موافق دې.او د قبضې نه روسته د قياس خلاف دې.د قبضې نه وړاندې د قياس موافق ځكه دې.چه بائع د ثمن د زياتوالي مدعي دې.او مشتري ددې منكر دې.او مشتري ددې اداكړې شوي ثمن په عوض كي د مبيع سپارلو د وجوب مدعي دې.او بائع ددې منكر دې.حاصل داچه دواړو كي هريو منكر دې. اودمشهور حديث (واليمين على من أنكر) په وجه منكر باندې قسم عائد كيږي.نو په دواړوكي به هر يو نه قسم اخستلې شي.نو كه دواړو قسم اوخوړلو.يا دواړو د قسم انكار اوكړو.نو بيع به فسخ كولاى شي .اوكه يوكس انكار اوكړو.او يو قسم اوخوړلو.نود انكار كونكي خلاف به دعوه ثابتولې شي.

**د قسم پيل به د چا نه كولې شي؟**

(وَيَبْتَدِءُ بِيَمِيْنِ الْمُشْتَرِي)او قاضي به د مشتري په قسم سره پيل كوي.

**تشريح** صاحب د قدوري رحمه الله فرمائي.چه په كوم صورت كي بائع او مشتري دواړو نه قسم اخستلې شي.هغه صورت كي به قاضي د مشتري د قسم نه پيل كوي.يعنى مخكي به مشتري نه قسم اخلي.او بيا به بائع نه قسم اخلي.

**دلائله** ① ځكه چې د مشتري انكار سخت دې.او سخت ځكه دې.چه كله د مشتري نه د ثمن مطالبه كولې شي.نو هغه د دوې (دوه) څيزونو انكار كوي.يو د اصل وجوب ثمن، او دوهم د وجوب اداء.او هركله چې داسې ده.نو دده انكار سخت شو.

② ځكه چې اولاً مشتري نه د ثمن مطالبه كولې شي.او هركله چې اول مشتري نه د ثمن مطالبه كيږي.نود هغه انكار به هم وړاندې وي.اود انكار مخكي كيدل،دا هم دده د سخت كيدلو دليل دې. او ځكه هم چې د مشتري د قسم د انكار فائده فوراً ښكاره كيږي.ځكه چې كله مشتري د قسم نه انكار اوكړي.نو په ده باندې فوراً ثمن لازمولې شي.اود قسم فائده انكار لپاره مشروع شوې ده.بې فائدې نه ده مشروع شوې.

(وَإِنْ نَكَلَ أَحَدُهُمَا عَنِ الْيَمِيْنِ)اوكه دواړو كي يو د قسم خوړلو نه انكار اوكړو.لَزِمَهُ دَعْوَى الْآخَرِ) نود دوهم دعوه به ده باندې لازم وي.

**تشريح** كه په دواړو كي يو كس د قسم نه انكار اوكړو.نو منكر باندې به د دوهم دعوه لازم وي.

**دليله** ځكه چې د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق منكر باذل (په بهادرئ سره پخپل حق ور كاوو باندې راضي) دې.او هركله چې داسې ده.نو دده دعوه د بل د دعوه معارض نشوه.او هركله چې دده دعوه معارض نشوه.نو ګويا منكر د بل د دعوه د ثبوت قائل شو.اوهركله چې منكر د بل د دعوه د

راګري. نو په دې تولو صورتونو کښې به د دواړو نه قسم نشي اخستې بلکه څوك چې انكار كوي د
هغه نه به قسم اخستې شي.
**دليله>** دليل ښكاره دې چې د منكر نه قسم اخستې شي.د مدعى نه نشي اخستې.

**د مبيع هلاكيدو نه روسته د اختلاف په صورت كښې د قسم حكم**

(وَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ كه مبيع هلاك شو. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بيا بائع او مشترى د ثمن په مقدار كې اختلاف اوكړو. لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ رحمهماالله([1]) نود ابوحنيفه او ابويوسف رحمهماالله په نيز به دواړه قسم نه خوري. وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُشْتَرِي. فِي الثَّمَنِ او قول به د مشترى معتبر وي په ثمن كښې.

**تشريح>** صورت د مسئلې دادې.كه د مشترى قبضه كولو نه روسته مبيع هلاك شو.بيا بائع او مشترى د ثمن په مقدار كې اختلاف اوكړو.نود امام ابوحنيفه او ابويوسف رحمهماالله په نيز به دواړو نه قسم اخستلې شى.بلكه د ثمن د مقدار په سلسله كې به دمشترى قول مع اليمين معتبر وى.
**دلائلهما>** ① د حضرت امام ابوحنيفه او امام ابويوسف رحمهماالله دليل دادې.چه د مشترى د مبيع قبضه كولو نه روسته تحالف خلاف قياس دې.ځكه چې بائع مشترى ته هغه مال واپس كړې دې.دكوم چې مشترى مدعى دې.او شريعت كې تحالف هغه مال باندې وارد شوې دې.كله چې سامان د مبيع موجود وى.لكه چې د نبى كريم ﷺ ارشاد دې. (إذا اختلف المتبايعان والسلعة قائمة بعينها تحالفا وترادا) نو هركله چې د مبيع د قبضه كولو نه روسته د مبيع سامان موجود كيدلو په صورت كې تحالف ورادكيدل خلاف قياس دى.نودا به د مبيع سامان هلاكيدلو صورت ارخ ته نه متعدى كيږى.يعنى د مبيع سامان هلاكيدلو صورت كې به تحالف واجب نه وى.
② دوهم دليل او د امام محمد او امام شافعى رحمهماالله د دليل خواب دادې.چه د مقصود حاصليدلو نه روسته په سبب كې د اختلاف اعتبار نه كيږى.يعنى د بيع مقصود مشترى لپاره مبيع سلامت پاتې كيدل دى.نو هركله چې بائع مشترى ته مبيع سپارلې دې.او هغه د مشترى په ملك كې هلاك شو.نو مقصود حاصل شو.اوهركله چې مقصود حاصل شو.نود سبب (عقد) ذكر لغو شو.اود بائع او مشترى اختلاف د سبب نه بغير په زر او دوه زره (درهمو) كې شو.يعنى مشترى د زر(درهمو) مدعى دې.او بائع ددې منكر دې.او بائع د دوه زره (درهمو) مدعى دې.او مشترى ددې منكر دې.نو مشترى چې د كومو زياتى زر (درهمو) منكر دې.هغې باندې به قسم واجب وى.اود قسم خوړلو په صورت كې به هم دده قول معتبر وى.

وَقَالَ مُحَمَّدٌ رَحِمَهُ اللَّهُ:او امام محمد رحمه الله فرمائى. يَتَحَالَفَانِ دواړه به قسم خورى. وَيُفْسَخُ الْبَيْعُ عَلَى قِيمَةِ الْهَالِكِ)او د هلاك شوى په قيمت به بيع فسخ كولې شى.

**تشريح> مسلك محمد>** امام محمد فرمائى.چه دواړو څخه به قسم اخستلې شى.كه دواړو قسم اوخوړلو.نو بيع به فسخ كولې شى.او مشترى باندې به د هلاك شوى مبيع قيمت وركول واجب وى.هم

[1]) القول الراجح هوقول الشيخين رحمهما الله كذا في نتائج الأفكار(٧\٢٠١) ومجمع الأنهر(٣\٣٦٢) وشرح المجلة (٥\٥٣٠) المادة (١٧٨٢) وكنز (٢٨٠) والدرالمختار(٤\٤٧٩) والهندية (٤\٣٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٧٤)

دا اختلاف هغه وخت دې.کله چې مبيع د مشتري د ملك نه وتلې وي.یا د عيب په وجه مشتري د مبيع په واپس کولو قادر نه وي.

**دليله>** دامام محمد دليل دادې.چه بائع او مشتري دواړوکې هريو ددې عقد د علاوه دعوه کوي.د کوم چې دده اندیوال مدعى دې.او دوهم ددې منکر دې.مثلاً بائع د دوه زره (درهمو) په عوض د بيع دعوه کوي.او مشتري ددې منکر دې.او مشتري د زر(درهمو) په عوض د بيع دعوه کوي. اوبائع ددې منکر دې.اودا خبره هم ښکاره ده.چه،، بيع بالف،، د،، بيع بالفين،، نه غير ده.هم دا وجه ده. چې د بيع دوه گواهان که په مقدار د ثمن کې اختلاف اوکړي.نو ددوی نه قبليږي.ځکه چې د دواړو گواهي په جلا بيع باندې ده.او په هر يو بيع نصاب د شهادت نه دې پوره شوې.نو دچا گواهي به هم قبول نه وي.

**الاشكال>** پاتې شودا سوال،چه د مبيع هلاكيدلو نه روسته د امام محمد رحمه الله په قول باندې د تحالف فائده څه ده.

**الجواب>** ددې خواب دادې.چه د تحالف فائده داده.كه مشتري د قسم خوړلو نه انكار اوكړي.نو په مشتري به د ثمن هغه زياتوالى واجب وي.د كوم چې بائع مدعى دې.او كه بائع د قسم نه انكار اوكړو.نو مشتري څخه به د ثمن هغه زياتوالى لرې كولې شي.د كوم چې بائع مدعى دې.بهرحال هركله چې د تحالف فائده موجود ده.نو دواړو څخه به قسم اخستلې شي.اودا داسې ده.لكه چې د مبيع سامان هلاكيدلو نه روسته د ثمن په جنس كې اختلاف كړې وي.مثلاً يوكس دعوه اوكړله.د عقد بالدراهم،او دوهم كس د عقد بالدنانير دعوه اوكړله.نو په دې صورت كې مشتري باندې د قيمت واپس كول لازميږي.دغه ډول د متن په مسئله كې دواړو نه قسم اخستلې شي.او بيع به فسخ كولې شي.او مشتري باندې به د هلاك شوي مبيع قيمت واجبولې شي.

**جواب الشيخين عنه>** د امام محمد د دليل نه خواب دادې.چه فائده هم هغه معتبر ده.كوم چې د موجبات عقد څخې وي.اود ثمن زياتوالى لرې كولو فائده دموجبات عقد څخې نه ده.بلكه دا فائده د بائع د قسم نه د انكار كولو د موجباتو څخې ده.او چونكه قسم د موجبات عقد څخې نه ده.نود بائع انكار قسم به هم موجبات عقد څخې نه وي.او هركله چې د بائع د قسم انكار دموجبات څخې نه ده.نو دده د قسم انكار په وجه به هغه شئ نشى پريخودلې.كوم شئ چې د موجبات عقد څخې دې.يعنى مبيع باندې د مشتري ملكيت او قبضه.او هركله چې دا ترك نكړې شوه.نو بائع څخه به قسم نشى اخستلې.بلكه صرف به مشتري څخه به قسم اخستلې شي.

**دوه غلامانو کښې د يو غلام هلاکيدو نه روسته ثمن کښې اختلاف او د قسم حکم**

> وَإِنْ هَلَكَ أَحَدُ الْعَبْدَيْنِ كه په دوه غلامانوكې يو هلاك شو. ثُمَّ اخْتَلَفَا فِي الثَّمَنِ بيا دواړو په ثمن كې اختلاف اوكړو. لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَرْضَى الْبَائِعُ أَنْ يَتْرُكَ حِصَّةَ الْهَالِكِ()نود امام صاحب رحمه الله په نيز به دواړه قسمونه نه خوري.خودا چې بائع په دې خبره راضى شي.چه هغه به د هلاك شوي غلام برخه پريږدي (نو قسم به اخستلې شي)

**تشريح>** كه يوسړي څپل دوه غلامان د عقد واحد لاندې خرڅ كړل.او مشتري په دوی دواړو باندې قبضه اوكړله.بيا په دوی دواړو كې يو هلاك شو. ددې نه روسته بائع او مشتري د ثمن په مقدار كې

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في العناية (۲۰۳\۷) ومجمع الأنهر(۳۶۳\۳) والهندية (۳۳\٤) والدرالمختار (٤۷۹\٤) نقلاً عن القول الراجح(۱۷۶\۲)

اختلاف اوکړو.بائع اووئيل.چه ما دواړه غلامان د دوه زره (درهمو) په عوض خرڅ کړی دی.اومشتری اووئيل.چه ما ستا نه دوی دواړه د زر(درهمو) په عوض اخستي دی.نود حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دې صورت کې به تحالف نه کيږي.يعنی دواړو څخه به قسم نشی اخستلې.البته که بائع د هلاك شوی غلام د برخې (حصې) ثمن پرينبولو باندې راضی شو.نو په دې صورت کې به دواړو نه قسم اخستلې شی.او جامع صغير کې هم دا مسئله په دې طريقه ذکر شوې ده.چه د ابوحنيفه رحمه الله په نيز د مشتری قول به مع اليمين معتبر وی.خودا چې بائع په دې خبره باندې راضی شی.چه هغه به ژوندې غلام اخلی.اود هلاك شوی قيمت څخه به هغه لپاره هيڅ نه وی.د دواړو عبارتونو حاصل يو دې.صرف دومره توپير دې.چه د قدوری په عبارت کې مستثنی منه عدم تحالف (لم يتحالفا) ده.اود جامع صغير په عبارت کې مستثنی منه د مشتری يمين دې.

**دليله** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه د مشتری د قبضې نه روسته تحالف خلاف قياس د حديث نه په هغه صورت کې ثابت دې.کله چې مبيع موجود وی.لکه څنګه چې وړاندې تير شوی دی.او مبيع دخپلو پوره اجزاؤ نوم دې.نود بعض اجزاؤ فوت کيدلو نه روسته مبيع باقی پاتې نشو.څکه چې انتفاء د جزء انتفاء د کُل لره مستلزم ده.او چې مبيع باقی پاتې نشو.نود حديث واردیدلو محل هم باقی پاتې نشو.او هرکله چې د وارد شوی حديث محل باقی پاتې نشو.نود حديث مطابق به تحالف هم نه وی.اود مبيع په موجودګئ کې تحالف خلاف قياس ثابت دې.په دې وجه د هلاکيدلو صورت به په دې نشی قياس کولې.او تحالف به نشی واجبولې.بهرحال په دې صورت کې تحالف نشته.

**وَقَالَ أَبُويُوسُفَ**:او ابويوسف رحمه الله فرمائی. **يَتَحَالَفَانِ وَيُفْسَخُ الْبَيعُ فِي الْحَيِّ**، چې د ژوندی غلام په اره کې به عقد فسخ کولې شی. **وَقِيمَةِ الْهَالِكِ**. او د تلف شوی په قيمت کې به د مشتری قول معتبر وی. **وهو قول مُحَمَّدٍ**:او دا د امام محمد رحمه الله قول دې

**تشريح** **مسلک الصاحبين** حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائی.چه د ژوندې غلام په اره کې به، بائع او مشتری دواړو نه قسم اخستلې شی.اود تحالف نه روسته به ژوندې غلام کې عقد بيع فسخ کولې شی.اود هلاك شوی غلام د ثمن په برخه کې به د مشتری قول مع اليمين معتبر وی.اودا د امام محمد قول هم دې

**دليلهما** د حضرت امام ابويوسف رحمه الله دليل دادې.چه تحالف (خپل منځ کې د قسم) ممتنع کيدل په دې وجه دی.چه مبيع هلاك شوې دې.نو څومره قدرې چې ضائع شوې دې.هم هغه مقدار کې به تحالف ممتنع وی.نو ژوندې غلام کوم چې نه دې هلاك شوې.هغه کې به دواړو نه قسم اخستلې شی.او هلاك شوی غلام کې به تحالف نه کيږی.بلکه دده په ثمن کې به د مشتری قول مع اليمين معتبر وی.

**د ښځې ميړه په مينځ ځينې په مهر ځينې اختلاف**

**وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي الْمَهْرِ** اوکه ښځې او ميړه په مهر کې اختلاف اوکړو. **فَادَّعَى الزَّوْجُ** يا ميړه دعوه اوکړله. **أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا بِأَلْفٍ** چې ما ددې سره په زر(درهمو) باندې نکاح کړې وه. **وَقَالَتْ** او ښځې اووئيل. **تَزَوَّجَنِي بِأَلْفَيْنِ** چې تا ما سره په دوې (دوه) زره (درهمو) نکاح کړې وه. **فَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ**)نو کوم کس چې بينه قائم کړل.د هغه بينه به قبول وی.

**تشريح** صورت د مسئلې دادې.که ښځې او ميړه د مهر په مقدار کې اختلاف اوکړو. ميړه دعوه اوکړله .چه ما ددې ښځې سره د زر (درهمو) په عوض نکاح کړې ده.او ښځې دعوه اوکړله.چه ده زما سره د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض نکاح کړې ده.نو په دواړو کې چې کوم يوکس بينه قائم کړل.د

دې وجه دی.چه مبیع هلاك شوې دې.نو څومره قدرې چې ضائع شوي دې.هم هغه مقدار کې به تحالف ممتنع وی.نو ژوندې غلام کوم چې نه دې هلاك شوې.هغه کې به دواړو نه قسم اخستلې شی.او هلاك شوی غلام کې به تحالف نه کیږی.بلکه دده په ثمن کې به د مشتری قول مع الیمین معتبر وی.

**د ښځې میړه په مینځ کښې په مهر کښې اختلاف**

| |
|---|
| وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي الْمَهْرِ او که ښځې او میړه په مهر کې اختلاف اوکړو. فَادَّعَى الزَّوْجُ بیا میړه دعوه اوکړله. أَنَّهُ تَزَوَّجَهَا بِأَلْفٍ چې ما ددې سره په زر(درهمو) باندې نکاح کړې وه. وَقَالَتْ او ښځې اوویل. تَزَوَّجَنِي بِأَلْفَيْنِ چې تا ما سره په دوې (دوه) زره (درهمو) نکاح کړې وه. فَأَيُّهُمَا أَقَامَ الْبَيِّنَةَ تُقْبَلُ بَيِّنَتُهُ)نو کوم کس چې بینه قائم کړل.د هغه بینه به قبول وی. |

**تشريح** > صورت د مسئلې دادې.که ښځې او میړه د مهر په مقدار کې اختلاف اوکړو. میړه دعوه اوکړله .چه ما ددې ښځې سره د زر (درهمو) په عوض نکاح کړې ده.او ښځې دعوه اوکړله.چه ده زما سره د دوې (دوه) زره (درهمو) په عوض نکاح کړې ده.نو په دواړو کې چې کوم یوکس بینه قائم کړل.د هغه بینه به قبول وی.

**دليله** > ځکه چې هغه خپله دعوه بینه سره ثابت کړله.که ښځې بینه قائم کړل.نود هغې بینه قبلول بالکل ښکاره دی.ځکه چې هغه د زیاتوالی مدعیه ده.اود مدعی بینه قبلولې شی.نو ددې بینه به قبول وی.خود میړه بینه قبلولو کې څه قدرې اشکال دې.ځکه چې میړه د زیادت منکر دې.نو په ده باندې قسم واجبیدل پکار دی.بینه واجبیدل پکار نه دی.خو ددې باوجود که ده بینه پیش کړل.نو ځکه به قبلیږی.چه دې صورةً مدعی دې.اود بینه قبلیدلو لپاره دومره کافی ده.

| |
|---|
| وَإِنْ أَقَامَا الْبَيِّنَةَ بیا که ښځې میړه دواړو بینه قائم کړل. فَالْبَيِّنَةُ بَيِّنَةُ الْمَرْأَةِ نود ښځې بینه به قبول وی. لِأَنَّهَا تُثْبِتُ الزِّيَادَةَ،ځکه چې د ښځې بینه زیادت ثابتوی. مَعْنَاهُ ددې مطلب دادې. إِذَا كَانَ مَهْرُ مِثْلِهَا أَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ چې کله د ښځې مهر مثل د ښځې د دعوه نه کم وی. |

**تشريح** > اوکه ښځې او میړه دواړو خپل خپل بینه قائم کړل.نود ښځې بینه به قبول وی.

**دليله** > ځکه چې د ښځې بینه د مهر زیادت ثابتوی.خود ښځې بینه به هغه وخت قبلیږی.کله چې مهر مثل دهغې نه کم وی.دکوم چې ښځه دعوه کوی.ګنې که مهر مثل د هغې برابر وی.دکوم چې ښځه دعوه کوی.یا هغې نه زیات وی.نو په دې دواړو صورتونو کې به د میړه بینه قبول وی.

| |
|---|
| (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ او که دواړو سره بینه نه وی. تَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دواړو نه قسم اخستلې شی. وَلَا يُفْسَخُ النِّكَاحُ)او نکاح به نشی فسخ کیدلې. |

**تشريح** > او که ښځه او میړه دواړه د بینه قائمولو نه عاجز شو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دواړو نه قسم اخستلې شی.خو نکاح به نشی فسخ کولې.

**دليله** > ځکه چې د تحالف اثر به دا وی.چه د مهر په سلسله کې د دواړو دعوه معدوم شی.او داسې شی.لکه چې د مهر ذکر ئې نه وی کړې.اود مهر ذکر نه کول د نکاح د صحت لپاره محل(خلل) نه واقع کیږی.ځکه چې مهر په نکاح کې تابع وی.نو په دې تحالف سره د مهر تسمیه معدوم کیږی.خو نکاح به نه فسخ کیږی.

| |
|---|
| (وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمَا بَيِّنَةٌ او که دواړو سره بینه نه وی. تَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نود ابوحنیفه رحمه الله په نیز به |

دوارو نه قسم اخستلې شي. وَلَا يُفْسَخُ النِّكَاحُ)او نکاح به نشي فسخ کیدلې.

تشریح> او که ښځه او میړه دواړه د بینه قائمولو نه عاجز شو.نود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به دواړو نه قسم اخستلې شي.خو نکاح به نشي فسخ کولې.

دلیله> خکه چې د تحالف اثر به دا وي.چه د مهر په سلسله کې د دواړو دعوه معدوم شي.او داسې شي.لکه چې د مهر ذکر ئې نه وي کړې.اود مهر ذکر نه کول د نکاح د صحت لپاره محل(خلل) نه واقع کیږي.خکه چې مهر په نکاح کې تابع وي.نو په دې تحالف سره د مهر تسمیه معدوم کیږي.خو نکاح به نه فسخ کیږي.

(وَلَكِنْ يُحَكَّمُ مَهْرُ الْمِثْلِ)نو بیع به فسخ کولې شي.خو مهر مثل به حَکَم(او فیصل) کرځولې شي.

تشریح> بهرحال د مهر په سلسله کې د تحالف نه روسته د مهر ذکر کول معدوم شو.او نکاح فسخ نشوه.او هرکله چې نکاح فسخ نشوه.اود مهر ذکرکول معدوم شو.نود جګړې ختمولو لپاره به مهرمثل حکم جوړولې شي.

(فَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ)نو که مهر مثل دومره وي.د خومره چې میړه اقرار کړې دې.أَوْ أَقَلَّ)یا ددې نه کم وي.قَضَى بِمَا قَالَ الزَّوْجُ)نو دهغې فیصله به کولې شي.کوم چې میړه وئیلې دې.

تشریح> نو که مهرمثل د میړه د اقرار کړې شوی مهر برابر وي.یا ددې نه کم وي.نود خومره مهر چې میړه اقرار کړې دې.هم د هغې په اندازه به حکم ورکولې شي.

دلیله> خکه چې ښکاره حال د میړه دقول شاهد دې.او ښکاره حال چې دچا شاهد وي.هغه مدعی علیه وي.

اود بینه نه کیدلو په صورت کې د مدعی علیه قول معتبر وي.نو په دې صورت کې به هم د مدعی علیه یعنې د میړه قول معتبر وي.اوهغه مهر به واجب وي.دکوم چې میړه اقرار کړې دې.

(وَإِنْ كَانَ مِثْلَ مَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ)اوکه د هغې هومره وي.د خومره چې ښځې دعوه کړې ده.أَوْ أَكْثَرَ قَضَى بِمَا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ)نو ښځې لپاره به د مهر مثل فیصله کولې شي.

تشریح> اوکه مهر مثل دومره وي.د خومره چې ښځې دعوه کړې ده.یا ددې نه زیات وي.نود خومره چې ښځې دعوه کړې ده.هم دهغې حکم به ورکولې شي.

دلیله> خکه چې په دې صورت کې ښکاره حال د ښځې شاهد دې.

(وَإِنْ كَانَ مَهْرُ الْمِثْلِ أَكْثَرَ مِمَّا اعْتَرَفَ بِهِ الزَّوْجُ وَأَقَلَّ مِمَّا ادَّعَتْهُ الْمَرْأَةُ قَضَى لَهَا بِمَهْرِ الْمِثْلِ)

تشریح> اوکه مهرمثل منځنې وي.یعنې د میړه د اقرار کړې شوی مهرنه زیات وي.اود ښځې د دعوه کړې شوي مهر نه کم وي.نو ښځې لپاره به د مهرمثل حکم ورکولې شي.

دلیله> خکه چې هرکله دواړو قسم اوخوړلو .نونه به د مهرمثل نه زیاتي ثابتیږي.اونه به ددې نه کم ثابتیږي.یعنې د میړه د قسم خوړلو په وجه به د مهرمثل نه زیاتي نه ثابتیږي.اود ښځې د قسم خوړلو په وجه به د مهر مثل نه کم نه ثابتیږي.نو هرکله چې نه د مهرمثل نه زیات ثابت شو.او نه کم ثابت شو.نود مهرمثل حکم به ورکولې شي.

### د مؤجر او مستاجر اختلاف او د تحالف حکم

(وَإِنِ اخْتَلَفَا فِي الْإِجَارَةِ قَبْلَ اسْتِيفَاءِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ)اوکه د معقود علیه وصولولو نه وړاندې موجر او

مستاجر په اجاره کې اختلاف اوکړو. تَحَالَفَانو دواړه به قسم خوري. وَتَرَادَّا)او اجاره دې واپس کړي.

**تشریح>** مسئله داده. چه موجر(اجاره باندې ورکونکې) او مستاجر(اجرت باندې اخستونکې) د اجرت په مقدار کې اختلاف اوکړو. یا معقود علیه یعنی د منفعت په مقدار کې اختلاف اوکړو. اودا اختلاف د منافعو حاصلولو نه مخکې واقع شو. نو په دې صورت کې به دواړو نه قسم اخستلې شي. او عقد اجاره به فسخ کولې شي. د بدل (اجرت) او مبدل (معقودعلیه) په ذکر کاوه سره دا خبره واضحه شوه که اختلاف د میعاد په مقدار کې وی. نو په دې صورت کې به تحالف نه کیږي. بلکه د زیاتوالی د منکر قول به مع الیمین معتبر وی.

**دلیله>** په مبیع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې په بیع یعنی ثمن یا مبیع کې اختلاف د قیاس مطابق دې. او اجاره منفعت باندې د قبضه کاوه نه وړاندې په مبیع باندې د قبضه کاوه نه وړاندې د بیع مثال دې. ځکه چې دواړو کې هریو عقد معاوضه ده. او زمونږ کلام په دې صورت کې دې. کله چې معقود علیه یعنی منفعت باندې قبضه نه وی شوې. نو د منفعت حاصلولو نه وړاندې اجاره کې اختلاف داسې شو. لکه مبیع باندې قبضه کاوه نه وړاندې په بیع کې اختلاف. نو لکه ځنګه چې بیع کې تحالف جاري کیږي. دغه ډول به اجاره کې هم تحالف جاري کیږي.

### د منافعو حاصلولو نه روسته اختلاف کنې د تحالف حکم

وَإِنْ اخْتَلَفَا بَعْدَ الِاسْتِيفَاءِ او که د منافعو وصولولو نه روسته دواړو اختلاف اوکړو. لَمْ يَتَحَالَفَا نو دواړه به قسم نه خوری. وَكَانَ الْقَوْلُ قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ او د مستاجر قول به معتبر وی.

**تشریح>** که په اجاره کې د منافعو حاصلولو نه روسته دواړو اختلاف اوکړو. نو بالاجماع به دواړو نه قسم نشی اخستلې. بلکه د مستاجر قول به مع الیمین معتبر وی.

**دلیله>** د تحالف نه واجبیدل د شیخینو رحمهماالله په نیز خو ښکاره دی. ځکه چې کله معقود علیه معدوم شی. نو د دوی په نیز تحالف هم ممتنع کیږي. او دلته کې معقودعلیه د منفعت وصولولو نه روسته پاته پاتې نشو. په دې وجه دا ونیلې شي. چه اجاره کې معقودعلیه هلاك او معدوم شو. اود امام محمد رحمه الله په اصل باندې هم عدم تحالف ښکاره دې. ځکه چې د امام محمد رحمه الله په نیز باندې مبیع کې تحالف نه ممتنع کیدل، په دې وجه دی. چه د مبیع قیمت وی. او قیمت د بیع قائم مقام وی. نود امام محمد رحمه الله په نیز بائع او مشتری دواړه به قیمت باندې تحالف کوی.

### د بعضې منافع حاصلولو نه روسته اختلاف او د تحالف حکم

وَإِنْ اخْتَلَفَا بَعْدَ اسْتِيفَاءِ بَعْضِ الْمَعْقُودِ عَلَيْهِ او که د بعض معقود علیه حاصلولو نه روسته دواړو اختلاف اوکړو. تَحَالَفَا دواړه به قسم خوری. وَفُسِخَ الْعَقْدُ فِيمَا بَقِيَ او مابقی کې به عقد فسخ کولې شي. وَكَانَ الْقَوْلُ فِي الْمَاضِي قَوْلَ الْمُسْتَأْجِرِ او د تیرې شوې زمانې اره کې به د مستاجر قول معتبر وی. مَعَ يَمِينِهِ سره د قسم د ده نه

**تشریح>** مسئله داده. که په عقد اجاره کې د څه منافعو حاصلولو نه روسته موجر او مستاجر په اجرت کې اختلاف اوکړو. نود دواړو څخه به قسم اخستلې شي. او په مابقی کې به عقد اجاره فسخ کولې شي. اود تیره شوې زمانې په اره کې به د مستاجر قول معتبر وی.

**دلیله>** دلیل دادې. چه عقد اجاره په یوځل نه منعقد کیږي. نو داسې شوه. ګویا د منفعت هرځیز باندې جدید عقد وارد شوې دې. نو هغه منافع کومې چې پاته پاتې شوې. د هغې په اعتبار سره به د

معقودعليه حاصلولو نه وراندې اختلاف وي.اود معقودعليه حاصلولو نه وراندې باندې به تحالف جاري کيږي.او کوم منافع چې تيرې شوې.د هغې په اعتبار سره به د معقود عليه حاصلولو نه روسته اختلاف وي.اود معقود عليه حاصلولو نه روسته تحالف نه جاري کيږي.بلکه بالاتفاق د مستاجر قول قبلولې شي.نود تيرې شوو منافعو په حق کې به تحالف نه جاري کيږي.بلکه د مستاجر قول به قبلولې شي.

**د مولى او مكاتب په مينځ کښې اختلاف او د تحالف حكم**

وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمَوْلَى وَالْمُكَاتَبُ فِي مَالِ الْكِتَابَةِ اوكه مولا او مكاتب په مال كتابت كې اختلاف اوكړو. لَمْ يَتَحَالَفَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ.(١) نود ابوحنيفه رحمه الله په نيز تحالف نشته.

**تشريح** كه مولا او مكاتب د بدل كتابت په مقدار كې اختلاف اوكړو.نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دواړو باندې تحالف نه واجبيږي.بلكه د مكاتب قول به مع اليمين معتبر وي.

**دليله** د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دادې.چه بدل كتابت فى الحال دهغه ركاوټ لرې كولو په مقابله كې دې.كوم چې د تصرف وغيره په سلسله كې مكاتب ته حاصل شوې دې.اود تصرف ركاوټ لرې كيدل مكاتب لپاره بدل كتابت كې داختلاف باوجود حاصل دې.ځكه چې مولا او مكاتب د كتابت په ثبوت باندې دواړه متفق دى.او بدل كتابت كې د آزادئ مقابل هغه وخت شو.كله چې بدل كتابت ادا كړى.نو حاصل داشو.چه د ادا نه وراندې بدل كتابت د آزادئ مقابل وي.نود اداء نه وراندې مكاتب آزاديدل پكار وو.حالانكه داسې نه ده.بهرحال هركله چې هغه شئ يعنى د تصرف ممانعت لرې كيدل د بدل كتابت مقابل دى.او هغه مكاتب ته حاصل دې.نو اختلاف صرف د بدل كتابت په مقدار كې شو.ځكه چې دې وخت غلام مولا باندې د هيڅ شئ دعوه نه كوى.بلكه دې دهغه زيادت منكر دې.د كوم چې مولا مدعى دې.نو دلته كې مولا مدعى او مكاتب منكر شو.او په كوم صورت كې چې يو مدعى او بل منكر وى.په هغه صورت كې تحالف نه واجبيږى.بلكه د منكر قول معى اليمين قبلولې شي.نو دلته كې به هم تحالف نه واجبيږى.بلكه مكاتب كوم چې منكر دې.د هغه قول به مع اليمين معتبر وي.دا حكم هغه وخت دې.كله چې دواړو سره بينه نه وي.اوكه يوكس بينه پيش كړل.نود هغه بينه به قبلولې شي.اوكه دواړو بينه قائم كړل.نود مولا بينه به اولى وي.

وَقَالَا:او صاحبين رحمهما الله فرمائي.يَتَحَالَفَانِ چې دواړه به قسم خورى.وَتُفْسَخُ الْكِتَابَةُ)اوكتابت به فسخ كولې شي.

**تشريح** **مسلك الصاحبين** صاحبين رحمهما الله فرمائي.چه تحالف به واجب وي.اود تحالف نه روسته به عقد كتابت فسخ كولې شي.هم دا قول د امام شافعى رحمه الله دې.

**دليلهما** دليل دادې.چه كتابت داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوى.نودا د بيع مشابه شو.يعنى لكه ځنګه چې بيع داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوى.دغه ډول كتابت داسې عقد معاوضه ده.چه فسخ قبلوى.اود دواړو په منځ كې علت جامعه دادې.چه لكه ځنګه بائع او مشترى د ثمن په مقدار كې اختلاف كوى.او بائع د ثمن د زيادت مدعى وى.او مشترى ددې منكر وى.او مشترى د خپل بيان شوى ثمن په عوض د مبيع د استحقاق دعوه كوى.او بائع ددې منكر وى.دغه ډول مولا د زيات بدل

(١) القول الراجح هو قول الإمام كذا في ملتقى الأبحر(٣\٣٦٦) ونتائج الأفكار(٧\٢١١٩) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٧٨)

کتابت دعوه کوي.او مکاتب ددې منکر دې.او مکاتب پخپل مولا باندې ددغه مقدار په ادا کولو باندې د عتق د استحقاق دعوه کوي.د کوم چې مکاتب مدعی دې.او مولا ددې منکر دې.نو ددې علت مشترکه په وجه لکه څنګه چې د ثمن د اختلاف په صورت کې بائع او مشتری باندې تحالف واجبیږی.دغه ډول بدل کتابت کې د اختلاف په صورت کې به هم مولا او مکاتب دواړو باندې تحالف واجبیږی.

## د ښځې او میړه د کور په سامان کښې د اختلاف مسئله

وَإِذَا اخْتَلَفَ الزَّوْجَانِ فِي مَتَاعِ الْبَيْتِ اوکه ښځې او میړه د کور په سامان کې اختلاف اوکړو. فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ فَهُوَ لِلرَّجُلِ نو کوم شیان چې د سړو لائق (او مناسب) دی.هغه به د سړو لپاره وی

**تشریح** > که ښځې او میړه دکور په سامان کې اختلاف اوکړو.چه دا سامان زما ملك دې. اوبینه دواړو سره موجود نه دی.نو کوم سامان چې د سړی مناسب دې.هغه سامان به قسم اخستلو سره سړی ته ورکولې شی.لکه عمامه (پګړۍ)، توشیدې، کتابونه، قباء، کمان (لینده)،د جهاد سامان (وغیره).

**دلیله** > څکه چې داسې قسمه سامان کې ښکاره حال د سړی شاهد دې.او په دعوو کې هم دهغه کس قول معتبر وی.د چا چې ښکاره حال شاهد وی.

وَمَا يَصْلُحُ لِلنِّسَاءِ فَهُوَ لِلْمَرْأَةِ اوکوم شیان چې د ښځو لائق دی.هغه به دښځې لپاره وی.لکه پټو (څادر) (یعنی سرپیچك یا سر ترونې) لِشَهَادَةِ الظَّاهِرِ لَهَا څکه چې ښکاره حال ددې شاهد دې.

**تشریح** > کوم سامان چې د ښځو لائق وی.هغه سامان به قسم اخستلو سره ښځې ته ورکولې شی.لکه لوپټه پټو (څادر) برقعه، او زیورات (کالی) وغیره.

**دلیله** > څکه چې دې کې ښکاره حال د ښځې شاهد دې.

(وَمَا يَصْلُحُ لَهُمَا اوکوم شیان چې د دواړو لائق دی. فَهُوَ لِلرَّجُلِ )نو هغه سړی لپاره دی.

**تشریح** > او کوم سامان چې د دواړو مناسب دې.هغه به هم سړی ته ورکولې شی.

**دلیله** > څکه چې د ښځې او سړی د قبضې ټولو شیان د سړی لپاره وی.او په دعوو کې د قابض قول معتبر وی.نو سړې کوم چې د ښځې او د ښځې په مقبوضه څیزونو باندې قابض دې.په ټولو کې به د سړی قول معتبر وی.کوم سامان چې ښځو سره مختص وی.هغه به ښځې لپاره څکه وی.چه یو اړخ ته د میړه ښکاره قبضه ده.او بل اړخ ته د ښځې قبضه ده.کومه چې ددې نه زیاته مضبوطه ده.نود ښځې قبضه کومه چې زیاده مضبوطه ده.هغې ته به ترجیح حاصل وی.لکه مثلاً دوه سړو په یوه کپړه کې اختلاف اوکړو.او یو کس دا اغوستې ده.او دوهم ددې لستوڼړی نیولی دی.نو کوم کس چې اغوستې ده.د هغه قول به معتبر وی.

## په زوجینو کښې د یو د مرګ نه روسته په ژوندی او وارثانو کښې اختلاف

فَإِنْ مَاتَ أَحَدُهُمَا نوکه په ښځې او میړه کې یوکس مړ شو. وَاخْتَلَفَ وَرَثَتُهُ مَعَ الْآخَرِ او ددې مړی وارثانو د نورو سره اختلاف اوکړو. فَمَا يَصْلُحُ لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ نو کوم څیزونه چې د سړو لائق دی.اود ښځو لائق دی. فَهُوَ لِلْبَاقِي مِنْهُمَا )هغه واړه به دوی کې ژوندی لپاره وی.

**تشریح** > که په زوجین (ښځه او خاوند) کې یوکس مړشو.او بیا د مړی وارثانو او ژوندی د سامان په اړه کې اختلاف اوکړو.نود کور واړه سامان به هغه کس لپاره وی.کوم چې ژوندې وی.که هغه سامان د

سرو مناسب وي.اوكه د ښځو مناسب وي.دا د امام ابوحنيفه مسلك دی.()
**دليله** خکه چې قبضه د ژوندي سري معتبر وي.د مړي معتبر نه وي.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُويُوسُفَ:او ابويوسف رحمه الله فرمائي.يَدْفَعُ إِلَى الْمَرْأَةِ مَا يُجَهَّزُ بِهِ مِثْلُهَا، چې هغه سامان به ښځې ته ورکولې شي.کوم چې دې د جهيز په طور(دخپل پلار د کوره د واده سامان) راوړلې دې.وَالْبَاقِي لِلزَّوْجِ او باقي (سامان) به د ميړه لپاره وي. |

**تشريح** **مسلك ابي يوسف** حضرت امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه ښځې کوم سامان د جهيز په طور(د پلار د کوره) راوړلې دې.هغه سامان به ښځې ته ورکولې شي.او باقي سامان به ميړه نه قسم اخستلې شي.او ميړه ته به ورکولې شي.
**دليله** خکه دا خبره ښکاره ده.چه ښځې جهيز راوړي.اودا ظاهر(ښکاره حال) د ميړه د ښکاره قبضې په نسبت زيات قوي دې.نو ددې ظاهر په ذريعه به د ميړه ظاهري قبضه باطليږي.بيا کوم سامان چې باقي پاتې شو.هغې کې چونکه د ميړه د ښکاره قبضې هيڅ معارض نشته.نو دده ښکاره قبضه به معتبر وي.
**مسلك محمد** حضرت امام محمد رحمه الله فرمائي.چه کوم شيان د سړو مناسب دی.هغه به واړه د ميړه وي.او کوم شيان چې د ښځو سره مناسب وي.هغه به دښځې وي.او کوم شيان چې د دواړو مناسب دی.هغه به د ميړه وي.که ميړه ژوندې وي.او که ميړه مړ وي.نو دده د وراثانو به وي.
**دليله** دليل هغه دې.کوم چې مونږ د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل بيان کړې دې.يعني ښځه اود ښځې مقبوضه واړه شيان د ميړه په قبضه کې وي.او قول د قابض معتبر وي.په دې وجه دې خيزونو کې د ميړه يعني د قابض قول معتبر وي.اود امام محمد رحمه الله په نيز هم طلاق اومرګ دواړه په حکم کې يوشان دی.خکه چې وارث د خپل مورث قائم مقام دې.

**د وينځې نيږ مياشتې نه کمه موده کښې پيدا شوې بچې باندې د بائع دعوى**

| |
|---|
| (وَإِذَا بَاعَ الرجل جَارِيَةً يوکس يوه وينځه خرڅه کړله.فَجَاءَتْ بِوَلَدٍ هغې بچې پيدا شو.فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ) او بائع د هغې دعوه اوکړله.فَإِنْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ مِنْ يَوْمِ بَاعَهَا نو که هغې د شپږ مياشتو نه په کم کې بچې راوړلې وي.د کومې ورځې نه نې چې دا خرڅ کړې وو.فَهُوَ ابْنُ الْبَائِعِ نو بچې به د بائع خوې وي. وَأُمُّهُ أُمُّ وَلَدٍ لَهُ()اود بچي مور به دده ام ولده وي.وَيُفْسَخُ الْبَيْعُ نو بيع به ختمولې شي. |

**تشريح** نفس مسئله آسانه ده
**دليله** خکه چې د ام ولد بيع جائز نه ده.

| |
|---|
| . |

(وَيَرُدُّ الثَّمَنَ)اوس دې ثمن واپس کړي.
**دليله** خکه چې ده په ناحقه وصول کړې دې.

---

[1]) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (١\١٨٣) وشرح المجلة (٥\٥٠٠) المادة (١٧٧١)نقلاً عن القول الراجح (٢\١٨٠)
[2]) القول الراجح هو قول الجمهور رحمهم الله كذا في تنوير الأبصار(٤\٤٩٤) ومنحة الخالق (٧\٢٤٩) وملتقى الأبحر (٣\٢٨٨) والهندية (٤\١١٥) ونتاج الأفكار(٧\٢٧٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٩١، ١٩٢)

**تشریح>** یو سړی یوه وینځه خرڅه کړله.هغې د بیع د وخت نه شپږ میاشتو نه کم کې بچې راوړلو.او بائع د بچي, دعوه اوکړله.نودا بچې به استحساناً د بائع خوې وی.او وینځه به د هغه ام ولد وی.

**وجه الاستحسان>** وجه د استحسان داده.چه د حمل قرار موندل،یو پټ امر دې.په دې وجه به د تناقض لحاظ نشی ساتلې.اود بائع په ملکیت کې دحمل ودریدل ددې خبرې دلیل دې.چه بچې د بائع دې.خکه چې ولادت د شپږ میاشتونه کم کې دې.او هرکله چې په مذکور طریقه د بائع دعوه صحیح وی. نودا به اصل علوق اړخ ته مستند وی.معلومه شوه.چه ده د ام ولد بیع کړې ده.نو بیع به ختمولې شی.خکه چې د ام ولد بیع جائز نه ده.او ثمن واپس کول به ضروری وی.خکه چې دا ده ناحق وصول کړې دي.

**مسلک زفر>** د امام زفر او آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز د بائع دعوه باطل ده.د قیاس تقاضا هم داده.

**دلیله>** خکه چې د بائع وینځه خرڅول، ددې خبرې اقرار دې.چه هغه دده ام ولد نه بلکه وینځه ده.نود تیرشوی اقرار اود لاحق دعوه په منځ کې تناقض دې.نو دعوه به نشی اوریدلې.

(وَإِنْ ادَّعَاهُ الْمُشْتَرِي او که ددې دعوه مشتری اوکړله. مَعَ دَعْوَةِ الْبَائِعِ د بائع دعوه سره أَوْبَعْدَهَا یا ددې نه پس، فَدَعْوَةُ الْبَائِعِ أَوْلَى)نود بائع دعوه به اولی وی.

**تشریح>** پوهیدل پکار دی.چه د خرڅې شوې وینځې نه کله بچې پیدا شی.نو ددې درې صورتونه دی.یا به د بیع د وخت نه شپږ میاشتو کې دننه پیدا وی.یا به دوه کالو نه په زیات کې پیدا وی.او یا به ددې دواړو مودو په منځ کې پیدا وی.په دې کې د هر یو بیا څلور صورتونه دی.یا به د بچي مدعی صرف بائع وی.یا به صرف مشتری وی.یا به دواړه یوځائې وی.یا به د یو بل نه روسته وی.نود ړومبی صورت بیان پورته ذکر کړې شو.

او که مشتری ددې بچي د نسب دعوه اوکړله.نو دده د دعوه به هیڅ اعتبار نه کیږی.که د بائع دعوه سره یوځائې ئې کړې وی.او که د هغه نه روسته ئې کړې وی.

**دلیله>** که د بائع دعوه د مشتری د دعوه نه وړاندې وی.بیا خو د هغه د دعوه وړاندې کیدل ښکاره دی.اوکه دا دعوه د مشتری نه روسته وی.نو دده لپاره دا د حمل وخت اړخ ته مستند دې.خکه چې دا دعوه د استیلاد ده.چه دې کې فی الحال د قوت په وجه د ملکیت د قیام هم اړتیا نه وی.په خلاف د مشتری د دعوې،چه دا دعوه د تحریر ده.

**ماشوم مړ کیدو باندې د بائع د ام ولد جوړیدو دعوی**

(وَإِنْ مَاتَ الْوَلَدُ که بچې مړ شو. فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ بیا بائع دعوه اوکړله. وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍ او وینځې دا (بچې) د شپږ میاشتو نه په کمه موده کې راوړلو. لَمْ يَثْبُتْ النَّسَبُ فِي الْوَلَدِ وَلَا الِاسْتِيلَادُ فِي الْأُمِّ)نو په وینځه کې به ام ولد نه ثابتیږی.

**تشریح>** که د بچي انتقال اوشو.(حالانکه دا د بیع د وخت نه شپږ میاشتې کم باندې پیدا شوې وو) بیا بائع دده د نسب دعوه اوکړله.نو نه به استیلاد په ولد کښې ثابتیږی اونه په مور کښې.

**دلیله>** خکه چې بچي ته د نسب اړتیا نشته.اود مور ام ولد کیدل خکه نه ثابتیږی چې مور د ولد تابع ده.او بچې اصل دې.هرکله چې اصل کې نسب ثابت نشو.نو تابع کې به استیلاد هم نه ثابتیږی.،،لانه فرع النسب،،.

(وَإِنْ مَاتَتْ الْأُمُّ او که مور مړه شوه. فَادَّعَاهُ الْبَائِعُ بیا بائع دعوه اوکړله. وَقَدْ جَاءَتْ بِهِ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ

(ثُمَّ)او وینځې دا بچې د شپږ میاشتو نه په کمه موده کې راوړلو.يَثْبُتُ النَّسَبُ منه فِي الْوَلَدِ نو نسب به بچي کې ثابتیږي.وَأَخَذَهُ الْبَائِعُ)او بائع به دا اخلي.

**تشریح** که بائع د وینځې فوت کیدلو نه روسته د بچي متعلق دعوه اوکړي.که د بچي د مور یعنی وینځې انتقال اوشو.او ددې نه روسته بائع د بچي دعوه اوکړله.او بچې شپږ میاشتونه کم کې پیدا شوي وي.بیا به نسب ثابتیږي.

**دلیله** خکه چې آزادئ کې اصل بچې دې.مور نه ده.هم دا وجه ده.چه بچې مور اړخ ته منسوب کیږي.،،یقال ام ولد،، او وینځې ته هم آزادی په بچي سره حاصلیږي. نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی{أَعْتَقَهَا وَلَدُهَا}(¹) او هرکله چې بچې اصل شو.نو تابع یعنی د مور فوت کیدل به هیڅ مضر نه وي.

### د مشتري په قبضه کښې د وینځې د بچي په مرګ د ثمن مسئله

(وَيَرُدُّ الثَّمَنَ كُلَّهُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ(²)اوواپس کوی به پوره ثمن د امام ابوحنیفه رحمه الله په قول کې وَقَالَا:امام ابویوسف او امام محمد رحمهماالله فرمائی.يَرُدُّ حِصَّةَ الْوَلَدِ چې د بچي برخه به واپس کوی.وَلَا يَرُدُّ حِصَّةَ الْأُمِّ)اود مور برخه به نه واپس کوی.

**تشریح** هرکله چې د مور د وفات نه روسته د بچي نسب ثابت شو.نو بائع به دا اخلي.اوس د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز بائع باندې پوره ثمن واپس کول واجب دی.

**مسلک الصاحبین** صاحبین رحمهماالله فرمائی.چه صرف د بچي د برخې (حصې) ثمن به واپس کوی.وجه داده.چه د بائع نه د بچي نسب ثابتیدلو سره دا خبره واضح شوه.چه ده خپله ام ولد خرڅه کړې وه.اود ام ولد بیع ناجائز ده.

**بناءالاختلاف** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د ام ولد متقوم نه دې.نه په عقد بیع کې او نه په غصب کې .نو مشتری به ددې ضامن وي.یعنی هغه به د خپل کُل ثمن واپس اخستلو مستحق وی.د صاحبینو رحمهماالله په نیز ددې مالیت متقوم دې.نو مشتری به ددې ضامن وی.دا داسې اوګنړه.چه مثلاً مشتری مذکوره ام ولد د لس دینارو په عوض واخستله.اودا چې وینځه فرض کړې شی.نو ددې د قیمت اندازه پنځلس دیناره، او بچې چې غلام فرض کړې شی.نو دده قیمت لس دینار دې.نو مذکوره لس دیناره ثمن د وینځې او ددې د بچي په مقابله کې واقع شو.اود وینځې قیمت پنځلس دیناره اود بچي لس دیناره اندازه اوکړې شوه.نو لس دیناره ثمن ددې دواړو په مقابله کې داسې ویش شو.چه شپږ دیناره د وینځې په بدله کې ، او څلور دیناره د بچي په بدله کې شو.بیا چې مشتری بچې بائع ته واپس کړو.نو بائع به ددې بچي څلور دیناره واپس کوی.چه بدل او مبدل دواړه جمع نشي.او ام ولد چونکه مشتری سره مړه شوه.نو ددې شپږ دیناره بائع نه ساقط شو.اود امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز د وینځې په مړکیدلو سره په منزله د آزاد هیڅ نه ساقطیږي.

---

¹) تقدم تخريج في باب الإستيلاد)

²) القول الراجح هو قول الإمام الأعظم رحمه الله كذا في تنوير الأبصار(٤\٤٩٤) وخلاصة الفتاوى (٤\١٠٥) والهندية (٤\١١٥) والزيلعي(٤\٣٣٠) نقلاً عن القول الراجح (٢\١٩٢)

**په غبرګوني بچو کښې په يو د نسب دعوې سره د دوهم حکم**

وَمَنْ ادَّعٰى نَسَبَ اَحَدِ التَّوْاَمَيْنِ چاچه په دوه غبرګوني بچو کې د يو د نسب دعوه اوکړله. يَثْبُتُ نَسَبُهُمَا مِنْهُ) نو په دې سره به د دواړو نسب ثابتيږي.

**تشريح** د غبرګوني بچو په اړه کښې فرمائي.چه د يوسړي سره دده د وينځې نه جوړه (غبرګوني) يعنى دوه بچي د يوې خيټې (د يوحمل) نه پيدا شو.او هغه په دوی کې د يو د نسب دعوه اوکړله.نود دواړو نسب به ثابتيږي.

**دليله** ځکه چې دوی دواړه بچی د يوې نطفې نه پيدا شوی دی.نو هرکله چې د يو نسب ثابت شو.نود دوهم نسب ثابتيدل ضروري دی.

# كِتَابُ الشَّهَادَات

**ترجمه** (دا) کتاب د شهادتونو (په بيان کښې) دې.

**تشريح** د کتاب الدعوى او کتاب الشهادة کښې مناسبت دا دې چې په دعوى کښې اکثر د شهادت ضرورت وی.نوځکه چې په دعوى پسې د شهادت ذکر اوکړو.اوچونکه اول دعوى وی بيا د دعوې د ثابتولو دپاره د شهادت ضرورت راځی نو ځکه ئې کتاب الدعوى په کتاب الشهادات بآندې مقدم کړو.

**معني الشهادة لغة وشرعاً** د شهادت لغوی معنی ده.د مشاهدې نه پس د څه څيز خبر ورکول.اود فقهاؤ په اصطلاح کښې د چا حق ثابتولو دپاره د قاضي په مجلس کښې په لفظ د شهادت سره د رشتيا خبرې د خبر ورکولو ده.

**سبب تحملها** اود شهادت د تحمل سبب ددغه څيز مشاهده کول دی.د کوم څيز په باره کښې چه ګواهی ورکولې شي.يعنى کوم څيزونه چه په سترګو سره کتلې کيږي.په هغې کښې کتل ضروري دی.او کوم څيزونه چه په غوږونو سره اوريدلې شي. په هغې کښې اوريدل ضروري دی.

**سبب أداءها** اود شهادت اداکولو سبب دادې.چه يا خو دده مدعی ګواهی طلب کړی.او يا د مدعی د حق فوت کيدلو يره وی.خودا به هغه وخت وی.کله چه مدعی ته دده شاهد کيدل معلوم نه وی.اود شهادت شرط دادې.چه شاهد کامل العقل وی.د شهادت ياد ساتلو صلاحيت وی.ولايت حاصل وی.اود مدعی او مدعى عليه په منځ کښې فرق کولو باندې قدرت حاصل وی.اوکه مدعی عليه مسلمان وی.نود شاهد مسلمان کيدل هم شرط دی.

**وركنها** د شهادت رکن لفظ ،،اشهد،، دې.او ددې حکم د شاهدينو په نيز د تزکيه نه پس قاضی باندې د شهادت د مقتضى مطابق فيصله و اجيبدل دی.

اَلشَّهَادَةُ فَرْضٌ تَلْزَمُ الشُّهُودَ ګواهی داسې فرض دې.چه په ګواهانو باندې لازم ده. وَلَا يَسَعُهُمْ كِتْمَانُهَا اِذَا طَالَبَهُمُ الْمُدَّعِيْ اوکله چې مدعی ددوی نه مطالبه اوکړی.نود ګواهانو لپاره ددې د پټولو ګنجائش نشته.

**حل اللغة** ① **تلزم**-لازميږی-② **يسع**-اجازت-③ **كتمان**-پټول-④ **طالب**-چه طلب اوکړی

**تشريح** دشهادت ادا کولو دوه صورتونه دی په صورت کې فرض عين او په بل صورت کې فرض کفايه دې.که ګواهی ورکونکی که يو، دوه متعين سړی وی.نو ګواهی ورکول به فرض عين وی.اوکه ډير خلق

وي.نو فرض كفايه به وي.

**دلائله** > د شهادت په فرضيت باندې دا آياتونه دليل دی. ① ﴿وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَآءُ اِذَا مَا دُعُوْا﴾ بقره) يعني كله چې گواهان راو غوښتلې شي.نو دوی دې انكار نه كوی.په آيت كې چونكه د مطالبې په وخت د انكار كولو نه منع فرمائيلې شوې ده.خكه به د مطالبې په وخت د حاضريدلو امروی.او امرپه وجوب باندې دلالت كوی.نو شهادت وركول به واجب او لازم وی

② ﴿وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ﴾ يعني تاسو گواهي مه پټوئ.په دې آيت كې د كتمان شهادت نه منع فرمائيلې شوې ده.اود كتمان شهادت نه منع كول مستلزم دی.د شهادت اظهار ته.اود شهادت اظهار نوم دې د شهادت اداكولو.نو هركله چې كتمان شهادت ممنوع دې. نو اظهار شهادت يعني شهادت اداكول به واجب وی.

③ ﴿وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗٓ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ﴾ يعني كوم كس چې گواهي پټوی.د هغه زړه گناهگار دې.په دې آيت كې په كتمان شهادت باندې وعيد دې.اود وعيد استحقاق چونكه د واجب په پرينښولو سره كيږی.خكه به شهادت ادا كولو واجب وی.پاتې شوه داخبره چې په آيت كې خاص طور باندې قلب (زړه) ته گناهگار ولې ونيلی شوی دی؟ نو ددې خواب دادې.چه قلب رئيس الاعضاء دې.نو كله چې رئيس الاعضاء گناهگار وی.نو نور اندامونه به په درجه اولی گناهگار وی.

**وجه اشتراط مطالبة المدعي** > د مدعی طلب كول خكه شرط دی.چه شهادت د مدعی حق دې.نود نورو حقونو پشان شهادت هم دده په طلب كولو باندې موقوف دی.يعني لكه څنگه چې نور حقوق د مدعی په طلب كولو باندې موقوف دی.دغه ډول شهادت هم دده په طلب كولو باندې موقوف دی.

**د گواهئ شرعي حيثيت**

| |
|---|
| وَالشَّهَادَةُ فِي الْحُدُوْدِ يُخَيَّرُ فِيْهَا الشَّاهِدُ بَيْنَ السَّتْرِ وَالْاِظْهَارِ او په شهادت فی الحدود كې د گواهئ پټولو او ښكاره كولو په منځ كې اختيار دې. |

**حل اللغة** > ①**يخير**-اختيار وركولې شی-②**الستر**-پټيدل-③**الاظهار**-ښكاره كول-

**تشريح** > كه يوكس په حدود كې گواه وی.نوهغه ته اختيار دې.كه غواړی.گواهي دې وركړی.اود مبتلی به عيب دې ښكاره كړی.اوكه زړه ئې غواړی.گواهي دې نه وركوی.د هغه د عيب پرده پوشی دې اوكړی.

**دليله** > خكه چې گواه په دواړه صورتونوكې د اجر او ثواب مستحق دې.په دې طريقه كه ده گواهي وركړله.نود حد الهي قائمولو په وجه به مستحق د ثواب وی.اوكه گواهي ئې ورنكړله.نود يو مسلمان د پردې اخستلو نه د بچ كيدلو په وجه به د ثواب مستحق وی.بهرحال په دواړه صورتونوكې مستحق د ثواب دې.

| |
|---|
| وَالسَّتْرُ اَفْضَلُ خو پټول افضل دی. |

**تشريح** > خود حدود په بدله كې گواهانو ته اگرچه د ستر او اظهار(پټولو او ښكاره كولو) دواړو اختيار دې.خو ستر يعني گواهي نه وركول افضل دی.

**دلائله** > ① دليل دادې.چه هزال نومې سړی چې كله حضرت ماعز اسلمي ﷺ د زنا په اقرار باندې راوچت كړو.اوماعز د زنا اقرار اوكړو.او بيا دوی ته د رجم حكم اوكړې شو.نود الله تعالی رسول ﷺ هزال ته اوفرمائيل. (لو سترته بثوبك وفي رواية بردائك لكان خيرا لك) يعني كه تا ماعز پخپله كپړه يا خپل پټو

(څادر) سره پټ کړي وو.یعنی هغه دې د زنا په اقرار باندې نـه تیـارولو.(یعنی نـه راضـی کولو) نو ستا لپاره به غوره وه.ددې حدیث نه معلومیږی.چه د حدود په سلسله کې ګواهی نه ورکول افضل دی

② د نبی کریم ﷺ ارشاد دې(من ستر علی مسلم ستر الله علیه في الدنیا والآخرة) یعنی کـه یوکس د یو مسلمان پرده اوساتی.نو الله تعالی به په دنیا او آخرت کې دده پرده اوساتی.ځکه چې الله تعالی پخپله هم ستار دې.او ستر خوښوی.

③ د ستر په افضلیت باندې دا دلیل هم دې.چه د رسول الله ﷺ او ددوی د صحابوﷺ نه د حدودو دفع کولو په سلسله کې تلقین منقول دې.یعنی دوی او ددوی صحابوﷺ به حتی الامکان کوشش کولو.چه په کومه طریقه حد لرې شی.لکه د رسول الله ﷺ نه منقول دی.چه کله حضرت ماعز ﷺ د زنا اقرار اوکړو.نو نبی کریم ﷺ اوفرمائیل.تا به ښکل کړې وی.تا به کتلې وی.یعنی تا به مچی کول یا کتل د زنا خیال کړې وی.خو ددې تلقین باوجود چې کله ماعز ﷺ د زنا اقرار کولو.نو هله رسول الله ﷺ د رجم حکم اوفرمائیلو.

| |
|---|
| إِلَّا أَنَّهُ يَجِبُ أَنْ يَشْهَدَ بِالْمَالِ فِي السَّرِقَةِ خودا چې په غلا کې د ګواه لپاره دمال ګواهی ورکول واجب دی. فَيَقُولُ: أَخَذَ الْمَالَ نووائی به مال ئې اخستې دې وَلَا يَقُولُ سَرَقَ او دا بـه نـه وائـی چې غـلا ئې کړې ده |

**تشریح** په حدودو کې ګواهی پټول افضل دی.خو په حد سرقه کې ګواهی کول اګرچه غوره دی.خود مال ګواهی ورکول واجب دی.

**دلیله** ځکه چې په ګواهۍ ورکولو سره به د مسروق منه (د کوم کس مال چې پټ شوې وی) حق ژوندی ژوندې شی

## په حدود کښې د ګواهانو لپاره د ګواهۍ د پټولو حکم

| |
|---|
| وَالشَّهَادَةُ عَلَى مَرَاتِبَ:د شهادت یو څو مرتبې دی. مِنْهَا الشَّهَادَةُ فِي الزِّنَا يُعْتَبَرُ فِيهَا أَرْبَعَةٌ مِنَ الرِّجَالِ په هغې کې یو د زنا شهادت دې.په زناکې د څلور سړو شهادت معتبر دې. |

**حل اللغة** ①مراتب-درجې-②یعتبر-معتبرولې شی معتبر دی-③اربعة-څلور-④الرجال-جمع د رجل ،سړې

**تشریح** امام قدوری ﷫ فرمائی.چه د شهادت یوڅو مرتبې دی. ① شهادت فی الزنا په دې کې د څلورو سړو ګواهی معتبر ده.

**دلیله** ځکه د الله تعالی ارشاد دې. (وَاللَّاتِي يَأْتِينَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِسَائِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوا عَلَيْهِنَّ أَرْبَعَةً مِنْكُمْ) یعنی هغه ښځې چې بدکاری اوکړی.په هغوی باندې د خپلو نه څلور سړی ګواهان راوله.په دې آیت کې لفظ د (أَرْبَعَةً) د څلور په عدد اود ګواهانو په مذکر کیدلو کې نص دې.د څلور په عدد باندې نص کیدل خو ښکاره دی.اود ګواهانو په مذکر کیدلوکې ځکه نص دې.چه لفظ د (أَرْبَعَةً) مونث دې.اود عربی قاعدې په اعتبار سره د دریو نه نهو پورې یعنی د ثلاثه نه تسعة پورې عدد که مذکر وی.نو معدود مونث راځی.او که عدد مونث وی.نو معدود مذکر وی.دلته په آیت کې چونکه لفظ د (أَرْبَعَةً) مونث دې.ځکه به ددې معدود مذکر وی. نو ثابته شوه.چه د زنا ثابتولو لپاره د څلور سړو ګواه کیدل ضروری دی.

| |
|---|
| وَلَا تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ النِّسَاءِ او په زناکې د ښځو ګواهی قبول نه ده. |

**تشریح** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي. په زنا کې به د ښځو ګواهي نه قبلیږي.

**دلائل** ① دلیل د زهري حدیث دې. یعني رسول الله ﷺ او ددوی نه روسته صدیق اکبر او فاروق اعظم رضي الله عنهما د زمانې نه دا سنت جاري دې. چه په حدودو او قصاص کې د ښځو ګواهي معتبر نه ده. (۱)

② په زنا کې د ښځو د ګواهۍ په نه معتبر کیدلو باندې عقلي دلیل دادې. چه د ښځو په ګواهۍ کې د بدلیت شبه ده. اود بدلیت شبه ځکه ده. چې د ښځو ګواهي د سړو د ګواهۍ قائم مقام وي. لکه چې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ﴾ او ګواه کړئ دوه شاهدان د خپلو سړو نه بیا که نه وي. دوه سړي نو یو سړې او دوه ښځې ،، اوګورئ. الله تعالی اوفرمائیل. که دوه سړي نه وي. نو یو سړې او دوه ښځې به ګواهي ورکوي. معلومه شوه. چې ښځې په ګواهي ور کولو کې اصل نه دي. بلکه د سړو په غیرموجودګۍ کې ددوی قائم مقام کیدای شي.

## د شهادت مراتب او په زناکښې د ګواهانو تعداد

| |
|---|
| وَمِنْهَا الشَّهَادَةُ بِبَقِيَّةِ الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او ددې نه په باقي حدودو او قصاص کښې شهادت دې. تُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ چه په دې کښې د دوه سړو ګواهي قبلیږي. |

**تشریح** د شهادت دویمه مرتبه حد زنا نه علاوه نور حدود مثلاً حد قذف، حدشرب خمر، او حدسرقه او قصاص کښې شهادت دې. چه د حد زنا نه علاوه په نورو حدودو او قصاص کښې د دوه سړو شهادت معتبر دې.

**دلیله** دلیل د الله تعالی قول. ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ﴾ دې. په آیت کښې د ﴿شَهِيدَيْنِ﴾ تثنیه صیغه د ګواهانو په دوه کیدلو باندې او ﴿مِن رِّجَالِكُمْ﴾ لفظ د ګواهانو په مذکر (یعني سړي) کیدلو باندې دلالت کوي. علامه مرغیناني رحمه الله فرمائي. چه د حد زنا نه علاوه په حدودو او قصاص کښې هم د ښځو ګواهي غیر معتبر ده. دلیل د زهري حدیث اود بدلیت شبه ده. چه ددې تقریر د تیره شوې تشریح لاندې تیر شوې دې.

## په باقي حقوقو کښې د ګواهانو تعداد

| |
|---|
| وَمَا سِوَى ذَٰلِكَ مِنَ الْحُقُوقِ يُقْبَلُ فِيهَا شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ اود حدودو او قصاص نه علاوه په نورو حقوقو کښې د دوه سړو ګواهي یاد یو سړي اود دوه ښځو ګواهي مقبول ده. سَوَاءٌ كَانَ الْحَقُّ مَالًا أَوْ غَيْرَ مَالٍ برابره (خبره) ده. که دغه حق مال وي. مِثْلُ النِّكَاحِ وَالطَّلَاقِ وَالْوَكَالَةِ وَالْوَصِيَّةِ او که غیرمال وي. لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصیت، |

**تشریح** د شهادت دریمه مرتبه داده. چه د حدودو او قصاص نه علاوه په نورو حقوقو کښې د دوه سړو ګواهي یاد یو سړي اود دوه ښځو ګواهي معتبر ده. هغه حق که د مال د قبیلې ځنې وي. لکه بیع، اوکه د غیرمال قبیلې ځنې وي. لکه نکاح، طلاق، وکالت، وصیت، عتاق، رجعت، او نسب. (۲)

---

(۱) من روایة الزهري أخرجه ابن ابي شیبة في مصنفه كذا في نصب الرایة (۴\۱۶۴)۔

(۲) **مسلک الشافعي:** - حضرت امام شافعي رحمه الله فرمائي. چه د ښځو شهادت سړو سره په هیڅ معامله کښې معتبر نه دې. سوائې د اموال او ددې د توابع نه (چه په دې کښې قبلیږي) یعني مال او ددې توابع

**دلیله>** دلیل دادې.چه د ښځو په ګواهئ کښې اصل دادی.چه قبول شی.ځکه چه په کومو ځیزونو باندې د شهادت د اهلیت مدار دې.(یعنی مشاهده، ضبط، او اداء) هغه ځیزونه په ښځو کښې موجود دی.او په دې ځیزونو باندې د شهادت د اهلیت مدار ځکه دې.چه د مشاهدې په ذریعه به ګواه ته د هغه ځیز علم وی.د کوم ځیز په باره کښې چه ګواهي ورکوی.او ضبط یعنی په ښه غور سره اوریدلو، پوهیدلو،او محفوظ کولو په وجه به د شهادت اداکولو پورې علم باقی پاتې وی.اود شهادت اداکولو په وجه به قاضی ته علم کیږی.نو هرکله چه په ښځوکښې هغه ځیزونه موجود دی.په کومو چه د شهادت د اهلیت مدار دې.نود ښځو شهادت به قبلولې شی.ځکه چه د ښځو په ګواهئ کښې اصل دادی.چه قبول شی.په دې وجه احادیثوکښې د ښځې خبر ورکول یعنی روایت کول معتبر دی.او محدثین د ښځو روایت کړې شوی احادیث قبلوی هم.نوهرکله چه په احادیثوکښې د ښځې خبر ورکول معتبر دی.نو ددوی شهادت به هم معتبر وی.

### د ښځې د ګواهئ معتبر کیدلو مواقع

| |
|---|
| وَتُقْبَلُ فِي الْوِلَادَةِ وَالْبَكَارَةِ وَالْعُيُوبِ بِالنِّسَاءِ فِي مَوْضِعٍ لَا يَطَّلِعُ عَلَيْهِ الرِّجَالُ شَهَادَةُ امْرَأَةٍ وَاحِدَةٍ فرمائی.او په ولادت، بکارت، اود ښځو د داسې ځایونو په عیبونو کښې چه په هغې باندې سړې نشی خبریدلې.د یوې ښځې ګواهی به قبلولې شی. |

**حل اللغة> الولادة**: پیدائش، **البكارة**: هغه پیغله چه وطی شوې نه وی **الرجال**:جمع د رجل،سړې

**تشریح>** د شهادت څلورمه مرتبه داده.چه په ولادت، بکارت، اود ښځو په بدن باندې داسې مخفی (او پټ) عیبونه چه په هغې باندې صرف ښځې خبریدلې شی.او سړی نشی خبریدلې.په هغې کښې د یوې ښځې شهادت کافی دې.(١)

**دلائله>** ① دلیل دا حدیث دې.(قال رسول الله ﷺ شهادة النساء جائزة فيما لايستطيع الرجل النظر إليه) (٢)یعنی د ښځو شهادت په هغه ځیزونو کښې جائز دې.کوم ځیزونه چه سړی نشی کتلې.

② عقلی دلیل دادې.چه په ولادت وغیره ځیزونوکښې د ګواه مذکر او سړی کیدلو قید ځکه ساقط شوې دې.چه ښځې طرف ته کتل کم ازکم وی.ځکه چه ښځې طرف ته کتل حرام دی.اود ښځې ښځې طرف ته کتل د سړی د کتلو په نسبت خفیف دی.یعنی د سړی ښځې طرف ته کتل چه څومره غلیظ او بد دی.د ښځې ښځې طرف ته کتل دومره غلیظ او بد نه دی.اودا خبره ځکه ده.چه ښځې طرف ته په کتلو سره کتونکې ښځه کښې شهوت کم راوڅیږی.څوکه کتونکې سړې وی.نو په هغه کښې شهوت زیات راوڅیږی. ځکه د سړی ښځې طرف ته د کتلوپه مقابله کښې د ښځې ښځې طرف ته کتل اخف دی.نو هرکله چه ښځې طرفته کتل خفیف اومعمولی کیدلوپاره په ګواهانو کښې د مذکرکیدلوشرط ساقط کړې شو.نو هم ددې مقصد په لحاظ د عدد شرط هم ساقط کړې شوې دې.ځکه چه ښځې طرف ته د یوې ښځې په کتلوکښې تخفیف دې.په نسبت د دوه یا څلورو ښځو د کتلو.یعنی ښځې طرف ته د

---

ځیزونه یعنی اعاره، اجاره، کفاله، میعاد،او شرط خیار وغیره کښې د ښځو ګواهی د سړو سره معتبر ده. امام مالك رحمه الله هم ددې قائل دې.اویو روایت د امام محمد رحمه الله هم دادې.

١) **مسلك الشافعي**:- د حضرت امام شافعی رحمه الله په نیز د څلورو ښځو شهادت ضروری دې.

(٢)غربه الزيلعي ثم قال روى عبدالرزاق في مصنفه ... عن الزهري قال مضت السنة على ان تجوز شهادة النساء فيما لا يطالع عليه غيرهن من ولادة النساء وعيوبهن (نصب:٤\١٦٥)-

وَلَايُضَيِّفُ أَحَدَ الْخَصْمَيْنِ دُونَ خَصْمِهِ او قاضی به په مدعی او مدعی علیه کې دیوکس دعوت د بل کس نه بغیر نه کوی.

**حل اللغة** ① **یضیف**-میلمه کوی-② **خصم**-جګړه کونکې-

**تشریح** قاضی به داسې هم نه کوی.چه په مدعی او مدعی علیه کې د یو دعوت اوکړی.اود بل دعوت اونکړی.

**دلائله** ① څکه د حضرت علی رضی الله عنه حدیث دې. (أنه قال نهانا رسول الله ﷺ أن نضيف الخصم إلا أن يكون خصمه معه) (١) حضرت علی رضی الله عنه فرمانی.چه رسول الله ﷺ مونږ منع کړی یو.چه مونږ د خصم ملمستیا اوکړو.مګردا چې دده سره دده خصم هم وی.(نو خیردې) یعنی په مدعی اومدعی علیه کې د یو کس د دعوت نه منع شوې ده.څوکه ددې دواړو دعوت اوکړی.نو هیڅ باك نشته.

② دوهم دلیل دادې.چه په داسې کولوکې به قاضی متهم کیږی.یعنی خلق به دا خیال کوی.چه قاضی ددې سړی (مدعی یا مدعی علیه) اړخ ته مائل دې.

## قاضی لپاره ګواهانو ته د تلقین کولو حکم

فَإِذَا حَضَرَا اوکله چې (مدعی او مدعی علیه) دواړه حاضر شی. سَوَّى بَيْنَهُمَا فِي الْجُلُوسِ وَالْإِقْبَالِ نو قاضی به د دواړو په منځ کې کینی.او په توجه کولو کې به برابری کوی.

**حل اللغة** **سوی**-برابروی-**الجلوس**-ناسته-**الإقبال**-خیال ساتل

**تشریح** چه کله مدعی اومدعی علیه دواړه حاضر وی.نو په ناسته او توجه کولوکې دې د دواړو په منځ کې کینی.یعنی په ناسته کې دې یو ته په بل باندې فضیلت ورنکړی.بلکه دواړو لپاره دې برابری وی.ترڅو که یوکس په مسند(ګدئ) باندې کینول مناسب وی.نو دوهم دې هم دغه ډول کینوی.او یو بنی او بل چپه (چپ) اړخ ته دې هم نه کینوی.څکه چې ښی اړخ والا ته په چپه اړخ والا باندې یو ډول فضیلت حاصل دې.په دې وجه به په دې صورت کې برابری حاصل نشی.او قاضی به دواړه یو اړخ ته هم نه کینوی.څکه چې په دې صورت کې به یو قاضی ته زیات نژدې وی.او یو به کم نژدې وی.نو په دې صورت کې به هم برابری قائم پاتې نشی.مناسب داده.چه مدعی او مدعی علیه دواړه قاضی ته مخکې په مخکه کینی.دغه ډول دواړو اړخ ته په کتلو او توجه کولو کې دې هم برابری اوکړی.یعنی قاضی دې دواړو اړخ ته برابر متوجه وی.او دواړو ته دې پوشان ګوری.

**دلیله** دلیل د حضرت ام سلمه رضی الله عنها حدیث دې.ام سلمه رضی الله عنها فرمانی.رسول الله ﷺ اوفرمائیل. چه کوم کس په مسلمانانوکې د قضاء په منصب سره اخته کړې شو.دې دې د فریقینو په منځ کې کیناستلو، اشاره کولو.او په کتلوکې برابری اوکړی.او په احدالخصمین دې د دوهم نه زیات آواز اوچت نکړی. (١)

وَلَا يُسَارُّ أَحَدَهُمَا وَلَا يُشِيرُ إِلَيْهِ وَلَا يُلَقِّنُهُ حُجَّةً اود تهمت په وجه به په دوی دواړوکې دیو کس سره په غوږ کې خبره نه کوی.اونه به یوکس اړخ ته اشاره کوی.اونه به ده ته د حجت تلقین کوی.

---

(٣٧٣) من حديث علي رضی الله عنه اخرجه إسحاق بن راهويه رحمه الله في مسنده ورواه عبدالرزاق في مصنفه والدارقطني في كتاب المؤتلف والمختلف كذا في نصب الراية (١٤٦/٤)۔

(١) من حديث ام سلمة رضی الله عنها اخرجه الطبراني في معجمه الكبير وأشار إليه الهيثمي في مجمع الزوائد (١٩٤/٤)۔

**حل اللغة>** ① **یسار**-کنبت خبرې کوی ② **لایشیر**-اشاره دې نه کوی-⑥ **یلقن**-خودنه کوی

**تشریح>** قاضی دې د یو سره کنبت کنبت (پټې پټې) خبرې نه کوی.او پخپل لاس، یا سر یا وریځو سره دې اشاره نه کوی.اونه دې ده ته د حجت تلقین کوی.

**دلائله>** ① څکه چې په داسې کولوکې قاضی په رشوت او طرفدارئ سره متهم کیداې شی.نود تهمت نه د بچ کیدلو لپاره دې ذکرشوی کارونو نه خان بچ اوساتی.

② دوهم دلیل دادې.چه په داسې کولوکې د دوهم کس زړه ماتیږی.(او همت ختمیږی).څکه به دې خپل حق پریږدی.یعنی کله چې دې دا خیال اوکړی.چه د قاضی طبعی میلان زما خصم ارخ ته دې.نود قاضی څخه به د انصاف امید نه ساتی.او خپل حق به پریږدی.

### قاضی لپاره په قیدکنبې د اچولو هدایات

| |
|---|
| فَإِذَا ثَبَتَ الْحَقُّ عِنْدَهُ اوکله چې د قاضی په نیز حق ثابت شو. وَطَلَبَ صَاحِبُ الْحَقِّ حَبْسَ غَرِيمِهِ او صاحب حق د خپل قرضدار قیدکول طلب کړل. لَمْ يُعَجِّلْ بِحَبْسِهِ نو دده په قیدکولوکې به جلتی نه کوی. وَأَمَرَهُ بِدَفْعِ مَا عَلَيْهِ او قرضدار ته به حکم اوکړی.چه څه په ده باندې دی.هغه ورکړی. |

**حل اللغة>** ① **ثبت**-ثابت شی-② **حبس**-بندبه کړې شی-③ **غریم**-قرضدار-④ **دفع**-ورکول

**تشریح>** صورت د مسئلې دادې.چه کله د صاحب حق، حق د قاضی په نیز ثابت شی.او صاحب حق د خپل قرضدار گرفتارولو مطالبه اوکړی.نوکه د ده حق د اقرار په ذریعه ثابت وی.نو قاضی به د قرضدار په قیدکولوکې جلتی نه کوی.بلکه قرضدار ته به حکم ورکوی. چه دې صاحب حق قرضه اداکړی.قرضه که یو درهم وی.او که ددې نه کم وی.یا زیات وی.

**دلیله>** دلیل دادې.چه قید او جیل د ټال متهول سزا ده.نو په قید کولو سره د قرضدار د ارخه ټال مواره ښکاره کول ضروری دی.نوهرکله چې د قرضدار د اقرار په وجه د صاحب حق ، حق ثابت شو.نو په پیل کې به دده د ارخه ټال متهول نه ښکاره کیږی.څکه دې به دا وائی.چه ماته د مهلت ملاویدلو امید وو.په دې وجه ما د خان سره مال رانوړو.اوس که تاسو د مهلت ور کولو نه انکار کوئ.نو زه ستاسو حق اداکوم.خوکه د صاحب حق، حق ثابتیدلو.نه روسته قرضدار دده د حق ادا کولو نه منع شو.نو په دې صورت کې چونکه د قرضدار د ارخه ټال متهول اوموندې شو.څکه به قاضی دې قید کوی.

### د پور په عوض کنبې د قیدکولوحکم

| |
|---|
| فَإِنِ امْتَنَعَ فرمانی.بیا که دې (د اداکولونه) منع شو. حَبَسَهُ فِي كُلِّ دَيْنٍ لَزِمَهُ بَدَلًا عَنْ مَالٍ حَصَلَ فِي يَدِهِ نودې به په هر داسې قرضه کې قید کوی.کوم چې دداسې مال عوض وی.کوم چې دده په قبضه کې حاصل شوې دې. كَثَمَنِ الْمَبِيعِ وَبَدَلِ الْقَرْضِ لکه د مبیع ثمن اود قرض بدل، أَوِ الْتَزَمَهُ بِعَقْدٍ یانې عقد سره دا لازم کړې دې. كَالْمَهْرِ وَالْكَفَالَةِ لکه مهر اود کفاله مال، |

**حل اللغة>** ① **دین**-قرض-② **لزم**-لازم شو-③ **ثمن**-قیمت-④ **عقد**-معاهده

**تشریح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمانی.که د قاضی د حکم نه روسته قرضدار د پور ادا کولو نه منع شو.او قرضخواه دده د قید کولو مطالبه اوکړله.نو قاضی به دې د هر داسې پور په بدله کې قید کوی.کومه قرضه چې دداسې مال عوض وی.کومه چې ده پخپله قبضه کې اخستې دې.لکه د مبیع ثمن، یعنی په قرضدار اگرچه د ثمن قرضه واجب شوې ده.خو مبیع دده په قبضه کې راغلې دې.یا

داسې قرضه وي.کومه چې ده په عقد سره پخپل ځان باندې لازم کړې ده.لکه په عقدنکاح سره ئې د مهر مال لازم کړې وي.یا ئې په عقد کفاله سره مال مکفول به لازم کړې وي.

**دلیله**> دلیل دادې.چه هرکله د قرضدار په قبضه کې مال راغئ.نو ددې مال په ذریعه دده مالداره کیدل ثابت شو.اوکله چې توانګر د پور ادا کولو نه منع کیږي.نو دې قید کولې شي.نو په دې قرضه کې به ذکرشوې قرضدار قید کولې شي.یعنی دده ځخه به مطالبه کولې شي.چه کوم مبیع دده په قبضه کې دې.دادې خرڅ کړي.اود بائع ثمن دې اداکړي.او پخپل اختیار سره خپل ځان باندې د مال لازمولو اقدام کول، دده د مالداره کیدلو دلیل دې.ځکه چې انسان پخپل ځان باندې دداسې مال التزام کوي.کوم چې دې اداکولې شي.نود مهر او کفاله مال کله چې ده په خپله ذمه اخستې دې.نو ګویا دا اداکولې شي.علامه مرغینانی رحمه الله فرمائي.چه په متن کې د مهر نه مراد مهرمعجل دې.مهرموجل نه دې.ځکه چې عادةً مهرمعجل سپارلې کیږي.مهرموجل نه سپارلې کیږي.نود مهرمعجل نه ادا کولو په صورت کې به قید کیږي.اود مهرموجل نه ادا کولو په صورت کې به نه قید کیږي.

**د نه قیدکولو بعض امور**

وَلَا يَحْبِسُهُ فِيمَا سِوَى ذٰلِكَ فرمائي.اود ذکرشوې پور ځخه به علاوه کې قاضي دې نه قیدکوي. إِذَا قَالَ إِنِّي فَقِيرٌ کله چې ده دا اووئیل.چه زه فقیر یم. إِلَّا أَنْ يُثْبِتَ غَرِيمُهُ أَنَّ لَهُ مَالًا [1] مګر داچه دده قرضخواه دا ثابته کړي.چه دده سره مال موجود دې.

**حل اللغة**> سوی-علاوه-غریم-قرضدار---

**تشریح**> که په قرضدار باندې داسې قرضه وي.کومه چې د ځه مال په عوض کې لازم شوې وي.یا د کوم عقد په وجه ئې ددې التزام کړې وي.او بیا قرضدار دا اووائي.چه زه فقیر یم.اود پور ادا کولو نه منع شو.نو قاضي به دې قید کوي.خو ددې دوارو صورتونو نه په علاوه کې که قرضدار دا اووائي.چه زه فقیر یم.نو قاضي به دې نه قید کوي.خوکه ګواهانو دا ثابته کړله.چه دده سره مال موجود دې.نو قاضي به دې قید کوي.مثلاً یو سړي دچا مال تلف یا غصب سره ضائع کړو.یا په ده باندې ځه تاوان واجب شو.بیا ده د عوی اوکړله.چه زه غریب یم.نو دده دا قول به قبلولې شي.او قاضي به دې نه قید کوي.خوکه قرضخواه اووئیل.چه داسې نه ده.بلکه ده ته د ادا کولو قدرت حاصل دې.اوده دا خبره د بینه په ذریعه ثابت کړله.نو قاضي به دې قید کوي.

**دلیله**> دلیل دادې.چه ترکومه پورې د قرضخواه د اړخه د قرضدارې د مالداره کیدلو ځه دلیل اونه موندې شي.ترهغه وخته پورې به دهغه کس قول معتبر وي.په چاچه قرضه ده.ځکه چې دې دخپل حال نه زیات خبر دې. (صاحب البیت أدری ما في البیت) خوکله چې قرضخواه په بینه سره د قرضدار توانګر کیدل ثابت کړل.نود مدعی علیه په ادا کولو باندې قدرت حاصل شو.اوهرکله چې قرضدار د دین په ادا کولو باندې قادر دې.خو ددې باوجود نې ادانکړو.نودې به د ټال مټول کولو په وجه قید کولې شي.

وَيَحْبِسُهُ شَهْرَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً نو قاضي به دې دوه درې میاشتې قید کوي. ثُمَّ يَسْأَلُ عَنْهُ بیا به دده حال معلوموي. فَالْحَبْسُ لِظُهُورِ ظُلْمِهِ نو محبوس کول فی الحال دده د ظلم ښکاره کولو په وجه دې.

---

[1] القول الراجح هو هذا القول الأول (من عدم الحبس الا ان يثبت الغريم وجود ماله) كذا في ردالمختار(٤\٣٥٢) ومجمع الأنهر(٣\٣٣٥) والبحر الرائق (٦\٢٨٥) نقلاً عن القول الراجح (٢\١١٠)-

**حل اللغة** > **شهرين**-دوه مياشتې-**ثلاثة**-درې-**يسال**-پوښتنه کوي-

**تشريح** > علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي.چه په کوم صورت کې د قرضخواه قول (چې قرضدار توانګر دې) معتبر وي.يا په کوم صورت کې د قرضدار قول(چې زه فقير يم) معتبر وي.خو قرضخواه د بينه په ذريعه ثابت کړي.چه دده سره مال موجود دې.نو په دې دوارو صورتونو کې به قاضي قرضدار ددوه يا درې مياشتو لپاره قيد کړي.بيا به دده د ګاونډيانو اود متعلقينو خلقو نه دده د فقيرئ او مالدارئ په اره کې پوښتنه اوکړي.چه دا قرضدار فقير دې.او که توانګر دې؟

**دليله** > قيد کوی به ئې ځکه چه د ټال متول کولو په وجه في الحال دده ظالم کيدل ښکاره شوی دی.اود ظلم سزا قيد ده.په دې وجه به دې قيد کولې شي.

**د قرضدار قيدي د قيدکولو موده**

| |
|---|
| **فَإِنْ لَمْ يَظْهَرْ لَهُ مَالٌ خَلَّى سَبِيلَهُ** بيا که دده هيڅ مال ښکاره نشي.نو دده لاره دې پريږدي. |

**حل اللغة** > ① **خل**-پريږدی -② **سبيل**-لاره-

**تشريح** > د قيد موده تيريدلو نه روسته که قيدی سره مال ښکاره نشو.نو قاضي به دې آزاد کړي.

**دليله** > ځکه چې داسرې اوس د مالداره کيدلو پورې د مهلت موندلو مستحق شوې دې.لکه چې د الله تعالى ارشاد دې. (وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ) اوهرکله چې دا سړې د مهلت موندلو مستحق شو.نو ددې نه روسته به دده قيدکول سراسر ظلم وی.اود ظلم لرې کول چونکه ضروری دی.په دې وجه به قاضي قيدی آزاد کړي.

| |
|---|
| **وَلَا يَحُولُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ غُرَمَائِهِ** او دده او دده د قرضخواهانو په منځ کې دې منع نه کوی. |

**حل اللغة** > ① **خل**-خالي کړو-② **يحول**-رکاوټ کيږی-③ **غرماء**-قرضخواهان-④ **کلام**-بحث\خبرې

**تشريح** > قاضي دې دده اود قرضخواهانو په منځ کې نه حائل کيږی.اودا په ملازمت کې کلام دې.يعني دا په دې اره کې کلام دې.چه د قيدی د آزاديدلو نه روسته به قرضخواه په ده پسې لګی.اوکه نه لګی؟ ددې تفصيل به انشاء الله په کتاب الحجر کې ذکرکولې شي.

**د ښځې په نفقه کښې د ميړه قيدکولو حکم**

| |
|---|
| **وَيُحْبَسُ الرَّجُلُ فِي نَفَقَةِ زَوْجَتِهِ** او سړې به د خپلې ښځې په نفقه کې قيدکولې شي. |

**حل اللغة** > ① **يحبس**-بندولې شی-② **الرجل**-سړې -③ **زوجة**-ښځه-

**تشريح** > صورت د مسئلې دادې.که قاضي په يو سړی باندې دده دښځې نفقه مقرر کړې وی.يا ښځې او ميړه د نفقې په څه مقدار باندې اتفاق کړې وی.بيا ميړه د ښځې نفقه ادا نکړله.او ښځې د قاضي په عدالت کې مقدمه پيش کړله.نو قاضي به ميړه قيدکوی.

**دليله** > ځکه چې د نفقه نه ور کولو په وجه د ميړه ظالم کيدل ښکاره شوی دی.اود ظالم سزا جيل او قيد دې.په دې وجه به ميړه د ښځې د نفقه نه ور کولو په وجه قيد کولې شي.

**څوی په پور کښې د پلار قيدکولوحکم**

| |
|---|
| **وَلَا يُحْبَسُ الْوَالِدُ فِي دَيْنِ وَلَدِهِ** او پلار به دده د څوی په نفقه کې نشي قيدکولې. |

**تشریح** ﴿ او پلار به د خپل ځوی د پور په وجه نشی قید کولې .یعنی که دځوی په پلار باندې قرضه وی.او پلار ئې ادانکړی.او ځوی قاضی ته مقدمه پیش کړی.نو قاضی به دده پلار نه قید کوی.

**دلیله** ﴿ ځکه چې قیدکول یو ډول سزا ده.او ځوی ته په پلار باندې د داسې سزا استحقاق نشته.تردې که پلار ځوی په قصد سره قتل کړو.نود پلار ځخه به قصاص نشی اخستلې.اوکه پلار پخپل ځوی باندې د زنا تهمت اولګولو.نو په پلار به حدقذف نه جاری کیږی.دغه ډول که پلار د ځوی قرضه ادا نکړی.نو ځوی ته دا حق حاصل نه دې.چه د خپلې پور په وجه پلار قید کړی.

| |
|---|
| اِلَّااِذَاامْتَنَعَ مِنَ الْاِنْفَاقِ عَلَيْهِ خو کله چې پلار په ځوی باندې د خرچ کولو نه انکار اوکړی. |

**حل اللغة** ﴿ **امتنع**–منع شی-**الإنفاق**–خرچ کول-

**تشریح** ﴿ البته که پلار دخپل ځوی د نفقه ورکولونه انکار اوکړو.نو دې به قید کولې شی.

**دلیله** ﴿ ځکه چې په نفقه ورکولوکې دده د بچی ژوند او پرورش دې.او په نفقه نه ورکولوکې دده د هلاکولو کوشش دې.نو بچی د هلاکولو د ارادې نه دمنع کولولپاره به دې قیدکولې شی.

**د ښځې قاضی جوړیدلو حکم**

| |
|---|
| وَيَجُوْزُقَضَاءُالْمَرْأَةِفِي كُلِّ شَيْءٍاِلَّافِي الْحُدُوْدِوَالْقِصَاصِ اود ښځې حکم قضاء په هرڅیزکې جائز ده.علاوه د حدود او قصاص نه. |

**تشریح** ﴿ د حدود او قصاص نه علاوه په هره معامله کې ښځه قاضی جوړول جائز دی.اود حدود او قصاص نه علاوه په هره معامله کې به ددې فیصله نافذ وی.احناف ﷺ هم ددې قائل دی. (۱)

**دلیله** ﴿ دلیل دښځې د قضاء حکم ددې په شهادت باندې قیاس کړې شوې دې.یعنی حکم قضاء د شهادت د حکم نه مستفاد دې.نو کوم کس چې د شهادت اهل دې.هغه به د قضاء اهل هم وی.او ځوك چې د شهادت اهل نه دې.هغه به د قضاء اهل هم نه وی.نود ښځې شهادت چونکه د حدود او قصاص نه په علاوه کې جائز دې.په دې وجه د حدود او قصاص نه په علاوه کې به ددې د قضاء حکم هم جائز وی.او په حدود او قصاص کې د ښځې شهادت جائز نه دې.په دې وجه حدود او قصاص کې به ددې د قضاء حکم هم جائز نه وی.

**په کومو حقوقوکښې به د قاضی خط قبلولې شی؟**

| |
|---|
| وَيُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِيْ اِلَى الْقَاضِيْ فِي الْحُقُوْقِ او ،،کتاب القاضی الی القاضی،،به په حقوقو کې قبلولې شی. اِذَاشُهِدَبِهٖ عِنْدَهٗ کله چې دوهم قاضی په وړاندې ددې خط شهادت ورکړې شی. |

**تشریح** ﴿ د قاضی خط د بل قاضی په نوم داسې حقوقوکې مقبول دې.کوم حقوق چې د شبهاتو باوجود ثابتیږی.په دې شرط چې دوه ګواهان مکتوب الیه قاضی په وړاندې دا ګواهی ورکړی.چه دا خط د فلانی قاضی دې.اودا د هغه مهر دې.اوکوم حقوق چې د شبهاتو په وجه لرې کیږی. لکه حدود او قصاص، په هغې کې د یوقاضی خط د بل قاضی په نوم نه قبلیږی.

---

(۱) **مسلك الائمة**:- امام مالك، امام شافعی او امام احمد ﷺ فرمائی.چه ښځه په هیڅ معامله کې هم قاضی جوړول جائز نه دی.او ددې فیصله به نه په حدود او قصاص کې نافذ وی.اونه به په بله ځه معامله کې نافذ وی.

فَإِنْ شَهِدُوا عَلَى خَصْمٍ حَاضِرٍ حَكَمَ بِالشَّهَادَةِ نو که ګواهانو په خصم حاضر باندې ګواهي ورکړله.نو کاتب قاضي به د شهادت موافق حکم ورکوي. وَكَتَبَ بِحُكْمِهِ ځکه حجت اوموندې شو.او خپل حکم به ليکي.

**حل اللغة** ﴿ ① **حاضر**-موجود-② **حكم**-فيصله اوکړه -

**تشريح** ﴿ که ګواهانو د مدعی عليه په وړاندې ګواهي ورکړله.نو چونکه شرعي حجت اوموندې شو.په دې وجه به کاتب قاضي د شهادت موافق حکم ورکوي.اوخپل دا حکم به ليکي. چې ما د ګواهئ موافق په فلاني مدعی عليه باندې حکم ورکړې دې.دې ته سجل وئيلې شي.

**الاشكال** ﴿ خو دلته کې دا سوال کيږي.چه هرکله ګواهي د مدعی عليه په وړاندې ورکړې شوې ده.او هم دده په موجودګئ کې حکم ورکړې شو.نو بيا دوهم قاضي ته د خط اوړلو څه اړتيا دې؟

**الجواب** ﴿ ددې ځواب دادې.چه داسې کيداې شي. چې قاضي په حاضر مدعی عليه باندې حکم ورکړې وی.خودا نې جاری کړې نه وی.او په دې موده کې مدعی عليه بل ښار ته لاړشی.نود حکم جاری کولو لپاره د هغه ځائې قاضي په نوم د خط ليکلو اړتيا راپيښيږی.

وَإِنْ شَهِدُوا بِغَيْرِ حَضْرَةِ خَصْمِهِ لَمْ يَحْكُمْ اوکه ګواهانو د خصم حاضريدلو نه بغير ګواهي ورکړله.نو کاتب قاضي به په ده باندې حکم نه کوی.

**تشريح** ﴿ اوکه ګواهانو د خصم (مدعی عليه) په غيرموجودګئ کې ګواهي ورکړې وی.

**دليله** ﴿ نو چونکه د غائب په خلاف حکم ورکول جائز نه دی.په دې وجه به کاتب قاضي حکم نه ورکوی.بلکه صرف شهادت به ليکي.چه مکتوب اليه قاضي ددې ګواهئ موافق حکم ورکړی.هم دې ته خط حکمی وائي.

وَكَتَبَ بِالشَّهَادَةِ لِيَحْكُمَ بِهَا الْمَكْتُوبُ إِلَيْهِ او قاضي به شهادت ليکي.چه مکتوب اليه قاضي ددې ګواهئ مطابق فيصله ورکړی.

**تشريح** ﴿ **الفرق بين السجل والخط الحكمي** ﴿ د سجل او خط حکمی په منځ کې توپير دادې.چه سجل کله مکتوب اليه قاضي ته اورسی.نوهغه به دا نافذ کوی.که دا دده د رائې موافق وی.اوکه مخالف وی.ځکه چې په دې کې کاتب قاضي ورکړې شوې حکم موجود دې.اود خط حکمی په صورت کې که د مکتوب اليه قاضي د رائې موافق وی.نو نافذ به نې کړی. ګنی نه به نې نافذ کوی.ځکه چې په دې کې د کاتب قاضي حکم موجود نه دې.هم دا علامه خط حکمی په حقيقت کې د شهادت منتقل کولو نوم دې.يعنی د قاضي مکتوب اليه اړخ ته نې شهادت منتقل کړې دې.چه مکتوب اليه قاضي هم ددې مطابق حکم ورکړی.

**معرفة الامور الخمسة** ﴿ اود ، ،کتاب القاضي الى القاضي، ، لپاره يو څو شرطونه دی.چه دا به روسته ذکرکوو.من جمله د هغې نه د پنځه څيزونو معلوميدل ضروری دی.

① کاتب قاضي معلوم وی.② قاضي مکتوب اليه معلوم وی.③ د کوم شئ په اړه کې چې خط دې.④ او دچا لپاره چې خط دې.يعنی مدعی، ⑤ هغه معلوم وی.اود چا خلاف چې خط دې.يعنی مدعی عليه هغه معلوم وی.

**دليل الجواز** ﴿ د ، ،کتاب القاضي الى القاضي، ، اجازت ورکړې شوې دې.او اړتيا په دې شان ده.چه ډير خله مدعی لپاره مدعی عليه او ګواهان جمع کول مشکل وی.په دې طريقه چې ګواهان خود مدعی په

ښار کې وی.او مدعی علیه په بل ښار کې وی.او ګواهان د مدعی علیه ښار ته تللو لپاره تیار نه دی.او مدعی علیه د ګواهانو ښار ته راتګ لپاره راضی نه دی. نو په داسې صورت کې د،،کتاب القاضی الی القاضی،، نه بغیر بل څه شکل نه جوړیږی.نود،،کتاب القاضی الی القاضی،،اجازت ورکړې شو.اودا د شهادت علی الشهادت مشابه شو.نولکه څنګه چې د بنده ګانو حقونو ژوندی کولو لپاره شهادت علی الشهادت جائز کړې شوې دې.هم دغه شان،،کتاب القاضی الی القاضی،،هم جائز کړې شوې دې.

ددې نه روسته دې خط راوړی.په دې دې مهر اولګوی.بیا دې دا خط مدعی ته حواله کړی.نوکله چې مدعی دا خط مکتوب الیه قاضی ته بیان کړی.چه دا د فلانی قاضی خط دې.نوهغه دې په دې باندې ګواهان طلب کړی.بیا کوم وخته پورې چې مدعی علیه حاضر نشی.د ګواهانو سماعت به نه کوی(یعنی ګواهی به نه اوری).اوکله چې دې حاضر شی.او اقرار اوکړی.چه هم زه فلان بن فلان یعنی شاهد د ماجد آله آبادی خوې یم.نو مکتوب الیه قاضی به د ګواهانو سماعت اوکړی.اوکه مدعی علیه انکار اوکړی.نو مدعی دې پخپلوګواهانو سره ثابته کړی.چه هم دا شاهد بن ماجد آله آبادی مدعی علیه دې.نود مدعی علیه د ثبوت نه روسته دې د مدعی د ګواهانو سماعت اوکړی.چه دا د فلانی قاضی خط دې.بیا به مکتوب الیه قاضی د ګواهانو نه پوښتنه کوی.چه قاضی په دې کې څه لیکلی دی.هغه نې تاسو ته اورولې وو.که دوی اقرار اوکړو.او ګواهی نې ورکړله.چه دا خط هم د هغه دې.اوهم د هغه مهر دې.نو مکتوب الیه قاضی به ددوی د عدالت او دیانت معلومات اوکړی.نوکله چې ددوی عدالت او دیانت ثابت شی.نود مدعی علیه په موجودګۍ کې به مهر اوشلوی.او خط به واوروی.

**د مکتوب الیه قاضی لپاره د خط قبلولو شرطت**

وَلَا يُقْبَلُ الْكِتَابُ فرمانی.او مکتوب الیه قاضی به د کاتب قاضی خط نه قبلوی. إِلَّا بِشَهَادَةِ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ مګر د دوه سړو یاد یو سړی اود دوه ښځو په ګواهۍ سره،

**حل اللغة** ① **شهادة**-ګواهی-② **رجلین**-جمع د رجل سړې-③ **امرأتین**-جمع د مرأة ښځه-④ **یقبل**-قبلولې شی

**تشریح** مکتوب الیه قاضی به د کاتب قاضی خط هغه وخت قبلوی.کله چې په دې باندې بینه موجود وی.یعنی دوه عادل سړی یا یوسړې او دوه ښځې ګواهی ورکړی.چه دا دکاتب قاضی خط اود هغه مهر دې.اوهغه مونږ ګواهان مقرر کړی یو.

**دلیله** دلیل دادې.چه یو خط چونکه د بل خط مشابه وی.په دې وجه د کاتب قاضی خط کیدل، د حجت تامه نه بغیر نه ثابتیږی.اود حجت او بینه کیدل خکه شرط دی.چه د قاضی د خط په ذریعه مدعی علیه باندې هغه شې لازمولې شی.کوم چې په خط کې دننه لیکلی شوی دی.او په چا باندې یو شې لازمول د بینه نه بغیر نه کیږی.په دې وجه د قاضی د خط قبلولو لپاره بینه او حجت تامه کیدل ضروری دی.اود یوسړی اود دوه ښځو شهادت قبلول خکه جائز دی.چه ورانديې تیرشوی دی.چه د قاضی خط په داسې حقونو کې قبلیږی.کوم حقوق چې په شبهاتو سره نه ساقطیږی.اوکوم حقوق چې په شبهاتو سره نه ساقطیږی.په هغې کې سړو سره د ښځو شهادت هم قبلولې شی.په دې وجه د قاضی د خط قبلولو لپاره د یوسړی او دوه ښځو شهادت هم کافی دې.

## د کاتب قاضي ګواهانو خط آورول او مهرلګول

وَيَجِبُ أَنْ يَقْرَأَ الْكِتَابَ عَلَيْهِمْ لِيَعْرِفُوا مَا فِيهِ اود کاتب قاضي لپاره واجب دی.چه دې ګواهانو ته خط واوروی.چه دوی ددې د مضمون نه خبرشي.

**تشریح>** شهادت وغیره کوم څه چې کاتب قاضي پخپل خط کې لیکلي دي. قاضي کاتب به د خط پوره مضمون ګواهانو ته اوروی.

**دلیله>** ځکه که ګواهانو ته د خط مضمون معلوم نه وی.نو ددوی ګواهي به د علم نه بغیر وی.اود علم نه بغیر ګواهي ورکول باطل دی.لکه چې د الله تعالی ارشاد دې. ﴿إِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ وَهُمْ يَعْلَمُونَ﴾.خو چاچه ګواهي ورکړله رشتوني،او دوی خبر وو، ،یعنی که یوکس د خپل علم مطابق رشتوني ګواهي ورکړله.نو هغه معتبر ده.ددې آیت نه معلومه شوه.چه ګواه ته دهغه شي علم ضروری دې.د څه په اړه کې چې دې ګواهي ورکول غواړي.

ثُمَّ يَخْتِمُهُ وَيُسَلِّمُهُ إِلَيْهِمْ بیا دې پرې مهر اولګوی.اودا خط دې دوی ته اوسپاری.

**تشریح>** بهرحال کاتب قاضي چې کله د ګواهانو په وړاندې خط واورولو. نو ددوی په موجودګۍ کې دې مهر اولګوی.او بند دې کړی.د طرفینو رحمهماالله په نیز دې دا خط ګواهانو ته حواله کړی.اود امام ابویوسف رحمه الله په نیز دې مدعی ته حواله کړی.او مهر لګول او بندول،

**دلیله>** په دې وجه دې پرې مهرلګوی چه په مضمون کې دننه د څه تغیراو تبدیلۍ شبه پاتې نشي.

## د مکتوب الیه قاضي د خط قبلولو حکم

وَإِذَا وَصَلَ إِلَى الْقَاضِي فرمائي.بیا کله چې دا خط مکتوب الیه قاضي ته اورسي. لَمْ يَقْبَلْهُ إِلَّا بِحَضْرَةِ الْخَصْمِ نوهغه دې دا نه قبلوی.مګر د مدعی په وړاندې،

**حل اللغة>** ① وصل-اورسیږی-② حضرة-موجودګی-③ حضور-موجودګی

**تشریح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمائي،چه کله د کاتب قاضي خط مکتوب الیه قاضي ته ملاوشي.نو مکتوب الیه قاضي به دا خط د مدعی علیه په موجودګۍ کې قبلوی.یعنی د مدعی علیه په حاضریدو سره دې دا خط د مدعی یا ګواهانو نه وصول کړي.

**دلائله>** ① دلیل دادې.چه دا خط د مکتوب الیه په وړاندې د ګواهۍ ادا کولو په مرتبه کې دې.اود ګواهۍ ادا کولو په وخت د مدعی علیه موجودیدل ضروری دی.نو ددې خط قبلولو په وخت به هم د مدعی علیه حاضریدل ضروری وی.

② دوهم دلیل دادې.چه د کاتب قاضي خط د شهادة علی الشهادة په مرتبه کې دې. ځکه چې قاضي کاتب د خپل خط په ذریعه د ګواهانو الفاظ مکتوب الیه قاضي اړخ ته منتقل کوی.لکه څنګه چې فرع شاهد د اصل شاهد د شهادت الفاظ نقل کوی.اود ، ،شهادة علی الشهادة، ، سماعت لپاره د مدعی علیه موجودیدل ضروری دی.نو دلته کې هم د قاضي خط قبلولو په وخت د مدعی علیه موجودیدل ضروری دی.

## مکتوب الیه قاضي لپاره د خط د مهر چک کول

فَإِذَا سَلَّمَهُ الشُّهُودُ إِلَيْهِ نَظَرَ إِلَى خَتْمِهِ فرمائي.بیا کله چې (د مدعی علیه په موجودګۍ کې) ګواهان مکتوب الیه قاضي ته دا خط اوسپاري.نو مکتوب الیه قاضي دې ددې مهر اوګوری. فَإِذَا شَهِدُوا أَنَّهُ

كِتَابُ فُلَانٍ الْقَاضِي بیا کله چې ګواهان ګواهی ورکړي.چه دا خط د فلانی قاضی دې. سَلَّمَهُ إِلَيْنَا فِي مَجْلِسِ حُكْمِهِ وَقَضَائِهِ هغه مونږ ته دا خط د حکم او قضاء پخپل مجلس کې سپارلې وو. وَقَرَأَهُ عَلَيْنَا وَخَتَمَهُ او مونږ ته ئې اورولې وو.او خپل مهر ئې اولګولو.او بند ئې کړو. فَتَحَهُ الْقَاضِي وَقَرَأَهُ عَلَى الْخَصْمِ وَأَلْزَمَهُ مَا فِيهِ نو مکتوب الیه قاضی به دا کلاؤ کړي.او مدعی علیه ته به ئې واوروی. اوکوم څه چې په خط کې دی.هغه به په ده باندې لازم کړي.

**حل اللغة** ① سلم-ورکړي-② نظر- ګوري-③ كتاب-خط-④ ختم-مهر ئې اولګولو

**تشریح** کله چې د مدعی علیه په موجودګئ کې ګواهانو یا مدعی د قاضی دا خط قاضی مکتوب الیه ته اوسپارلو.نو قاضی مکتوب الیه به د ټولو نه وړاندې ددې مهر اوګوري.بیا کله چې ګواهان ګواهی ورکړي.چه دا د فلانی د خوی د فلانی ښار د قاضی خط دې.هغه مونږ ته دا خط پخپل مجلس قضاء کې اوسپارلو.او مونږ ته ئې واورولو.او زمونږ په وړاندې ئې مهر اولګولو.اودا ئې بند کړو.نو مکتوب الیه قاضی به دا خط کلاؤ کړي.او مدعی علیه ته به ئې واوروی.اوڅه چې په خط کې لیکلی شوی دی.هغه دې په مدعی علیه باندې لازم کړي.په دې شرط چې د مکتوب الیه قاضی په رائې کې د کاتب قاضی لیکلې شوې فیصله او شهادت د اسلامی شریعت موافق وی.او مدعی علیه سره ددې خلاف څه حجت نه وی.دا د طرفینو مذهب دې.

**مسلك ابي يوسف** د قاضی امام ابویوسف رحمه الله مذهب دا دې چې صرف په دې خبره باندې ګواهی کافی ده.چه دا خط د فلانی قاضی دې.اوهم د هغه مهردې.د دومره قدرې ګواهئ نه روسته د مکتوب الیه قاضی لپاره خط قبلول جائز دی.پاته په ذکر شوو امورو کې هیڅ شئ شرط نه دې. ([1])

**په حدود او قصاص کښې د قاضي الى القاضي خط قبلولو حکم**

وَلَا يُقْبَلُ كِتَابُ الْقَاضِي إِلَى الْقَاضِي فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ او په حدود او قصاص کې به،،کتاب القاضی الی القاضی،،نه قبلیږي.

**تشریح** په حدود او قصاص کې ،،کتاب القاضی الی القاضی،،نه قبلیږي. هم دا یو قول د امام شافعی رحمه الله هم دې. ([2])

**دلائله** ① دلیل دادې.چه په خط د قاضی کې د بدلیت شبه موجود ده.په دې طریقه چې اصلی ګواهانو دکاتب قاضی په وړاندې ګواهی ورکړې ده.او کاتب قاضی دا لیکلې ده.او مکتوب الیه قاضی ارخ ته ئې منتقل کړې ده.نودا د ،،شهادة علی الشهادة،،د قبیلې څخه شو.او په حدود او قصاص کې ،،شهادة علی الشهادة،، نه قبلیږي.په دې وجه به،،کتاب القاضی الی القاضی،،هم نه قبلیږي.

② د حدود او قصاص بنا (بنیاد) په ساقطولو دې.یعنی ممکن کوشش دا کول پکار دی.چه دا ساقط کړې شی.حالانکه د قاضی خط قبلولو کې ددې ثابتول لازمیږي.په دې وجه حدود او قصاص کې به د

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول أبي يوسف رحمه الله كما ظهر من قبل وفي شرط ظهور العدالة الأصح قول محمد رحمه الله كذا في العناية (٣٨٨\٦) والبحرالرائق (٤\٧) نقلاً عن القول الراجح (١١٥\٢)-

[2]) **مسلك مالك واحمد**:- امام مالك او امام احمد رحمهما الله فرمائی.چه په حدود اوقصاص کې به هم ،،کتاب القاضی الی القاضی،، قبلولې شی.دا یو قول د امام شافعی رحمه الله هم دې.

قاضي خط نه قبليږي..

## قاضي لپاره د نائب جوړولو حکم

وَلَيْسَ لِلْقَاضِيْ أَنْ يَسْتَخْلِفَ عَلَى الْقَضَاءِ او قاضي ته دا اختيار نشته.چه په قضاء باندې خپل خليفه مقرر کړي. إِلَّا أَنْ يُفَوَّضَ إِلَيْهِ ذٰلِكَ مګر داکه ده ته دا اختيار سپارلی شوی وي.

**حل اللغة** ۞ ① **يستخلف**-قسم ورکوي-② **يفوض**-سپارلی شي-

**تشريح** ۞ قاضي ته دا اختيار نه وي.چه دې د عذر په وجه ياد عذر نه بغير د قضاء په سلسله کې څوك خپل نائب او خليفه مقرر کړي.البته که سلطان او حاکم اعلى ده ته دا اختيار ورکړې وي.نو نائب مقررول جائز دی.امام مالك، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله هم ددې قائل دی.

**دليله** ۞ څکه چې ده ته د قضاء عهده سپارلې شوې ده د قاضي جوړولو ذمه واري ورته نه ده حواله شوې.نودا داسې شوه.لکه د يو وکيل د خپل ځان په ځائې بل څوك وکيل کول،يعني لکه څنګه چې د مؤکل د اجازت نه بغير وکيل ته دا اختيار نشته.چه دې بل څوك د ځان په ځائې وکيل مقرر کړي.دغه ډول قاضي ته د سلطان د اجازت نه بغير دخپل نائب او خليفه مقررولو اجازت نشته.

## د قاضي په عدالت کې د حاکم د حکم پيش کولو مسئله

وَإِذَا رُفِعَ إِلَى الْقَاضِيْ حُكْمُ حَاكِمٍ أَمْضَاهُ فرمائي.اوکه يو قاضي ته د حاکم د حکم مرافعه اوکړې شوه.نو قاضي به داحکم نافذ کوي. إِلَّا أَنْ يُخَالِفَ الْكِتَابَ أَوِ السُّنَّةَ أَوِ الْإِجْمَاعَ خوکه دا حکم د کتاب، يا سنت يا اجماع خلاف وي.

**حل اللغة** ۞ ① **رفع**-يوړې شي-② **أمضا**-نافذ کړي-③ **يخالف**-مخالفت کوي-④ **الكتاب**-قرآن

**تشريح** ۞ که د يو قاضي په عدالت کې د يو حاکم د حکم مرافعه اوکړې شوه. يعنى اپيل اوکړې شو.نو قاضي به هم هغه مخکني حکم نافذ کوي.په دې شرط چې د حاکم دا حکم د کتاب الله، سنت رسول ﷺ اود اجماع خلاف نه وي.که د حاکم حکم په ذکرشوی دليلونوکې د کوم يو خلاف وي.نو قاضي اعلى چاته چې مرافعه شوې ده.هغه به دا حکم نه نافذ کوي.

مثلاً ماتحت قاضي د ،،متروك التسميه عامداً،، د حلال کيدلو حکم ورکړو.حالانکه دا حکم د الله تعالى د قول(وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ) خلاف دی.

يامثلاً ماتحت قاضي دا حکم ورکړو.چه مطلقه ثلاثه د وطی نه بغير صرف زوج ثاني سره په نکاح کولو رومبي ميړه لپاره حلاله شوې ده.حالانکه دا حکم د حديث رفاعة (لاحتي تذوقي من عسيلته ويذوق من عسيلتك) خلاف دی.

يا مثلاً ماتحت قاضي د نکاح متعه د حلال کيدلو حکم ورکړو.حالانکه دا حکم د اجماع صحابه رضي الله عنهم خلاف دی.نوکه په دې صورتونوکې د قاضي اعلى په عدالت کې اپيل اوکړې شو.نو قاضي اعلى به دماتحت قاضي داحکم نه نافذ کوي.کوم چې د کتاب الله، يا سنت رسول ﷺ يا د اجماع خلاف دی.

اَوْيَكُوْنَ قَوْلًا لَا دَلِيْلَ عَلَيْهِ په دې طريقه چې داسې قول وي.چه په دې باندې هيڅ دليل موجود نه وي (نو بيا به نې نه نافذ وي).

**تشريح** ۞ که د اعلى قاضي په عدالت کې د ماتحت قاضي د کومې فيصلې اپيل اوکړې شو.نو قاضي اعلى به هم دا فيصله نافذ کوي.خوکه د ماتحت قاضي فيصله د قرآن، حديث يا اجماع خلاف وي.لکه چې وړاندې ددې مثالونه تيرشو.ياد ماتحت قاضي حکم داسې قول وي.چه په دې باندې هيڅ دليل نه

وی. (مثلاً ماتحت قاضي دولس کاله تيرېدلو باندې په مطالبه کې د تاخير په وجه د قرضدار د ذمې نه د پور ساقطولو حکم ورکړو. اودا داسې قول دې.چه په دې باندې هيڅ دليل شرعی نشته) نو په دې صورتونوکې به قاضی اعلی د ماتحت قاضی فيصله نه نافذ کوی.

**په غائب باندې د قاضی د فيصلې حکم**

| |
|---|
| وَلَا يَقْضِي الْقَاضِي عَلَى غَائِبٍ فرمائی.او قاضی به په يوغائب باندې حکم نه ورکوی. إِلَّا أَنْ يَحْضُرَ مَنْ يَقُومُ مَقَامَهُ مگر داچه د هغه قائم مقام حاضر وی. |

**تشريح** که مدعی عليه غائب وی.که د ښار نه غائب وی.اوکه په ښار کې پټ وی.خود قاضی د مجلس نه غائب وی.نو زمونږ په نيز قاضی د بينه په وجه نه دده خلاف حکم ورکولې شی.اونه دده موافق حکم ورکولې شی.يعنی د غائب مدعی عليه په خلاف او موافق دواړه شان فيصله ورکول ناجائز دی.که قاضی د غائب خلاف يا موافق څه فيصله ورکړله.نودا به نشی نافذ کولې.که د مدعی عليه غائب څوك قائم مقام موجود وی.مثلاً دده وکيل وی.يا وصی وی.نو په دې صورت کې زمونږ په نيز قضاء علی الغائب جائز ده.(١)

**دلائل** ① دليل دادې.چه د بينه په دې طريقه حجت کيدل چې په دې باندې عمل کول واجب وی.په دې موقوف دی.چه منکر يعنی مدعی عليه د بينه په دفع کولو او په دې کې د طعن کولو نه عاجز وی.اود مدعی عليه عاجزکيدل به هغه وخت معلوميږی.کله چې مدعی عليه پخپله موجود وی.يا دده نائب موجود وی.نوهرکله چې مدعی عليه اودده نائب دواړه غائب وی.نو دده عجز به نه معلوميږی.اوهرکله چې دده عجز معلوم نشو.نود بينه حجت شرعی کيدل به هم نه ثابتيږی.اوهرکله چې د مدعی عليه اونائب په غيرموجودګئ کې د بينه حجت شرعی کيدل ښکاره نشو.نو ددې بينه په وجه د مدعی په حق کې د قاضی فيصله به هم ټيك نه وی.ددې دليل نه معلومه شوه.چه قضاء علی الغائب ناجائز ده.

② دوهم دليل کوم چې علامه مرغينانی رحمه الله ذکرکړې دې.دادې.چه په شهادت او بينه باندې عمل صرف د جګړې ختمولو لپاره جائز دې.اوجګړه به هغه وخت پيداکيږی.کله چې مدعی عليه د مدعی د دعوې نه انکار اوکړی.اود مدعی عليه په غيرموجودګئ کې انکار نه موجود کيږی.نوهرکله چې د مدعی عليه غائب کيدلو په وجه انکار اونه موندې شو.اود انکار نه موجودکيدلو په وجه جګړه پيدا نشوه.نو په شهادت به عمل کول هم جائز نه وی. يعنی د مدعی عليه په غيرموجودګئ کې که قاضی فيصله ورکړله.نودا به نافذ نه وی.او په دې به عمل کول جائزنه وی.ددې دليل نه هم ثابته شوه.چه قضاء علی الغائب جائز نه ده.

**پخپله ثالث مقررول او دده په فيصله باندې د متفق کيدلو حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا حَكَّمَ رَجُلَانِ رَجُلًا اوکله چې دوه سړو يو سړی حکم جوړ کړو. بَيْنَهُمَا وَرَضِيَا بِحُكْمِهِ جَازَ او دده د دواړو په منځ کې فيصله ورکړه.او دواړه دده په حکم کيدلو باندې راضی شو.نو جائز دی. |

---

(١) حضرت امام شافعی رحمه الله فرمائی.که مدعی عليه د ښار نه غائب وی.اوکه په ښار کې پټ وی.خود قاضی د مجلس نه غائب وی.نو په ده باندې فيصله ورکول جائز دی.د امام مالك او امام احمد رحمهما الله هم دا قول دې.

**تشريح** که دوه سړو په يوه نزاعي مسئله کې څوك دريم سړي حَکَم (ثالث) مقرر کړو.او دده په فيصله باندي راضي شو.نودا جائز دی.

**دليله** څکه چې د دواړو په ذات باندي ولايت حاصل دي.نو ددي دواړو پخپله مسئله کې څوك دريم سړي حکم جوړول صحيح دی.او هرکله چې حکم جوړول جائز دی.نود حکم فيصله به هم په دي دواړو باندي نافذ وی.البته ددي دواړو نه په علاوه باندي به نافذ نه وی.لکه مثلاً که د مشتری او بائع په منځ کې د اختلاف په وجه دواړو يو دريم سړي حکم مقررکړو.بيا د حکم د فيصلي مطابق مشتری خپل بائع ته مبيع واپس کړو.نو بائع لپاره به خپل بائع اړخ ته واپس کول جائز نه وی.څکه چې بائع ثانی او مشتری چاچه حکم مقرر کړي دي.په دوی به د حکم فيصله نافذ وی.خو په بائع اول کوم چې ددي دواړو نه غير (علاوه) دي.په هغه به دده فيصله نافذ نه وی.

| |
|---|
| إِذَاكَانَ بِصِفَةِ الْحَاكِمِ اودا حَکم هغه وخت دي.کله چې محکم دحاکم صفت سره وی. |

**تشريح** حکم هغه سړي کيداي شی.په چاکي چې د حاکم او قاضي جوړيدلو صلاحيت وی.يعنی لکه څنګه چې قاضي لپاره د شهادت اهل کيدل شرط دی.دغه ډول د حکم لپاره هم د شهادت اهل کيدل ضروری دی.

**دليله** څکه چې حکم ددي دواړو سړو په منځ کې چاچه حکم مقرر کړي دي.په منزله د قاضي دي.اود قاضي لپاره چونکه د شهادت او قضاء اهل کيدل ضروری دی.په دي وجه حکم چې د قاضي په مرتبه کې دي.د هغه لپاره به د شهادت او قضاء اهل کيدل شرط وی.نوکه دوه سړو يوه ښځه په داسي مسئله کې حکم مقرر کړله.کوم چې په شهادت سره هم ثابتيږی.نودا جائز دی.څکه چې په داسي مسئله کې ښځه د شهادت اهل ده.

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ تَحْكِيمُ الْكَافِرِ وَالْعَبْدِ وَالذِّمِّيِّ وَالْمَحْدُودِ فِي الْقَذْفِ وَالْفَاسِقِ وَالصَّبِيِّ اود کافر، غلام، ذمی، محدود فی القذف، فاسق اود نابالغ حکم جوړول جائز نه دی. |

**حل اللغة** ① **تحکيم**-حاکم جوړول-② **العبد**-غلام-

**تشريح** کافر، غلام، ذمی، محدود فی القذف، فاسق او نابالغ حکم مقررول جائز نه دی.

**دليله** څکه چې په ذکرشوو کسانوکي چونکه د شهادت لياقت موجود نه دي.په دي وجه ذکرشوی نفر قاضي نشی جوړيدلي.اوهرکله چې قاضي نشی کيدلي.نوحکم هم نشی کيدلي. خو ذمی حکم مقررول هغه وخت ناجائز دی.کله چې دي مسلمان حکم مقررکړي وی.اوکه ذميانو څوك ذمي حکم مقررکړو.نودا جائز دی.څکه چې ذمی د مسلمانانو په حق کې اګرچه اهل شهادت څني نه دي.خود اهل ذمه په حق کې د شهادت اهل کيداي شی.

### د ثالث نه د جوړونکو د رجوع حکم

| |
|---|
| وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُحَكِّمَيْنِ أَنْ يَرْجِعَ او په حَکم جوړونکی دواړه سړوکي هريو ته د حَکم جوړولو نه د رجوع اختيار دي. مَالَمْ يَحْكُمْ عَلَيْهِمَا ترکومه پورې چې حَکم په دوی باندي حُکم نه وی صادر کړي. |

**تشريح** د حکم جوړونکو دواړه کسانو کې هريو ته د حَکم د حُکم کولو نه مخکي مخکي د حَکم جوړولو نه د رجوع اختيار دي.يعنی د حَکم د حُکم کولو نه مخکي مخکي دواړو کې هريو دا ونيلي

شي.چه اوس تاسو زما حکم نه یئ.هم دا دامام شافعي رحمه الله قول دې.اود امام مالك رحمه الله يو روايت هم دا دی.اود امام احمد رحمه الله نه هم يو روايت دادې.

**دليله** دليل دادې.چه حکم هم ددې دواړو په اتفاق سره مقرر کړې شو.نو ترکومه پورې چې دوی دواړه دده په حکم کيدلو باندې راضي وی.هغه وخت پورې به ده ته د حکم او فيصله کولو اجازت وی.اوکله چې په دواړوکې يوکس د ناراضګۍ اظهار اوکړو.نو ده ته به د حکم کولو اجازت نه وی.ځکه چې د چا وجود دوه ځيزونو سره متعلق وی.د هغه د موجود کيدلو لپاره د دواړه ځيزونو موجود کيدل ضروری دی.خو ددې د معدوم کيدلو لپاره د دواړه ځيزونو معدوم کيدل ضروری نه وی.بلکه که په دواړه ځيزونوکې يو شئ هم معدوم شو.نو هغه شئ به معدوم وی.نو هم په دې وجه ونيلی شوی دی.چه د حَکم حُکم باقي ساتلو لپاره د دواړه سرو راضي پاتې کيدل ضروری دی.او دده حَکم کيدل ختمولو لپاره د يو ناراض کيدل هم کافي دی.

| |
|---|
| وَإِذَا حَكَمَ عَلَيْهِمَا لَزِمَهُمَا اوکله چې حَکم حُکم ورکړو.نو په دې دواړو به لازم وی. |

**تشريح** که حکم کوم حکم صادر کړو.نود حکم دا حکم به لازم وی.او په فريقينو کې به هيڅ يو ته د انحراف حق نه وی.لکه که قاضي يوه فيصله ورکړله.بيا سلطان دې معزول کړو.نود قاضي دا فيصله نافذ اولازم وی.هم دا يو قول د امام شافعي رحمه الله دې.اود امام مالك او امام احمد رحمهما الله مذهب هم دا دی.

**دليله** ځکه چې حَکم کوم وخت حُکم ورکړې دې.دغه وخت ده ته په دواړو باندې ولايت حاصل وو.اود صاحب ولايت حکم لازم وی.په دې وجه د حَکم ذکرشوې حُکم به هم لازم وی.

| |
|---|
| وَإِذَا رُفِعَ حُكْمُهُ إِلَى الْقَاضِي فَوَافَقَ مَذْهَبَهُ أَمْضَاهُ اود حَکم د حُکم مرافعه قاضي ته اوکړې شوه.اودا حکم دده د مذهب موافق وو.نو قاضي به دا نافذ کوی. |

**حل اللغة** رفع-پورې شی-أمضا-نافذ کړی-

**تشريح** که د حَکم د حُکم قاضي ته مرافعه اوکړې شوه.اودا حُکم د قاضي د مذهب موافق وی.نو قاضي به دحَکم حُکم نافذوی.

**دليله** ځکه چې د حَکم حُکم ماتول او بياهم دغه ډول ددې په مضبوطولوکې هيڅ فائده نشته.يعنې په دې کې څه فائده نشته.چه قاضي مخکې د حَکم حُکم مات کړی.او بيا د خپل اړخه هم دغه حکم صادرکړی.اود قاضي په عدالت کې مرافعه کولو سره به دا فائده وی.چه هرکله قاضي د حَکم حُکم نافذ کړو.بيا د يو داسې قاضي په عدالت کې مرافعه اوشوه. دچا د مذهب چې دا حکم موافق نه دې.نودې دوهم قاضي ته به ددې د ماتولو اجازت نه وی.ځکه وړاندې تيرشوی دی.که يوه مجتهدفيه مسئله يو قاضي نافذ کړله.نو دوهم قاضي (چاته چې مرافعه شوې ده) ته به ددې دماتولو اجازت نه وی.

| |
|---|
| وَإِنْ خَالَفَهُ أَبْطَلَهُ اوکه د حَکم حُکم د قاضي دمذهب خلاف وو.نو دا به باطلوی. |

**تشريح** اوکه د حکم حُکم ددې قاضي د مذهب مخالف وی.د چا په عدالت کې چې مرافعه شوې ده.نو قاضي به د حَکم حُکم باطل کړی.

**دليله** ځکه چې د حَکم حُکم په قاضي باندې لازم نه دې.او په قاضي باندې د حَکم حُکم لازمول ځکه نه دې.چه د قاضي د اړخه دده د حَکم جوړول نه دی موجود شوی.اودا خبره وړاندې تيره شوې ده.چه د

حکم حکم په هغه چا لازمیږي.چاچه دې حکم جوړ کړې وي.دده نه په علاوه باندې نه نافذ کیږي.په دې وجه د حکم داحُکم به په قاضي باندې لازم نه وي.

## په حدود او قصاص کښې د ثالث جوړولو حکم

وَلَا يَجُوزُ التَّحْكِيمُ فِي الْحُدُودِ وَالْقِصَاصِ اوپه حدود او قصاص کې حکم جوړول جائز نه دي.

**تشریح**﴾ په حدود اوقصاص کې حَکم جوړول جائز نه دي. زمونږ په احنافو عالمانو کې دا مذهب د امام خصاف رحمه الله دې.شیخ ابوالحسن قدوري او علامه مرغیناني رحمهماالله هم دا اختیار کړې دې.خو دلته کې د حدودو نه هغه حدود مراد دي.کوم چې خالص د الله ﷻ حق دي.لکه حدزنا او حد شرب خمر،

**دلیله**﴾ دلیل دادې.چه حکم مقررونکو ته پخپل خان او وینه باندې هیڅ ولایت حاصل نه دې.هم دا وجه ده.چه چاته د خپلې وینې مباح کولو اختیار نه دې ورکړې شوې.نوهرکله چې چاته پخپل ځان او وینې باندې ولایت حاصل نه دې.اود خپلې وینې مباح کولو اختیار نه دې ورکړې شوې.نو دده په رضامندئ سره به دده وینه نه مباح کیږي.اوهرکله چې د رضامندئ باوجود خپله وینه مباح نشوه.نود قصاص(وینه تویولو) لپاره به څوك حکم مقررول هم جائز او مباح نه وي

وَإِنْ حَكَّمَاهُ فِي دَمٍ خَطَإٍ فَقَضَى الْحَاكِمُ عَلَى الْعَاقِلَةِ بِالدِّيَةِ لَمْ يَنْفُذْ حُكْمُهُ اوكه دوه سړو په قتل خطا کې دې حکم جوړ کړو.نوده په عاقله باندې د دیت فیصله ورکړله.نو دده فیصله به نه نافذ کیږي.

**تشریح**﴾ که دوه سړو په قتل خطاء کې څوك حکم مقرر کړو.او حکم په عاقله (مددګار خاندان) باندې د دیت حکم ورکړو.نود حَکم داحکم به نافذ نه وي.

**دلیله**﴾ ځکه چې عاقله دې د خپل اړخه حَکم نه دې مقرر کړې.په دې وجه به عاقله باندې حَکم ته هیڅ ولایت هم حاصل نه وي.اوهرکله چې عاقله باندې حکم ته څه ولایت حاصل نه دې.نو په عاقله باندې به د حَکم حُکم هم نافذ او لازم نه وي.

## ثالث لپاره د بینه په سماعت یا په انکار د قسم باندې د فیصلې حکم

وَيَجُوزُ أَنْ يَسْمَعَ الْبَيِّنَةَ وَيَقْضِيَ بِالنُّكُولِ اود حَکم لپاره جائز دي.چه دې د بینه سماعت اوکړي.اود قسم په انکار باندې حکم ورکړي.

**حل اللغة**﴾ **یسمع**-اوري-**البینة**-ګواهان-**النکول**-انکار-

**تشریح**﴾ کله چې دوه کسانو څوك خپل حَکم مقرر کړو.نود حکم لپاره دا خبره جائز ده.که مدعی بینه پیش کړي.نو دده د بینه سماعت اوکړي.او مدعی سره د بینه نه کیدلو په صورت کې مدعی علیه نه قسم واخلي.اوچه مدعی علیه د قسم نه انکار اوکړي.نو حکم د مدعی په حق کې فیصله ورکړي.دغه ډول که مدعی علیه د مدعی په حق کې اقرار اوکړو.نو په دې اقرار سره به هم حَکم فیصله ورکوي.

**دلیله**﴾ دلیل دادې.چه د بینه سماعت، د مدعی علیه د قسم په انکار باندې فیصله ورکول، او په اقرار باندې حکم ورکول، درې واړه خبرې د شریعت موافق دي.او حَکم نه د شریعت موافق د هرکار اجازت وي.نو ددې خبرو پوره کولو اجازت به هم وي.

وَحُكْمُ الْحَاكِمِ لِأَبَوَيْهِ وَزَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ بَاطِلٌ اود حاکم حکم د خپل مورپلار، ښځې،او اولاد لپاره باطل دي.

**حل اللغة**﴾ ① **حکم**-فیصله-② **الأبوې**-مورپلار-

**تشريح** چې حاکم قاضی وی.اوکه حکم وی.که ده د خپل مورپلار یا اولاد یا د ښځې موافق څه حکم ورکړو.نودا حکم به معتبر نه وی.بلکه باطل به وی.
**دليله** دلیل دادې.چه د قضاء لپاره اهل شهادت شرط دې.یعنی کوم کس چې د شهادت اهل وی.هم هغه به د قاضی او حکم جوړیدلو اهل وی.اود تهمت د خطرې په وجه د چا شهادت چې دده د مورپلار، اولاد اود ښځې په حق کې نه قبلیږی.په دې وجه به ددوی په حق کې دده حکم او فیصله هم نه قبلیږی.

# كِتَابُ الْقِسْمَةِ

**ترجمه** (دا) کتاب د تقسیم (په بیان کښې) دې.
**تشريح الربط بما قبله** تقسیم هم یو قسم قضاوت دې ځکه چې فیصله هله مکمل کیږی چې تقسیم په کښې اوشی د دې وجې نې په کتاب اداب القاضی پسې کتاب القسمة راوړې دې
**تعريف القسمة** مغرب کښې دی.چه دا د اقتسام اسم دې.او په المعجم الوسیط کښې هم دې ته د اقتسام اسم وئیلی شوی دی.او په قاموس کښې دی.چه قسمة د تقسیم اسم دې.خو چونکه د اسم فاعل صیغه قاسم مستقل ده.په دې وجه مناسب دا ده.چه دا د ،،قسم الشئ،، مصدر اوګرځولې شی.لکه څنګه چه قهستانی کښې ذکر دی.
[مجمع الانهر ص۴۶۹ ج۲_ شامی ص۱۶۰ ج۵]
**مشروعيتها من القرآن** د الله تعالی ارشاد دې: ﴿وَإِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ أُولُوا الْقُرْبَىٰ﴾ ﴿وَنَبِّئْهُمْ أَنَّ الْمَاءَ قِسْمَةٌ بَيْنَهُمْ كُلُّ شِرْبٍ مُّحْتَضَرٌ﴾ ﴿لَّهَا شِرْبٌ وَلَكُمْ شِرْبُ يَوْمٍ مَّعْلُومٍ﴾
**مشروعيتها من السنة** د سنت نه هم ددې مشروعیت ثابت دې.ځکه چه نبی کریم ﷺ میراثونه او غنیمتونه تقسیم کړی دی.او نبی کریم ﷺ د خپلو بیبیانو په مینځ کښې نمبر مقرر کړې وو.او دنبی کریم ﷺ ارشاد دې.(واعط كل ذی حق حقه) او ددې په مشروعیت باندې د امت اجماع ده.
**شرطها** په تقسیم سره د منفعت نه فوت کیدل، په دې وجه به دکوهی، جرندې او غسل خانې (حمام) تقسیم نشی کولې.
**سببها** ټول یا بعضې شریکان دا مطالبه اوکړی.چه مونږ ته د خپل حق نه د فائدې حاصلولو داسې حق ملاو شی.چه په دې کښې د بل چا شرکت نه وی.نو که شریکان مطالبه اونکړی.نو تقسیم به صحیح نه وی.
**ركنها** هغه فعل د کوم په ذریعه چه د حصو په مینځ کښې جدائی او فرق واقع شی.لکه ناپ کول، تلل، پیمانه کول یا شمارل.
**حكمها** د هر شریك حصه جدا جدا متعین کول.

**قاضی دپاره د تقسیمونکی د مقررولو جواز**

(وَيَنْبَغِي لِلْإِمَامِ أَنْ يَنْصِبَ قَاسِمًا يَرْزُقُهُ مِنْ بَيْتِ الْمَالِ او قاضی دپاره مناسب دی.چه یو کس تقسیمونکې مقرر کړی.چه هغه ته د بیت المال نه روزی ورکوی. لِيَقْسِمَ بَيْنَ النَّاسِ بِغَيْرِ أَجْرٍ)چه هغه د خلقو په مینځ کښې د اجرت نه بغیر تقسیمول کوی.

**تشريح** د قاضی چونکه د قضاء په نورو کارونو کښې د مشغولیدو په وجه د خلقو زمکو ناپ کولو دپاره ګرځیدل مشکل دی.په دې وجه قاضی دپاره جائز دی.چه هغه داسې کس مقررکړی.چه هغه د

خلقو په مینځ کښې د اجرت نه بغیرتقسیم کوي.اوهغه ته به دبیت المال نه تنخواه ملاویږي.لکه څنګه چه قاضي ته ملاویږي.ځکه چه تقسیم هم یو قسم قضاء ده.

**دلیله** ځکه چه دخلقو جګړې په مکمل طریقه هغه وخت ختمیږي.چه د فیصلې مطابق تقسیم هم اوشي.او چونکه د تقسیمونکي فائده به ټولو خلقو ته رسیږي.نو د هغه خرچه هم د عامو خلقو په مالونوکښې کیدل پکار دي.او دهغوی مال د بیت المال دي.ځکه چه منفعت په اندازه د ضمان وي.نو چاته چه منفعت (فائده) حاصله شي.هم په هغه باندې د تقسیمونکي د خرچې بوج اچول پکار دي.

**قاضي دپاره د تقسیمونکي مقررولو دویم صورت**

(فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ نَصَبَ قَاسِمًا يَقْسِمُ بِالْأَجْرِ)نوکه قاضي داسې اونکړي.نو څوك دې تقسیمونکې مقرر کړي.چه هغه اجرت سره تقسیم کوي.

**تشریح** که قاضي په مذکوره طریقه باندې تقسیمونکې مقرر نکړي.نو بیا دې داسې اوکړي.چه څوك عادل سړې دې ددې کار دپاره مقررکړي.او اجرت دې دهغه خلقو نه اخلي.د چا تقسیم چه کوي.

**دلیله** ځکه چه دلته مخصوص نفع هم دوی ته رسیږي.نو اجرت به هم دوی ادا کوي.او قاضي دې د هغه اجرت مثلي هم مقررکړي.ګنې د حکومت د سړي کیدو په وجه به په خلقو ظلم کوي.او د زیات مطالبه به کوي.او خلق به په ورکولومجبور وي.خو افضله طریقه هم هغه ده.چه دده تنخواه د بیت المال نه مقرر کړې شي.چه په دې کښې خلقو دپاره آسانتیا ده.او د تهمت شبه هم ختمیږي.

**د تقسیمونکي د اوصافو بیان**

(وَيَجِبُ أَنْ يَكُونَ عَدْلًا مَأْمُونًا عَالِمًا بِالْقِسْمَةِ) او واجب دی.چه تقسیمونکې عادل وي.امانت دار وي.په تقسیم پوهیږي.

**تشریح** خو په دې زمانه کښې قاضي هم بدنیته وي.نو دا کار د بادشاه حواله کول پکار دي.چه هم هغه د هرکس تنخواه مقرر کړي.او قطعي طور باندې داسې اسباب پیدا کړي.چه هغې سره حکام (افسران) د عوامو نه هیڅ رشوت وانخستلې شي.او د مخکښې زمانې خلق به حق پرست وو.خاص کر قاضي به یو متقي، پرهیزګاره سړې وو.او د شریعت حکم به ئې ورکولو.چه د جهنم او د آخرت د عذاب د یرې به ئې رشوت وغیره طرف ته خیال هم نه کولو.بلکه د شریعت مطابق به ئې په ټولو کارونو کښې فیصله کوله.د دغه شان بادشاهانو او قاضیانو د عدل (او انصاف) په وجه بادشاهۍ روښانه وي.او د هغوی د یوې ورځې عدل دعبادت کونکودټول کال عبادت نه پورته وو.اواوس دا خبره پاتې نشوه.د دې وجې امام قدوري رحمه الله په دې عبارت کښې فرمائي چه په قاضي کښې ددې دریو صفاتو کیدل ضروري دي.چه عادل وي.امانت دار وي.او د تقسیم د مسئلو نه خبر وي.

**دلیله** ځکه چه تقسیم هم یو قسم قضاء ده.نود قاضي صفات په ده کښې هم کیدل پکاردي. او د تقسیم دپاره په دې باندې قدرت ضروري دې.او قدرت به علم سره راځي.او دده په قول باندې اعتماد ضروري دې.او اعتماد به هغه وخت وي.کله چه دې عادل او امانت دار وي.

**قاضي به په یو تقسیمونکي خلق نه مجبوروي**

(وَلَا يُجْبِرُ الْقَاضِي النَّاسَ عَلَى قَاسِمٍ وَاحِدٍ)او قاضي دې خلق په یو تقسیمونکي نه مجبوره وي.

**حل اللغة** ① **لایجبر**:نشي مجبوره کولې

**تشریح** یعني قاضي به خلق نه مجبوره کوي.چه هم په دې تقسیمونکي تقسیم اوکړي.

**دلیله** ځکه چه دا په عقد کولو باندې زبردستي ده.حالانکه عقدونو کښې زبردستي نه چلیږي.او که

قاضي يو كس متعين كړي.نو هغه به د خلقو نه زيات اجرت اخلي.اودا به گنړې.چه زما نه علاوه خو بل څوك تقسيمونكې هسې هم نشته.

### د مشترك تقسيم کونکو حکم

(وَلَايَتْرُكُ الْقُسَّامَ يَشْتَرِكُونَ)او نه به پرېږدي تقسيمونكي، چه هغوي شركت اوكړي.

**تشریح** تول تقسيمونكي يو ځاې شي.او تقسيمول نه كوي.نو په دوي دې قاضي پابندي اولګوي.
**دلیله** كه داسې اونكړي نو تول به اتفاق اوكړي.چه دومره اجرت به وي.نو اجرت به ګران شي.او كله چه ددوي شركت نه وي.نو هر يو به رامنډې وهي.چه چرته بل تقسيمونكي پسې لاړ نشي.نو په طريقه به اجرت كم وي.

### د تقسيم کونکې د اجرت حکم

وَأُجْرَةُ الْقِسَّامِ عَلَى عَدَدِ رُءُوسِهِمْ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (¹) او د تقسيم اجرت به د روؤسو(د تقسيم كونكو افرادو) دعدد مطابق وي.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز،

**تشریح** د تقسيمونكي اجرت به په كوم حساب سره وركولې شي.كله چه ديو كس حصه كمه وي.او د بل زياته وي؟ نو وې فرمائيل.چه د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز چه څومره سړي دي.په هغوي به برابر اجرت وي.د حصو د كمې زياتې لحاظ به نشي كولې.
**دلائله** ① د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل فرمائي.① چه په تقسيم كښې د هريو كس حصه جدا كولې شي.نو لكه څنګه چه لږ د زيات نه جدا كولې شي.هم دغه شان زيات د لږ نه جدا كولې شي.نو بيا د كم او زيات جدا كول برابر شو.نو اجرت به هم برابر وي.
② او دغه شان كله وړه حصه حساب مشكل جوړه وي.او كله ددې په عكس كيږي.نو اصل مدار په جدا كولو شو.چه په دې كښې فرق نشته.

وَقَالَا رَحِمَهُمَا اللَّهُ عَلَى قَدْرِ الْأَنْصِبَاءِ)فرمائيلي دي امام ابويوسف او امام محمد رحمهماالله ، چه د حصو د مقدار مطابق به وي.

**تشریح** **مسلك الصاحبين** صاحبين رحمهماالله فرمائي.چه څومره حصه وي.د هغې مطابق به اجرت وي.
**دلیلهما** څكه چه اجرت دلته د ملكيت د بار خرچه ده.نو څومره چه دچا ملكيت وي.هغومره به په هغه اجرت وي.مثلاً په يوكور كښې د زيد حصه نيمه ده.او د بكر دريمه حصه ده.او دخالد شپږمه ده.هغوي دا تقسيم كړو.چه ددې اجرت دولس روپۍ مقرر شو.نو د امام صاحب رحمه الله په نيز هر يو باندې درې درې روپۍ شوې.او د صاحبينو رحمهماالله په نيز زيد باندې شپږ روپۍ، اوبكر باندې څلور روپۍ، اوخالد باندې دوه روپۍ شوې.څكه چه ملكيت هم په دې حساب سره دې.

### د شريكانو د ميراث دعوه.او د قاضي نه د تقسيم مطالبه كول

وَإِذَا حَضَرَ الشُّرَكَاءُ عِنْدَ الْقَاضِي اوكله چه قاضي ته شريكان حاضر شي. وَفِي أَيْدِيهِمْ دَارٌ أَوْ ضَيْعَةٌ او ددوي په قبضه كښې كوريا زمكه وي وَادَّعَوْا أَنَّهُمْ وَرِثُوهَا عَنْ فُلَانٍ.او هغوي دعوه اوكړله.چه هغوي

---

¹) القول الراجح هوهذا قول الإمام ابوحنيفة رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (١٢٦\٤) وملتقى الأبحر(١٢٦\٤) وردالمحتار (١٨٠\٥) ونصب (٢٦٦\٥) نقلاً عن القول الراجح (٢٧٧\٢)۔

دا د فلانی نه میراث کښې اخستې ده. لَمْ يَقْسِمْهَا الْقَاضِي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به قاضی دا نه تقسیموی حَتَّى يُقِيمُوا الْبَيِّنَةَ عَلَى مَوْتِهِ وَعَدَدِ وَرَثَتِهِ تردې چه هغوی دده په مرګ او دده د وارثانو په تعداد باندې ګواهان قائم کړی.

**تشریح** > شریکان قاضی ته حاضر شی. او دا دعوه اوکړی. چه دا د فلانی میراث دې. مونږ ته ملاو شوې دې. او د تقسیم مطالبه اوکړی. د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ګواهان قائمول ضروری دی.

**دلیله** > دلیل دې. ددې حاصل دا دې. چه ترکومه پورې د مړی ترکه (میراث) تقسیم نکړې شی. هغه وخته پورې دا دمړی ملك دې. نو هرکله چه دا تر اوسه پورې د مړی ملك شو. نو د قاضی فیصله به قضاء علی المیت وی. او چونکه اقرار محدود حجت دې. چه دا په مړی باندې حجت نشی کیدې. په دې وجه به ګواهان قائمول ضروری وی. چه د هغې په بنیاد قضاء علی المیت اوکړې شی.

اوددې خبرې دلیل چه ترکه (میراث) د تقسیم نه وړاندې د مړی ملك دې؟ دا دې چه که مړی چا دپاره د وینځې وصیت کړې وی. او د موصی د مرګ نه پس د تقسیم نه وړاندې بچې پیدا شو. نو په دې بچی کښې به هم وصیت جاری کیږی. دغه شان به داسې زیاتوالی سره د مړی ترکه ادا کولې شی. ددې نه ثابته شوه. چه د تقسیم نه وړاندې د مړی ملك برقرار (باقی پاتې) دې.

وَقَالَا او صاحبین رحمهما الله فرمائی يُقَسِّمُهَا بِاعْتِرَافِهِمْ چه دا به ددوی د اقرار مطابق تقسیموی. وَيَذْكُرُ فِي كِتَابِ الْقِسْمَةِ او د تقسیم په رجسټر کښې به نې لیکی، أَنَّهُ قَسَمَهَا بِقَوْلِهِمْ. چه ده دا ددوی د قول مطابق تقسیم کړې ده.

**تشریح** > او د صاحبینو رحمهما الله په نیز به د ګواهانو قائمولو نه بغیر ددوی د اقرار مطابق تقسیم کولې شی. البته قاضی به دا یادداشت دپاره د تقسیم په رجسټر کښې دا لیکی. چه دا تقسیم ددوی د قول مطابق شوې دې. که بل څوك شریك راوځی. چه د هغه د نقصان اونشی.

**دلیلهما** > دلیل دا دې. چه زمکه د شریکانو په قبضه کښې ده. چه دا د ملك دلیل دې. او ددوی اقرار ددوی د صدق علامت دې. او هیڅ څوك ددوی په دعوه کښې مخالف نشته. نو لکه څنګه چه په دویم او دریم صورت کښې د ګواهانو قائمولو نه بغیر تقسیم شوې دې. دغه شان به دلته کښې هم کول پکار وی. ځکه چه د ګواهانو قائمولو ضرورت د منکر خلاف راپیښیږی. او دلته څوك منکر نشته. نو ګواهان قائمول به عبث وی. په دې وجه به قاضی د ګواهانو قائمولو نه بغیر تقسیموی. خو تقسیم به په کاغذونو (رجسټر) کښې لیکی. چه ما دا تقسیم ددوی په اقرار باندې کړې دې. چه دا تقسیم هم ددوی حده پورې محدود پاتې وې. او که اتفاق سره بل څوك شریك وی. هغوی پورې متعدی نشی.

**اقسام التقسیم** > **تنبیه** > د تقسیم دوه قسمونه دی① تقسیم بالبینه② تقسیم بالاقرار — رومبې به غیر طرف ته متعدی وې. او دویم به غیر طرف ته متعدی نه وی. که تقسیم اقرار سره شوې وی. او د مړی ام ولد او دده مدبر د آزادئ دعوه اوکړله. نو قاضی به ددوی د آزادئ فیصله نه کوی. ترکومه پورې چه دا دواړه د مولا په مرګ باندې ګواهان قائم نکړی. ځکه چه دا تقسیم بالاقرار دې. چه دا غیر طرف ته نه متعدی کیږی. او که د تقسیم بالبینه صورتی وی. او ام ولد او مدبر د آزادئ دعوه اوکړله. نو قاضی به په دوی باندې د مولا په مرګ باندې ګواهان قائمول نه لازمی کوی. بلکه د ګواهانو قائمولو نه بغیر به ددوی د آزادئ فیصله ورکوی. ځکه چه دا تقسیم غیر طرف ته متعدی کیږی.

وَإِنْ كَانَ الْمَالُ الْمُشْتَرَكُ مَا سِوَى الْعَقَارِ او که مشترك مال د زمکې نه علاوه (د بل څه منقوله څیز) وی وَادَّعَوْا أَنَّهُ مِيرَاثٌ. او هغوی دعوه اوکړی. چه دا میراث دې قَسَمَهُ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو قاضی به

ددوی د ټولو د قول مطابق دا تقسیموی.

**تشريح** ﴿ په دې عبارت کښې دويم صورت بيانوی که د زمکې نه علاوه په منقوله څيزونو کښې د يو څيز په باره کښې هم دا دعوه اوکړی.او د تقسيم مطالبه اوکړی.

وَإِنِ ادَّعَوْا فِي الْعَقَارِ اوکه هغوی د زمکې په باره کښې دعوه اوکړی أَنَّهُمُ اشْتَرَوْهُ قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ) چه هغوی دا اخستې ده.نو قاضی به دا ددوی په مينځ کښې تقسيموی.

**تشريح** ﴿ په دې عبارت کښې دريم صورت بيانوی يعنی مسئله هم د زمکې ده.خو په ميراث کښې د ملاويدو دعوه نه وی.بلکه د اخستلو دعوه وی. نو په آخری دواړو مسئلو کښې زمونږ د ثلاثه عالمانو اتفاق دې.چه دوی کښې د ګواهانو قائمولو حاجت نشته.بلکه د ګواهانو قائمولو نه بغير به قاضی دا تقسيموی.او ړومبۍ مسئله اختلافی ده.

**د شريکانو د ملك سبب نه خودلو سره د تقسيم د مطالبې حکم**

وَإِنِ ادَّعَوُا الْمِلْكَ وَلَمْ يَذْكُرُوا كَيْفَ انْتَقَلَ إِلَيْهِمْ او که دوی د ملك دعوه اوکړله.او دوی دا ذکر نکړل.چه دوی طرف ته دا څنګه منتقل شوه. قَسَمَهُ بَيْنَهُمْ نو قاضی به دا ددوی په مينځ کښې تقسيموی.

**تشريح** ﴿ شريکان قاضی ته حاضر شی.او د تقسيم دعوه اوکړی.او دا او نه ښائی.چه دا زمکه دوی ته څنګه ملاو شوې ده.نو چونکه دوی د هيڅ چا دپاره د مخکنی ملکيت اقرار نه دې کړې.چه دې سره قضاء علی الغير لازميږی.په دې وجه به قاضی ددوی په مينځ کښې دا زمکه تقسيموی.
**دليله** ﴿ ځکه چه دې تقسيم کښې قضاء علی الغير نشته. ځکه چه دوی د ځان نه علاوه دپاره د ملك اقرار نه دې

**که د خپلې خپلې حصې نه انتفاع اخستل ممکن وی نو د يوکس په مطالبې به تقسيم کولې شی**

(وَإِذَا كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الشُّرَكَاءِ يَنْتَفِعُ بِنَصِيبِهِ اوکله چه شريکانو کښې هريوکس د خپلې حصې نه انتفاع حاصلولې شی. قَسَمَ بِطَلَبِ أَحَدِهِمْ) نو قاضی به په دوی کښې د يوکس په طلب باندې تقسيم کوی.(اګرچه دويم انکار کوی).

**تشريح** ﴿ که د تقسيم نه روستو هر شريك د خپلې حصې نه نفع حاصلولې شی.نو هرکله چه شريکانو کښې يو کس د تقسيم مطالبه اوکړله.نو قاضی به تقسيم کوی.او په دې کښې به قاضی دپاره منکر باندې زبردستی جائز وی.
**دليله** ﴿ ځکه وړاندې تيرشوی دی.چه کوم څيزونه د تقسيم احتمال لری.هغه کښې تقسيم کول لازمی حق دې.

**په دوو شريکانو کښې د يوکس دکمې حصې په وجه جدا انتفاع نشی کيدې نو د تقسيم حکم**

(وَإِنْ كَانَ أَحَدُهُمْ يَنْتَفِعُ وَالْآخَرُ يَسْتَضِرُّ بِهِ لِقِلَّةِ نَصِيبِهِ اوکه په دوی کښې يوکس (دخپلې حصې نه) نفع اخستلې شی.او دويم کس ته به د خپلې حصې د کموالی په وجه ضرر وی. فَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْكَثِيرِ قَسَمَ نو که د زياتې حصې والا مطالبه اوکړی.نو قاضی به تقسيم کوی. وَإِنْ طَلَبَ صَاحِبُ الْقَلِيلِ لَمْ يَقْسِمْ)اوکه د لږې حصې والا مطالبه اوکړی.نو قاضی به تقسيم نه کوی.

**حل اللغة** ﴿ ① **يستضر**: ضرر رسی ② **ينتفع**: نفع اخلی

**تشريح** ﴿ دوه شريکان دی.په دوی کښې د يو شريك حصه ډيره کمه ده.چه د تقسيم نه روستو د کوم نه

انتفاع نشي كيدي.او د دويم حصه زياته ده.چه د تقسيم نه روستو هم د هغې نه فائده اخستلې شي.او په دوی كښې يوكس د تقسيم مطالبه كوى.نو اوس به قاضى څه كوى؟ نو په دې كښې درې قوله دي رومبې قول د امام قدورى رحمه الله دې.چه طلب كونكې كه د زياتې حصې مالك دې.نو تقسيم به كولې شي.او د كمې حصې والا په طلب به تقسيم نشي كولې.

**دليله>** ځكه د رومبى طلب معتبر دې.ځكه چه دهغه نفع برقرار ده.او د دويم طلب معتبر نه دې.ځكه چه هغه پخپلې بربادئ پسې لګيدلې دې.

## د جدا حصې نه د انتفاع نه كيدو باوجود رضامندئ سره د تقسيم حكم

(وَإِنْ كَانَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَسْتَضِرُّ او كه هر يو ته ضرر وى. لَمْ يَقْسِمْهَا إِلَّا بِتَرَاضِيهِمَا) نو قاضى به دا نه تقسيموى.خو ددوى دوارو رضامندئ سره.

**حل اللغة>** ① **تراضيهما:** په راضى كيدو د دوارو

**تشريح>** يعنى كه ديوكس حصه دومره لږه وى.چه د تقسيم نه روستو د انتفاع قابل پاتې نشى.نو قاضى هغه وخت تقسيمولې شى.كله چه دواړه راضى شى.ګنى نه به تقسيموى.

**دليله>** ځكه د تقسيم موضوع هم دا وه.چه په دې سره د منفعت تكميل كيدې شى.او دلته منفعت فوت كول دى.البته كه دواړه راضى وى.نو قاضى به تقسيم كوى.ځكه چه دا ددوى دوارو حق دې.او خپل معاملات او حالات هغوى ښه پيژنى.البته د قاضى كار په ښكاره باندې اعتماد كول دى.او ښكاره ضرر او نقصان دې.نو د يو په مطالبه باندې به په ښكاره باندې اعتبار كوى.او د دوارو مطالبه به د ښكاره بدلونكې وى.ځكه د دوارو رضامندئ نه دا معلوميږى.چه كيدې شى.دې كښې څه منفعت وى.علامه زيلعى رحمه الله په تبيين كښې فرمائيلى دى.چه قاضى به د دوارو په مطالبه باندې هم تقسيم نه كوى.

## په منقوله يو جنس څيزونو كښې د شريكانو په مطالبې سره د تقسيم حكم

(وَيُقْسَمُ الْعُرُوضُ إِذَا كَانَتْ مِنْ صِنْفٍ وَاحِدٍ)او سامانونه به قاضى تقسيموى.(په زبردستئ سره).كله چه د يو جنس څنې وى.

**تشريح>** په منقول څيز كښې شريكانو د قسمت مطالبه اوكړله.او هغه يو جنس دې.مثلاً كپړې دى.نو د جنس د متحد كيدو په وجه به دلته برابرى حاصليږى.او په منفعت كښې به تكميل حاصليږى.او دا د تقسيم مقصد او موضوع ده.نو قاضى به تقسيموى.او په دې كښې به قاضى دپاره منكر باندې زبردستى جائز وى.

## په دوو جنسونو كښې قاضى دپاره د تقسيم حكم

(وَلَا يَقْسِمُ الْجِنْسَيْنِ بَعْضَهُمَا فِي بَعْضٍ) او قاضى به په دوو جنسونو كښې تقسيم نه كوى.په دې كښې بعض په بعضو كښې،

**تشريح>**.په رومبى صورت كښې خو قاضى ته د زبردستى كولو ولايت حاصل دې.خو كه دوه جنسونه وى.نو بيا قاضى ته ولايت د زبردستئ نشته.مثلاً اوښان او اسونه وى.نو په دې كښې به خو اختلاط (ګډون) نه وى.چه تقسيم دلته د جدا والى دپاره اوګرځولې شى.بلكه دا به د معاوضې صورت وى.او په معاوضه كښې زبردستى نشى كولې.بلكه ددې آسانه طريقه هم دا ده.چه شريكان راضى شى.نو بيا داسې تقسيم جائز دې.

## غلام او جواهرات قاضي په زبردستئ تقسيمولې شي اوكه نه؟

(وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ لَايَقْسِمُ الرَّقِيقَ وَالْجَوَاهِرَ)(¹) او اوفرمائيل امام ابوحنيفه رحمه الله قاضي به تقسيم نه كوي د غلام او د هيرو ددوى دوارو د تفاوت په وجه،

**حل اللغة>** ① **الرقيق**: خالص غلام ② **الجواهر**: جمع د جوهرة، ملغلره

**تشريح>** په غلامانو كښې خپل مينځ كښې ډير زيات تفاوت دې.او هم دغه شان په هيرو كښې، نو قاضي به په دې كښې زبردستئ سره تقسيم نه كوي.

**دليله>** دليل دا دې.چه د صاحبينو رحمهماالله غلامان په څاروو باندې قياس كول صحيح نه دى.ځكه چه څاروو كښې د جنس د اتحاد په صورت كښې لږ تفاوت دې.او په انسانانو كښې د باطني معانو او باطني كمالاتو د اختلاف په وجه ډير زيات تفاوت دې.هم دا وجه ده.چه فقهاء سړى او ښځې مختلف الجنس شماري.او په څاروو كښې نر او ماده د يو جنس شماري.

(وَقَالَ:ابويوسف ومحمد يَقْسِمُ الرَّقِيقَ)او صاحبين رحمهماالله فرمائي.د غلامانو تقسيم به كوي.

**تشريح> مسلك الصاحبين>** صاحبين رحمهماالله فرمائي.چه د غلامانو جنس متحد دې.په دې وجه به تقسيم كولې شي.

**دليلهما>** لكه څنګه په اوښانو او چيلو كښې د ډير زيات تفاوت باوجود تقسيم جائز دې.دغه شان په غنيمت كښې چه كوم غلامان ملاو شي.د هغوى تقسيم جائز دې.نو دلته به هم غلامانو كښې تقسيم جائز وي.

**الجواب عنه>** دا قياس هم صحيح نه دې. ځكه چه غنيمت كښې د مجاهدينو حق صرف ماليت كښې دې.او په مذكوره غلامانو كښې د شريكانو حق عين او ماليت دوارو كښې دې.هم دا وجه ده.چه امام ته حق شته.چه د غنيمت غلامان خرڅ كړي.او د هغوى قيمت مجاهدينو كښې تقسيم كړي.او دلته قاضي ته ددې حق نشته.معلومه شوه.چه مذكوره قياس صحيح نه دې.

**الاقسام الثلاثة للجواهر>** په هيرو كښې د تقسيم نه كولو بيان كړې دې.اوس دلته درې قوله بيانوى① كه ددې جنس مختلف وي.نو بيا قاضي زبردستئ سره تقسيم نشى كولې.لكه څنګه چه د غمو او ياقوتو جنس مختلف دې.

② په غټو هيرو كښې تفاوت زيات دې.او په ورو كښې كم دې.نو په رومبى كښې تقسيم صحيح نه دې.او په دويم كښې جائز دې

③ مطلقاً جائز نه دې.ځكه چه هيرو كښې د مطلق غلامانو نه زيات جهالت دې.او هركله چه غلامانو كښې زبردستئ سره تقسيم نه كيږي.نو په هيرو كښې به په درجه اولى نه وي.

**دليله>** ددې خبرې دليل چه په هيرو كښې تفاوت د غلام دتفاوت نه زيات دې دا دې كه يوكس د يوې ښځې سره نكاح اوكړله.او په مهر كښې ئې د ياقوتو يا غمو نوم واخستلو.نو چونكه په دې كښې ډير زيات تفاوت دې.په دې وجه به دا تسميه معتبر نه وي.اوكه په غلام ئې نكاح كړې وي.نو دلته كښې تسميه صحيح ده.د هداية په دريم جلد باب المهر كښې ددې تفصيلات موجود دى.

---

¹) القول الراجح هو قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى الأبحر (۱۲۰\٤) وكنز(ص،۳۵٦) والدرالمختار (۱۸۳\۵) نقلاً عن القول ا لراجح (۲۷۸\۲)۔

### د غسل خاني ، کوهي.او د جرندي د تقسيم مسئله

(وَلَا يُقْسَمُ حَمَّامٌ وَلَا بِئْرٌ، وَلَا رَحًى إِلَّا أَنْ يَتَرَاضَى الشُّرَكَاءُ) او غسل خانه او کوهي او جرنده به نشي تقسيمولې.خو دا چه شريکان راضي شي.

**حل اللغة**﴿ ① حمام: د گرمو اوبو غسل خانه ② بئر: کوهي ③ رحي :جرنده

**تشريح**﴿ که دا څيز داسې وي.چه دا تقسيم نه پس چا دپاره هم قابل د انتفاع پاتې نشي.کوم چه ددې نه مقصود وو.نو دلته به تقسيم سره ضرر وي.په دې وجه قاضي د رضامندئ نه بغير دا نشي تقسيمولې.او په رضامندئ سره ئې تقسيمولې شي.د غسلخاني، کوهي، او جرندې هم دا حال دې.

### د وارثانو په حاضريدو او ګواهانو قائمولو سره د تقسيم حکم

(وَإِذَا حَضَرَ وَارِثَانِ عِندَ القَاضِي وَأَقَامَا البَيِّنَةَ عَلَى الوَفَاةِ وَعَدَدِ الوَرَثَةِ)او کله چه دوه وارثان حاضر شي.او د وفات او وارثانو په تعداد باندې ګواهان قائم کړي. (وَالدَّارُ فِي أَيْدِيهِمْ)او کور د هغوی په قبضه کښې وي. (وَمَعَهُمْ وَارِثٌ غَائِبٌ)اوهغوی سره څوك غائب وارث وي. (قَسَمَهَا القَاضِي بِطَلَبِ الحَاضِرِينَ) نو قاضي به دا د حاضرينو په مطالبه باندې تقسيموي (وَيُنَصِّبُ وَكِيلًا يَقْبِضُ نَصِيبَهُ)او يو وکيل به مقرر کوي.چه هغه د غائب په حصه باندې قبضه اوکړي.

**تشريح**﴿ که دوه وارثان حاضر شو.اود مورث په وفات باندې او د وارثانو په تعداد باندې ئې ګواهان قائم کړل.او يو بل وارث هم دې.چه هغه غائب دې.اوکور هم ددوی په قبضه کښې دې.کوم چه موجود دی.نو قاضي به دا ددوی په مينځ کښې تقسيم کړي.او غائب دپاره به يو وکيل مقرر کړي.چه دې د هغه په حصه باندې قبضه اوکړي.

**دليل**﴿ ځکه چه دې کښې د ټولو رعايت دې.او د غائب او بچي دپاره دشفقت سبب دې.او د ګواهانو قائمولو مخکښې اختلاف کوم چه د امام صاحب او صاحبينو ﷫ په مينځ کښې وو.هغه دلته هم شته.

### د يو مشتري په غير موجودګئ کښې قاضي دپاره د تقسيم حکم

(وَلَوْ كَانُوا مُشْتَرِينَ لَمْ يَقْسِمْ مَعَ غَيْبَةِ أَحَدِهِمْ) او که دوی اخستونکي وي.نو قاضي به په دوی کښې د يوکس په غائب کيدو سره نه تقسيموي.

**تشريح**﴿ دوه کسان قاضي ته حاضر شو.او ددوی په قبضه کښې يو کور وغيره دې.دعوه دعوه اوکړله.چه مونږ دا کور د فلاني سړي نه اخستې دې.او مونږ درې شريکان يو.په مونږ کښې يو غائب دې.او مونږ تقسيم غواړو.نو آيا قاضي تقسيمولې شي؟ نو وې فرمائيل.که ټول موجود وي.نو قاضي به تقسيمولو.خو دلته به نه تقسيموي.اګرچه حاضر شوی شريکان په اخستلو باندې ګواهان هم قائم کړي.بيا به هم قاضي نه تقسيموي.

**الاشکال**﴿ که څوك اعتراض اوکړي چه په اولني صورت کښې يعني کله چه يو وارث غائب وي.نوهلته د تقسيم کولو حکم ورکولې شي نو دلته په دې صورت کښې د تقسيم نه انکار ولې کولې شي

**الجواب عنه**﴿ نو ددې نه جواب دا دې چه په ړومبي صورت کښې په شريکانو کښې يوکس دمړي د طرفه خصم مقررولې شي.او دلته د نيابت هيڅ صورت نشته.بائع خو د مينځ نه بالکل خارج شوې دې.اوپه حاضر شريك کښې هم دا صلاحيت نشته.چه دې د غائب شريك نائب او خليفه جوړ شي.نو دلته قضاء على الغائب لازميږي.او په ړومبي صورت کښې قضاء على الغائب نشته.بلکه د متخاصمينو مخامخ قضاء ده.

(وَإِنْ كَانَ الْعَقَارُ فِي يَدِ الْوَارِثِ الْغَائِبِ أَوْشَيْءٌ مِنْهُ)اوكه زمكه يا ددې څه حصه د غائب وارث په قبضه كښې وى.نو قاضى به نه تقسيموى. لَمْ يُقْسَمْ)اوهم دغه شان (حكم دې) كله چه د غائب د مودع (امين) سره وى نو تقسيم به نشى كولې.

**تشريح** دا صورت د پنځمې مسئلې تتمه ده.په هغه مسئله كښې كله چه زمكه د حاضرينو شريكانو په قبضه كښې وه.حكم دا وو.چه تقسيم به كولې شى.او په تتمه كښې ئې اوفرمائيل. كه زمكه هم د هغه وارث په قبضه كښې ده.كوم چه غائب دې.كه ټوله د هغه په قبضه كښې وى.او كه بعضې وى.يا دهغه غائب وارث مودع (امين) سره وى. نو په دې صورتونو كښې كه ګواهان قائم شوى وى.اوكه قائم شوې نه وى.بهرحال قاضى به تقسيم نه كوى.

**دليله** ځكه چه د غائب او ماشوم قبضه ده.حالانكه ددوى هيڅ څوك مقرر شوې نائب او وكيل موجود نه دې.نو كه دلته تقسيم جائز اوګرځولې شى.نو د داسې خصم نه بغير قضاء لازميږى.كوم چه ددوى د طرفه نائب وى.او دا به قضاء على الغائب او په ماشوم باندې قضاء وى.چه دا جائز نه ده.

## د يو وارث په حاضريدو سره قاضى دپاره د تقسيم حكم

(وَإِنْ حَضَرَوَارِثٌ وَاحِدٌ لَمْ يَقْسِمْ)اوكه يو وارث حاضر وى.نو قاضى به تقسيم نه كوى.

**حل اللغة** ① مقاسم (بالكسر) اسم فاعل مقاسم ،تقسيمونكې (بالفتح) اسم مفعول تقسيم كړې شوې

**تشريح** دا هم د مذكوره تتمه جزء دې.كه صرف يو وارث حاضر وى.او ګواهان هم قائم كړى.بيا به هم قاضى تقسيم نه كوى.كه زمكه د هغه په قبضه كښې وى.او كه د غير په قبضه كښې وى.

**دليله** ځكه چه فيصلې دپاره كم ازم كم دوه شريكان حاضريدل ضرورى دى.ځكه دانشى كيدې.چه يو سړې دې مخاصم هم وى.او مخاصم هم وى.او هم دې مقاسم وى.او مقاسم هم وى.په دې وجه دلته تقسيم نشى كولې.

## په يو ښاركښې د مشتركو كورونو د تقسيم طريقه

وَإِذَاكَانَتْ دُورٌمُشْتَرَكَةٌ فِي مِصْرٍوَاحِدٍ)اوكله چه په يو ښار كښې مشترك كورونه وى. قُسِمَتْ كُلُّ دَارٍعَلَى حِدَتِهَا فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله [1]) نو د امام ابوحنيفه رحمه الله د قول مطابق به قاضى هر يو كور جدا جدا تقسيموى.

**تشريح** هر كور جداجدا تقسيمول دا تقسيم خانله خانله دې.نو ټول يو خانې ملاوول او تقسيمول دا تقسيم د جمعې دې.نو په يو ښار كښې مختلف كورونه دى.نو ددې تقسيم به څنګه كيږى؟ نو وې فرمائيل.چه د امام صاحب رحمه الله په نيز به هر كور جدا جدا تقسيمولې شى.

**دليله** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل چه ونې شمارل دې مطلب دې.اوكه امونه خوړل. يعنى صرف د معنى او مقصود اعتبار كيږى.او دا ښكاره ده.چه په مقصود كښې د ښارونو او محلو بدليدو سره ډير زيات اختلاف پيدا كيږى.دغه شان د ګاونديانو په وجه، او د جمات نه د لرې والى او نيزدې والى په وجه ډير زيات اختلاف وى.نو هركله چه خبره دغه شان ده.نو بيا به يو خانې ملاوولو سره تقسيم كښې برابرى

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى مجمع الأنهر (١٤\١٣٠) وملتقى (١٤\١٤٠) والخانية (٢١٣\٣) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٧٩)۔

نه کیږي.کوم چه د تقسیم اصلي مقصد دي.

وَقَالَا: إِنْ كَانَ الْأَصْلَحُ لَهُمْ قِسْمَةَ بَعْضِهَا فِي بَعْضٍ قَسَمَهَا) او صاحبین رحمهما الله فرمائی.که شریکانو دپاره په دې کښې بعض د بعضو سره ملاوولو کښې تقسیم غوره وی.نو هم دغه شان دې تقسیم کړی.

**تشریح** > **مسلک الصاحبین** > صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د قاضي په رائې باندې موقوف ده.که جدا جدا تقسیمول غوره ګڼړي.نو داسې دې اوکړي.او که یوځائې ملاوول او تقسیمول ددوی دپاره غوره ګڼړي.نو دا دې اختیار کړي.

**دلیلهما** > اوسیدل خوپه هرکور کښې حاصلیدې شي.خو په بعضو کورونو کښې چه کوم آرام او راحت ملاویږي. هغه په نورو کښې نه ملاویږي.داسې کیږي.او دا وړاندې تیر شوی دی.چه د یوجنس څیزونه به یو ځائې ملاوولو سره تقسیمیږي.او مختلف جنسونو والا به جدا جدا تقسیمیږي.نو صاحبین رحمهما الله فرمائی .چه په کور کښې دوه جهته دی.د اتحاد د جنس هم، او د اختلاف د جنس هم، نو مونږ د دواړو رعایت کولو سره دا معامله د قاضي رائې باندې پریخودله.هغه د اتحاد جنس اعتبار کولو سره تقسیم د جمعې اختیار کړی.نو کولې شي.او د جنس د اختلاف اعتبار کولو سره جدا جدا تقسیم اختیار کولې شي.نو هم کولې شي.که مونږ دا اوګورو.چه کورونه صرف په اوسیدو کښې تول برابر دی.او په نوم او صورت کښې هم اتحاد شته.نو ددې نه د جنس د اتحاد پته لګی.اوکه نورو عوارضو ته اوکتلې شي.نو چونکه په معنی کښې تفاوت دې.نو ددې نه د جنس د اختلاف پته لګی.بهرحال مونږ د دواړو لحاظ کړې دې.

**د کور او زمکې یا د کور او دوکان د تقسیم طریقه**

(وَإِنْ كَانَتْ دَارٌ وَضَيْعَةٌ أَوْ دَارًا وَحَانُوتًا قُسِمَ كُلُّ وَاحِدٍ عَلَى حِدَةٍ)

**حل اللغة** > ① **حانوت**: دکان

**تشریح** > زمکه او کور، دوکان او کور مختلف جنسونه دی.نو ددې تقسیم به جدا جدا وی.او ددې مختلف جنس والا کیدل امام قدوري او امام خصاف رحمهما الله نقل کړی دی.خو په مبسوط کښې یو جزئیه ده.چه د کور په بدله کښې دوکان کرایه باندې اخستل، یعنی کور هم په کرایه باندې وی.او ددې اجرت دوکان وی.نو دا جائز ده.ددې نه معلومه شوه.چه کور او دوکان د یو جنس دی.اوس دوه صورتونه دی.یا خو دا اوونیلې شي.چه په دې مسئله کښې دوه روایتونه دی.یو د جسن د اتحاد، او دویم اختلاف د جنس، یا بیا داسې اوونیلې شي.چه دی خو دواړه مختلف جنس والا، خو د یو جنس کیدو شبه موجود ده.او د سود په طرف کښې شبه د حقیقت په درجه کښې وی.په دې وجه دلته د سود د حرمت په وجه مذکوره اجارې ته نا جائز اوونیلی شو.

اود سود شبه په دې وجه ده چه هرکله چه کور او دوکان یو جنس شمارلې شي.نو دلته اګرچه کمې زیاتې جائز وی.خو قرض نه جائز کیږي.او په اجاره کښې منافع په یو ځل نه وی.بلکه ګویا قرض دې.چه دا په مزه مزه ادا کولې شي.په دې مقام عنایه، نتائج الافکار،او مجمع الانهر کښې سوالونه او جوابونه دی.د چا چه شوق وی.اودې ګوری.

**د تقسیم طریقه**

وَيَنْبَغِي لِلْقَاسِمِ أَنْ يُصَوِّرَ مَا يَقْسِمُهُ) او تقسیمونکی دپاره مناسب دی.چه کوم تقسیموی.د هغې نقشه جوړه کړی. (وَيُعَدِّلُهُ) يَعْنِي يُسَوِّيَهُ عَلَى سِهَامٍ او دا د تقسیم په حصو باندې برابر کړی. (وَيَذْرَعَهُ)

لِيَعْرِفَ قَدْرَهُ او ددې ناپ اوکړی.چه ددې مقدار معلوم شی(وَيُقَوِّمَ الْبِنَاءَ)او د عمارت قیمت اولګوی. (وَيُفْرِدَ كُلَّ نَصِيبٍ عَنِ الْبَاقِي بِطَرِيقِهِ وَشِرْبِهِ)او هره حصه دې د باقی نه جدا کړی.د هغې د لارې او اوبو سره. حَتّٰى لَا يَكُونَ لِنَصِيبِ بَعْضِهِمْ بِنَصِيبِ الْآخَرِ تَعَلُّقٌ) تردې چه په دې کښې د بعضو د حصې د بعضو سره تعلق پاتې نشی.

**تشریح** > دا تولې خبرې د تقسیمونکی د آسانتیا دپاره دی.چه مخکښې ددې زمکې نقشه په کاغذ باندې جوړه کړی.چه په ذهن کښې وی.او ددې څومره حصه دار دی.د هغې په اعتبار سره د زمکې حصې برابرې کړی.او د هغې ناپ اوکړی.چه معلومه شی.چه څومره ده.او چونکه آخر کښې قیمت ته هم ضرورت راپیښیدې شی.په دې وجه دې د مخکښې نه د عمارت قیمت اولګوی.

**دلیله** > دا د دې دپاره چه جګړه بالکل ختمه شی.نو که ممکن وی.د هر یوکس حصه دې سره د لارې او اوبو جدا جدا کړی.

**حکم الافراز بالطریق والشرب** > امام قدوری رحمه الله چه کوم دا فرمائیلی دی.چه هره یوه حصه سره د لارې او اوبو جدا کړی.دا د افضلیت بیان دې.ګنی که قاضی داسې اونکړی.یا داسې ممکن نه وی.نو بیا هم جائز ده.او خسنړې اچول څه ضروری نه دی.بلکه د زړونو مطمئن کولو، او ددې تهمت لرې کولو دپاره دی.چه قاضی د فلانی طرف داری کړې ده.ګنی که قاضی د خسنړی نه بغیر پخپله حصې مقرر کړی.نو کولې شی.څکه چه قاضی ته ولایت د الزام حاصل دې.او دا هم د قضاء کار دې.اوکه تقسیمونکې وی.نو هغه هم د قاضی نمائنده (نائب) دې.هغه هم حصې مقررولې شی.

**د زمکې حصې مقررول،نومونه مقررول، یا قرعه اندازی کول**

وَيَكْتُبُ أَسَامِيَهُمْ او د هغوی نومونه به اولیکی وَيَجْعَلُهَا قُرْعَةً اوجوړه به کړی د هغوی خسنړې ثُمَّ يُلَقِّبُ نَصِيبًا بِالْأَوَّلِ بیا دې نومونه مقرر کړی.د یوې حصې رومبی سره، وَالَّذِي يَلِيهِ بِالثَّانِي او کومه چه دې سره متصل ده.هغه په دویم وَالَّذِي يَلِيهِ بِالثَّالِثِ او کومه چه دې سره متصل ده.هغه په دریم وعلی هذا او دغه شان وریسې قیاس کوه ثُمَّ يُخْرِجُ الْقُرْعَةَ،فَمَنْ خَرَجَ اسْمُهُ أَوَّلًا فَلَهُ السَّهْمُ الْأَوَّلُ بیا دې قرعه (خسنړې) اوباسی.نو د چا نوم چه مخکښې راوخې.هغه دپاره رومبۍ حصه ده. وَمَنْ خَرَجَ ثَانِيًا او دچا چه دویم راوخی ،فَلَهُ السَّهْمُ الثَّانِي .هغه دپاره دویمه حصه ده.

**حل اللغة** > ① **القرعة**: خسنړې

**تشریح** > یعنی د زمکې حصې دې جوړې کړی.د هغې نومونه دې مقرر کړی.چه دا رومبۍ حصه ده.او ددې نه روستو والا دویمه ده.او وریسې دریمه ده.بیا دې قرعه اندازی اوکړی.(خسنړې دې اوباسی). نو د چا نوم چه مخکښې راوخی.هغه ته دې رومبۍ حصه ورکړی.او د چا چه دویم ځل راوخی.د هغه دویمه حصه ده.او د دریم دریمه حصه ده.

**القاعدة** > اوس دلته دا سوال وو.چه زمکه به په څومره حصو تقسیموی؟ نو دلته ددې جواب ورکوی.او یوه قاعده کلیه بیانوی.که شریکان ډیر وی.او ددوی حصې برابر وی.نو تقسیم به د سرو د تعداد مطابق وی.،،وهوظاهر،، او که په حصو کښې تفاوت دې.نو کومه حصه چه د تولو نه وړه ده.هغه واخله.او په دغومره حصو باندې توله زمکه تقسیم کړه.په دې سره به د تولو حساب راوخی.مثلاً درې شریکان دی.او د تولو حصه برابر ده.نو په دریو به تقسیمولې شی.اوکه درې شریکان دی.او د یوحصه نصف ده.او د دویم دریمه حصه ده.او د دریم کس شپږمه ده.نو د زمکې به شپږ حصې کولې شی.بیا

به ربمبی ته دري حصې او دویم ته دوه حصې او دریم ته به یوه حصه ورکولې شي.دغه شان څلور شریکان دی.د یو نصف ده.او د دویم دریمه حصه ده.او د دوو دولسمه حصه ده.نو د زمکې به دولس حصې جوړولې شي.آخری دواړو ته به یوه یوه او دویم ته به څلور حصې او ربمبی ته به شپږ حصې ملاویږی.

**په تقسیم کښې دراهم او دنانیر د شریکانو په رضامندئ سره شریکولې شي**

| |
|---|
| (وَلَایَدْخُلُ فِی الْقِسْمَةِ الدَّرَاهِمُ وَالدَّنَانِیْرُ اِلَّا بِتَرَاضِیْهِمْ په تقسیم کښې دې دراهم او دنانیر نه داخلوی.خو د شریکانو په رضامندئ سره |

**تشریح** د زمکې په تقسیم کښې به د شریکانو د رضامندئ نه بغیر دراهم او دنانیر نشی داخلولې.
**دلیله** څکه چه ددوی شرکت په زمکه کښې دې.په دراهمو کښې نه دې.او تقسیم په هغه څیز کښې وی.په کوم کښې چه شرکت وی.او هغه زمکه ده.او په داسې کولو سره برابری نشی کیدې.څکه د چا په حصه کښې چه زمکه راغله.نو هغه خو په دې قبضه کونکې شو.او دا قبضه کونکې به چه چاته روپۍ ورکوی.هغه په ده باندې اوس واجب دی.چه ورکړې ئې نه دی.نو برابری چرته پاتې شوه؟

**که د تقسیم په وخت د لارې او لختی ذکر نه وی شوې نو اوس به څه کیږی؟**

| |
|---|
| (فَاِنْ قَسَمَ بَیْنَهُمْ وَلِاَحَدِهِمْ مَسِیْلٌ فِیْ مِلْكِ الْاٰخَرِ نوکه قاضی ددوی په مینځ کښې تقسیم اوکړو.او په دوی کښې د یوکس لختې دې.د بل کس په حصه کښې. اَوْطَرِیْقٌ لَمْ یُشْتَرَطْ فِی الْقِسْمَةِ)،فَاِنْ اَمْکَنَ صَرْفُ الطَّرِیْقِ وَالْمَسِیْلِ عَنْهُ یا لاره ده.چه شرط شوې نه ده په تقسیم کښې.نوکه لاره او لختې ددې (حصې) نه اړول ممکن وی. لَیْسَ لَهُ اَنْ یَسْتَطْرِقَ نو هغه ته حق نشته.چه هغه د بل په حصه کښې لاره جوړه کړی. وَیسیل فی نصیب الآخراو د بل په حصه کښې لختې اوباسی (وَاِنْ لَمْ یُمْکِنْ فُسِخَتْ الْقِسْمَةُ) او که ممکن نه وی.نو تقسیم به فسخ کولې شي. |

**حل اللغة** ① **المسیل**:د اوبو لاره،لختې ② **یستطرق**: لاره جوړول

**تشریح** قاضی د شریکانو په مینځ کښې تقسیم اوکړو.او د تقسیم په وخت ئې د لارې او د لختی هیڅ ذکر اونکړو.او حال دا دې.چه یو د بل کس په حصه کښې تیریږی.او د هغه په حصه کښې خپله نالئ بهیه وی.نو اوس به څه کیږی؟ نو وې فرمائیل.چه اوس دوه صورتونه دی① که هغه خپله لاره او نالئ خپله حصه کښې جوړولې شي.نو بیا اړول ضروری دی. ②اوکه نشی جوړولې.یعنې دهغه حصه ددې برداشت نشی کولې.نو بیا به تقسیم فسخ کولې شي.او دوباره به تقسیمولې شي.څکه چه دې صورت کښې د تقسیم مقصود کوم چه د منفعت پوره والې دې.حاصل نشو.
**دلیله** څکه چه د تقسیم معنی جدا جدا کول او تفریق دې.او د جدا کیدو پوره والې دا دې.چه د هر یوکس د بل حصې سره هیڅ تعلق باقی پاتې نشی او ددې اثبات ممکن دې.د لارې او لختی اړولو سره.ددې غیر طرف ته.د ضرر نه بغیر نو اړولې به شي.هغې طرف ته

**په پورتنی چت او لاندینی چت کښې د تقسیم طریقه**

| |
|---|
| (وَاِذَاکَانَ سُفْلٌ لَاعُلُوَّلَهٗ وَعُلُوٌّلَاسُفْلَ لَهٗ او کله چه لاندینې منزل (کوټ) وی.چه ددې دپاسه بالاخانه نه وی.او بالاخانه وی.چه هغې دپاره لاندې منزل (کوټ) نه وی. وَسُفْلٌ لَهٗ عُلُوٌّقُوِّمَ کُلُّ وَاحِدٍعَلٰی حِدَتِهٖ او دغه شان لاندې منزل وی.چه هغې دپاره بالاخانه وی.نو د هر یو به جدا قیمت لګولې شي. |

وَقُسِمَ بِالْقِيمَةِ او د قيمت په ذريعه به تقسيم كولې شي وَلَا يُعْتَبَرُ بِغَيْرِ ذَلِكَ (¹).او ددې نه د علاوه اعتبار به نشي كولې.

**تشريح >** د زيد او عمر اشتراك دې.عنى په رومبي كور كښې زيد او عمر پورتنى منزل كښې شريك دى.او لاندينې منزل د بل چا دې.او په دويم كور كښې زيد او عمر په لاندينى منزل كښې شريك دى.او پورتنې منزل د بـل چـا دی.او پـه دريـم كـور كښـې دواړه منزلـه (چتونـه) شريك دى.اوس دوى دواړو د قاضى نه د تقسيم مطالبه اوكړله.نو قاضى به څه كوى؟
نو امام محمد رحمه الله فرمانى.چه د هر كور دې جدا جدا قيمت اولګولې شي.او د قيمت پـه اعتبار سره دې تقسيم كړې شي. او هم په دې فتوى ده.خو دلته ښكاره د عبارت نـه دا معلوميږى.چه مطلقاً بـه د قيمت په اعتبار سره تقسيم كولې شي.خو پـه شامى او مجمع الانهر وغيره كښې صراحت دې.چه د عمارت قيمت به لګولې شي.او خالص د زمكې او صحن قيمت تقسيم به ګزونو(ناپ كولو) سره كولې شى.(ثم الإختلاف فى الساحة وأما البناء فيقسم بالقيمة إتفاقاً كما فى الجوهرة [ شامى ص: ۱٦٧ج۵، سكب الأنهرص: ٣٦٢ج٣، مجمع الأنهرص: ٤٧٦ج٣]

**دليله >** د امام محمد رحمه الله دليـل دې.چه په لانديني منزل (كوږ) كښې كوهى جوړيدې شى. تاخانـه او اصطبل (د څاروو تړلو ځائې) جوړولې شى.چه دا په بالاخانه كښې نشى جوړيدې. او پـه تقسيم كښې برابرى مقصود ده.او هركله چه پـه دې دواړو كښې ښكـاره تفـاوت دې.نو بيـا د قيمت نـه بغير برابرى نشى كيدې.

**مسلك الشيخين >** په مذكوره مسئله كښې شيخين فرمانى چې په ګذونو سره به تقسيم كولې شى

**دليلهما >** دلته شراكت په زمكه او آبادئ كښې دې.قيمت كښې نه دې.او شراكت چه پـه كوم ځيز كښې وى.تقسيم هم د هغې كول پكار دى.او صرف د اوسيدو په لحاظ دواړه منزلونه (كورونه) برابر دى.او په راحت (او آرام) كښې د تفاوت لحاظ نه دې ساتلې شوې.بهرحال تقسيم به ناپ سره كولې شى.په دې كښې د شيخينو رحمهما الله اتفاق دې.خو طريقه به كومه اختيارولې شى.پـه دې كښې د دواړو اختلاف دې.

**د تقسيم نه روستو په شريكانو كښې د اختلاف مسئله**

(وَإِذَا اخْتَلَفَ الْمُتَقَاسِمُونَ اوكله چه شريكان تقسيمونكى خپل مينځ كښې اختلاف اوكړى فَشَهِدَ الْقَاسِمَانِ .اودوه تقسيمونكى ګواهى وركړى. قُبِلَتْ شَهَادَتُهُمَا (²)) نو ددوى ګواهى به قبلولې شى.

**حل اللغة >** ① **المتقاسمون:** جمع د متقاسم،تقسيم كونكى

**تشريح >** تقسيمونكو د شريكانو په مينځ كښې تقسيم اوكړو.اوس په شريكانو كښې اختلاف شو.پـه دوى كښې يوكس اونيل.چه زما حصه ما ته نه ده رارسيدلې.حالاتكه زما حصه پـه فلانئ كمره كښې هم وو.او دوه تقسيمونكو دا ګواهى وركړله.چه ده خپله حصه اخستې ده.نو آيا ددوى ګواهى به قبلولې

---

¹) القول الراجح هو هذا قول محمد رحمه الله كذا في بحر(۲۷۹\۸) ونصب (۲۷۲\۵) وملتقى الأبحر(۱۳۳\٤) ومجمع الأنهر (۱۳۳\٤) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۰\۲)_

²) القول الراجح هو هذا قول الشيخين كذا في ملتقى (۱۳۳\٤) والدرالمنتقى (۱۳٤\٤) والبحر (۲۸۱\۸) نقلاً عن القول الراجح (۲۸۱\۲)_

شي؟ نو امام قدوري رحمه الله مطلقا اوفرمائيل.چه قبلولې به شي.يعنې په دې كښې اختلاف نه دې نقل كړې.ددې نه معلوميږي. چه د امام قدوري رحمه الله په نيز د خصاف رحمه الله قول معتبر دې.چه په دې كښې هم اختلاف نه كيدل ذكر دي.

**دليله** > د امام محمد رحمه الله دليل دې.چه دلته تقسيمونكي پخپل فعل باندې ګواهي وركوي. حالانكه پخپل فعل باندې ګواهي نه قبليږي.لكه مثلاً زيد اووئيل.كه خالد نن يوه سيپاره تلاوت اوكړو.نو زما غلام آزاد دې.غلام د خپلې آزادئ دعوه اوكړله.او خالد د يوې سيپارې وئيلو ګواهي وركړله.چه غلام آزاد شي.نو د خالد ګواهي به معتبر نه وي.ځكه چه هغه پخپل فعل باندې ګواهي وركړې ده.دغه شان به دلته هم ګواهي معتبر نه وي.

**د شريك د غلط تقسيم دعوه كول**

| |
|---|
| وَإِذَا ادَّعَى أَحَدُهُمَا الْغَلَطَ او كله چه په تقسيم كونكو كښې يوكس د غلطئ دعوه اوكړله. وَزَعَمَ أَنَّهُ أَصَابَهُ شَيْءٌ فِي يَدِ صَاحِبِهِ او وې وئيل.چه په دې څيزونو كښې كوم چه ده ته رسيدلى دى.يو څيز دده د ملګرى په قبضه كښې دې. وَقَدْ أَشْهَدَ عَلَى نَفْسِهِ بِالْاسْتِيفَاءِ حالانكه هغه پخپل نفس باندې د وصولولو اقرار كړې وو. لَمْ يُصَدَّقْ عَلَى ذَلِكَ إِلَّا بِبَيِّنَةٍ نو په ده به ددې تصديق نشي كولې.خو ګواهانو سره. |

**تشريح** > مثلاً يوكور د دريو سړو په مينځ كښې مشترك وو.هغوى تقسيم اوكړو.او پخپل خپل حق باندې ئې قبضه اوكړله.اوس په دوى كښې يوكس د غلطئ دعوه ځكوي.او وائي.چه فلانئ كمره هم زما په حصه كښې ده.نو دلته به دوباره تقسيم نشي كولې.خو مدعى نه به د غلطئ ثابتولو دپاره د بينه قائمولو مطالبه كولې شي.كه هغه ګواهان قائم كړل.نو ډيره ښه ده.ګني دده په مطالبه به قاضي د نورو ګواهانو نه قسم اخلي.هغوى كښې يوكس قسم اوخوړلو.او يو انكار اوكړو.نو د مدعى او د منكر حصې به يوځائې جمع كولې شي.او ددوى دحصو په اندازه به دوباره تقسيمولې شي.او قسم خوړونكې به د مينځ نه خارجيږي.په [ بدائع ص:٢٦ ج٧] باندې دا مسئله په واضحو الفاظو كښې تيره شوې ده.

**د خصم قول به معتبر وي**

| |
|---|
| وَإِنْ قَالَ قَدِ اسْتَوْفَيْتُ حَقِّي ثُمَّ قَالَ أَخَذْتُ بَعْضَهُ اوكه ده اووئيل.چه ما خپل حق وصول كړې وو.او تا د هغې نه څه واخستلو. فَالْقَوْلُ قَوْلُ خَصْمِهِ مَعَ يَمِينِهِ)نو سره د قسم نه به دده د خصم قول معتبر وي. |

**تشريح** > او د منكر قول سره د قسم نه معتبر وي.نو د خصم قول به معتبر نه وي.

**دليله** > ځكه چه هغه دده په غصب باندې دعوه كوي او هغه منكر دې.

**د تقسيم په بعضې حصه باندې د عدم قبضې دعوه كول**

| |
|---|
| (وَإِنْ قَالَ أَصَابَنِي إِلَى مَوْضِعِ كَذَا فَلَمْ يُسَلِّمْهُ إِلَيَّ اوكه ده اووئيل.چه زه ئې د فلانئ ځائې پورې رسيدلې ووم.نو هغه ما ته رانكړو. وَلَمْ يَشْهَدْ عَلَى نَفْسِهِ بِالْاسْتِيفَاءِ وَكَذَّبَهُ شَرِيكُهُ او هغه پخپل نفس باندې د وصولولو اقرار اونكړو.او د هغه شريك دده تكذيب اوكړو. تَحَالَفَا وَفُسِخَتِ الْقِسْمَةُ نو دواړه به قسم خوري.او تقسيم به فسخ كولې شي. |

**تشريح** > دلته مدعى د قبضې اقرار نه دې كړې.بلكه داسې ئې اووئيل.چه زما حصه دهغه ځائې پورې ده.چه دا ماته رانكړې شوه.او دويم شريك منكر دې.او دې دروغجن كوي.نو چونكه دلته په هغه مقدار كښې اختلاف دې.چه دا به تقسيم سره حاصليږي.نو دا داسې شوه. لكه څنګه چه بائع او مشترى د مبيع په مقدار كښې اختلاف اوكړي.نو په باب التحالف كښې د ذكر شوى حكم مطابق لكه څنګه چه

بيع کښې د دواړو نه قسم اخستلې شي.او بيع فسخ کولې شي.دلته به هم تقسيم فسخ کولې شي.

**د مستحق راوتلو مسئله**

(وَإِن اُستُحِقَّ بَعضُ نَصِيبِ أَحَدِهِمَا بعينه) او کله چه په دوی دواړو کښې د يوکس معين بعضې حصه مستحقه راوځي. لَمْ تُفسَخِ القسمة عِندَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ، ورَجَعَ بِحِصَّةِ ذَلِكَ مِن نَصِيبِ شريكه[1] نو د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به تقسيم نشي فسخ کولې.او هغه به دخپلې حصې په اندازه د خپل ملګرې په حصه کښې رجوع کوی. وَقَالَ أَبُويُوسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تُفسَخُ القسمة، او امام ابويوسف رحمه الله فرمائي.چه تقسيم به فسخ کولې شي.

**حل اللغة** ﴿ ① **معين:** معلوم② **شائع:** خور وور ،

**تشريح** ﴿ د زيد او خالد په مينځ کښې پوره کور مشترك وو.چه دا مثلاً درې سوه ګزه مربع دې.زيد او خالد تقسيم اوکړو.نو د زيد په حصه کښې د لارې د طرف حصه راغله.چه دا قيمتي وی.بهرحال د زيد سل ګزه د خالد د دوو سوو ګزو برابر ده.د قيمت او ماليت په اعتبار سره.چه صورت ئې دا دې.چه دواړه پخپلو خپلو حصو باندې قابض شو.نو ساجد د قاضی په عدالت کښې د استحقاق دعوه اوکړله.او په دې ئې ګواهان پيش کړل.نو څومره چه دده استحقاق وو.هغه ساجد ته ملاو شو.اوس به د تقسيم څه حکم وی؟ نو دلته ددې بيان کوی.

**الصور الثلاثة** ﴿ خلاصه د کلام دا چه ددې درې صورتونه دی① ساجد د زيد په حصه کښې صرف د يوې کمرې دعوه اوکړی.ددې حاصل دا دې.چه ساجد د زيد په حصه کښې په يو معين جزء کښې دعوه کړې ده.چه دا ما په مذکوره نقشه کښې مستحق سره تعبير کړې دې.

② ساجد د زيد په حصه کښې د غيرمعين جزء دعوه اوکړی.يعنی اووائی.چه په دې کښې زما دريمه حصه ده.يا څلورمه حصه ده.وغيره.دا ما په مذکوره نقشه کښې مستحق ثلث سره تعبير کړې دې.

③ ساجد دا دعوه اوکړی.چه په پوره کور کښې زما نصف دې.يعنی دده حصه څوره ده.د زيد او خالد دواړو په حصو کښې.بهرحال دا درې صورتونه دی.

① د هر يو حکم جدا جدا دې.په ړومبی صورت کښې به تقسيم نه فسخ کيږی.چه په دې د ټولو اتفاق دې. البته ساجد چه څومره حصه د زيد نه اخستې ده.ددې حساب به هغه د خالد سره اوکړی.او د خپل حساب په اندازه به د خالد نه واپس اخلی.او د دوباره تقسيم حاجت به نه وی.③ او په دريم صورت کښې به بالاتفاق تقسيم فسخ کولې شي.

**الصورة الاختلافية** ﴿ ② او دويم صورت اختلافی دې.د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز به تقسيم نه فسخ کيږی.او د ړومبی پشان به زيد د خالد نه د خپل حساب په اندازه واپس اخلی.او د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به تقسيم فسخ کولې شي.او امام محمد رحمه الله د اصح قول مطابق امام صاحب رحمه الله سره دې.دا اصل مسئله او په دې کښې د اختلاف تفصيل دې.

**دليلهما** ﴿ د طرفينو رحمهماالله دليل دې.فرمائي.زيد ، ساجد او خالد په يو کور کښې شريك دی.ددې په مخکښې حصه کښې د زيد ، خالد او ساجد دريو واړو اشتراك دې.او په روستنۍ حصه کښې صرف د زيد او خالد اشتراك دې.په دې کښې د ساجد هيڅ حصه نشته.اوس زيد او خالد تقسيم غواړی.چه په

[1] القول الراجح هوهذا قول ابي حنيفة رحمه الله كذا في (ملتقى الابحر (۱۳۵\۴) ومجمع الانهر (۱۳۵\۴) والدرالمنتقى (۱۳۵\۴) وردالمحتار (۱۸۷\۵) نقلاً عن القول ا لراجح (۲۸۲\۲)-

دې کښې دا فیصله اوشوه.چه په مخکښې حصه کښې خالد خپله حصه زید ته ورکړله.او زید ته نې د روستنئ حصې په خانې د نصف څلورمه ورکړله.نو اوس به صورت دا وی.چه په مخکښې نیمه کښې زید او ساجد نیمه په نیمه شریك شو.او په روستنئ نیمه کښې د خالد ۳۱۴ او د زید ۱۱۴ شوه.او دا مذکوره تقسیم بالکل صحیح دې.چه په دې کښې د جدا کیدو معنی موجود کیدل ضروری دی.نو هرکله چه ابتداء کښې دغه شان تقسیم کیدې شی.نو که په ابتداء کښې بعینه هم دا صورت راوخی.نو دا به ولې جائز نه وی.او دلته به جدا جدا کیدل ولې زائل کیږی.حالانکه کله چه دلته کښې د زید په حصه کښې د ساجد استحقاق په جزء شائع کښې ثابت شو.بالکل هم دغه صورت دې.نو معلومه شوه.چه په دې صورت کښې د تقسیم معنی باقی ده.نو بیا به د تقسیم فسخ کولو ضرورت نه وی.نو لکه څنګه چه د معین جزء د استحقاق په صورت کښې د جدا جدا کیدو معنی موجود ده.دغه شان دلته هم موجود ده.

**دلیل ابي یوسف**﴾ دا د امام ابویوسف رحمه الله دلیل دې.ددې حاصل دا دې.که په دوارو حصوکښې د مستحق استحقاق په طریقه د شیوع وې.نو تقسیم به بالاجماع فسخ کیدو.ولې؟ څکه چه مستحق دریم شریك دې.او د شریك د رضامندئ نه بغیر تقسیم شوې وو.چه دا د اصول مطابق فسخ کیږی.او بالکل هم دا صورت په جزء شائع کښې هم دې.نو دا تقسیم به هم فسخ کیږی.

**المناسبة بینهما**﴾ اوس پاتې شوه دا خبره چه په مقیس او مقیس علیه کښې څه مناسبت دې.نو په مذکوره صورت کښې به زید د خالد په حصه کښې څلورمه په طریقه د شیوع (او حصه داریٔ) اخلی.نو د تقیسم معنی یعنی جدا جدا کیدل معدوم شو.نو بیا تقسیم څنګه باقی پاتې شو.او په متفق علیه صورت کښې چونکه استحقاق په جزء معین کښې دې.نو د زید رجوع به هم په جزء معین کښې وی.نو د تقسیم معنی باقی ده.په دې وجه به بالاجماع تقسیم نه فسخ کیږی.

# كِتَابُ الْإِكْرَاهِ

**ترجمه**﴾ (دا) کتاب د اکراه (په بیان کې) دې.

**تشریح**﴾ د عقد موالات په ذریعه د اعلی حال، حرمت نه حلت ارخ ته تبدیلیږی.مطلب دادې.که موالات نه وو.نو د مولا اسفل مال اخستل به حلال نه وو.کله چې عقد موالات اوشو.نو اوس دده لپاره دده مال اخستل حلال شو.بالکل هم دا خبره اکراه کې ده.چه په دې کې د مخاطب حال د حرمت نه حلت ارخ ته بدلیږی.یعنی دده لپاره چې د کوم شئ مباشرت د اکراه نه وړاندې حرام وو.هغه د اکراه نه روسته حلالیږی.په دې وجه نې د موالات نه روسته کتاب الاکراه ذکرکړې دې.

**د اکراه لغوی او اصطلاحی تعریف**

> الْإِكْرَاهُ يَثْبُتُ حُكْمُهُ إِذَا حَصَلَ مِمَّنْ يَقْدِرُ عَلَى إِيقَاعِ مَا يُوعَدُ بِهِ سُلْطَانًا كَانَ أَوْ لِصًّا) د اکراه حکم ثابتیږی.کله چې حاصل شی.د هغه کس نه چې قادر وی.د هغې په واقع کولو باندې،د کوم څه نې چې دهمکی ورکړې ده.بادشاه وی.او که غل وی.

**تشریح**﴾ **الاکراه لغة**﴾ اکراه په لغت کې د یو کس مجبوره کول او په نا خوښه کار باندې راضی کولو ته وائی.

**الاکراه اصطلاحا**﴾ په اصطلاح د فقهاؤ کې اکراه هغه فعل دې.چه هغه سړې د بل په سبب سره داسې اوکړی.چه د هغه رضامندی ختمه شی.یا د هغه اختیار فاسد شی.

**اقسامه**﴾ د اکراه دوه قسمونه دی. ① اکراه ملجئ (کامل اکراه) اکراه ملجئ هغه ده.چه هغې کې مکره

نه د خپل ځان یا د یو اندام هلاکیدو خطره وي.لکه د قتل یا د لاس کټ کولو وغیره دهمکي ورکول.په دې صورت کې دمکره رضامندي فوت کیږي.اواختیار فاسدیږي.② اکراه غیر ملجئ:(اکراه قاصر)،اکراه غیر ملجئ هغه دې.چه هغې کې د ځان یا اندام هلاکیدلو خطره نه وي.بلکه صرف رضامندي فوت کیږي.لکه د قید دهمکي ، یا د وهلو وغیره دهمکي ور کولو په صورت کې .نو د رضا فوت کیدل د اختیار د فساد نه عام دې.ځکه چې مقابل د رضا کراهت دې.او مقابل د اختیار جبر (زبردستي) دې.او د قید کولو او د وهلو ټکولو په اکراه کې بلا شبه اکراه موجود ده.نو رضا معدوم شوه.خو اختیار سره د وصف د صحت نه موجود دې.ځکه چې اختیار هغه وخت فاسدیږي.کله چې د ځان یا د یو اندام فوت کیدلو خطره وي.نو اکراه ملجئ به هغه تصرفاتو کې موثر وي.په کومو کې چې د رضا حاجت وي.لکه بیع، اقرار، او اجاره وغیره.او اکراه ملجئ په ټولو تصرفاتو کې موثر وي.

**فائدة>** که اکراه ملجئ وي.او که غیر ملجئ وي.په دواړو صورتونو کې نه په دې سره د مکره اهلیت باطلیږي.او نه دده نه نطاب(کم عقل توب) وضع کیږي. ددې دلیل دادې.چه د مکره افعال په فرض، خطر و اباحت، او رخصت کې مختلف کیږي.او کله دې ګناهګاریږي.او کله مستحق د اجر او ثواب وي.مثلاً په ده باندې د نفس قتل، لاره کې شوکه کول،او زنا وغیره حرام ده.نو هغه به ددې په مباشرت (او په دې باندې عمل کولو) سره ګناهګاریږي.او که منع شي.نو ثواب به ملاویږي.دغه ډول دده لپاره د مردارې خوړلو، او د شرابو څښلو اباحت دې.او د کلمهٔ کفر ونیلو رخصت دې.شیخ فخرالاسلام بزدوی رحمه الله په خپلو اصولو کې یو دریم ډول بل هم ذکرکړې دې.او هغه دا چې پلار یا خوئې یا هغه څوك چې ددوی قائم مقام وي.د هغه د قید کولو دهمکي ورکړي. (وكأنه لم يجعله من أقسام الإكراه لعدم ترتب أحكامه عليه).

**شرطا تحقق الاکره>** د اکراه د تحقق لپاره دوه شرطونه دي : ① مکره په هغه امر باندې قادر وي.د کوم چې هغه یره ورکوي.که هغه د وخت بادشاه وي.او که غل وي.یا بل څوك وي.د امام صاحب رحمه الله نه چې یو روایت دادې.چه اکراه د بادشاه نه بغیر بل څوك نشي کولې.دا د هغوی د زمانې په لحاظ سره دی.چه هغه زمانه کې به داسې قدرت صرف بادشاه ته حاصل وو.نن سهار دا خبره نشته.نن سهار خو د هر فساد کونکي نه اکراه کیدای شي.لکه څنګه چې د صاحبینو رحمهما الله قول دې.او هم په دې فتوی ده. ② مکره ته ددې خبرې غالب ګمان وي.چه مکره د کومې خبرې دهمکي ورکوي.هغه به دا خامخا کوي.

## د اکراه د احکامو تفصیل

وَإِذَا أُكْرِهَ الرَّجُلُ عَلَى بَيْعِ مَالَهُ کله چې مجبوره کړې شو.یو سړی د خپل مال په خرڅولو ، أَوْعَلَى شِرَاءِ سِلْعَةٍ یا د یو سامان په اخستلو ، أَوْعَلَى أَنْ يُقِرَّ لِرَجُلٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ یا د چا لپاره د زر(درهمو) په اقرار کولو ، أَوْيُؤَاجِرَ دَارَهُ وَأُكْرِهَ عَلَى ذَلِكَ بِالْقَتْلِ أَوْبِالضَّرْبِ الشَّدِيدِ أَوْبِالْحَبْسِ یا دخپل کور په کرایه ور کولو باندې، په قتلولو یا سختو وهلو یا د قید کولو په دهمکۍ سره ، فَبَاعَ نو هغه خرڅ کړو ، أَوِاشْتَرَى فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَمْضَى الْبَيْعَ نو هغه ته اختیار دې.که غواړي.بیع دې جائز اوساتی.وَإِنْ شَاءَ فَسَخَهُ او که غواړي.ماته دې کړي.وَرَجَعَ بِالْمَبِيعِ)او مبیع دې واپس واخلي.

**تشریح>** یو سړي لره په دهمکۍ د قتل، یا په زبردستو وهلو ټکولو، یا اوږدې زمانې پورې په قید کولو د یو شي په خرڅولو، یا اخستلو یا اقرار کولو باندې مجبورکړې شو.او هغه دا شئ خرڅ کړو.یا

ئې واخستلو.یا ئې دهغې اقرار اوکړو.نود اکراه د زوال نه روسته هغه ته اختیار دې.که غواړي.دا عقود دې نافذ کړي.او که غواړي.فسخ دې کړي.ددې قاعده کلیه داده.چه زمونږ په نیز د مکره واره تصرفات د قول په لحاظ سره منعقد کیږي.اوس په کومو عقودو کې چې فسخ احتمال شته.لکه بیع او اجاره وغیره، هغه دې فسخ کولې شي.او په کومو عقودو کې چې د فسخ احتمال نشته.لکه طلاق، نکاح، عتاق، تدبیر، استیلاد، نذر وغیره، هغه دې نشي فسخ کولې.بلکه هغه لازمیږي.البته د آئمه ثلاثه رحمهم الله په نیز نه لازمیږي.

**دلیله** یعنی په اکراه ملجئ سره رضاء معدوم کیږي.حالانکه ددې عقودو د صحت شرط دادې.چه خپل منځ کې رضامندي موجود وی.لکه د الله تعالی ارشاد دې﴿لَا تَأْكُلُوٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ اِلَّآ اَنْ تَكُوْنَ تِجَارَةً عَنْ تَرَاضٍ مِّنْكُمْ﴾ او ذکر شوی دهمکیانو سره اکراه کولوکې رضامندی ختمیږي.نو عقد به فاسد وی.ځکه چې د شرط نه موجود کیدلو په وجه د مشروط هم نفی کیږي.

## په حقوق العباد کښې د اکراه حکم

(فَإِنْ كَانَ قَبَضَ الثَّمَنَ طَوْعًا یا که مکره په خوشحالئ سره ثمن باندې قبضه اوکړله.فَقَدْ أَجَازَ الْبَيْعَ)نو د بیع اجازت ئې ورکړو.

**تشریح** که مکره خرڅ کړو، د زبردستئ په وجه، او ددې قیمت ئې په خوشحالئ واخستلو.نو په خوشحالئ قیمت اخستل، بیع نافذ کول.او ددې نه راضی کیدل دی.

**دلیله** ځکه چې ثمن په خوشحالئ قبلول د اجازت دلیل دې.لکه په بیع موقوف کې د مالك په ثمن باندې قبضه کول،دلالةً اجازت وی.او که اکراه صرف په عقد د بیع باندې وی.د مبیع په سپارلو باندې نه وی.او هغه مبیع په خوشحالئ اوسپاری.نودا هم دلیل د اجازت دې.

(وَإِنْ كَانَ قَبَضَهُ مُكْرَهًا او که ثمن باندې ئې قبضه د مجبورئ نه اوکړله.فَلَيْسَ بِإِجَازَةٍ نو اجازت نه دې.وَعَلَيْهِ رَدُّهُ إِنْ كَانَ قَائِمًا فِي يَدِهِ)او په ده باندې واپس کول واجب دی.که دده سره قائم وی.

**تشریح** اوکه بائع ثمن باندې قبضه د مجورئ نه اوکړله.نودا به اجازت نه وی.اوبه ده به واپس کول واجب وی.که هغه دده سره په دې حالت کې موجود وی.ځکه چې د اکراه په وجه عقد فاسد دې.او که ثمن هلاك شوې وی.نو دده به هیڅ نشی اخستلې.

**دلیله** ځکه چې مکره سره دا ثمن امانت وو.ځکه چې ده هغې باندې د مشتری په اجازت سره قبضه کړې وه.او کله چې قبضه په اجازت د مالك وی.نو هغه موجب د ضمان هغه وخت وی.کله چې قبضه د تملك لپاره وی.حالانکه دلته کې بائع ثمن باندې قبضه تملك لپاره نه ده کړې.ځکه چې هغه خو ددې په قبضه کولو مجبور وو.نو ثمن دده سره امانت شو.او د امانت په ضائع کیدلو سره ضمان نه راځی.

(وَإِنْ هَلَكَ الْمَبِيعُ فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او که مبیع هلاك شو.مشتری سره.وَهُوَ غَيْرُ مُكْرَهٍ حالانکه هغه مکره نه دې.ضَمِنَ قِيمَتَهُ نو هغه به ددې د قیمت ضامن وی.

**تشریح** بائع په زبردستئ یو شئ خرڅ کړو.او مشتری هغه د زبردستئ نه بغیر واخستلو.بیا هغه مشتری سره هلاك شو.نو مشتری به بائع ته ددې د قیمت تاوان ورکوی.

**دلیله** ځکه چې دمکره بیع فاسد ده.او بیع فاسد کې هم مبیع مشتری باندې مضمون وی.

(وَلِلْمُكْرَهِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ إِنْ شَاءَ)او مکره لپاره اختیار دې.که غواړي.مکره نه تاوان واخلي.

تشريح> بائع په زبردستۍ يو شئ خرڅ كړو.او مشتري هغه د زبردستۍ نه بغير واخستلو.بيا هغه مشتري سره هلاك شو.نو مشتري به بائع ته دديٰ د قيمت تاوان وركوي.
دليله> ځكه چې دمكره بيع فاسد ده.او بيع فاسد كې هم مبيع مشتري باندې مضمون وي.خو مكره ته دا اختيار هم شته.چه چا په ده باندې زبردستي كړې وه.هغه نه د قيمت تاوان واخلي.ځكه چې د تركومه پورې د هلا كولو معنى موجود وى.هلته كې مكره (مجبور) دديٰ مكره آله وي.(اګرچه د كلام كيدلو په حيثيت سره هغه آله نه ده) (لأن التكلم بلسان الغير لايصح) نو ګويا مكره د بائع (مكره) مال مشتري ته وركړو.نو مكره ته اختيار دي.چه مكره او مشتري دواړو كې د چا نه غواړي.تاوان واخلي.

## په حقوق الله كښې د اكراه حكم

(وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى أَنْ يَأْكُلَ الْمَيْتَةَ أَوْيَشْرَبَ الْخَمْرَ،كه مجبور كړې شو.په مردار خوړلو يا شراب څښلو باندې، فَأُكْرِهَ عَلَى ذَلِكَ بِحَبْسٍ أَوْضَرْبٍ أَوْقَيْدٍ،په قيد كولو يا وهلو، يا د هتكړئ په اچولو دهمكى ور كولو سره، لَمْ يَحِلَّ لَهُ إِلَّاأَنْ يُكْرَهَ بِمَا يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْعَلَى عُضْوٍمِنْ أَعْضَائِهِ،نو حلال به نه وي.مګر دا چې مجبور كړې شي.په داسې دهمكئ سره، چې هغې سره خطره وي.د خپل ځان يا د يو اندام، فَإِذَاخَافَ عَلَى ذَلِكَ،كله چې دديٰ يره وي. وَسِعَهُ أَنْ يُقْدِمَ عَلَى مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ)نو ګنجائش شته.چه وراوړاندې شي هغه شئ ته په كوم چې مجبور كړې شوې دې.

تشريح> يوسړې د خنزير يا د مردار د غوښې په خوړلو، يا د شرابو او وينې څښلو باندې د جيل او وهلو او د قيد كولو او بندولو يره او دهمكى وركولو باندې مجبور كړې شو.نو هغه لپاره دديٰ څيزونو خوراك صحيح نه دې.
دليله> ځكه چې دديٰ محرماتو د خوراك اباحت د اړتيا په وخت دي.او اړتيا هغه وخت ده.چه كله د ځان يا د يو اندام د هلاكت يره وي.نو كه يو كس د نفس قتلولو يا د يو اندام كټ كولو يره وركړله.او مجبوره ئې كړو.نو په دې صورت كې دده لپاره خوراك حلال دې.

(وَلَايَسَعُهُ أَنْ يَصْبِرَعَلَى مَا تُوُعِّدَ بِهِ،او دد بجزز ۰ : ګنجائش به نه وي.چه په دې باندې صبر اوكړي.د كومې چې دهمكى وركړې شوې ده. فَإِنْ صَبَرَحَتَّى أَوْقَعُوابِهِ وَلَمْ يَأْكُلْ كه ده صبر اوكړو.تردې چې هغه داسې اوكړل.او ده او نخوړل. فَهُوَآثِمٌ)نو ګنهګار به وي. لِأَنَّهُ لَمَّا أُبِيحَ ځكه چې هركله دا شئ جائز كړې شو.

تشريح> كه هغه ئې اونه خوري.او صبر اوكړي.او د ځان قرباني وركړي.نو ګناهګار به وي.
دليله> په منع كيدلو سره پخپل ځان هلا كولو باندې د غير مددګار (او معاون) شو. نو ګنهګار به وي.لكه څنګه چې په حالت د مخمصه (سخته لوږه) كې كيږي.

## مكره لپاره كلمه دكفر او د نورو ګستاخو كلماتو ويلو حكم

(وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى الْكُفْرِ بِاللَّهِ تَعَالَى أَوْسَبِّ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَيْدٍ أَوْحَبْسٍ أَوْضَرْبٍ كه مجبور كړې شو د الله تعالىٰ په انكار كولو باندې، والعياذ بالله، ، يا رسول الله ﷺ ته په بنكنځلو (او بد رد ويلو) باندې، د هتكړو، يا قيد ، يا د وهلو دهمكى ور كولو سره، لَمْ يَكُنْ ذَلِكَ إِكْرَاهًا حَتَّى يُكْرَهَ بِأَمْرٍ يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْعَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ)نودا به اكراه نه وي.تردې چې مجبور نكړې شي.په داسې دهمكئ سره، چې هغې سره يره وي د ځان، يا د يو اندام.

**تشریح﴾** که یو مسلمان د قید و بند او د وهلو ټکولو په دهمکئ سره د کفر کلمې په وئیلو،او د نبی کریم ﷺ په شان مبارك كې گستاخانه الفاظ اوښکلو باندې مجبور كړې شو.نودا اكراه نه ده.

**دلیله﴾** ځکه چې هرکله په قید وبند وغیره سره د شرابو په څښلو كې اكراه نه كيږي.نو كفر كوم چې په حرمت كې دهغې نه سخت دې.هغې كې به په طريق اولى اكراه نه وي.

(فَإِذَاخَافَ عَلَى ذَٰلِكَ نو هركله چې ددې خطره وي.وَسِعَهُ أَنْ يُظْهِرَمَا أَمَرُوهُ بِهِ نو گنجانش شته.چه ښکاره کړی.هغه د کوم چې دوی حکم کړې دې.وَيُوَرِّيَ،او توريه اوكړي.فَإِنْ أَظْهَرَذَٰلِكَ وَقَلْبُهُ مُطْمَئِنٌّ بِالْإِيمَانِ كه هغه دا ښكاره كړله.په داسې حالت كې ،چه دده زړه په ايمان سره مطمئن دې.فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ) نو په دده به ګناه نه وي.

**تشریح﴾** البته كه د نفس قتل،يا د يو اندام د پرې كولو په وجه د كفر كلمې وئيلو باندې يا د نبى كريم ﷺ په شان كې په بد رد(او كنځلو) وئيلو باندې مجبور كړې شو.نو دده لپاره د توريه په طور پخپله ژبه د وئيلو گنجانش شته.په دې شرط چې دده زړه په ايمان مطمئن وي.

**دلیله﴾** د عمار رضي الله عنه حديث دې أخذ المشركون عمار بن ياسر فلم يتركوه حتى سب النبى ﷺ و ذكر الهتهم بخير ثم تركوه فلما أتى رسول الله ﷺ قال له ﷺ ما وراءك قال: شر يا رسول الله ﷺ ما تركت حتى نلت منك و ذكرت الهتهم بخير قال: فكيف تجد قلبك قال: مطمئنا بالإيمان قال: فإن عادوا فعد)[1] يعنى عمار بن ياسر رضي الله عنه مشركانو اونيولو.او تركومه پورې چې هغه د هغوى د بتانو تعريف او د نبى كريم ﷺ بد رد نه ووكړې.هغه وخته پورې هغوى هغه پرې نخودلو.هغه د نبى كريم ﷺ په خدمت كې حاضر شو.واقعه ئې بيان كړله.نبى كريم ﷺ پوښتنه اوكړه.هغه وخت ستا د زړه څه حالت وو؟ عرض ئې كړل، ائې د الله رسوله ﷺ ! زما په زړه كې ايمان مضبوط وو.نبى كريم ﷺ اوفرمائيل.كه مشركان بيا داسې اوكړي.نو ته هم دغه ډول كوه،،

(فَإِنْ صَبَرَحَتَّى قُتِلَ اوكه ده صبر اوكړو.تردې چې قتل كړې شو.وَلَمْ يُظْهِرِالْكُفْرَخو ده كفر ښكاره نكړو.كَانَ مَأْجُورًا) نو هغه ته به اجر ملاويږي.؛

**تشریح﴾** د ذكرشوې توريه عقلى دليل دې.ددې تقرير دادې.چه ايمان د ژبې د اقرار او د زړه د تصديق نوم دې.چه ددې ركن اصلى تصديق دې.كوم چې په مذكوره صورت كې قائم دې.نو په داسې ښكاره كولو سره ايمان په حقيقت كې نه فوت كيږي.او په منع كيدلو كې حقيقت كې د ځان (نفس) تللو خطره وي.په دې وجه د كفر ښكاره كولو گنجانش شته.خو كه هغه په دې حالت كې صبر اوكړي.او په ژبه كلمه د كفر اونه گرځوي.نو د ثواب مستحق به وي.

**دلیله﴾** په صبر كولو باندې د اجر مستحق كيدلو عقلى دليل دا دې.چه دكفر د قباحت په وجه حرمت باقى دې.نو هغه اكراه باندې صبر كولو سره د محرم شرعى نه ځان ساتونكې او د شرعى نهى تعميل كونكې شو.اود دين د اعزاز په خاطر د كلمة كفر ښكاره كولو نه منع كيدل د مضبوطې حوصلې د ميړه دې.او په دې كې هيڅ شك نشته.چه د رخصت اختيارولو په نسبت عزيمت باندې عمل كول

[1]) من حديثه أخرجه الحاكم في المستدرك في تفسيرسورة النحل (۲\۳۵۷)-

افضل دی.په خلاف د مردارې خورلې، اود شرابو څښلو ،چه په دې کې د استثناء (إِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ إِلَيْهِ) په وجه اباحت اوشو.

## مکره لپاره مسلمان ته د نقصان رسولو حکم

| |
|---|
| (وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى إِتْلَافِ مَالِ مُسْلِمٍ بِأَمْرٍ يَخَافُ مِنْهُ عَلَى نَفْسِهِ أَوْعَلَى عُضْوٍ مِنْ أَعْضَائِهِ) که مجبور کړې شو.د یوکس مال هلاکولو باندې،په داسې دهمکۍ سره چې هغې سره خطره وی.د خپل ځان یا د یو اندام، (وَسِعَهُ أَنْ يَفْعَلَ ذَلِكَ)نو ګنجائش شته.چه اوکړی. |

**تشریح>** که د نفس په قتلولو یا د یو اندام کټ کولو په دهمکۍ سره د یو مسلمان مال هلاکولو باندې مجبور کړې شو.نو دده لپاره د داسې کولو ګنجائش شته.

**دلیله>** ځکه چې د ارتیا په وجه د غیر مال جائز کیږی.لکه څنګه چې په حالت د مخمصه (د سختې لوګه) کې کیږی.او دلته کې هم ارتیا متحقق شو.چه ځان بچ کول دی.نود غیر مال هلاکولې شی.اوکه هلاك ئې نکړی.بلکه په تکلیف باندې صبر اوکړی.نو ثواب به ملاویږی.

| |
|---|
| (وَلِصَاحِبِ الْمَالِ أَنْ يُضَمِّنَ الْمُكْرِهَ)اود مال مالك ته اختیار دې.چه مکره نه تاوان واخلې. |

**تشریح>** بیا د مال مالك لکه څنګه چې د مکره نه تاوان اخستې شی.هم دغه دول هغه د مکره نه هم اخستې شی.

**دلیله>** ځکه چې دا وراندې معلومه شوه.چه افعالو کې فاعل د حامل لپاره آله کیدای شی.او مال هلاکول هم د افعالو د قبیلې ځنې دی.نو ګویا مکره د مکره په ذریعه د فلانی مال هلاك کړو.نو هغه د مکره نه تاوان اخستې شی.

## مکره لپاره د قتل کولو حکم

| |
|---|
| (وَإِنْ أَكْرَهَهُ بِقَتْلٍ عَلَى قَتْلِ غَيْرِهِ)که مجبور کړې شو د قتل په دهمکۍ سره.د بل کس په قتلولو باندې.(لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يُقْدِمَ عَلَيْهِ)نو هغه لپاره ګنجائش نشته.چه د هغه په قتل باندې اقدام اوکړی.(وَيَصْبِرُ حَتَّى يُقْتَلَ)،بلکه صبر دې اوکړی.تردې چې پخپله قتل کړې شی.(فَإِنْ قَتَلَهُ)که هغه ئې مسلمان کړو.(كَانَ آثِمًا)نو ګناهګار به وی. |

**تشریح>** او که د نفس قتلولو په دهمکۍ سره د یو مسلمان په قتل باندې مجبور کړې شو.نو هغه ته د قتلولو ګنجائش نشته.که قتل ئې کړی.نو ګناهګار به وی.

**دلیله>** ځکه چې مسلمان قتلول په هیڅ حالت کې هم جائز نه دی.

| |
|---|
| (وَالْقِصَاصُ عَلَى الَّذِي اكرهه إِنْ كَانَ الْقَتْلُ عَمْدًا)او قصاص به په هغه چا وی چې هغه زور کړې وی که قتل عمداً وی. |

**تشریح>** په دې وجه که ده په قصد سره قتل کړو.نو په اکراه کونکی باندې به قصاص وی

**دلیله>** دلیل دادې.چې دې مکره په حقیقت کښې قتل نه دې کړې دې خو مجبوره کړې شوې دې لکه چې دې د تیره آله په ځائې استعمال شوې دې او قاعده دا د چې څوك آله د قتل استعمال کړی په هغه باندې قصاص وی

## د مکره د طلاق او اعتاق حکم

| |
|---|
| (وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى طَلَاقِ امْرَأَتِهِ)که مجبور کړې شو د خپلې ښځې په طلاق ورکولو،(أَوْعِتْقِ عَبْدِهِ)یا د |

خپل غلام په آزادولو، فَفَعَلَ او هغه اوکړل.وَقَعَ مَا أُكْرِهَ عَلَيْهِ نو واقع کیږی به هغه په کوم چې دې مجبورکړې شوې دې.

**تشريح** که ښځې ته په طلاق ورکولو یا د غلام په آزادولو باندې مجبور کړې شو.او هغه طلاق ورکړو.یا ئې غلام آزاد کړو.نو دا امور واقع کیږی.ددې تفصیل په کتاب الطلاق کې تیر شوې دې.

(وَيَرْجِعُ عَلَى الَّذِي أَكْرَهَهُ بِقِيمَةِ الْعَبْدِ)او رجوع به کوی په هغه کس باندې چاچه دې مجبور کړې دې.د غلام په قیمت،

**تشريح** د آزادئ په صورت کې به مکرَه د اکراه کونکی نه د غلام قیمت اخلی.

**دليله** ځکه چې د هلاکت په حق کې مکرَه د اکراه کونکی آله کیدای شی.نو هلاکت به هم هغه اړخ ته منسوب کیږی.او دا ضمان چونکه ضمان د هلاکت دې.چه دا په مالداریٔ او غریبیٔ سره نه مختلف کیږی.په دې وجه به د غلام قیمت اخلی.که اکراه کونکې توانگر او که غریب وی.

(وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ مَهْرِ الْمَرْأَةِ إِنْ كَانَ قَبْلَ الدُّخُولِ،او د اکراه کونکی ځخه به د ښځې نصف مهر واپس اخلی.که طلاق د صحبت نه وړاندې وی

**تشريح** او د طلاق په صورت کې به د اکراه کونکی نه د مهرمسمی نصف اخلی.په دې شرط چې طلاق د دخول نه وړاندې وی.

**دليله** وجه داده.چه په میړه کوم مهر واجب وو.نو هغې کې د ساقطیدلو احتمال وو.یعنی (کیدای شی) فرقت (او جدائی) د ښځې د اړخه واقع شی.خو کله چې طلاق واقع شو.نو مهر مؤکد شو.نو د مال دا هلاکت به اکراه کونکی اړخ ته منسوب وی.او مکرَه به دده نه د نصف مهر اخستلو حقدار وی.

**حكم صورة الوطي** خو که هغه وطی کړې وی.نو د اکراه کونکی نه هیڅ هم نشی اخستلې.ځکه چې اوس مهر د وطی په وجه مؤکد شوې دې.د طلاق په وجه نه دې مؤکد شوې.نو صرف د ملك نكاح هلاکت باقی پاتې شو.او ملك د نکاح (په وخت د وتلو) مال نه دې.او کوم شئ چې مال نه وی.د هغې ضمان مال سره نه کیږی.

(وَإِنْ أُكْرِهَ عَلَى الزِّنَا که یوکس په زنا باندې مجبور کړې شو.وَجَبَ عَلَيْهِ الْحَدُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو په مکره به حد واجب وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز..

**تشريح** که یوکس په زنا کولو باندې مجبور کړې شو.او هغه زنا اوکړله.نو د امام ابوحنیفه او امام زفر رحمهما الله په نیز به په ده باندې حد د زنا واجب وی.

**دليله** ځکه چې سړی اړخ ته د زنا تصور د آلې منتشر کیدلو نه بغیر نه کیږی.او د آلې انتشار د لذت نه بغیر نه کیږی.او لذت کیدل د خوشحالئ په طور د کولو دلیل دې.

إِلَّا أَنْ يُكْرِهَهُ السُّلْطَانُ،خو که ده لره بادشاه مجبور کړو.(نو حد به نه وی).وَقَالَا صاحبین رحمهما الله فرمانی.لَا يَلْزَمُهُ الْحَدُّ) چې په ده به حد لازم نه وی.

**تشريح** البته که په دې فعل باندې مجبور کونکې بادشاه وی.نو حد به واجب نه وی.

**دليله** ځکه چې د حد وجوب د زجر لپاره وی.او اکراه سره ددې اړتیا نشته.نو په دې فعل سره دده مقصد خپل هلاکت لرې کول دی.شهوت پوره کول نه دی.نو دا اسقاط به په حد کې شبه جوړیږی.پاتې شو د آلې انتشار، نو هغه کله کله طبعی طور باندې هم کیږی.لکه د اوده سړی د آلې انتشار د ارادې

او اختیار نه بغیر کیږی.بیا د بادشاه استثناء د امام ابوحنیفه رحمه الله په مرجوع الیه قول کې دی.د مخکنی قول مطابق اکراه کونکې که بادشاه وی.او که دده نه علاوه بل څوك وی.په دواړو صورتونو کې حد واجب دی.د صاحبینو رحمهما الله په نیز دواړو صورتونو کې حد واجب نه دی.

**مکره په مرتد کیدلو باندې د مجبوره ښځې حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا أُكْرِهَ عَلَى الرِّدَّةِ)که مجبور کړې شو په مرتد کیدلو باندې،لَمْ تَبِنْ امْرَأَتُهُ مِنْهُ)نو دده ښځه به بائنه نه وی. |

**تشریح>** نفس مسئله آسانه ده.

**دلیله>** څکه چې د ردت تعلق اعتقاد سره دی. آیا نه ګوري. که دده زړه په ایمان مطمئن وی. نو نه کافر کیږی. او دلته د کفره اعتقاد کې شك دی. نو د شك په وجه بائنه کیدل به نه ثابتیږی.

## كِتَابُ السِّيَرِ

**ترجمه>**(دا) کتاب د جهاد(په بیان کښې) دی.

**تشریح> تعریف السیرلغة >** السیرجمع د «سیرة» ده.اودا طریقې ته وائی په کارونو کښې، (یعنی کارونه چه په کومه طریقه باندې کولی شی.هغې ته «السیرة» وائی.

**تعریف السیر شرعاً>** اوپه شریعت کښې خاص دی په طریقې دنبی ﷺ پورې په غزواتو خپلو کښې، (یعنی نبی ﷺ چه په کومه طریقه جهاد کړې دی.هغه طریقې ته سیرة وائی)

**د جهاد حکم**

| |
|---|
| الْجِهَادُ فَرْضٌ عَلَى الْكِفَايَةِ إِذَا قَامَ بِهِ فَرِيقٌ مِنَ النَّاسِ سَقَطَ عَنِ الْبَاقِينَ) |

**ترجمه و تشریح>** جهاد (په عامو حالاتو کښې) فرض کفایه دی.کله چه اودریږی په دې باندې یوه ډله دخلقونه،نوساقطیږی د نورو نه(یعنی جهادفرض کفایه دی.څکه چه د فرض کفایه تعریف دا دی.چه په مسلمانانو کښې یوه ډله هغه کوی.نود ټولوغاړه خلاصه وی.اوکه څوك نې هم نه کوی .نوټول به ګناهګاروی.لکه دجنازې مونځ راواخله.په متن کښې دوه خبرې دی.یوه دا چه جهاد فرض دی. اوبله دا چه علی الکفایه دی.

**دلائله>** ① دالله تعالی د دې ارشاد دوجې چه ﴿وَقَاتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَافَّةً كَمَا يُقَاتِلُونَكُمْ كَافَّةً﴾ جنګیږئ مشرکانو سره تاسو ټول لکه څنګه چه جنګیږی دوئ تاسو سره ټول، (نواصل په کتاب الله سره د جهاد فرضیت ثابت دی.

② نبی کریم ﷺ فرمائیلی دی ﴿الْجِهَادُ مَاضٍ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ﴾ (۱) جهاد به جاری وی ترقیامته پورې

**د جهاد پرېښودو ګناه**

| |
|---|
| (فَإِنْ لَمْ يَقُمْ بِهِ أَحَدٌ أَثِمَ جَمِيعُ النَّاسِ بِتَرْكِهِ) |

۱) من حدیث انس رضی الله عنه اخرجه ابوداو فی الجهاد باب ۳۳رقم ۲۵۳۲،

**ترجمه و تشریح** > اوکه اهتمام اونکړلوددي(جهاد) هیڅ کس(په مسلمانانوکښې) نو ګناهګاریږي ټول خلق په پریخودو ددې (جهادچه فرض کفایه دې)

**دلائله** > ① ځکه چه وجوب په ټول(خلقو) دې. (اوپه ترک د واجب ګناه لازمیږي.اودویم دلیل ددې دفرض کفایه دپاره دا بیانوي)

② ځکه چه مشغول کیدو د ټولو(خلقو) په دې (جهاد) کښې ختمیدل د سامان د جهاد دي.لکه اسونه،اووسله شوه، (نوهرکله چه سامان اوآلات د جهاد ختم شي.نولازمی خبره ده.چه جهادبه په څه کیږي؟ددې وجې ضروری ده.چه څه مسلمان په جهاد کښې مشغول وي.اوڅه کسان په هغه کارونوکښې مشغول وي.چه دجهاد دپاره داسبابواوذرایعو حیثیت لري. لکه په موجوده وخت کښې سائنسی علوم،اقتصادی علوم وغیره شول.هرکله چه د جهاد اسبابو او آلاتو پیدا کول هم ضروري دي.اوبعضې خلقوپه دې کښې مشغول کیدل ضروری دي.نونتیجه دا راووتله. چه) واجبیږي (جهاد) علی الکفایه، (یعنی چه بعضې مسلمانان په کښې مشغول وي.نود نوروغاړه خلاصه شوه)

## داقدامی جهاد حکم

(وَقِتَالُ الْكُفَّارِ وَاجِبٌ) وَإِنْ لَمْ يَبْدَءُونَا

**ترجمه و تشریح** > اوجنګ کول د کافرانوسره واجب دي اګرچه هغوی حمله نه وي کړې په مونږ باندې(یعنی کله چه کافران د اسلام قبلولواودجزیه ورکولونه انکاراوکړي.نوددې نه پس دوئ سره جهاد کول واجب دي. اګر چه ددې دواړوڅیزونو نه منلونه پس هغوئ په مسلمانانوحمله نه وي کړې)

**دلیله** > د جهاد په فرضیت چه کوم آیاتونه اواحادیث راغلی دي.لکه دالله تعالی قول چه جنګیږئ کافرانوسره ټول، دغه شان نبی ﷺ فرمائیلی دي.جهاد به ترقیامته پورې جاري وي.اوددې بیان په کښې نشته.چه هله په تاسوجهاد لازمیږي.چه کافران په تاسو حمله اوکړي. نو ددې نصوصودعموم دوجې اقدامی جهادهم جائز دې)

## په چاچه جهادفرض نه دي

(وَلَا يَجِبُ الْجِهَادُ عَلَى صَبِيٍّ)

**ترجمه و تشریح** > اونه واجبیږي (جهاد) په ماشوم باندې

**دلیله** > پکارده چه ماشوم باندې آسانتیا اوشفقت اوکړې شي.اوکه مونږ په ده جهاد واجب کړو. نوجهاد چونکه ګران کاردي.نودې په مشقت کښې اخته کیږي.اوشفقت د مشقت تقاضا نه کوي.اوبله دا چه ماشوم مرفوع القلم دې)

وَلَا عَبْدٍ وَلَا امْرَأَةٍ

**ترجمه** > اونه (واجبیږي) په غلام اوپه ښځه

**تشریح** > **دلیله** > په عامو حالاتو کښې په غلام دخپل مولی اوپه ښځه باندې د خپل خاوندحق مقدم دي.البته که دجهاد دپاره عام اعلان اوشي.نوبیا به د مولی اودخاوند اجازت نه بغیرجهاد ته ځي

(وَلَا أَعْمَى وَلَا مُقْعَدٍ وَلَا أَقْطَعَ

**ترجمه** > اونه (واجبیږي) په ړونداوپه شل اوچه پښه ئې کټ شوې وي.

**تشریح** > **دلیله** > په جهاد کښې شرکت ددې دپاره وي.چه ددشمن مقابله اوکړي. یا د مجاهدینومدد اوکړي.اودا کسان په خپله د نورو دخدمت محتاج دي.نودوئ به په خپله څه جهاد اوکړي)

دشمن د حملې په صورت کښې د جهاد حکم

(فَإِنْ هَجَمَ الْعَدُوُّ عَلَى بَلَدٍ وَجَبَ عَلَى جَمِيعِ الْمُسْلِمِينَ الدَّفْعُ تَخْرُجُ الْمَرْأَةُ بِغَيْرِ إِذْنِ زَوْجِهَا وَالْعَبْدُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمَوْلَى)

**حل اللغة**﴿ ① **هجم**:حمله ② **العدو**:دشمن ③ **بلد**:ښار

**ترجمه و تشریح**﴿ كه حمله اوكړله دشمن (يا ناڅاپه حمله ئې اوكړله) په يوښار (د مسلمانانو) باندې واجب شوه په ټولوخلقو باندې،دفاع كول (اومقابله كول اومقابله كول د دشمن.نو) اوځى به ښځه بغيرد اجازت دخاوند نه اوغلام بغيرد اجازت د مولى نه،

**دليله**﴿ (اودليل دا دې.چه) اوګرځيدلو جهاد فرض عين،اوملك يمين (په غلام اووينځه كښې) اورقيت د نكاح (په ښځه كښې) نه ښكاره كيږي په مقابله د فرض عين ځيزونوكښې. (يعنى چه كله د مولى اودخاونددحق مقابله د فرض عين سره راشي.نوفرض عين به مقدم وى د دوى په حقوقو باندې.اول به فرض عين ادا كولې شى) لكه په مونځ اوروژه كښې(يعنى كه مولى يا خاوند ښځه د فرضى مونځ يا روژې نه منع كوى.نودوى به په دې كښې دهغوئ تابعدارى نه كوى.ځكه چه دمخلوق تابعدارى به په ځيز كښې نه كوى.چه د خالق په كښې نافرمانى وى)

**حكم الجهاد قبل النفير العام**﴿ په خلاف دعام اعلان نه وړاندې (يعنى چه د جهاد دپاره عام اعلان نه وى شوې. نوپه هغه صورت كښې د غلام دپاره د مولى نه اودښځې دپاره د خاوندنه اجازت غوښتل ضرورى دى) ځكه چه بغيرددې دواړو(غلام اوښځې) نه ګذاره كيږي (ددشمن دمقابلې.نودعام اعلان نه وړاندې چونكه غلام اوښځې ته څه ضرورت نه وى) نونشته ضرورت باطل كولوحق دمولى اودخاوندته (بغيرد ضرورته)

(وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُونَ دَارَ الْحَرْبِ فَحَاصَرُوا مَدِينَةً أَوْ حِصْنًا دَعَوْهُمْ إِلَى الْإِسْلَامِ)

**حل اللغة**﴿ ① **حاصروا**:ګيراؤ واچوى ② **مدينة**:ښار ③ **حصن**:قلعه

**ترجمه و تشریح**﴿ كله چه داخل شى مسلمانان دارالحرب (دكافرانوملك) ته،اومحاصره كړى (ګيركړى) يوښاريا قلعه، (يعنى هرهغه ځاى چه دهغې مينځ ته بغيراجازته ورتلل نشى كيدې. نودټولونه اول) رابلى به دوى اسلام ته (چه تاسواسلام قبول كړئ)

**دليله**﴿ د دې وجې چه فرمائيلى دى حضرت ابن عباس رضي الله عنهما چه نبى ﷺ هيڅ يوقوم سره جهاد نه دې كړې.تردې چه راوبلل به ئې دوئ اسلام ته (چه تاسوايمان راوړئ) (۱)

(فَإِنْ أَجَابُوا كَفُّوا عَنْ قِتَالِهِمْ)

**ترجمه و تشریح**﴿ كه دوى قبول كړلو دعوت (اواسلام ئې قبول كړلو) نومنع به شى (مسلمانان يا منع به كړى مسلمانان خانونه خپل) د جنګه ددوئ نه (يعنى دوئ سره به جنګ نه كوى)

**دليله**﴿ دوجې د حاصليدو د مقصود (دجهادچه كوم مقصددې.هغه په دارالكفركښې دالله تعالى د دين غلبه ده. نو چه دوى ايمان راوړل.هغه مقصود بغيردقتال نه حاصل شو.نوقتال ته څه حاجت پاتې نشو اودوئ سره به د جنګ كولونه ځكه منع كيږي) يقيناً فرمائيلى دى نبى ﷺ أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ.

۱) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه عبدالرزاق رحمه الله في مصنفه والحاكم في المستدرك(۱\۱۵) واحمد في المسند(۱\۲۳۱)۔

حَتّٰى يَقُولُوا لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ} (۲)ماته حکم شوی دی چه جنگیږه خلقو سره تردې چه دوئ اووائی.نشته لائق دعبادت سوا دالله نه حدیث تراخره پوری، اولوله، (یعنی اوچاچه لااله الا الله اوونیل.نوده محفوظ کړل زما نه مال خپل اونفس خپل مګرپه حق دشریعت سره، یعنی که دې یومسلمان قتل کړی.یا زنا اوکړی.نوبیا به دده وینه محفوظ نه وی.اودده حساب په الله تعالی دې.نوکه په ظاهره ئې کلمه ونیلې وی.اوپه باطن کښې کافر وی. زه به ظاهرته ګورم.دنفاق حساب به ورسره الله تعالی دقیامت په ورځ کوی)-

**دجزیه مطالبه کول**

| |
|---|
| (وَإِنْ امْتَنَعُوا دَعَوْهُمْ إِلَى أَدَاءِ الْجِزْيَةِ) |

**ترجمه و تشریح**> اوکه منع شو(کافران یعنی دایمان راوړلونه ئې انکاراوکړلو) راوبه بلی دوی (کافران) ادا کولو دجزیه ته

**دلیله**> په دې (دعوت ورکولوباندې) حکم کولورسول الله ﷺ دلښکروامیرانو ته (چه اول به تاسو دوئ ته دایمان دعوت ورکوئ.خوکه دایمان راوړلونه انکاراوکړی.نودا به ورته وائې.چه جزیه قبوله کړئ.یعنی تاسویه مونږ ته ټیکس راکوئ.اودهغې په بدله کښې به اسلامی حکومت تاسوته د جان اومال امن درکوی)

**جزیه ورکولوته تیاریدل**

| |
|---|
| (فَإِنْ بَذَلُوهَا فَلَهُمْ مَا لِلْمُسْلِمِينَ وَعَلَيْهِمْ مَا عَلَيْهِمْ) |

**ترجمه و تشریح**> که دوئ قبوله کړی دا (جزیه مسلمانانوته، یعنی په ورکولوباندې راضی شی.اګرچه ورکړې ئې نه وی) نودوئ دپاره به هغه (حقوق) وی.کوم چې د مسلمانانودپاره وی. (اسلامی حکومت به د دوئ د مال او جان حفاظت کوی)اوپه دوئ باندې به وی هغه ذمه واری وی.کومه چه په مسلمانانو وی. (لکه دحاکم اطاعت کول وغیره.اودوئ ته به په جزیه ورکولود مال اوجان حفاظت ملاویږی)

**دلیله**> د قول د علی ؓ د وجې (هغوئ فرمائیلی دی) یقیناً دوئ (کافران) ورکوی جزیه دې دپاره چه شی چه وینې ددوئ (په حفاظت کښې) پشان د وینو زمونږاوشی مالونه د دوئ پشان د مالونو زمونږ(نولکه څنګه چه د مسلمان دمال اوجان حفاظت د اسلامی حکومت ذمه واری ده.دغه شان به د هغه کافرانودجان اومال حفاظت هم داسلامی حکومت ذمه واری وی.څوك چه جزیه ورکوی) (۱)

**ددعوت اسلام نه وړاندې دجهادکولوممانعت**

| |
|---|
| (وَلَا يَجُوزُ أَنْ يُقَاتِلَ مَنْ لَمْ تَبْلُغْهُ دَعْوَةُ الْإِسْلَامِ إِلَّا بَعْدَ أَنْ يَدْعُوهُمْ) |

**ترجمه و تشریح**> اوجائزنه دی چه جنګ اوکړې شی دهغه چا سره چه نه وی رسیدلې هغه ته دعوت داسلام (یعنی چا ورته د اسلام دعوت نه وی ورکړې.مګردا چه راوې بلی دې (اسلام) ته،

**دلائله**> ① دوجې د وینا دنبی ﷺ نه په وصیت کولوکښې د لښکروامیرانوته(یعنی کله چه به نبی ﷺ

---

۲) من حدیث أبی هریرة ؓ اخرجه البخاری فی الجهاد باب ۱۰۲ ومسلم فی الجهاد رقم ۱) وأبوداود فی الجهاد باب ۹۲) واحمد فی المسند(۲\۳۱)۔

۱) غربه الزیلعی ؒ بهذا اللفظ ثم نقل روایة أبی الجنوب الأسدی قال قال علی بن أبی طالب ؓ من کانت له ذمتنا فدمه کدمنا ودیته کدیتنا،وعزاه إلی دارقطنی (نصب الرایة ۳\۵۸۷)۔

دجهاد دپاره لښکر لیږل. نودهغوی امیرته به ئې داحکم کولو.چه) دوئ (کافران) راوبله،کواهئ ددې خبرې ته چه نشته لائق دعبادت سوا دالله تعالی نه (یعنی دالله تعالی وحدانیت طرف ته دعوت ورکړه . (۱)

② په دعوت ورکولوسره به دوئ پوښه شي.چه مونږ (مسلمانان) دوئ (کافرانو) سره د دین دپاره جنګ کوو.د دوئ د مالونو اخستلودپاره ورسره نه کوو. (چه ددوئ نه به ددوئ مالونه اخلو) اود قیدکولود اهل وعیال ددوئ دپاره(یعنی زمونږ مسلمانانو د جهاد مقصد د نورو قومونوپشان د مال اودولت لوټ کول اود دښمن غلام جوړول نه دی.بلکه مونږ صرف دالله تعالی د دین د غلبه دپاره جهاد کوو.نودوئ به ددې نه متاثره شي.چه دا خلق د مال دولت لالچیان نه دی) نوکیدې شي چه دوئ قبول کړي (دعوت داسلام) نومونږ به خلاص شود مشقت دجنګ نه (ځکه چه د کوم مقصد دپاره مونږ جهاد کولو.هغه مقصد د جهاد نه بغیرحاصل شو)

**ددوباره دعوت ورکولواستحباب**

| |
|---|
| (وَيُسْتَحَبُّ أَنْ يَدْعُوَمَنْ بَلَغَتْهُ الدَّعْوَةُ الى الاسلام) |

**ترجمه و تشریح>** اومستحب دی چه دعوت ورکړی هغه چاته چه رسیدلي وی ورته دعوت (د دین اسلام)

**دلیله>** دپاره د مبالغه کولوپه ویرولوکښي، (یعنی چه دوئ ته دوباره اووئیلی شي.چه تاسوایمان راوړئ.کني بیا به ستا د مال اوجان خیرنه وی)

| |
|---|
| وَلَايَجِبُ ذَٰلِكَ |

**ترجمه و تشریح>** اوواجب نه دی دا (دوباره دعوت ورکول)

**دلائله>** ① ځکه چه په صحت سره ثابته شوې ده.چه نبی ﷺ ناڅاپه حمله کړې وه په بنی مصطلق (چه د بنوخزاعه یوه قبیله وه) په داسې حال کښي چه هغوئ غافله وو.(۲)

② اودغه شان اسامه بن زید ﷺ ته ئې حکم کړې وو.چه ناڅاپه حمله اوکړی په (فلسطین کښي) په ابنا مقام باندې په وخت د صبا،اوبیا پرې هور اولګوی. (۳)

**داسلام اوجزیه ورکولونه دانکارصورت**

| |
|---|
| فَإِنْ أَبَوْا اسْتَعَانُوا بِاللّٰهِ عَلَيْهِمْ وَحَارَبُوهُمْ |

**ترجمه و تشریح>** (ابو الحسن قدوری ﷫) فرمانی.که دوئ (کافرانو) انکاراوکړلو(د جزیه ورکولونه) نومدد به اوغواړی (مسلمانان) دالله تعالی په دوئ (کافرانو)باندې،اوجنګ به اوکړی دوئ (کافرو) سره،

**دلیله>** دوجې د وینا د نبی ﷺ نه په حدیث د سلیمان بن بریده ﷺ (کوم چه وړاندې په شرح کښي

---

۲) تقدم تخریجه فی حدیث بریدة ﷺ)۔

۲) من حدیث ابن عون ﷺ اخرجه البخاری فی الجهاد باب ۱۰۲ ومسلم فی الإیمان رقم ۳۳)۔

۳) من حدیث اسامة بن زید ﷺ ان رسول الله ﷺ کان عهد إلیه،فقال اغرعلی أبنی صباحاً وحرق اخرجه ابوداود فی الجهاد رقم ۲۶۱۶ وابن ماجه فی الجهاد رقم ۲۸۴۳)۔

تیرشو.په هغې کښې دا هم دی) که دوئ (کافرانو) انکاراوکړلو ددې (ایمان راوړولو) نه،نو راوبله دوئ ورکولود جزیه ته(چه ایمان نه راوړئ نوجزیه راکړئ) تردې چه (په دغه حدیث کښې) نبی ﷺ فرمائیلی دی.که دوئ (کافران) انکاراوکړی ددې(جزیه ورکولو) نه، نو مدد غواړه دالله تعالی نه په دوئ باندې،اوجنګیږه دوئ سره، (۱)

## دمچونړې لګولو حکم

(وَنَصَبُواعَلَيْهِمُ الْمَجَانِيقَ)

**حل اللغة** ① **نصب**:اودرول، ② **مجانيق**:،جمع ده هغه لويه لينده چه غټ كاڼړى په كښې ويشتلې شي

**ترجمه** اواوبه لګوئ په دوئ (كافرانو) باندې (دمقابله په غرض)مچونړه، (دا يوه غټه لينده ده.چه په دې كښې غټ كاڼړې كيخودې شي.اوبيا پرې په دشمن باندې ګزاركولې شي.په پخوانئ زمانه كښې به ددې نه د قلعه ګانوماتولوكاراخستې شو.اوپه موجوده زمانه كښې د توپواو ميزائلونه دا كاراخستې شي.ددې وجې د منجنيق استعمال ترك شوې دې)

**دليله** لګولې وې رسول الله ﷺ په اهل طائف باندې (په غزوه حنين كښې) (۲)

(وَحَرَّقُوهُمْ)

**تشريح** اواوبه سوزوى دوئ (يعنى د دشمن علاقې)

**دليله** څكه چه نبی ﷺ سوزولې وو مقام بويره(۳)(هغه دا چه نبی ﷺ د يهودواوبنونضيرود قجوروونې سوزولې وې.اوكټ كړې وې.خوددې نه دا نه معلوميږى.چه د كافرانوسوزول هم جائز دى.څكه چه په بل حديث كښې ددې نه منع راغلې ده.چه په اورباندې به صرف هغه ذات عذاب وركوى.چه مالك اوخالق د اوردې)

## داوبوپريښودلوونوكټ كولواوپټوخرابولوحكم

(وَأَرْسَلُوا عَلَيْهِمُ الْمَاءَ وَقَطَعُوا أَشْجَارَهُمْ وَأَفْسَدُوا زُرُوعَهُمْ)

**ترجمه و تشريح** (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمائى.او راخوشې به كړى په دوئ (كافرانو) باندې اوبه،اوكټ به كړى ونې ددوئ اوخراب به كړى فصلونه د دوئ

**دليله** څكه چه په دې ټولو(كارونو)كښې ددوئ (كافرانو) ذلت، ددوئ غصه كول، او د دوئ طاقت ختمول،ددوئ د ډلې منتشركول دى. (اګرچه في نفسه دا كارونه جائزنه دى. ليكن ددې په كولوكښې مقصود دا دې.چه كافران دې ته اوګورى.نودهغوى حوصله به كمزورې شي. او هم دا څيزونه به دهغوى د شكست اوماتى سبب اوګرځى) نوكيږى (كول ددې كارونو) جائز.

---

۱) تقدم تخريجه فى حديث بريدة رضي الله عنه_

۲) من حديث ثوربن يزيد رضي الله عنه اخرجه الترمذى فى الإستيذان واخرجه ابوداود فى المراسيل برواية مكحول (نصب الراية ۵۸۹\۳)-

۳) من حديث ابن عمر رضي الله عنهما اخرجه البخارى فى المغازى باب ۱۴ ومسلم فى الجهاد رقم ۲۹ وأبوداود فى الجهاد باب ۸۳ رقم ۲۶۱۵ والترمذى فى السيرباب ۴ وابن ماجه فى الجهاد باب ۳۱ رقم ۲۸۴۴ وأحمد فى المسند (۱۲۳\۲)_

## دمسلمان په وجه په کافرانودکانړوګذارولو نشی بندولی

(وَلَا بَأْسَ بِرَمْيِهِمْ، وَإِنْ كَانَ فِيهِمْ مُسْلِمٌ أَسِيرٌ أَوْ تَاجِرٌ)

**ترجمه و تشریح** اونشته څه باك په كانړوويشتلو دوئ (كافرانو) كښې اګرچه وى په دوئ كښې مسلمان قيدى يا (مسلمان) سوداګروى. (اودوئ هغه مسلمان د ډال په طوردخپل لښكروړاندې كړى.كه دوى په مونږ ګذاركوى.نودا خپل مسلمان ورور به اولى.بلكه كه داسې وى.نوهم به مسلمانان په كافرانود كانړو ګزارونه كوى)

**دلائله** ① څكه چه په ويشتلوكښې(مقصد)لرې كول د ضرر عام دې.د ولې دمسلمانانو(يعنى مسلمانان چه په كافرانوياندې د كانړو ګذارونه كوى.په دې كښې د دوئ مقصد دا وى.چه ټول مسلمانان د كافرود شرنه محفوظ شي.اودمسلمانانوپه ګذارمسلمان قيدى يا سوداګرمړشي.نو) په قتل كولود (مسلمان) قيدى او سوداګركښې ضرر خاص دې. (چه صرف دغه قيدى اوسوداګرته رسى.څكه چه قاعده دا ده.كه د عامو خلقو د فائدې دپاره يوكس ته نقصان وى.نودغه د نقصان دوجې به دعاموخلقوفائده نشى پريخودې.مثلاً د غل په لاس كټ كولوكښې عاموخلقوته دا فائده ده.چه څوك دې ته ګورى.كه غلا اوكړم. نولاس به مې كټ كيږى .د دې وجې به څوك د غلا جراءت نشى كولې.اوپه معاشره كښې به خلقوته امن ملاؤ شي.اوس په لاس كټ كولوكښې اګرچه د غل نقصان دې.خودعاموخلقود فائدې په مقابله كښې به دده نقصان نه نشى كتې.)

② اودې دپاره بل عقلى دليل كه دكافرانوپه ډله كښې مسلمان موجود وى.نوهم به په هغوى حمله كولې شي.اودهغه مسلمان دوجې به حمله اودكانړو ويشتل نشى بندولې.دا بيانوى) اوبله دا چه ډيركم كرته داسې وى.چه خالى وى يوه قلعه (دكافرانو) د مسلمان نه،نوكه چرته منع اوكړې (دحملې كولواود كانړو ويشتلونه) دده (مسلمان) په وجه، نوبند به شي دروازه دجهاد(حالانكه نبى ﷺ فرمائيلى دى.چه جهاد به ترقيامته پورې جارى وى)

## دمسلمانانوماشومانو اوقيديانونه ډال جوړولوپه صورت كښې دحملې حكم

(وَإِنْ تَتَرَّسُوا بِصِبْيَانِ الْمُسْلِمِينَ أَوْ بِالْأَسَارَى لَمْ يَكُفُّوا عَنْ رَمْيِهِمْ)

**حل اللغة** ① ترس:ډال جوړول ② رمي:ويشتل

**ترجمه و تشريح** اوكه (كافران) ډال جوړ كړى دماشومانودمسلمانانو نه يا (مسلمانانو) قيديانونه. نه به منع كيږى (مسلمانان) د ويشتلو ددوئ نه. (بلكه په دوئ به ګذارونه كوى)

**دليله** دهغې وجې نه كومه چه مونږ بيان كړه (چه په ويشتلوكښې دعامومسلمانانوفائده ده.اوپه نه ويشتلوكښې ددغه مخصوص ماشومانو او قيديانو فائده.اوانفرادى فائدې دپاره به اجتماعى فائده نشى پريخودې.

(وَيَقْصِدُونَ بِالرَّمْيِ الْكُفَّارَ)

**ترجمه و تشريح** البته دومره ده.چه كله دوئ په كافرانو باندې ګذاركوى.نو) قصدكوى به په ويشتلوكافران(يعنى دوئ به دا وانى.چه دا مونږ كافران اولو .د مسلمان د ويشتلوقصد به په زړه كښې نه راولى)

**دليله** څكه چه په دې صورت كښې (چه مسلمانان ماشومان يا قيديان د كافرو په ډله كښې د ډهال په طوراستعماليږى) كه متعذر(اوګران) وى فرق كول (دكافر او مسلمان په مينځ كښې چه په دې كښې كافركوم دې اومسلمان.كوم دې؟ چه په كافر ګذار اوكړى. او مسلمان بچ كړى) خوممكن ده

پیژند ګلو کول په قصد اواراده کښې. (چه په نیت کښې دا راولي.چه زه په دې خپل ګذاربانده کافراولم.مسلمان نه اولم.اوپه دې قاعده به عمل کولې شي.((ما لایدرك كله لایترك كله)) یعنی چه ټول نشي رالاندې کولې.نوټول به پریخوې هم نشي. (اود کافرانود ویشتلو او د مسلمان د بچ کولوقصد به څکه کوی .چه جهاد لوې عبادت اوتابعداری ده)اوتابعداری په اندازه د قدرت وی. (یعنی سړی هغه هومره تابعداری کولې شي.اوپه هغه هومره تابعدارئ مکلف دې. څومره چه دده په وس اوقدرت کښې وی.اوپه موجوده صورت کښې دې په دې نه دې قادر.چه دکافروپه صف کښې مسلمان دخپل ګذارنه بچ کړی.خوپه دې قادردې.چه په ګذار کولوکښې د کافرد ویشتلونیت اوکړی)

**ځان سره دارالحرب ته د زنانواومصاحفو بوتلل اواوړل**

| |
|---|
| (وَلَابَأْسَ بِإِخْرَاجِ النِّسَاءِ وَالْمَصَاحِفِ مَعَ الْمُسْلِمِينَ إِذَاكَانُوا عَسْكَرًا عَظِيمًا يُؤْمَنُ عَلَيْهِ) |

**ترجمه و تشریح** ﴿ (ابو الحسن قدوری رحمه الله)فرمائي.اونشته باك په بوتلود زنانو (دارحرب ته اوپه اورلود) مصاحفو سره د مسلمانانوچه وی لښکر(دمسلمانانو) لوئې چه (غالب ګمان د) امن وی دهغې(دواپس راتلو .

**دلیله** ﴿ او د غالب قید موځکه کیخودلو.چه) غالبه (په لوئې لښکرو کښې) سلامتیا وی. (چه دا لوئې لښکرچونکه د خپل تعداد اواسبابوپه وجه طاقتوردې.نوغالب ګمان هم دا وی.چه دوئ ته به فتح حاصلیږی) اوغالب پشان د متحقق وی. (یعنی کوم څیزچه په غالب ګمان سره حاصل وی.دا حکماً داسې ده.لکه چه په حقیقت کښې حاصل وی.لکه که د یوکس دا غالب ګمان وی.چه په دغه ځائې کښې به اوبه وی.اودې داوبولټون اونکړی.اوپه تیمم باندې مونځ اوکړی.دده تیمم نه صحیح کیږی.اګرچه دا احتمال شته.چه هلته کښې اوبه نه وی.خوچونکه غالب ګمان داسې دې.لکه چه موجود وی.ددې وجې دده تیمم نه صحیح کیږی.دغه شان په زیربحث مسئله کښې هم چه غالب ګمان ددوئ غلبه وی.نوددې نه دا هم معلومیږی.چه دوئ به واپس شي)

| |
|---|
| (وَيُكْرَهُ إِخْرَاجُ ذٰلِكَ فِي سَرِيَّةٍ لَا يُؤْمَنُ عَلَيْهَا) |

**ترجمه و تشریح** ﴿ اومکروه دی بوتلل ددې (ښځواومصاحفو) په هغه سریه (ورکوټی لښکر) کښې چه (غالب ګمان د) امن نه وی په هغې باندې. (بلکه دکم والی دوجې دا ویره موجود وی.چه کیدې شي.مشکلاتو سره مخامخ شي

**دلیله** ﴿ څکه چه په دې (صورت کښې چه غالب ګمان دامن نه وی بلکه دخطرې پیش کیدووی) ورمخامخ کول ددوئ (ښځو) دی ضائع کیدو ته اورسوائې ته (چه مسلمانان دکافرومقابله کوی.اوخدائې دې نکړی دوئ ته شکست ملاؤ شي.نوکومې زنانه چه ئې ځان سره بوتلی وی.هغوی به دکافروپه قبضه کښې راشي.دهغوی عصمت اوعزت به محفوظ پاتې نشي.اودا لویه رسوائی ده) اومخامخ کول د مصاحفو دی بې عزتئ ته (یعنی کوم قرآن شریفونه چه ئې وړی وی.هغه به ورك شي.یا به ئې دشمن بې حرمتی اوکړی) څکه چه کافران سپکوالې کوی ددې (مصاحفو) دپاره دغصه کولود مسلمانانو.اوهم دا تاویل دې صحیح د قول د نبی ﷺ دپاره چه سفرمه کوئ د قرآن سره زمکې د دشمن تلا⁽¹⁾، (یعنی دا منع چه راغلې ده.په هغه صورت کښې چه دقرآن پاك د ضائع کیدو خطره

۱) من حدیث ابن عمر رضي الله عنهما أخرجه البخاری فی الجهاد باب ۱۲۹ رقم ۲۹۹۰ ومسلم فی الإمارة رقم ۹۲ وأبوداود فی

وي.اوكه غالب گمان دا وي.چه په دغه خاني كېدو به مسلمانانوته كاميابي ملاوېږي.نوبيا د ښځوپه بوتلاود مصاحفوپه وړلوكېدو څه كراهت نشته)

**صورة الجواز>** اوكله چه داخل شي مسلمان ددوئ (وطن) ته په امان سره(لكه په موجوده وخت كېدو چه مسلمانان دكافرانوملك ته ويزه اخلي.اوخي) نونشته باك چه واخلي خان سره مصحف، (دغه شان حكم د نورودينى كتابونوهم دي.لكه تفسير حديث فقه) چه وي (دغه كافران) داسي خلق چه وفا كوي د وعدي(يعني چه مسلمان سره ئي دامن لوظ كړي وي.چه تاته به دلته څه نقصان نه رسي.اوهغوي دلوظ خلاف ورزي نه كوي.نوبيا د دغه كافرو ملك ته دقرآ پاك وړل جائزدي)څكه چه ظاهرعدم تعرض دي. (چه كله سړي يوملك ته په ويزه باندې داخل شي.نوغالب گمان هم دا وي.چه هغوي به ده ته څه نه وائي.اوكه داسي خلق وي.چه د وعدې پابند نه وي.نوبيا دداسي كسانوملك ته خان سره قرآن شريف اوړل جائزنه دي)

**دخاونداومولي نه د اجازت غوښتلوحكم**

| |
|---|
| (وَلَاتُقَاتِلُ الْمَرْأَةُ إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا وَلَا الْعَبْدُ إِلَّا بِإِذْنِ سَيِّدِهِ) |

**ترجمه و تشريح>** اوجهادبه نه كوي ښځه مگرپه اجازت د خاوند خپل،اونه (به جهاد كوي) غلام مگرپه اجازت د مولي خپل،دهغه وجي نه كومه چه مونږ بيان كړه. (چه په حقوق الله باندې حقوق العباد مقدم دي)

| |
|---|
| إِلَّا أَنْ يَهْجُمَ الْعَدُوُّ |

**حل اللغة>** ① **يهجم**:ناڅاپي حمله

البته دا چه حمله اوكړي دشمن په وطن (نوپه دغه وخت كېدو د خاونداومولي داجازت نه بغيرهم د ښځې اوغلام دپاره په جهاد كېدو شركت كول جائزبلكه ضروري دي) د وجې د ضرورت نه،

**ددهوكه،خيانت اومثله ممانعت**

| |
|---|
| وَيَنْبَغِي لِلْمُسْلِمِينَ أَنْ لَا يَغْدِرُوا وَلَا يَغُلُّوا وَلَا يُمَثِّلُوا |

**حل اللغة>** ① **الغدر**:دهوكه كول ② **المثلة**:انساني اندامونه كټ كول ③ الغلول: په مال غنيمت كېدو د تقسيم نه وړاندې څه څيز اخستل.

**ترجمه و تشريح>** اومناسب دي (يعني حرام دي) دمسلمانانودپاره چه نه كوي دهوكه اونه (به كوي) خيانت (په مال غنيمت كېدو) اونه (به كوي) مثله

**دليله>** (څكه چه دا كارونه دمسلمان د شان سره نه ښائي. د نبي ﷺ ارشاد دي لَا تَغُلُّوا وَلَا تَغْدِرُوا وَلَا تُمَثِّلُوا {( )چه تاسو په (مال غنيمت كېدو) خيانت مكوئ.اودهوكه مه كوئ (دشمن سره) اومثله مكوئ. (ددشمنانوپه لاشونو)

**دجهادنه معذوره خلقوپه جهادكېدو دنه قتلولوحكم**

| |
|---|
| (وَلَا يَقْتُلُوا امْرَأَةً وَلَا صَبِيًّا وَلَا شَيْخًا فَانِيًا وَلَا أَعْمَى وَلَا مُقْعَدًا) |

---

الجهاد باب ۸۱ رقم ۹۲ وابوداود في الجهاد باب ۸۱ رقم ۲۶۱۰ وابن ماجه في الجهاد باب ۴۵ رقم ۲۸۷۹ ومالك في الجهاد رقم ۷ واحمد في المسند (۶\۱) والنسائي في السنن الكبرى (۲۳\۵) ورقم ۸۰۶۰)_

۱) كذا في حديث بريدة ﷺ تقدم تخريجه)_

**د لغت حل:** ① **شيخ فاني:** هغه بوډا چه ډير کمزوري وي

**ترجمه و تشريح>** اونه به قتلوي (مسلمانان په جنګ کښې) ښځه اونه ماشوم اونه شيخ فاني (چه ډيربوډا شوې اوکمزوري شوې وي) اونه شل اونه ړوند، (۱)

**دلائله>** ① ځکه چه مباح ګرځونکې دقتل هغه جنګ دې. (چه کوم کسان د مسلمانانوسره مقابله کوي.صرف هغه به په جهادکښې قتلولې شي) اونه متحقق کيږي د دوئ نه دا (جنګ) او ددې وجې (چه څوك جنګ نشي کولې هغه به نشي قتلولې) نشي قتلولې هغه کس چه يوطرف ئې وچ شوې وي. (لکه فالج وهلې وي) اوچه ښې لاس ئې کټ شوې وي.اوهغه کس چه ښې لاس اوګسه پښه ئې کټ شوې وي.ادل بدل.

② په صحت سره ثابته شوې ده.چه نبی ﷺ منع کړې ده د قتلولو دماشومانو اوښځونه، (۱)

③ بل نقلی دليل دا هم دې) په کوم وخت کښې چه اوليدله رسول الله ﷺ يوه ښځه قتل شوې نووې فرمائيل . افسوس، نه وه دا چه جنګ ئې کولې شونوولې قتل شوې ده؟(۲)

| |
|---|
| اِلَّااَنْ يَكُوْنَ اَحَدُ هٰؤُلَاءِ مِمَّنْ لَهُ رَاْيٌ فِي الْحَرْبِ) |

**ترجمه و تشريح>** مګردا چه وي يوکس په دې مذکورينوکښې چه دهغه رائې (اوتجربه) وي په جنګ کښې، (اودخپلې اوتجربه په بنياد خپلوکافروته داسې تجويزونه اومشورې ورکوي.چه هغوی ته پرې فائده رسي) يابنځه بادشه وي (نوددې قتل کول جائزدی)

**دليله>** دوجې د رسيدو د ضرر ددې بندګانوته(چونکه په کافرلښکرکښې ددې عزت وي.اودا چه څه حکم کوي.نوکافرددې حکم مني.نوهغوی به مسلمانانوته تکليف رسولوکښې او ددوئ په قتلولوکښې کوشش کوي.نوچه دا قتل کړې شي.په دې سره به دهغوئ حوصلې ښکته شي.اومسلمانانوته به فتح نصيب شي)

| |
|---|
| اِلَّااَنْ تَكُوْنَ الْمَرْاَةُ مَلِكَةً وَلَا يَقْتُلُوْا مَجْنُوْنًا مګر دا چې ښځه بادشه وي.او نه به قتلوی ليونی. |

**تشريح>** په دې صورت کښې دښځې قتل جائزدې چې هغه بادشاه وي.نود هغې قتلول جائزدي.

**دليله>** ځکه چې د هغې په قتلولو سره به د کافران حوصلې کمزورې شي.اوکه څه تعرض ورته اونکړې شي نوکيدې شي هغه په خپلې تجربې اومشرئ سره مسلمانانو ته نقصان اورسوی.

---

(۱) **مسلك الشافعي:**- امام شافعی رحمه الله مخالفت کوی زمونږ سره په شيخ فانی،شل اوړوند کښې،ځکه چه مباح ګرځونکې (دقتل دکافرانو) په نيزدده (امام شافعی رحمه الله) کفردې. (نه عجز دقتال نه.اودا کسان کافران دی. د دې وجې ددوئ قتل کول جائزدی)

۱) قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب بهذا اللفظ واخرج الجماعة إلا ابن ماجه (اي البخارى فى الجهاد باب ۱۴۷ ومسلم فى الجهاد رقم ۲۵ وأبوداود فى الجهاد باب ۱۱۱ رقم ۲۶۶۸ والترمذى فى السير باب ۱۹ والدارمى فى السيرباب ۲۴ ومالك فى الجهاد رقم ۹ واحمد فى المسند (۲\۲۲) والنسائى فى السنن الكبرى (۵\۱۸۵) رقم ۸۶۱۸)۔

۲) من حديث رباح بن الربيع الصيفى رضي الله عنه قال كنا مع رسول الله ﷺ فى غزوة فرأى الناس مجتمعين على شئ فبعث رجلا فقال :انظر على ما اجتمع هؤلاء ؟فجاء فقال:امراة قتيل فقال :ما كانت هذه لتقاتل اخرجه ابوداود فى الجهاد با ب۱۱۱ رقم ۲۶۶۹ والحاكم فى المستدرك (۲\۱۲۲) واحمد فى المسند (۳\۴۸۸)۔

## په ميدان جهاد کښې د ليونو د قتل ممانعت

(وَلَا يُقْتَلُوا الْمَجْنُونَ)

**ترجمه و تشريح** اونه به قتلوى شي ليوني

**دليله** ځکه چه دې نه دې مخاطب (په احکامو د شريعت، نودده کفرهم معتبرنشو. اوچه کفرئې معتبر نشو. نوجهادخود کافرسره کيږي)

**الاستثناء** البته دا که دې جنګ کوى (دکافرانوپه ملګرتيا کښې د مسلمانانوسره) نوقتل کولې به شي دپاره د دفع کولو د شره دده (چه مسلمانان دده د شرنه محفوظ شي)

## کافرانو سره د صلح کولو جواز

(وَإِنْ رَأَى الْإِمَامُ أَنْ يُصَالِحَ أَهْلَ الْحَرْبِ أَوْفَرِيقًا مِنْهُمْ وَكَانَ فِي ذَٰلِكَ مَصْلَحَةٌ لِلْمُسْلِمِينَ فَلَابَأْسَ بِهِ)

**ترجمه و تشريح** اوکله چه اووينى (مناسب اوګنړى) امام چه صلح اوکړى د حربيانو (کافرانو) سره يا يوې ډلې سره په دوئ کښې، اووى په دې (صلح) کښې مصلحت (اوخيګړه) دپاره دمسلمانانو نونشته څه باك په دې (صلح) کښې،

**دلائله** ① دوجې دوينا د الله تعالى نه، اوکه دوئ (کافران) تيټ (يعنى اماده) شي.صلحې ته، نو (اې پيغمبره!) ته هم (دمسلمانانودمصلحت دپاره) غاړه کيږده دوئ ته (اومصالحت ورسره اوکړه. او(که ته ددې نه ويريږې چه هسې نه دوئ دهوکه اوکړى. اوپه صلح اواعتماد کښې راته نقصان اورسوى.نوددې پرواه مکوه . بلکه) بهروسه اوکړه (په راروانو حالاتوکښې) په الله تعالى باندې،

② صلح کړې رسول الله ﷺ داهل مکه (دمکې کافرانو) سره په کال د حديبيه (چه شپږم کال د هجرت وو) په دې چه نه به وى جنګ په مينځ دده (نبى ﷺ) اودوئ (کافرانو) کښې لس کاله، (۱)نوددې نه هم دا ثابته شوه. که په مصالحت کښې دمسلمانانوخيروى.نوصلح کول جائزبلکه افضل دى.

③ دصلح په جواز باندې عقلى دليل دا دې چه مصالحت جهاد دې معنى چه د مسلمانانوپه کښې خيروى (او صلح معنى جهاد دې)ځکه چه مقصود (دجهاد)لرې کول د شر دى- (چه مسلمانان دکافرودشرنه محفوظ شي)حاصل دې په دې (صلح) سره، (ځکه چه کله د کافرانواومسلمانانوپه مينځ کښې دامن معاهده اوشي. نومسلمانان به دکافردحملې کولونه په امن کښې وى.نود معنى اومقصود په اعتبارسره دا هم جهاد شو)

## دصلح ماتولواعلان

(فَإِنْ صَالَحَهُمْ مُدَّةً ثُمَّ رَأَى أَنَّ نَقْضَ الصُّلْحِ أَنْفَعُ نَبَذَ إِلَيْهِمْ وَقَاتَلَهُمْ)

**ترجمه و تشريح** اوکله چه مصالحت اوکړى (امام) دوئ سره دڅه مودې دپاره، بيا اووينى ماتول د صلحې زيات بهتر (دمسلمانانودپاره يعنى د صلحې په ماتولوکښې دمسلمانانوزيات خيروى) نوصلح به ماته کړى دوئ سره (يعنى هغوئ ته به خبر ورکړى. چه زمونږ اوستاسوپه مينځ کښې چه کومه صلح شوې وه. هغه ختمه شوه .اوس تاسوهم آزاد ئې اومونږ هم. اوصلح ماتول جائزدى)

**دلائله** ① دصلح حديبې په شرطونو کښې يو شرط دا هم وو. چه دکومې قبيلې سره د مشرکانو

---

۱) من حديث مسور بن مخرمه ﷺ اخرجه ابوداود فى الجهاد باب ۱۵۶ رقم ۲۷۶۶)۔

معاهده وی. مسلمانان به د دهغوی سره جنګ نه کوی.او نه به دهغوی خلاف چا سره مدد کوی. او د کومو قبیلو سره چه د مسلمانانو معاهده وی. مشرکان به د هغوی سره جنګ نه کوی.او نه به د هغوی خلاف چا سره مدد کوی.دصلح حدیبي نه پس قبیله بنو خزاعه د مسلمانانو او قبیله بنو بکر دقریشو ملګری شو. دے دواړو قبیلو کښے د پخوا نه د شمني را روانه وه. د دے وجے بنو بکر په بنو خزاعه باندې حمله اوکړه. قریشو د وعدې خلاف ورزی اوکړه او بنو بکر سره امداد اوکړو. د بنو خزاعه مشر عمرو بن سالم مدینې منورې ته لاړلو.او نبي کریم صلی الله علیه وسلم نې د قریشو د خلاف ورزۍ نه خبر کړو.چه قریشو تاسو سره معاهده کړې وه.چه مونږ به دهغه چا خلاف د هغوی د دشمن سره مدد نه کوو.دچا سره چه ستاسو معاهده وی.او اوس بنوبکر په مونږ حمله اوکړه.اومشرکانو ورسره مدد اوکړلو.او تاسو سره چه نې کومه معاهده کړې وه.دهغې خلاف ورزی نې اوکړه. نبی کریم صلی الله علیه وسلم قریشو ته خبر او لیګلو چه د بنو خزاعه د قتل شوو کسانو دیت (تاوان) ورکړئ. یا د بنو بکر د معاهدې نه لاس واخلئ. او که داسې نه کوئ. نو بیا د صلح حدیبې ماتولو اعلان اوکړئ. قریشو د صلح حدیبې د ماتولو اعلان اوکړو. بیا روستو په خپلو کړو پښیمانه شو. او د معاهدې نوې کول نې اوغوښتل. خو نبی علیه السلام ترې انکار اوکړو. نبی کریم صلی الله علیه وسلم په لسم د رمضان المبارك سنه ۸ هـ (جنوری ۶۳۰عیسوی) په ورځ د چهار شنبې (بدهه) لس زره اسلامی لښکرخان سره روان کړلو. او مکې طرف ته روان شو.اوالله تعالی ورته په مکه فتح ورکړله.(۱)

② بله دا چه (دصلح جواز خوپه هغه وخت کښې وو.چه په صلح کښې د مسلمانانو فائده وه. مثلاً دصلحې د معاهدې باوجود دکافرو نه دعهد شکنۍ ویره وه.نوپه دې صورت کښې مصلحت په دې کښې دې.چه صلح ماته شی.

**دکافرودطرفه دغدارۍ صورت**

| (فَإِنْ بَدَءُوا بِخِيَانَةٍ قَاتَلَهُمْ وَلَمْ يَنْبِذْ إِلَيْهِمْ إِذَا كَانَ ذَلِكَ بِاتِّفَاقِهِمْ) |
|---|

**ترجمه و تشریح** > که شروع اوکړه هغوی(کافرانو) په خیانت (اود وعدې پابندی نې اونکړله) نوجنګیږی به دوئ سره اواعلان د ماتولود معاهدې دصلح به نه کوی.دوئ ته(چه زمونږ اوستاسو په مینځ کښې ستاسود غدارۍ دوجې دصلحې معاهده ماته شوه)کله چه وی دا (دمعاهدې ماتول) په اتفاق دهغوی سره،

**دلیله** > ځکه چه (داتفاق په صورت کښې) دوئ اوګرځیدل ماتونکی د معاهدې،نو نشته حاجت ماتولودمعاهدې ته (چه مسلمانان ورته د معاهدې ختمولواعلان اوکړی.ځکه چه هغوی په خپله دمعاهدې خیال اونه ساتل)

**دحربې کافرغلام مسلمانیدل**

| (وَإِذَا خَرَجَ عَبِيدُهُمْ إِلَى عَسْكَرِ الْمُسْلِمِينَ فَهُمْ أَحْرَارٌ |
|---|

**ترجمه و تشریح** > اوکله چه راشی د هغوی حربیانو څه غلامان د مسلمانانو لښکر ته نو هغوی آزاد دی

**دلائله** > ① ددې وجې چه روایت شوې دې چه څه غلامان دغلامانود طائف (دخلفي) مسلمانان شول.او راغلل رسول الله ﷺ ته نو نبی ﷺ فیصله اوکړله دآزادۍ د هغوی.او وې فرمائیل چه دوی آزاد شوی

---

۱) من حدیث مسوربن مخرمة ومروان بن الحکم رضي الله عنهما اخرجه البیهقی فی دلائل النبوة والطبرانی فی المعجم الکبیروالصغیرمن حدیث میمونة رضي الله عنها وابن ابی شیبة مرسلاً من حدیث عروة رحمه الله (نصب الرایة ۳\۵۹۷)_

د الله تعالى دى(١)«يعنى الله تعالى دوئ ته داسلام توفيق ورکړلو.اوددې اسلام په و چه دوئ ته حريت او آزادى ملاؤ شوه»

② بله دا چه ده«يعنى دحربى غلام چه دمسلمانانولښکرته راوتختى» محفوظ کړلو خان خپل په راتلو سره مونږ ته په پريخود سره مولى خپل «يعنى هرکله چه ده خپل مولى پريخودل اواسلامى لښکرته ئې خان راورسولو.نومحفوظ شو» اويا «محفوظ ئې کړلو خان خپل» په يوخائې کيدو باندې لښکر د مسلمانانو سره،کله چه غالب شى «مسلمانان» په دارالحرب باندې«يعنى يا ورته حفاظت د اولنئ وجې ملاؤ شو.چه خپل مولى ئې پريخودل.اويا ددې چه د مسلمانانوپه لښکرکښې شامل شو»

## په دارالحرب کښې دګياه اوخوراك دخيزونواستعمال

| |
|---|
| وَلَابَأْسَ أَنْ يَعْلِفَ الْعَسْكَرُ فِي دَارِالْحَرْبِ وَيَأْكُلُوامَاوَجَدُوهُ مِنَ الطَّعَامِ |

**حل اللغة**﴿- ① علف:ګياه

**ترجمه و تشريح**﴿ «ابو الحسن قدورى رحمه الله» فرمائى.اونشته باك په دې چه ګياه ورکړى «اسلامى لښکريه دراالحرب کښې «خپلوخاروو ته» اوخوراك اوکړى دهغه څه نه چه مومى ئې دوى«اسلامى لښکر» د خوراك دخيزونونه»

**توضيح صاحب الهداية**﴿ صاحب دهدايه فرمائيلى دى چې امام قدورى رحمه الله مطلقاً دا ذکرکړى دى.چه د غازيانودپاره دمال غنيمت د ګياه اودخوراك څيزونه استعمالول جائزدى.اودحاجت قيد ئې په کښې نه دې لګولې.که حاجت ورته وى. نو استعمالولې ئې شى.اوکه حاجت ئې نه وى.نونشى» اويقيناً شرط کړې ئې دې دا «حاجت» په يو روايت «دسيرصغير» کښې،اونه دې شرط کړې «په روايت دسيرکبير» کښې»

| |
|---|
| **دليل رواية الاطلاق**﴿ وجه داول روايت «چه حاجت ئې په کښې شرط کړې دې» دا ده.چه دا «ګياه اودخوراك خيزونه» مشترك دى په مينځ د غازيانوکښې،نونه به وى مباح فائده اخستل ددې نه مګرد ضرورت په وجه،لکه څنګه چه په جاموأوسورلوکښې دى. «يعنى دمال غنيمت نه دجامو او سورلو استعمال بغيرد حاجت نه مباح نه دې» |

**دليل رواية الاشتراط**﴿ اووجه ددويم روايت «چه د ګياه اوخوراك د خيزونو استعمال جائزدي» قول دنبى ﷺ دي.په طعام د خيبرکښې. ﴿كُلُوهَا وَاعْلِفُوهَا وَلَاتَحْمِلُوهَا﴾ (٢)دا «قجورى وغيره»خورئ،اوددې نه ګياه ورکوئ «خپلو خاروته»اومه ئې اوړئ بل خائې ته، «يعنى دلته ستاسودپاره ددې خوراك جائزدي.بل خائې ته ئې اوړل جائزنه دى»

## دمال غنيمت نه د تيلوداستعمال جواز

| |
|---|
| وَيَسْتَعْمِلُواالْحَطَبَ)(وَيَدَّهِنُوابِالدُّهْنِ |

**حل اللغة**﴿① الحطب:لرګى ② الدهن:تيل

**ترجمه و تشريح**﴿ او«مجاهدين» استعمالولې شى لرګى اوغوړول کولې شى په غوړو باندې،

---

١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه احمد فى مسنده وابن أبي شيبة فى مصنفه والطبراني فى معجمه (نصب الراية ٣\٦٥٦)_

١) من حديث عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما اخرجه البيهقى فى كتاب المعرفة (نصب الراية ٣\٦٢١)–

**دتقسيم نه وړاندې دبيت المال دهرقسم وسله داستعمال اجازت**

(وَيُقَاتِلُوا بِمَا يَجِدُونَهُ مِنَ السِّلَاحِ، كُلُّ ذٰلِكَ بِغَيْرِ قِسْمَةٍ)

**ترجمه و تشريح** اوجنګ به کوي (غازيان) په هغه څه چه مومي ئې د وسله نه هرقسمه بغيردتقسيم نه.
**توضيح صاحب الهداية** صاحب د هدايه فرمائيلي دي چې د (ابو الحسن قدوري) ددې قول تاويل دا دې چه کله محتاج شي دې (دبيت المال وسله ته) په داسې شان چه نه وي ده سره وسله

**دوسله خرڅولو اوجمع کولوحکم**

(وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَبِيعُوا مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا وَلَا يَتَمَوَّلُونَهُ)

**ترجمه و تشريح** اوجائزنه دي چه دوئ (غازيان) خرڅ کړي ددې (څيزونونه کوم چه ذکر شو په دې قول سره چه «(من العلف للدواب وأخذ الطعام للأكل والحطب للإستعمال وإدهان السلاح للقتال) نه څه څيز ،اونه به ذخيره کوي دا (څيزونه کوم چه اوس اجمالاً ذکر شول)
**دليله** ځکه چه خرڅول مرتب کيږي په ملك باندې (چه په يوڅيزباندې د وړاندې نه ملك ثابت وي.نوهغه څيز خرڅولې شي) اونشته ملك (په مال غنيمت باندې) لکه څنګه چه مونږ وړاندې بيان اوکړلو(چه په دارالاسلام کښې د حفاظت نه وړاندې په مال غنيمت باندې ملکيت نه راځي) او يقيناً دا نفع اخستل ددې څيزونو نه) اباحت دې (د وجې د ضرورت د استعمال نه) او اوګرځيدل پشان د مباح له الطعام (يعنى مثلاً زيد بکرته اووائي. زما د طرفه تا دپاره ددې طعام خوراك مباح دې.نو په دې اباحت سره بکر لره دا نه دي جائز چه هغه طعام خرڅ کړي) دغه شان دذکر شوو څيزونو استعمال د غازيانو دپاره مباح دې.خو خرڅول ورله جائز نه دي)
**توضيح التعويل** صاحب د هدايه فرمائيلي دي چې دا قول دابو الحسن قدوري رحمه الله چه «(ولايتمولونه)»په دې کښې اشاره ده دې خبرې ته چه دوى (غازيان) به نه خرڅوى دا (مال غنيمت) په مقابله د سرو او سپينو زرواو سامان تجارت کښې (چه مال غنيمت ورکړي اودا څيزونه واخلي.اودا خبره چه داڅيزونه به په سرواوسپينو زرواو سامان تجارت نه خرڅوى ددې لفظ تمول نه معلوميږي.ځکه چه تمول مالداريځ ته وائي.او مالداره کيږي سړې هله چه دې د سرو ، سپينواو سامان تجارت مالك وي) ځکه چه نشته ضرورت دې (سرو،سپينو زرو او سامان تجارت) ته (څنګه ضرورت چه د خوراك څکاك څيزونو سره تړلې شوې دې.يعنى که سړى ته خوراك څکاك نه ملاويږي.نو دا د ده د هلاکت سبب ګرځي.نوهرکله چه سرواو سپينو زرو او سامان تجارت ته د خوراك د څيزونو پشان ضرورت نشته.نودا څيزونه په سرو او سپينو زرو او سامان تجارت خرڅول جائز نه دى.احقر شاه فيصل وائي.چه د يتمولونه لفظ نه دا مترشحه کيږي.که په غازيانو باندې داسې سخت وخت راشى. چه د خوراك څکاك ذخيره ورسره ختمه شي.نوکه په دغه وخت کښې دوى مال غنيمت خرڅ کړي.يا په مال غنيمت باندې د خوراك څکاك څيزونه واخلي.نودا به جائز وي.ځکه چه لکه څنګه د ضرورت په وجه د دوى دپاره د مال غنيمت نه د خوراك څيزونه خوړل او استعمالول جائز وو.نودغه شان دسخت ضرورت په وخت کښې که د مال غنيمت په بدله کښې دوى ته طعام ملاويږي.نودابه هم جائز وي.والله اعلم)

**په دارالحرب کښې دکافراسلام قبولول**

(وَمَنْ أَسْلَمَ مِنْهُمْ) أَحْرَزَ بِإِسْلَامِهِ نَفْسَهُ

**ترجمه و تشریح** اوځوك چه مسلمان شود دوئ (حربیانو) نه، په دارالحرب کښې، ده محفوظ کړلو په اسلام خپل سره نفس خپل، (یعنی داسلام قبلولونه پس مسلمانان دې نشی قتلولې.اونه ئې قیدکولې شی)

**دلیله** ځکه چه اسلام منافی دې په ابتدء د غلام جوړلوسره (یعنی چه یوکس مسلمان وی.نودې غلام نشی جوړیدې.ځکه چه داسلام اوغلامئ په مینځ کښې منافات دی.نوچه اسلام وی.رقیت به نه راځی.البته دا منافات د رقیت په ابتدائی حالت کښې دی.که ابتدائی حالت نه وی.نوبیا منافات نشته.لکه یوکافرپه قید کښې راوستې شی.اودې په غازیانوکښې دیوکس په حصه کښې راشې.نودې کافرغلام دې.که دغلامئ نه پس ده اسلام قبول کړلو.نوبیا به هم غلام وی.ځکه چه دلته دغلامئ په اول کښې اسلام نه دې راغلې.بلکه دهغې نه روسته راغلې.اوپه دې کښې منافات نشته) ٠

(وَأَوْلَادَهُ الصِّغَارَ)

**ترجمه و تشریح** (اوده محفوظ کړل په اسلام راوړلوسره) اولاد خپل ماشومان،

**دلیله** ځکه چه هغوئ هم مسلمانان دی.په اسلام دده سره تبعاً (یعنی هرکله چه په دارالحرب کښې کافرمسلمان شو.نودده په اسلام سره دده نفس اومال ته حفاظت ملاؤ شو.اودغه شان دده ماشومانو بچوته هم حفاظت ملاؤ شو.ځکه چه هغوئ په دین کښې دده تابع دی.چه دې په کوم دین وی.په هغه دین به ئې اولاد هم وی.لکه نبی ﷺ چه فرمائیلی دی .هرماشوم په فطرة اسلامی پیدا کیږی.خودده موربلاردده نه یا یهودی یا نصرانی یا مجوسی جوړ کړی.چه څنګه ماحول کښې پاتې شی.هم په هغه رنګ کښې رنګ شی)

(وَكُلَّ مَالٍ هُوَ فِي يَدِهِ)

**ترجمه وتشریح** اوهرهغه مال (ئې په خپل اسلام راوړلو سره محفوظ کړل) کوم چه دده په لاس (قبضه اوملکیت) کښې وی.

**دلائله** ① د وجې د قول د نبی ﷺ نه مَنْ أَسْلَمَ عَلَى مَالٍ فَهُوَ لَهُ (۱) چا چه اسلام قبول کړلوپه مال سره(یعنی د اسلام په وخت کښې دهغه په ملکیت کښې څه مال وو) نوهغه دده (په ملکیت کښې باقی) دې. (دغه مال نه په اسلام راوړلو سره دده ملکیت نه زائله کیږی. لکه څنګه چه په اسلام راوړلوسره دده دخپلې مشرکې ښځې ملك نکاحی زائله کیږی)

② اوبله دا (یعنی په اسلام راوړلوسره دده دمال محفوظ کیدو بل دلیل دا دې)چه وراندې شوې دې پدحقیقی دده (نومسلم) دی (مال) باندې د لاس د غلبه کونکو(غازیانو) نه، په دې (مال) باندې، (یعنی په دغه مال باندې د نومسلم قبضه په هغه وخت کښې راغلې وه.چه لا پرې دغازیانوغلبه نه وه راغلې. نو داسلام راوړلونه پس به دغه مال هم دهغه په ملکیت کښې باقی وی.ځکه چه د غازیانونه وړاندې دغه څیزدده په ملکیت کښې موجود وو.اودغازیانو غلبه خوپرې روسته راغلې ده.خودې غلبې دغه مال دخپل مالك د ملیکت نه اونه ویستل.ځکه چه د غلبې نه وړاندې هغه په خپل اسلام سره خپل مال محفوظ کړې وو)

(أَوْ وَدِيعَةً فِي يَدِ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ)

---

۱) من حدیث أبي هریرة ﷺ اخرجه أبویعلی الموصلی فی مسنده وابن عدی فی الکامل (۷\۱۸٤)۔

**ترجمه و تشریح>** اویا امانت وی (دا په «بِدَمِهِ» باندې عطف دې. یعنی ده په اسلام راوړلو سره دخپل هغه مال حفاظت اوکړلو. کوم چه دده په قبضه کښې دې. اودغه شان دهغه مال حفاظت ئې اوکړلو. کوم چه دده امانت پروت وی) په لاس د مسلمان یا ذمی کښې، ځکه چه دا (امانت) په صحیح لاس کښې دې. (د مسلمان اوذمی لاس دې. یعنی که یوکس دمسلمان یا ذمی سره څه څیزامانت کیږدی. نودغه امانت به محفوظ وی.

**دلیله>** ځکه چه حکومت د مسلمان اود ذمی د مال اوجان د حفاظت ذمه وار دې. نوکه دوئ خان سره دچا څیزامانت کیږدی. په هغې باندې به ددوئ امانة قبضه صحیح وی) او(ید) محترم کښې دې. (یعنی دمسلمان سره ئې امانت کیخودې دې. اودمسلمان قبضه عندالشرع محترمه ده. اوحربی قبضه عندالشرع محترم نه ده) اوقبضه دده (یعنی هرواحد که مسلمان وی اوکه ذمی) پشان دقبضه د ده(امانت کیخودنکې) ده. (نوګویا کوم کس سره چه امانت کیخودې شوې دې. هغه ددغه امانت په حفاظت کښې د امانت کیخودنکی نائب دې. اوکوم حکم چه دمنوب وی. په وخت دعدم منوب کښې هغه حکم د نائب وی)

### د غلبې نه پس د دارالحرب د زمکې حکم

(فَإِنْ ظَهَرْنَا عَلَى الدَّارِ فَعَقَارُهُ فَيْءٌ)

**د لغت حل:** ① **العقار:** زمکه

**ترجمه و تشریح>** که مونږ غالب شو په دارالحرب باندې، (اوهغه مو قبضه کړلو) نوزمکه د هغه (نومسلم) مال فئ دې. (ځکه چه ددغه نومسلم سره مقابله نه ده شوې. ځکه چه هغه دخپل اسلام د وجې مسلمانانوسره جنګ نه دې کړې. یعنی کله چه په دارالحرب باندې مسلمانان قبضه اوکړی. نو د دارالحرب د مسلمان مال منقول خومحفوظ شو. البته کوم مال چه غیرمنقول وی. لکه زمکه، نوهغه محفوظ نه دې. بلکه هغه به په نیزمال فئ وی) (۱)

**دلیله>** دلیل دا دې. چه زمکه په قبضه د ملك دخلقوکښې وی اودهغې د بادشاه په قبضه کښې وی. اودا(سې زمکې اوباغونه) هم من جمله دارالحرب نه دی. (یعنی په دارالحرب کښې حسابیږی) نونشوه (زمکه د نومسلم) په قبضه دده کښې حقیقة (بلکه په دارالحرب کښې شوه. نوچه څه حکم د دارالحرب د زمکووی. هغه به ددې نومسلم د زمکې هم وی. یعنی دا به د نومسلم په ملکیت کښې باقی نه وی)اوونیلی شوی دی چه دا قول (چه د نومسلم زمکه به مال فئ وی) دامام ابوحنیفه او ابویوسف رحمهماالله آخرې قول دې.

### د نومسلم ښځه مال فئ دې

(وَزَوْجَتُهُ فَيْءٌ)

**ترجمه و تشریح>** اوښځه دده (نومسلم مال) فئ دې.

**دلیله>** ځکه چه دا کافره حربیه ده. تابع نه ده ددۀ په اسلام کښې، (لکه څنګه چه ددې بال بچ دده تابع وی په اسلام کښې)

---

(۱) **مسلك الشافعي:** امام شافعی رحمه الله فرمائی چه دغه (زمکه یعنی مال غیرمنقول) دده (نومسلم) دپاره دې.

**وَحَمْلُهَا فَيْءٌ**

**ترجمه** ﴿ او حمل ددې (مال فيئ دې) ([1])

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه دې (حمل) جزء ددې (حربيه كافره) دې.نودې به غلام وي په غلامئ د هغې سره، (يعنى دا حمل چونكه د مورپه رحم كښې دې.دده جدا حيثيت نه دې.بلكه د مور د بدن يوجزء دې.نولكه څنګه چه مور وينځه ده.دغه شان به ددې دا جزء چه حمل دې به هم مملوك وي.اوچه مملوك شو.نومال فيئ به حسابيږي)

**وَأَوْلَادُهُ الْكِبَارُ فَيْءٌ**

**ترجمه و تشريح** ﴿ اودده (نومسلم) بالغ اولاد مال فيئ دې.

**دليله** ﴿ څكه چه دوئ كافران حربيان دى.او(دپلار) تابع نه دى. (ددې وجې دپلار داسلام په وجه په دوئ داسلام حكم نشى لګولې)

**په حربيانو كافرانوباندې د وسله خرڅولوممانعت**

**(وَلَا يَنْبَغِي أَنْ يُبَاعَ السِّلَاحُ مِنْ أَهْلِ الْحَرْبِ وَلَا يُجَهَّزَ إِلَيْهِمْ)**

**ترجمه و تشريح** ﴿ اومناسب نه دى. (يعنى حرام دى) چه خرڅه كړې شى وسله په حربى كافرانوباندې ،اونه به شى وړلې (وسله) دوئ ته، (يعنى مسلمانان سوداګردې په حربى كافرانووسله نه خرڅوى)

**دلائله** ﴿ ① څكه چه نبى ﷺ منع كړې ده.دخرڅولود وسلې نه په حربى كافرانو باندې، اود اوړلونه هغوئ ته.([2])

② اوبله دا چه په دې كښې مضبوطول د هغوئ دى په جنګ دمسلمانانو،نوددې وجې به منع كولې شى د دې (خرڅولواوړلو) نه، او دغه شان اسونه دى.دهغې وجې چه مونږ بيان كړه. (يعنى په دې كښې په مسلمانانوباندې دهغوئ غالب كول دى) اودغه شان اوسپنه ده(يعنى دا به هم په كافرانونشى خرڅولې اونه به هلته اوړلې شى) څكه چه دا (اوسپنه) اصل د وسله دې. (ددې نه وسله جوړيږى)

**دقيديانوپه بدله كښې دفديه اخستلوحكم**

**(وَلَا يُفَادَى بِالْأُسَارَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ،([3])**

**حل اللغة** ﴿ ① **يفادى**:فديه وركوى

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوفديه به نه اخلى په عوض دقيديانو(دكافرانو نه چه قيد وركړى اود خلاصوپه بدله كښې ترې قيمت واخلى) په نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله .

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه په دې (پريخودو دكافرانوكښې چه خپل دارالحرب ته واپس شى) مدد كول دى

---

[1]، **مسلك الشافعي**:- امام شافعى رحمه الله فرمائى.چه دې (حمل) مسلمان دې په تابعدارئ (دپلار) كښې،

(۱)قال الزيلعى رحمه الله غريب بهذا اللفظ روى البيهقى فى سننه والبزارفى مسنده والطبرانى فى معجمه من حديث ... عمران بن حصين رضي الله عنه ان رسول الله ﷺ نهى عن بيع السلاح فى الفتنة (نصب الراية ۳\۵۹۹)۔

[3]) القول الراجح هوهذا قول الإمام رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (۱\۶۴۹) وردالمحتار(۳\۲۵۱) والهندية (۲\۲۰۶) وفتح القدير(۵\۲۲۰) وردالمحتار(۳\۲۵۱) لكن رجح العلامة ابن الهمام رحمه الله قول الصاحبين رحمهما الله ثم قال المفتى غلام قادر مدظله العالى ترجيح ابن الهمام رحمه الله اليق بهذا الزمان إلخ وإن كنت تريد التفصيل فارجع إلى القول الراجح (۱\۴۸۱)۔

کفرسره، څکه چه دې به واپس کیږی دپاره دجنګ مونږ سره (یعنی چه دویٔ دخپل کافرانوسره ملګری شی.نودهغوی قوت اوطاقت به پرې زیات شی.اوبیا به دمسلمانانود مقابله دپاره دکافرانوسره یوځائې شی) اودفع کول د شرد جنګ ددویٔ غوره دی د خلاصولو دقیدی مسلمان نه (چه هغه دکافرانود قیدنه خلاص کړې شی) څکه چه دې(مسلمان قیدی) پاتې شی په لاسونودهغویٔ (کافرانو) کښې نودا امتحان دې (دالله تعالی د طرفه) په حق دهغه کښې،چه نسبت ئې نه کیږی مونږ (یعنی ددې امتحان نسبت مونږ ته نه کیږی.چه مسلمانانو په امتحان کښې اچولې دې.بلکه خلق دا وائی.چه الله تعالی په امتحان کښې اچولې دې) اوامداد کول په واپس کولود قیدی دهغویٔ ددې نسبت کولې شی مونږ ته (یعنی که مونږ دهغویٔ قیدی هغوی ته واپس کړو.اوپه دې باندې هغویٔ ته قوت ملاؤ شی.نوددې قوت نسبت مونږ ته کیږی. څکه چه مونږ دخپله لاسه دغه قیدی هغویٔ ته واپس کړلو.چه نن دوباره زمونږ د مقابلې دپاره دکافروپه صف کښې ولاړ دې)

| وَقَالَا: يُفَادَى بِهِمْ أَسَارَى الْمُسْلِمِينَ) |
| --- |

**ترجمه وتشریح** ﴿**مسلک الصاحبین**﴾ اوفرمائی صاحبین رحمهماالله په فدیه کښې به اخلی ددویٔ (قیدیانو) قیدیان مسلمانان ،اودا (جوازد مسلمانانوقیدیانوپه فدیه کښې اخستل)

**دلیلهما**﴾ څکه چه په دې(عمل) کښې خلاصول دمسلمان دی. (دکافرود قبضه نه) اودا (خلاصول دمسلمان) زیات غوره دی دقتل دکافرنه،اود فائدې اخستلونه په ده(کافرباندې)

**په قیدیانوداحسان کولوحکم**

| وَلَا يَجُوزُ الْمَنُّ عَلَيْهِمْ) |
| --- |

**ترجمه و تشریح**﴾ اوجائزنه دې احسان کول په دوی یعنی کافرانو قیدیانو باندې، (چه بغیرد فدیه اخستلونه آزاد کړې شی) ([1])

**دلیله**﴾ (دلیل) قول دالله تعالی دې.چه ﴿فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدْتُمُوهُمْ﴾

| (وَإِذَا فَتَحَ الْإِمَامُ بَلْدَةً عَنْوَةً) فَهُوَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَسَمَهَا بَيْنَ الْغَانِمِينَ |
| --- |

**د لغت حل:** ① **العنوة**: بغیرد جنګ نه فتح

**ترجمه و تشریح**﴾ اوکله چه فتح کړی امام (دمسلمانانو)یوښارپه طاقت سره یعنی په زور(یعنی جنګ اوشی.اوپه جنګ کښې کافرمغلوبه شی.اومسلمانانوته فتح نصیب شی) نودې (امام) ته اختیاردې.که خوښه ئې شی.نوتقسیم دې کړی دغه ښارپه مینځ د(مجاهدینو) غازیانو کښې،

**دلیله**﴾ د خیبردفتح نه پس رسول الله ﷺ خیبرپه اتلسو حصوکښې تقسیم کړې وو.اوپه هره یوه حصه کښې ئې دسلوسرو حصه داخله کړې وه.که داسلامی لښکرفوځیان ضرورت مند وی.نوبهتره هم داده.چه دغه ښارپه هغویٔ کښې تقسیم کړی. ([2])

**اقسام الاموال الحاصلة عنوة**﴾ یادساتئ: کله چه مسلمان حکمران دکافروپه علاقه حمله اوکړی.اوهغه قبضه کړی.نوپه داسې صورت کښې حاصل شوې مال په درې قسمه وی.

---

[1] **مسلک الشافعي**:- امام شافعی رحمه الله فرمائی.چه په دوی باندې احسان کولې شی

[2] من حديث زيدبن اسلم ان عمر رضي الله عنه قال والذى نفسى بيده لولا أن أترك آخرالناس بيانا ليس لهم شئ ما فتحت على قرية إلا قسمتها كما قسم رسول الله ﷺ خيبر ولكن اتركها لهم خزانة يقتسمونها أخرجه البخارى في المغازى باب ٣٨)

① سازوسامان،نوددي قسم نه به اول پنځمه حصه اوباسي. اوباقي څلورحصي به په هغه مجاهدينوتقسيم کړي.چاچه په دغه جهاد کښي حصه اخستي وي.اوپه دغه مال کښي مسلمان حکمران ته دتصرف اختيارنشته. چه دخمس او مجاهدينونه سوا په بل مصرف کښي ئي اولګوي.
② زمکي،اودمفتوحه علاقي زمکي په تقسيم کښي به د فقه حنفي مذهب مطابق اول ددي نه خمس اوباسي.اوباقي زمکي به د اسلامي لښکرپه شريکو مجاهدينوتقسيم کړي.اوکه د اهل ذمه کيدو شرط موجود شي.نوپه دي صورت کښي به دغه مفتوحه زمکي دسابقه مالکانوپه ملکيت کښي پريخودي شي.اوپه دغه زمکو به خراج مقرر کړي شي.اوپه دغه کسانوبه جزيه مقرر کړي شي.
③ قيديان،اودقيديانوپه باره کښي امام ته دري قسمه اختياردي.
**الخيارالحاصل في الاساري**﴿ ① سړي دي قتل کړي.اوماشوم اوښځي دي قيدياني کړي
② داسلامي حکومت حکمران ته دا اختيارهم حاصل دي.چه کافران قيديان غلام جوړ کړي.په دي صورت کښي به پنځه حصه غلام تري جدا کړي.اوباقي غلامان به په اسلامي غازيانوباندي تقسيم کړي.ځکه چه دوئ هم د مال غنيمت په معنی کښي دی.نوددوئ تقسيم به هم د مال غنيمت پشان وي.البته په غلامانوجوړولو کښي دا شرط شته.چه قيديان عرب نه وي.اويا مرتد نه وي.ځکه چه دوئ نه غلامان نشي جوړولي.بلکه دوئ به قتل کولي شي.اويا به ترغيب ورکولي شي.چه اسلام دوباره قبول کړي.
③ که اسلامي حکمران غواړي.نودوئ دي بغيرد څه عوض نه داحسان په طورپريږدي.

**دمفتوحه علاقي زمکي دخپلومالکانوپه قبضه کښي پريخودل**

| (وَاِنْ شَاءَ اَقَرَّ اَهْلَهَا عَلَيْهَا وَوَضَعَ عَلَيْهِمُ الْجِزْيَةَ وَعَلٰى اَرَاضِيْهِمُ الْخَرَاجَ) |
|---|

**ترجمه**﴿اوکه اوغواړي(امام) نوبرقراردي اوساتي مالکان دهغي په هغه مال باندي،اومقرر دي کړي په هغوئ باندي جزيه، (يعنی هغه ټيکس چه دوئ به ئي مسلمان حاکم ته ورکوي.اودهغي په بدله کښي به اسلامي حکومت ددوئ د جان اومال حفاظت کوي) اودهغوئ په زمکوباندي خراج(يعنی دکافر دزمکو په پيداوار کښي به اسلامي حکومت څه حصه اخلي دي ته خراج واني)
**دليله**﴿ دغه شان کړي وو حضرت عمر رضي الله عنه دعراق د کلو په زمکو،په موافقت د صحابو رضي الله عنهم اوتعريف نه وو بيان شوي دهغه چا چه مخالفت ئي کړي وو ددوئ (حضرت عمر رضي الله عنه چه حضرت بلال اوسلمان فارسي رضي الله عنهما وو) اوپه دي تولوکښي (که دغه زمکي په مسلمانانو غازيانوباندي تقسيمول وي.اوکه دهغي دمالکانو په قبضه کښي پريخودل وي.اودهغي په بدله کښي په هغوئ خراج مقرر کول وي) ([1])
**فتح العراق**﴿ دعربودعلاقوفتح کولونه پس د عراق فتح دټولو نه لويه فتح وه.کله چه عراق فتح شو.نوحضرت عمر رضي الله عنه د عراق دکلود زمکو د تقسيم په باره کښي د صحابه کرامو رضي الله عنهم سره مشوره اوکړله.چه دي زمکو سره څه اوکړو.
① حضرت علي رضي الله عنه اوفرمائيل.دعراق د کلو زمکي دي نشي تقسيم کولي.بلکه دا دي دټولومسلمانانوپوه مشترکه سرمايه پريخودي شي.
② حضرت معاذ رضي الله عنه اوفرمائيل.که د عراق دکلو زمکه تقسيم کړي شي.نوداسي به مسلمانانوته ډيره

٢) قال الزيلعي رحمه الله روى ابن سعد في الطبقات في ترجمة عثمان بن حنيف ...عن الحكم ومحمد بن المسر(نصب الراية ١٠/٣ ٦١)

لويه زمكه په لاس راشي.خوهسې نه چه روسته دا زمكه د يوكس په ملكيت كښې راشي.اود روسته راتلونكي مسلمانانودپاره څه لاره پاتې نشي.

③ حضرت بلال رضي الله عنه اوسلمان فارسي رضي الله عنه اوفرمانيل.چه دخيبرد تقسيم پشان دې دا زمكې هم په مجاهدينوتقسيم كړې شي.دكافي بحث نه پس دا فيصله اوشوه.چه دعراق زمكې دې هم دخپلومالكانو په قبضه كښې پريخودې شي.اودوئ په نفسونودې جزيه مقرر كړې شي.اوپه زمكو خراج،نوټولوصحابه كرام رضي الله عنهم په دې فيصله باندې اتفاق اوكړلو.البته حضرت بلال اوسلمان فارسي رضى الله عنهما نه په اول كښې اختلاف كړې وو. خو امام محمد رحمه الله په سيركبيركښې ذكركړې دی.چه حضرت بلال اوسلمان فارسي رضي الله عنهما دخپلې رائې نه رجوع كړې وه.

**دجنګي قيديانوقتلول اوغلامان جوړول**

**(وَهُوَ فِي الْأُسَارَى بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ قَتَلَهُمْ)**

**حل اللغة** ① **الخيار**:اختيار ② **الاسارى**:قيديان

**ترجمه و تشريح** اودې (امام) په باره د قيديانوكښې اختيارمند دې.كه غواړي قتل دې كړې دوئ،

**دلائله** ① څكه چه نبي ﷺ قتل كړې وو(دفتح مكه په موقع باندې نبي ﷺ ته يوكس خبر راوړلو.چه ابن خطل دكعبې غلاف نيولې دې.اوحرم په مسجدحرام كښې ولاړ دې.نبي ﷺ حكم اوكړلو.دې قتل كړئ.دا ابن خطل اول مسلمان شوې وو.نبي ﷺ د صدقو په راغونډولوباندې يوځاني ته اوليږلو. اويو غلام اويوانصاري ئې ورسره هم كړلو.په لاره كښې ده غلام ته روټئ تيارولو حكم اوكړلو. خوهغه ته خوب ورغلې وو.نواوده شو.دې په غصه كښې راغلو.اوهغه غلام ئې قتل كړلو.بيا ورته سوچ ورغلو.چه ددې غلام په قصاص كښې به نبي ﷺ ما قتل كوي.نوځان سره ئې د صدقې څاروي واخستل.اومكې ته لاړلو. اومرتدشو.اوبيا به ئې په اشعاراواودسندرغاړو په سندرو كښې د نبي ﷺ هجوه كوله.چونكه دې كس درې جرمونه كړې وو.اودهرجرم سزا قتل وو.د قتل سزا قصاص، دارتداد سزا قتل،دنبي ﷺ دهجو سزا قتل.كذا في سيرة المصطفى لمولانامحمدادريس كاندهلوي)}(١)

② اوبله دا چه په دې (قتل كولودكافرانو)كښې ختمول د ماده فساد دی. (يعني كافران په زمكه كښې فساد خوروي.لكه دشرك ارتكاب هم فساد دې.دغه شان دمسلمانانومقابله كول هم فساد دې.نوچه قتل شي.دفساد جرړه به ختمه شي)

**(وَإِنْ شَاءَ اسْتَرَقَّهُمْ)**

**حل اللغة** ① **الاسترقاق**:غلامان جوړول

**ترجمه و تشريح** اوكه اوغواړي (امام) نوغلامان دې كړې دوئ (قيديان)

**دليله** څكه چه په دې (غلامئ) كښې دفع د شر ددوئ ده، (څكه چه دوئ به مغلوب اومحكوم وی.دمقابلې طاقت به په كښې نه وی) سره د ډيرې فائدې نه دمسلمانانو(يعني چه دوئ دمسلمانانوغلامان جوړ شي.نومسلمانانوته هم مالي فائده ده.اوهم بدني فائده.مالي فائده خودا ده.چه مال متقوم دې.اوجاني فائده دا چه خدمت ترې اخستې شي)

---

١) فيه أحاديث منها حديث انس رضي الله عنه أن النبي ﷺ دخل عام الفتح وعلى رأسه مغفر فلما نزعه جاءه رجل فقال يا رسول الله ابن خطل متعلق باستار الكعبة فقال اقتلوه أخرجه البخاري في المغازي باب ٤٨ ومسلم في الحج رقم ٤٥٠

(وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُمْ أَحْرَارًا ذِمَّةً لِلْمُسْلِمِينَ)

**حل اللغة** ① **احرار:** جمع د حر، آزاد

**ترجمه و تشریح** اوکه اوغواړي پرې دې ږدی دوئ آزاد په ذمه دمسلمانانوکښې (یعنی بحیثیت د ذمیانودې په اسلامی وطن کښې خوشې کړی)

**دلیله** دهغه وجې چه مونږ بیان کړه. (په واقعه دحضرت عمر رضی الله عنه کښې چه دعراق خلق ئې د ذمیانو په حیثیت آزاد پریخودی وو)

**داحسان په طورقیدیان دارالحرب ته واپس کول**

(وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَرُدَّهُمْ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ)

**ترجمه و تشریح** اونه دی جائز چه واپس کړی (امام) دوئ دارالحرب ته

**دلیله** ځکه چه په دې (واپس کولو) کښې مضبوطول ددوئ (حربیانو) دی په مسلمانانوباندې.

**ددشمن خاروی دارالاسلام ته راوستلونه دعجزصورت**

(وَإِذَا أَرَادَ الْإِمَامُ الْعَوْدَ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ وَمَعَهُ مَوَاشٍ فَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى نَقْلِهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ ذَبَحَهَا وَحَرَقَهَا وَلَا يَعْقِرُهَا وَلَا يَتْرُكُهَا)

**حل اللغة** ① **العود:** واپس کیدل ② **مواش:** جمع د ماشیة خاروی ③ **الذبح:** حلالول ④ **الحرق:** سوزول ⑤ **العقر:** زخمی کول

**ترجمه و تشریح** اوکله ه اراده اوکړی امام د واپس کیدو (دارالاسلام ته) اوده سره خاروی وی (لکه ګنې ،چیلی وغیره) اوقادرنه وی په نقل کولو (یعنی بوتلو) دهغې دارالاسلام ته،نوذبح دې کړی اوادې سوزوی (پس د ذبح کولونه) اوزخمی کوی دې نه (چه پښې لاس یا نوراندامونه ترې کټ کړی) اونه دې پریږدی داسې. (¹)

**دلیله** دلیل دا دی چه ذبح دحیوان جائزده د غرض صحیح دپاره،اونشته غرض (اومقصد) زیات صحیح د ماتولودطاقت د دشمن (ځکه چه مونږ دا خاروی ذبح کړو،نوپه دې باندې د دشمن مادی قوت کمزورې شو.اوچه مادی قوت کمزورې شی.دا دفوځی قوت دکمزورئ مقدمه ده) بیا به سوزولې شی (دغه خاروی پس د ذبح کولونه) په اور سره،دې دپاره چه ختمه شی فائده ددې دکافرانونه (اودهغوئ دفائدې اخستوقابل پاتې نشی)اودا (سوزول) اوګرځیدل پشان نږولو دکورونو (یعنی دکافرانو کورنه نړول جائزدی.ځکه چه په دې کښې هغوئ ته مادی نقصان رسی)

**د مال غنیمت دتقسیم وخت**

(وَلَا يُقَسِّمُ غَنِيمَةً فِي دَارِ الْحَرْبِ حَتَّى يُخْرِجَهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ)

**ترجمه و تشریح** اونه به تقسموی غنیمت په درالحرب کښې تردې چه راوې باسی (دهغې نه دارالاسلام ته، (او محفوظ شی) (²)

¹ **مسلک الشافعی:**- فرمائی امام شافعی رحمه الله پرې دې ږدی دغه شان (بغیرذبح کولونه)

² **مسلک الشافعی:**- اوفرمائیلی دی امام شافعی رحمه الله نشته باك په دې کښې (چه په دارالحرب کښې د مال غنیمت تقسیم اوشی)

**دلیله**> دلیل دا دي.چه نبی ﷺ منع کړې ده د بیع د مال غنیمت نه، په دارالحرب کښې(یعني په درالحرب کښې به مجاهدین اخستل اوخرڅول نه کوی) ([1])

**دمعاون اومقاتل په استحقاق غنیمت کښې برابری**

(وَالرِّدْءُوَالْمُقَاتِلُ فِي الْعَسْكَرِسَوَاءٌ)

**حل اللغة**> ① **الرده**: مدد کول ② **العسكر**:لښکر

**ترجمه و تشریح**> (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمائی.مددګاراوجنګ کونکې دواړه برابر دی په لښکرکښې، (نو څومره حصه چه مقاتل ته ملاویږی.هغه هومره به معاون ته هم ملاویږی)

**دلیله**> دوجې د برابری ددوئ نه په سبب (داستحقاق غنیمت) کښې،اودا (سبب داستحقاق) تیریدل دی (داسلامی سرحدنه،داحنافوپه نیز،بس چه د اسلامی سرحدنه تیرشی.نودفتح په صورت کښې دې مستحق غنیمت دې)

**دارالاسلام ته د واپس کیدونه وړاندې دلښکرسره یوځائې کیدل**

(وَإِذَالَحِقَهُمُ الْمَدَدُفِي دَارِالْحَرْبِ قَبْلَ أَنْ يُخْرِجُواالْغَنِيمَةَ إِلَى دَارِالْإِسْلَامِ شَارَكُوهُمْ فِيهَا)

**حل اللغة**> ① **المدد**: مددګاران ② **الانقضاء**:ختمیدل

**ترجمه و تشریح**> اوکله چه یوځائې شی دوئ (مجاهدینو) سره مددګارپه دارالحرب کښې وړاندې ددې نه

چه دوئ رااړولې وی غنیمت دارالاسلام ته نوشریکیږی به (دغه مددګاران دلښکرسره) په دې (غنیمت کښې) ([2])

**دلیله**> د اسلامی سرحدنه تیریدل شرط دې.نوپه زیربحث مسئله کښې زمونږ په نیزدا مددګاران څکه مستحق د غنیمت دی.چه دوئ داسلامی سرحدنه تیرشوی دی.

**اسباب قطع الشركة**> یقیناً ختمیږی حق دشرکت په نیززمونږ(یعني کوم کسان چه دمدد دپاره د لښکرسره دجنګ نه پس یوځائې شی.نود دوئ حق دمال غنیمت نه په درې طریقوختمیږی.که په دغه دریوکښې یود هم موجود شی.نودوئ مستحق د شرکت نه دی.اوکه په دې کښې یوهم نه وی. نوبیا مستحق دغنیمت دی) په محفوظ کولو سره، (په دارالاسلام کښې) یا په تقسیم دامام سره په دارالحرب کښې،اویا په خرڅولو د غنیمت په دارالحرب کښې،څکه چه په هره یوه طریقه ددې (دریوواړو) نه،پوره کیږی ملك (دمجاهدینوپه غنیمت) نو ختمیږی حق د شرکت (په مال غنیمت کښې) دمددګارانو، (اوپه زیربحث مسئله کښې په دغه دریوکښې یوه هم نه ده موجود شوې. نو څکه مستحق د غنیمت دی)

**دلښکردبازاریانودپاره دمال غنیمت حکم**

وَلَاحَقَّ لِأَهْلِ سُوقِ الْعَسْكَرِفِي الْغَنِيمَةِإِلَّاأَنْ يُقَاتِلُوا)

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله غريب جداً (نصب الراية ۳\۱۹۱)_

[2]) **مسلك الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله پس د ختمیدو دجنګ نه، (یعني دامام شافعي رحمه الله په نیزکه جنګ ته حاضرشوې نه وی.نواګرچه غنیمت ئې دارالاسلام ته نه وی رااړولې.اوددې نه وړاندې ورسره مددګاران یوځائې شی.په مال غنیمت کښې ددوئ حصه نه کیږی)

**ترجمه و تشریح** ﴾ (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمائي.اونشته حق د بازاريانو دلښكردپاره په غنيمت كښې(يعنى كوم كسان چه په جنګ كښې شريك شوى نه وى.بلكه په كوم ځاني كښې اسلامي فوځ ويره وى.دوئ هلته د مجاهد ينودضرورت دپاره دخوراك څكاك څيزونه جمع كړى وى.اوهغه خرڅوى.نوزمونږ په نيزيه مال غنيمت كښې دهغوئ حصه نشته)مګردا چه دوئ شركت كړې وى په جنګ كښې، (نوبيا دمال غنيمت حقدار دى) (١)

**دليله** ﴾ دليل دا دې.چه نه دې موجود شوې تيريدل (داسلامي سرحد نه) په قصد د جنګ (يعنى دا سوداګرچه داسلامي لښكرسره داسلامي سرحدنه تيريدل.نودوئ اراده د جهاد نه وه. بلكه د تجارت وه.چه مونږيه په مجاهد ينوياندې ددوئ د ضرورت څيزونه خرڅوو) نو معدوم شو سبب ظاهرى (د اسحقاق غنيمت،يعنى داستحقاق غنيمت دپاره سبب دا وو.چه دوئ دجهاد په اراده د اسلامي سرحد نه راوريدلي وى.اوداسې نه ده شوې.نوداسحقاق غنيمت سبب موجود نشو.اوس هركله چه داستحقاق غنيمت ظاهرى سبب نشته.نو) اعتبار به كولې شى دسبب حقيقى،چه جنګ دې. (يعنى چه استحقاق غنيمت ظاهرى سبب موجود نه شو.نواوس به ظاهرى سبب ته ګورو.چه جنګ دې.كه هغه موجود شوې وى.نواسحقاق د غنيمت به وى.اوكه نه وى. نو استحقاق غنيمت به نه وى.اوپه زيربحث مسئله كښې حقيقى سبب چه جهاد دې. ددې مجاهدينو نه نه دې موجود شوې.نوځكه به دوئ مستحق دمال غنيمت نه وى)

**په مسلمانانوكښې ديوكس كافرته امان وركول**

| |
|---|
| وَإِذَا أَمَّنَ رَجُلٌ حُرٌّ أَوِ امْرَأَةٌ حُرَّةٌ كَافِرًا أَوْ جَمَاعَةً أَوْ أَهْلَ حِصْنٍ أَوْ مَدِينَةٍ صَحَّ أَمَانُهُمْ وَلَمْ يَجُزْ لِأَحَدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ قَتْلُهُمْ |

**ترجمه و تشريح** ﴾ كله چه امان وركړى سړې آزاد ،ياښځه آزاده (امان وركړى) يوكافرته،يا يوې ډلې (دكافرانوته) اواوسيدونكود قلعې ته (امان وركړى) يااسيدونكو دښارته (امان وركړى)نوصحيح دې امان وركول د دوئ، اوجائزنه دى دهيڅ يوكس دمسلمانانو دپاره، جنګ كول دهغوئ سره، (اګرچه كوم كس امان وركړې وى.هغه شل يا روند يا ګوډ وى)

**دليله** ﴾ دليل) په (صحت د) دې (امان) كښې قول دنبى ﷺ دې.چه مسلمانان برابر دى. وينې ددوئ، (په قصاص اوديت كښې.په مالدار او فقيردغه شان په معزز اوغيرمعززكښې فرق نشته.كه شريف قاتل وى.نودغيرشريف مقتول په بدله كښې به قصاص كولې شى) اوكوشش به كوى د ذمه وراى ددوئ دپاره،ادنى په دوئ كښې،يعنى كم مقدارچه يوكس دې. (يعنى كه په مسلمانانوكښې يوكس يوه ذمه واري واخستله. نوټول مسلمانان به دهغه ذمه واري پوره كولوكوشش كوى.نوددې حديث مطابق كه آزادسړى يا ښځې كوم حربي ته امان وركړلو.په نوروسلمانانوده د امان وركولواحترام واجب دې .چه دغه كافرته به څه نه وائى) (٢)

---

(١) **مسلك الشافعي**:- فرمائى امام شافعى رحمه الله په يو د دوو قولونه دده كښې چه حصه به مقرر كولې شى دوئ دپاره په مال غنيمت كښې،اوبل قول ئې زمونږ دمذهب مطابق دې.

(٢) من حديث على بن أبي طالب رضي الله عنه أخرجه البخارى ف المغازى باب ٠ ومسلم ف الجهاد رقم ٥٩ وابوداود ف الجهاد باب ١١٤ واحمد ف المسند (٢٤٦٦٢)۔

## په امان کښې د مسلمانانو د نقصان په صورت کښې امان ماتول

(إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي ذَٰلِكَ مَفْسَدَةٌ. فَيَنْبِذُ إِلَيْهِمُ الإمام)

**ترجمه و تشریح** > مګر دا چه وي په دې (امان ورکولو د یو مسلمان کښې) نقصان (د مسلمانانو) نو ماته به کړي وعده (د امان) هغوئ سره، (او اعلان به ورته اوکړي. چه زمونږ فلانی مسلمان چه تاسو ته امان درکړې وو. هغه امان مونږ ماتوو. او د دې امان ماتولو مثال دا دې. دې)

## د ذمي امان ورکول

(وَلَا يَجُوزُ أَمَانُ ذِمِّيٍّ)

**ترجمه و تشریح** > او نه دی جائز امان ورکول (حربیانو ته) د ذمی

**دلائله** > ① ځکه چه دې (ذمي) متهم دې په دوی (حربیانو) باندې (چوکه ذمی هم کافر دې نو دده په امان ورکولو به دده باندې دا تهمت لګیدې شی. چه دا امان دې دخپل مذهبی تعصب په وجې ورکوی
② دغه شان (بله وجه د ذمی د امان عدم جواز دا ده. چه) نشته ولایت دده (ذمی) په مسلمانانو باندې (ځکه چه الله تعالی فرمائیلی دی ﴿وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا﴾ اود ذمی دامان ورکولو وجې په نورو مسلمانانو باندې دده د امان احترام لازمول هم ولایت دې. کوم چه جائزنه دې)

## دقیدی او سوداګر امان ورکول

(وَلَا أَسِيرٍ وَلَا تَاجِرٍ يَدْخُلُ عَلَيْهِمْ)

**ترجمه و تشریح** > اونه (دې جائز امان ورکول) دقیدی (چه د حربیانو په قید کښې وی) اونه د سوداګرچه داخل شوې وی په هغوئ باندې (یعنی دهغوئ ښارته د تجارت دپاره. یعنی که مسلمان قیدی یا سوداګر حربیانو ته امان ورکړی. نو ددوئ دامان ورکولو د وجې په مسلمانانو باندې د هغوئ دامان احترام ضروری نه دې)

**دلائله** > ①ځکه چه دا دواړه (که مسلمان قیدې دې اوکه سوداګر دې) مغلوب دی په لاسونو د هغوئ کښې، نو نه ویریږی (حربیان) ددوئ (قیدی او سوداګر) نه، اوامان خاص دې په محل د ویرې پورې. (یعنی کوم کس چه ددې اهلیت لری. چه دې حربیانو ته امان ورکړی. اوپه نورو مسلمانانو دده د امان احترام لازم وی. نودهغې په شرطونو کښې یو شرط دا هم دې. چه دغه امان ورکونکې داسې وی. چه کافران دهغه نه ویریږی. اوپه زیربحث صورت کښې قیدی اوسوداګر دواړه مغلوب دی. کافران د دوئ نه نه ویریږی. نوځکه ددوئ امان ورکول معتبر نشو)

②اوبل عقلی دلیل دا بیانوی) اوځکه چه دا دواړه (قیدی اوسوداګر) مجبورولې شی په دې (امان ورکولو) باندې (چه حربیان ئې مجبوره کړی. چه تاسو مونږ ته امان راکړئ. ګنی تاسو قتل کوو) نوخالی کیږی امان د مصلحت (دمسلمانانو نه، اوکله چه په امان ورکولو کښې دمسلمانانو خیرنه وی. نوکه یو کس امان ورکړې هم وی. امام به دهغه امان ماتوی. نوپه دې صورت کښې چونکه ددوئ امان ورکول هم د مسلمانانو د خیرنه خالی دې. ځکه به نشی قبلولې

### دعبدمحجوردامان مسئله

(وَلَا يَجُوزُ أَمَانُ الْعَبْدِ الْمَحْجُورِ عَلَيْهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ مَوْلَاهُ فِي الْقِتَالِ.(١)

**ترجمه و تشريح**> اونه دي جائز امان وركول د عبدمحجور(چه دې دتجارت كولونه منع شوې وي) په نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله البته دا چه اجازت كړې وي ده ته مولى ددۀ په جنګ كولوكښې، (چه ته په جهاد كښې شركت كولې شې)

**دليله**> دامام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دې.چه دې (عبد) بندكړې شوې دې دجنګ كولونه (ځكه چه مولى منع كړې دې) نونه صحيح كيږي امان وركول دده،ځكه چه دوئ (حربيان) نه ويريږي دده (عبد محجور) نه، (ځكه چه هغوئ ته دا پته ده.چه دې زمونږ سره جنګ نشي كولې.ځكه چه مولى منع كړې دې) نوملاقات اونكړلو امان دمحل خپل سره (اومحل د هغې ويره ده.يعنى د امان دپاره دا شرط دې.چه ځوك امن وركوي.هغه داسې وي.چه حربي دهغه نه ويريږي.اوپه زيربحث مسئله كښې كافران دده نه ځكه نه ويريږي.چه مولى دې دجهاد كولونه منع كړې دې.نوځكه دده امان نه صحيح كيږي)

(وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ يَصِحُّ أَمَانُهُ)

**ترجمه**> اوفرمائى امام ابويوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله چه صحيح كيږي امان دده (امان وركول د عبدمحجور)

**تشريح**>**دلائلهما**> ① دصاحبينو دليل قول دنبى ﷺ دې. أَمَانُ الْعَبْدِ أَمَانٌ(٢) چه امان د غلام امان دې. (يعنى كه مسلمان غلام چاته امان وركړي.نوپه نورومسلمانانودده دامان احترام لازم دې.اودده امان صحيح دې)

② اوبل ددې وجې (دغلام امان صحيح دې.چه دې (غلام) مومن دې اوصاحب دقوت دې. (اودامان داهليت په شرطونوكښې ايمان اوقوت هم شرط دى)نوصحيح كيږي امان دده دوجې دقياس نه په عبدماذون باندې. (لكه څنګه چه د عبدماذون چه مولى ورته د دجهاد كولواجازت كړې وي. او هغه چاته امان وركړي.نودهغه امان صحيح دې.دغه شان به دعبد محجورامان هم صحيح وي)

**الجواب عنه**> دعبدمحجور عن القتال قياس په عبدماذون فى القتال باندې صحيح نه دې.ځكه عبد ماذون ته دقتال اجازت شته(ځكه چه ويره دده نه متحقق ده. (ځكه چه دې په جهاد كښې شركت كولې شي.نوحربيان ترې ويريږي.چه په مونږ به حمله اوكړي.اودا څيزبه عبدمحجوركښې نشته. نو دا قياس مع الفارق شو.كوم چه جائز نه دې)

### دكافرانوپه هغه مالونوملكيت راتلل كوم چه هغوئ د اهل كتابونه قبضه كړې وي

(وَإِذَا غَلَبَ التُّرْكُ عَلَى الرُّومِ فَسَبَوْهُمْ وَأَخَذُوا أَمْوَالَهُمْ مَلَكُوهَا)،

---

١) القول الراجح هوهذا قول الإمام كذا في فتح القدير(٢١٤\٥)والعناية (٢١٤\٥)و الخانية (٤٦١\٤) وردالمحتار(٢٥٠\٣) نقلاً عن القول الراجح (٤٨٠\١)۔

١) قال الزيلعي رحمه الله غريب وروى عبدالرزاق فى مصنفه ...عن فضيل بن يزيد الرقاشي قال شهدت قرية من قرى فارس يقال لها :شاهرتا فحاصرناها شهراً حتى إذا كنا ذات يوم وطمعنا أن نصبحهم إنصرفنا عنهم عند المقيل فتخلف عبدمنا،فاستامنوه فكتب إليهم فى سهم اماناً ثم رمى به إليهم فلما رجعنا إليهم خرجوا في ثيابهم ووضعوا اسلحتهم فقلنا ماشانكم ؟فقالوا: لا ندرى عبدكم من حركم وقد خرجنا بامان فكتبا إلى عمر رضي الله عنه فكتب عمر رضي الله عنه إن العبد المسلم من المسلمين وامانه امانهم رواه ابن أبي شيبة فى مصنفه وزاد واجاز عمر رضي الله عنه امانه (نصب الراية ٦٠٦\٣)۔

**ترجمه و تشریح>** اوکله چه غالب شی تاتاریان (کافران) په رومیانو(عیسایانو) باندې، اوهغوئ (رومیان) قیدیان کړی.او واخلی مالونه دهغوئ

**دلیله>** ځکه چه غلبه یقیناً متحقق شوې ده په مال مباح باندې او هم دا (استیلاء په مال مباح باندې) سبب دی (دملك راتلو په هغې باندې) لکه چه مونږ به ئې بیان کړو

(وَاِنْ غَلَبْنَا عَلَى التُّرْكِ حَلَّ لَنَا مَا نَجِدُهٗ مِنْ ذٰلِكَ)

**ترجمه>** اوکله چې غلبه اوکړه مونږ(مسلمانانو) په ترکیانو(کافرانو) نوحلال دی زمونږ (مسلمانانو) دپاره هغه څه چه مومو ئې مونږ ددغه نه (کوم چه ترکیانوکافرانو د رومیانو عیسایانو نه اخستی وی)

**دلیله>** دوجې د قیاس نه په ټولومالونو ددوی (ترکیانوکافرانو، یعنی لکه څنګه چه مونږ د ترکیانوپه خپلو مالونوباندې غلبه اوکړو.نودهغې مالکان جوړیږو.دغه شان به دهغه مالونو هم مالکان جوړیږو.کوم چه هغوی د رومیانو عیسایانونه ا خستی وی.یعنی زمونږ دپاره دواړه برابردی)

**دکافرانوپه هغه مالونوملکیت راتلل کوم چه هغوئ د اهل کتابونه قبضه کړی وی**

(وَاِذَا غَلَبَ التُّرْكُ عَلَى الرُّوْمِ فَسَبَوْهُمْ وَاَخَذُوْا اَمْوَالَهُمْ مَلَكُوْهَا)،

**ترجمه و تشریح>** اوکله چه غالب شی تاتاریان (کافران) په رومیانو(عیسایانو) باندې، اوهغوئ (رومیان) قیدیان کړی.او واخلی مالونه دهغوئ

**دلیله>** ځکه چه غلبه یقیناً متحقق شوې ده په مال مباح باندې او هم دا (استیلاء په مال مباح باندې) سبب دی (دملك راتلو په هغې باندې) لکه چه مونږ به ئې بیا کړو

(وَاِذَا غَلَبْنَا عَلَى التُّرْكِ حَلَّ لَنَا مَا نَجِدُهٗ مِنْ ذٰلِكَ)

**ترجمه>** اوکله چې غلبه اوکړه مونږ(مسلمانانو) په ترکیانو(کافرانو) نوحلال دی زمونږ (مسلمانانو) دپاره هغه څه چه مومو ئې مونږ ددغه نه (کوم چه ترکیانوکافرانو د رومیانو عیسایانو نه اخستی وی)

**دلیله>** دوجې د قیاس نه په ټولومالونو ددوی (ترکیانوکافرانو، یعنی لکه څنګه چه مونږ د ترکیانوپه خپلو مالونوباندې غلبه اوکړو.نودهغې مالکان جوړیږو.دغه شان به دهغه مالونو هم مالکان جوړیږو.کوم چه هغوی د رومیانو عیسایانونه ا خستی وی.یعنی زمونږ دپاره دواړه برابردی)

(وَاِذَا غَلَبُوْا عَلٰى اموالنا واحرزوها بدارهم ملكوها)

**ترجمه وتشریح>** اوکله چه غلبه اوکړی (کافرانو) په مالونو زمونږ الله دې نکړی اومحفوظ کړی دا (مالونه زمونږ) په خپل ملك کښې نومالکان جوړیږی دهغې(مالونو) [1]

**دلیله>** دلیل دا دی.چه غلبه (دکافرانو) راغلې ده په مال مباح باندې (ځکه چه غلبه دې ته وائی.چه په یو څیزباندې په داسې طریقه قدرت راشی.چه فی الحال ترې هم فائده اخستې شی.او د روسته دپاره ئې ذخیره کولې هم شی.اوپه داسې طریقه باندې قدرت هله راځی.چه هغه څیز په خپل ملك او کور کښې محفوظ کړی.اوچه کله کافران د مسلمانانوپه مال غلبه اوکړی.اوخپل ملك ته ئې یوسی.نودمسلمان دحق دوجې چه دغه مال ته کوم عصمت ملاؤ شوې وو.هغه زائله شو.او مباح اوګرځیدلو.اوداسې شو.

---

[1] فرمائی امام شافعی رحمه الله نه مالکان کیږی (کافران) ددې (مالونوزمونږ چه خپل ملك کښې ئې محفوظ کړی.

## دمسلمانانو دوباره په خپل مال باندې غلبه

(فَإِنْ ظَهَرَ عَلَيْهَا الْمُسْلِمُونَ فَوَجَدُوهَا قَبْلَ الْقِسْمَةِ فَهِيَ لَهُمْ بِغَيْرِ شَيْءٍ، وَإِنْ وَجَدُوهَا بَعْدَ الْقِسْمَةِ أَخَذُوهَا بِالْقِيمَةِ إِنْ أَحَبُّوا)

**ترجمه و تشریح** که غالب شو په دغه مال باندې(کوم چه دمسلمانانونه کافرانوقبضه کړې وو) مسلمانان، اوا وموندلوهغه (مال خپلوزړو) مالکانو،ورانديې د تقسیم (دمال غنیمت) نه،نودغه مال ددوئ (خپلوسابقه مالکانو)دپاره دي بغیرد څه څیزنه (بلکه دوئ ته به مفت ملاویږي.ددې په عوض کښې به قیمت وغیره نه ورکوی) اوکه وې موندلوهغه مال (چه ددوئ نه کافرانواخستې وو) پس د تقسیم (دمال غنیمت) نه (او دوئ دغه مال د یوغازي په حصه کښې راغلې وو) نواخلی به ئې په قیمت سره که غواړی(یعنی که دا غواړي.چه زما سابقه مملوك څیزدې.زه دا غوارم.چه زما لاس ته راشي.ځکه چه ما سره ئې وخت تیرشوې دې.نوچه د کوم غازي په حصه کښې هغه راغلې وی.هغه ته به ئې قیمت ورکړی.اوهغه څیزبه ترې ترلاسه کړی) (قیمت به ورکوی)

**دلیله** دوجې د قول د نبیﷺ نه په دې (حکم) کښې (چه یوصحابی ؓ ته ئې فرمائیلی وو) که تا اوموندلوهغه (څیزکوم چه ستا نه کافرانوقبضه کړې دې) وراندې د تقسیم (دمال غنیمت) نه،نوهغه ستا دې بغیرد څه عوض نه،اوکه اودې موندلوهغه پس دتقسیم (دمال غنیمت) نه،نوهغه ستا دپاره په قیمت دې. (چه دچا په حصه کښې رسیدلې وی.هغه ته به ئې قیمت ورکوې) ([1])

## په دارالحرب کښې د مشتری له دخپل مال اخستلو حکم

(وَإِنْ دَخَلَ دَارَ الْحَرْبِ تَاجِرٌ فَاشْتَرَى ذَلِكَ فَأَخْرَجَهُ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ فَمَالِكُهُ الْأَوَّلُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ أَخَذَهُ بِالثَّمَنِ الَّذِي اشْتَرَاهُ بِهِ التَّاجِرُ، وَإِنْ شَاءَ تَرَكَهُ)؛

**ترجمه و تشریح** اوکه داخل شو دارالحرب ته (زید) سوداګر،اووائې اخستلوهغه (څیزکوم چه دمسلمانانونه کافرانواخستې وو) او راوړ ئې ورلودارالاسلام ته،نواولنی مالك ته اختیاردې.که خوښه ئې وی نو وادې اخلی هغه (سابقه مملوك څیزخپل) په هغه قیمت چه اخستې وی (زیدسوداګر) په هغې باندې،اوکه غواړي پرې دیګدی. (اوکه سابقه مالك ته بغیرقیمته د سوداګرنه دخپل سابقه مملوك څیزاجازت نشي ورکولې)

**دلیله** ځکه چه ده (سوداګر) ته ضرر رسی په اخستلوسره مفت (یعنی چه سوداګربه دارالحرب کښې پیسواخستې وی. او دلته ئې ترې سابقه مالك مفت واخلی.نوبه دې کښې سوداګرته نقصان دې.ځکه به داسې نشی کولې) ولې ته ګوري نه چه ده(سوداګر) ورکړې دې عوض (چه ثمن دی) په مقابله دهغه څیز کښې (چه سابقه دده ملك وو) نودې برابرې دشفقت په هغه صورت کښې چه مونږ اوونیل(چه سوداګربه څومره قیمت په دارالحرب کښې اخستې وی.اوهغه ته به څومره باندې پریوتې وی.هغه قیمت دې ورته ورکړی.اوخپل سابقه مملوك څیزدې ترې واخلی)

## حربیان د غلبه په صورت کښې زمونږدکومو څیزونومالکان نشي جوړیدې ؟

(وَلَا يَمْلِكُ عَلَيْنَا أَهْلُ الْحَرْبِ بِالْغَلَبَةِ مُدَبَّرِينَا وَأُمَّهَاتِ أَوْلَادِنَا وَمُكَاتَبِينَا وَأَحْرَارَنَا وَنَمْلِكُ عَلَيْهِمْ جَمِيعَ ذَلِكَ)

---

[1] من حديث ابن عباس ؓ اخرجه الدارقطني في سننه (٤\١١٤) والبيهقي في سننه)_

**ترجمه و تشریح>** اونه مالکان کیږی حربیان زمونږ (چه دا ملکیت راشی ددوی) په غلبې کولو(چه په مسلمانانو غالب شی)دمدبر، اوامهات الاولاد او مکاتبانواو اصیلو زمونږ (یعنی که حربیان په مسلمانانوغالب شی.او دوی آزاد مسلمانان یا اصیلی ښځی یا د مسلمانانو مدبریا ام ولده اونیوله.نودا کسان د حربیانو مملوك نه جوړیږی)اومونږ مالکان کیږو دهغوی نه دذې تولو(یعنی که مسلمانان په حربیانوغلبه اوکړی .اودا کوم کسان چه ذکر شول.دوی د مسلمانانو په قید کښې راشی.نومسلمانان د دوی مالکان جوړیږی).اومونږ مالکان کیږو دهغوی نه ددې ټولو(یعنی که مسلمانان په حربیانو غلبه اوکړی او دا کوم کسان چه ذکر شول.دوی د مسلمانانو په قید کښې راشی.نومسلمانان د دوی مالکان جوړیږی.او دوی په مونږ غلبه اوکړی.اومونږ قیدیان کړی.نودوی زمونږ مالکان نه جوړیږی)

**دلیله>** ځکه چه سبب (د مملوکیت چه غلبه ده) پیدا کوی ملك په محل خپل کښې (یعنی چه په کوم څیز باندې غلبه راشی.نوپه دغه څیز باندې د غالب راتلونکی ملکیت په هغه صورت کښې ثابتیږی.چه هغه مغلوب څیز قابل د ملکیت وی) اومحل (دملکیت) مال مباح دې.او آزاد کس معصوم وی.په اعتبار دخپل نفس سره (یعنی د آزاد کس وینه محترمه ده.په ده باندې د چا ملکیت نشی راتلې.نوکه حربیان آزاد مسلمانان قیدکړی.هغوی ددوی مالکان نشی جوړیدې)

## دمسلمان نه د غلام تښتیدل اودکافرانوپه هغه قبضه کول

(وَإِذَا أَبَقَ عَبْدٌ لِمُسْلِمٍ فَدَخَلَ إِلَيْهِمْ فَأَخَذُوهُ لَمْ يَمْلِكُوهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ،

**ترجمه و تشریح>** اوکله چه اوتختی مسلمان غلام دمسلمان اوداخل شی هغوی ته (دحربیانو ملك ته) هغوی نې اونیسی .نو(په دې نیولوباندې کافران ددغه غلام) نه مالکان کیږی.په نیزدامام ابوحنیفه رحمه الله.

**دلیله:** د(امام ابوحنیفه رحمه الله) دلیل دا دې.چه دې (غلام) ښکاره شوې ده قبضه دده په خپل ځان باندې په وتلو سره زمونږ د وطن (دارالاسلام) نه، (نوچه دې د دارالاسلام نه بهر شو.په ده باندې د مالك قبضه هم ختمه شوه) ځکه چه اعتبارددې (قبضه د مالك په غلام باندې په دارالاسلام کښې) شته،د وجې د ثابتوالی د قبضې د مولی په ده (غلام) باندې دپاره د قدرت ورکولوده (مولی) ته د فائدې اخستلو (دغلام نه،یعنی په دارالاسلام کښې چه مونږ په غلام باندې د مولی د قبضې قائل یو.ددې دپاره چه غلام موجود وی.نومولی به ترې فائده اخلی.په خپل کاربه نې راولی) اویقیناً ختمه شوه قبضه د مولی (ځکه چه کله غلام د دارالاسلام نه دارالکفرته اوتختیدلو.نودمولی قبضه ختمه شوه.اوس دې دهغه نه فائده او خدمت نشی اخستې.ځکه چه هغه موجود نه دې) نو(هرکله چه د مولی قبضه دده نه ختمه شوه.نواوس دې څه بې روح یا بې عقله څیزخونه دې.چه په خپل ځان کښې به نې هم واك اختیارنه وی) نوښکاره شوه قبضه دده په خپل ځان باندې اواوګرځیدلومعصوم په اعتبار دخپل نفس سره، (ځکه چه دده نفس محترم دې د ده نه د فائدې اخستلوبه غرض دده حفاظت نشی کولې.نوپه ده باندې ملکیت هم نشی راتلې.ځکه چه ملکیت خوپه هغه څیز باندې راځی.چه هغه سړی ځان سره محفوظ کړې وی.اوپه وخت د ضرورت ترې فائده اخلی) نوپاتې نشو محل دپاره د ملکیت، (دبل چا بلکه دې اوس په خپله د خپل ځان مالك شو)

وَقَالَا يَمْلِكُونَهُ)

**مسلک الصاحبین>** اوفرمائی صاحبین رحمهما الله مالکان کیږی.

**دلیلهما** خکه چه عصمت (یعنی غلام چه د غیرد مملوکیت نه محفوظ وي) دحق دمالك د وجې وو، خکه چه دهغه قبضه پرې قائمه وه. اویقیناً زائله شوه (دمالك قبضه په تختیدو سره دارالکفرته) اوددې وجې (چه د مالك قبضه ترې ختمه شوې ده) که نیسی ده لره کافران په دارالاسلام کښې (او دار الکفرته ئې بوځي) نومالکان کیږي ئې. (نولکه څنګه چه په دغه صورت کښې پرې دکافرانوملك راځي. دغه شان به په زیربحث مسئله کښې هم راځي)

**دمسلمانانوځاروي دحربيانوپه قبضه کښې د راتلوحکم**

(وَإِنْ نَدَّ إِلَيْهِمْ بَعِيرٌ فَأَخَذُوهُ مَلَكُوهُ)

**ترجمه و تشریح** اوکه اوتختیدلواوښ (دمسلمانانو) هغوی (حربیانو) ته، اوهغوئ اونیولوهغه، (اوښ) نومالکان کیږي (حربیان) دهغې (اوښ)

**دلیله** دوجې د ثابت کیدو د غلبه نه (چه دحربیانوپه دغه ځاروی باندې غلبه اوقبضه راغله. اوداسې نشو ونیلې. چه دغه اوښ هرکله د دارالاسلام نه بهرشو. نودخپل مالك قبضه پرې ختمه شوه. او دخپل واك اختیارمالك شو. لکه څنګه چه مونږ په غلام کښې ونیلی وو) خکه چه نشته اختیار ددې بې زبانه ځناورو دپاره چه ښکاره شي (دغه اختیار) په وخت د وتلو (ددې ځاروی) زمونږ د دارالاسلام نه (یعنی په ځاروی کښې دا صلاحیت اواهلیت نشته. چه دې دخپل ځان مالك جوړ شي)

**غازیانوته بطورامانت مال غنیمت حواله کول**

(وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْإِمَامِ حَمُولَةٌ يَحْمِلُ عَلَيْهَا الْغَنَائِمَ قَسَمَهَا بَيْنَ الْغَانِمِينَ قِسْمَةَ إِيدَاعٍ لِيَحْمِلُوهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ يَرْتَجِعُهَا مِنْهُمْ فَيَقْسِمُهَا)

**د لغت حل:** ① **الحمولة**: سورلي ② **الارتجاع**: تقسیمول

**ترجمه و تشریح** اوکه نه وي (په دارالحرب کښې) دامام سره سورلي چه بارکړي په هغې باندې غنیمتونه، نوتقسیم به ئې کړي په غازیانوباندې په طوردتقسیم امانت، چه یوسی دا (غنیمت) دارالاسلام ته، اوبیا به واپس کړي دا (غنیمت) ددوئ نه، نوتقسیم به ئې کړي په دوئ باندې،

**توضیح عبارة القدوری** صاحب دهدایه فرمائیلی دي په مختصرالقدوری کښې مطلقاً ذکرکړی دی. چه امام به دامانت په طورغنیمتونه غازیانوته ورکړي. چه دا دارالاسلام ته اورسوئ. اوهلته به ئې واپس کوئ. دا ئې نه دی ذکرکړې چه هغوئ په دې اورو باندې راضي وي اوکه نه، نوددې نه دا معلومیږي. که هغوئ ئې بطورامانت اورو باندې راضي وي اوکه نه وي. په دواړو صورتونوکښې به مال غنیمت بطورامانت دارالاسلام ته اوړي او دا اطلاقروایت د سیر کبیر دې. چه په هغې کښې امام محمد رحمه الله دا حکم مطلقاً ذکر کړی دی

**دلیله** خکه چه سورلي اوڅه چه په هغې بارکولې شي. (تول) دغازیانودپاره دی. (چه کله دارالاسلام ته اورسی. نوهم په دوئ به ئې تقسیموی. نوکه زره ئې ښه وي اوکه بد، د دارالحرب نه به ئې دارالاسلام ته نقل کوی)

**دتقسیم نه وړاندې دمال غنیمت دخرڅولوممانعت**

(وَلَا يَجُوزُ بَيْعُ الْغَنَائِمِ قَبْلَ الْقِسْمَةِ فِي دَارِ الْحَرْبِ)

**ترجمه و تشریح** اوجائزنه دی خرڅول دمال غنیمت وړاندې د تقسیم نه په دارالحرب کښې،

**دلیله** خکه چې مال غنیمت ترڅو پورې په دارالاسلام کښې محفوظ شوې نه وي. نوملك نه ثابتیږي. نو چې د یو څیز مالك نه وي هغه به خرڅ څنګه کړي!

(وَمَنْ مَاتَ مِنَ الْغَانِمِينَ فِي دَارِ الْحَرْبِ فَلَاحَقَّ لَهُ فِي الْقِسْمَةِ،

**ترجمه و تشریح﴾** اوخوك چه مړ شويه دارالحرب کښې د غازيانونه،نونشته حق دده دپاره په مال دتقسيم کښې، ([1])

**دليله﴾** (ځکه چه په دارالاسلام کښې دمحفوظ کيدونه وړاندې په مال غنيمت باندې ملکيت نه راځي)

وَمَنْ مَاتَ مِنَ الْغَانِمِينَ بَعْدَ إِخْرَاجِهَا إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ فَنَصِيبُهُ لِوَرَثَتِهِ)

**ترجمه﴾** او څوك چه مړ شو د دوئ (غازيانو) نه پس د راويستلوددې (مال غنيمت د دارالکفر نه) دارالاسلام ته، نوحصه د ده دپاره د وارثانودده ده.

**دليله﴾** (ځکه چه کله مال غنيمت درالاسلام ته راورسيدل .نوپه دې باندې د غازيانو ملکيت راغلو. اود ملکيت راتلونه پس که سړې مړ شي.نودده مملوك څيزوارثان په ميراث کښې اوړي) ځکه چه ميراث جاري کيږي په مملوك څيزکښې،اونه راځي ملکيت وړاندې دحفاظت نه (په دارالاسلام کښې) بلکه ملکيت چه راځي.نوددې (په دارالاسلام کښې دحفاظت) نه پس،

وَلَابَأْسَ بِأَنْ يُنَفِّلَ الْإِمَامُ فِي حَالِ الْقِتَالِ وَيُحَرِّضَ بِالنفل عَلَى الْقِتَالِ فَيَقُولَ "مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهُ سَلَبُهُ" وَيَقُولَ لِلسَّرِيَّةِ قَدْ جَعَلْتُ لَكُمُ الرُّبُعَ بَعْدَ الْخُمُسِ)

**حل اللغة﴾** ① **التنفيل**:مجاهدته د انعام په توګه څه څيز ورکول ② **يحرض**:تيزوی ③ **سلب**:سامان

**ترجمه و تشريح﴾** په دې خبره کښې څه حرج نشته،چه تنفيل اوکړي امام په حالت د قتال کښې اوتيزي ورکړي په جنګ کولواودا اووائي.چاچه کافرقتل کړلو.نودغه (مجاهد)دپاره د هغه (مقتول کافر) سامان دې.او(يا) اووائي.سريه (ورکوټي لښکر) ته،بيشکه ما اوګرځوله ستاسودپاره څلورمه حصه (علامه مرغيناني رحمه الله فرمائي) معنی ددې (چه ستاسودپاره مې څلورمه حصه اوګرځوله) پس د ويستلو د خمس نه (چه د خمس د مصارفونه پس کومې څلورحصې پاتې شي.په هغې کښې به يوخمس ستاسو وي. مثلا شل زره روپۍ په مال غنيمت کښې وې.په هغې کښې يوخمس شو.چه څلور زره روپۍ دی.اوباقي شو څلورحصې چه شپاړس زره روپۍ دی.نوپه هغې کښې امام غازيانوته بطورد تنفيل صرف يوه حصه ورکولې شي.چه څلور زره روپۍ دی.اوباقي پاتې شوې درې حصې چه دولس زره روپۍ دی.هغه به دباقي ټول لښکرشي.

**دليله﴾** ځکه چه دا دانعام په طور مجاهدينوته څه ورکول په جهاد باندې ددوئ اماده کول دی) اوتيزول (د مجاهدينوپه جهاد باندې) مستحب دی.الله تعالی فرمائيلی دی﴿وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِينَ﴾ (اې پيغمبر ﷺ) تيز کړه مسلمانان په قتال باندې (کافروسره) اودا (تنفيل هم) يوقسم تحريض (تيزول) دی.

**په دارالاسلام کښې دغنيمت دمحفوظ کيدوله پس تنفيل**

(وَلَا يُنَفِّلُ بَعْدَ إِحْرَازِ الْغَنِيمَةِ

**ترجمه و تشريح﴾** اودانعام په طوربه نشي ورکولې (يوکس يا يوې ډلې ته څه څيز دمال غنيمت نه) پس د محفوظ کيدو د غنيمت نه په دارالاسلام کښې،

[1]) فرمائي امام شافعي رحمه الله څوك چه مړ شو.دوئ (غازيانو) کښې،پس د (مکمل کيدو د) شکست دکافرانو،نوميراث به اوړې شي دده حصه دوجې دقيام د ملك نه په دغه مال غنيمت کښې دده

**دلیله** > ځکه چه حق د غیر(چه نورغازیان دی) متحقق شو په دې (غنیمت) کښې.

**تنفیل به د خمس نه له وی**

(اِلَّا مِنَ الْخُمُسِ)

**ترجمه و تشریح** > (امام د تنفیل اعلان کولې شی) مګرنشی کولې د خمس نه

**دلیله** > ځکه چه نشته حق د غازیانودپاره په خمس (دمال غنیمت) کښې، (بلکه دا خودهغه درې مصارفودپاره دې.کوم چه وړاندې تیر شول)

**داعلان نه بغیردقاتل د مقتول دسامان په استحقاق کښې اختلاف**

(وَاِذَا لَمْ يَجْعَلِ السَّلْبَ لِلْقَاتِلِ فَهُوَ مِنْ جُمْلَةِ الْغَنِيمَةِ، وَالْقَاتِلُ وَغَيْرُهُ فِيهِ سَوَاءٌ)

**ترجمه و تشریح** > اوکله چه اونه ګرځوی (امام) سامان (دمقتول) دپاره د قاتل (اودا اعلان اونکړی.چه چا کوم کافرقتل کړلو.نوهغه سامان به دمال غنیمت نه سوا دهغه دقاتل وی) نوهغه (سامان د مقتول حربی کافر) به وی د مال غنیمت ځنی،اوقاتل اوسوا د قاتل نه په دغه (سامان) کښې برابردی.(دانه چه قاتل ته به دمقتول سامان کښې څه زیاتی ملاویږی)([1])

**دلائله** > ① دلیل دا دې.چه دا (سامان دمقتول کافر) اخستې شوې دې په قوت د لښکرسره، (ځکه که چیرته دې یواځې وې.نوهغه کافرئې نشوقتل کولې.ده ته چه دهغه په قتل کولوقدرت ملاؤ شو. نو د خپلو ملګروپه ذریعه سره ملاؤ شوی دې) نووی به (سامان د مقتول) غنیمت، (اوچه مال غنیمت شو نوتقسیمولې به شی په شان د تقسیم دمال غنیمت،لکه څنګه چه ګویا دې په دې (خبره) باندې نص، (چه قول دالله تعالی دی: ﴿وَاعْلَمُوا اَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِّنْ شَيْءٍ﴾ ګوریٔ په دې آیت کښې ددې ذکرنشته.چه قاتل ته به د مقتول سامان په هرحالت کښې ملاویږی.که امام ورله د انعام اعلان کړې وی اوکه نه)

② اوفرمائیلی دې نبی ﷺ حبیب بن ابی مسلمه ؓ ته لَيْسَ لَكَ مِنْ سَلَبِ قَتِيلِكَ اِلَّا مَا طَابَتْ بِهِ نَفْسُ اِمَامِكَ}([2])نشته ستا دپاره د سامان د مقتول ستا نه مګرهغه چه راضی وی په هغې باندې نفس دامام ستا (یعنی که امام تاته ستا د مقتول سامان درکوی.نوټیک ده.اوکه هغه ئې نه درکوی. نو د هغې د استحقاق دعوی نشې کولې)

**دمقتول د سامان بیان**

(وَالسَّلْبُ مَا عَلَى الْمَقْتُولِ مِنْ ثِيَابِهِ وَسِلَاحِهِ وَمَرْكَبِهِ)

**حل اللغة** > ① **ثیاب**:جامې ② **سلاح**:وسله ③ **مرکب**:سورلی

---

[1] **مسلك الشافعي**:- فرمائی امام شافعی ؒ چه سامان (دمقتول حربی) دپاره د قاتل (دهغه) دې.خوپه دې شرط چه وی اهل ددې چه حصه مقرر کړې شی ده دپاره (په مال غنیمت کښې ،یعنی که په مال غنیمت کښې دحصې اخستوقابل وی.نودغه چه کوم کافرقتل کړې وی.دې دهغه د سامان مستحق دې.) اوبل دا (شرط) چه ده (قاتل) هغه (حربی کافر) قتل کړې وی.په داسې حال کښې چه د هغه (کافر) مخ وی. (شا ئې نه وی.یعنی هغه دې قاتل مسلمان سره جنګ کولوته تیاروی)

[2] قال الزيلعي ؒ هكذا وقع في الهداية ،حبيب بن ابي سلمة ؓ وصوابه حبيب بن مسلمة ؓ والحديث رواه الطبراني في معجمه الكبير(نصب الراية ٣\٤٦٨)-

**ترجمه و تشریح>** اوسامان هغه دي چه وی په مقتول باندي دجامه دهغه اود وسلي دهغه اود سورلي د هغه نه. (یعنی دا څیزونه په سلب کښي اوسامان کښي شامل دی)

**د دارالحرب نه په وتلوسره د مال غنیمت جائزالاستعمال څیزونه حرام ګرځیدل**

| |
|---|
| (وَإِذَاخَرَجَ الْمُسْلِمُونَ مِنْ دَارِالْحَرْبِ لَمْ يَجُزْأَنْ يَعْلِفُوامِنَ الْغَنِيمَةِوَلَايَأْكُلُوامِنْهَاشَيأً |

**ترجمه و تشریح>** اوکله چه اوځی مسلمانان د دارالحرب نه نونه دی جائز چه ګیاه ورکړی (خپلوځاروته) د مال غنیمت نه، او(نه دی جائز) چه خوراك اوکړی دهغې نه

**دلائله>** ① ځکه چه ضرورت ختم شواوپه (دارالحرب کښي د دې څیزونودخوراك) اباحت ددې (ضرورت) په وجه وو.

② او(د دې دلیل په وجه هم چه په مال غنیمت کښي د مسلمانانو) حق نور هم مضبوط شوي دي (او د دې مضبوطتیا دلیل دا دې چه) تردې چه (که په دې غانمینو کښې څوک وفات شو نو) میراث به اوړی (وارث د دغه مړی چه غانم دې) د حصې دده (مړی چه غانم دې) اونه دي (دا حکم د میراث اوړو) وراندې د ویستلو (د مال غنیمت ددارحرب نه) دار اسلام ته (تردې که دغه غانم په دارحرب کښي وفات شوې وې نو د ده وارثانو د ده نه میراث نشو اوړلی)

| |
|---|
| (وَمَنْ فَضَلَ مَعَهُ عَلَفٌ أَوْطَعَامٌ رَدَّهُ إِلَى الْغَنِيمَةِ) |

**ترجمه و تشریح>** اوهر څوک چه زیاتی شی د هغه سره څه ګیاه یا د خوراک څیز نو هغه به واپس کوی مال غنیمت ته (یعنی په دارالحرب کښي د مال غنیمت نه د خوراك څه څیزاخستي وی.اودارالاسلام ته داخل شواولا تقسیم د مال غنیمت نه وی شوې.نوکه په هغه خوراك کښي ده سره څه باقی وی.هغه به په مال غنیمت کښي جمع کوی)

**دلیله>** دلیل دا دې.چه اختصاص (یعنی په دارالحرب کښي چه د مال غنیمت نه یو څیز د یو کس دپاره خاص شوې وی.اوهغه ترې فائده اخستې شوه) نو هغه دضرورت دحاجت د وجې وو. (یعنی هغه څیز ته حاجت وو.ځکه ددغه کس دپاره په خصوصیت سره د هغې نه فائده اخستل جائز وو) اویقینا ختم شو ضرورت (ځکه چه اوس خو دارالاسلام ته واپس شو.دا خپل وطن دې.سرې په کښې خپل ضروریات دمال غنیمت نه بغیر هم پوره کولی شی)

**د تقسیم طریقه**

| |
|---|
| وَيُقَسِّمُ الْإِمَامُ الْغَنِيمَةَ فَيُخْرِجُ خُمُسًا) |

**ترجمه و تشریح>** فصل دې په بیان د طریقې د تقسیم(دمال غنیمت) فرمائی(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوتقسیم به کړی امام مال غنیمت،نواوبه باسی (دټولونه اول) پنځمه حصه د هغې، (مال غنیمت) نه،

**دلیله>** د وجې د قول دالله تعالی نه، (پوهه شئ چه کوم څیزتاسوغنیمت کړئ)نو دالله تعالی دپاره دی پنځمه حصه د هغې اودهغه د رسول دپاره.استثناء کړې ده الله تعالی دپنځمه حصې، (نوچه پنځمه حصه ترې لاره شی.باقی پاتې شوې څلورحصې)

| |
|---|
| وَيُقَسِّمُ الْأَرْبَعَةَ الْأَخْمَاسِ بَيْنَ الْغَانِمِينَ |

**ترجمه>** اوتقسیم به کړی (باقی) څلورحصې په منځ د غازیانو کښي،

**دلیله>** ځکه چه نبی ﷺ تقسیم کړې وو مال غنیمت (یعنی ددې څلورحصې) په منځ د

غازیانو کښې،([1])

## دفارس اوراجل دحصوتفصیل

**لِلْفَارِسِ سَهْمَانِ وَلِلرَّاجِلِ سَهْمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تَعَالٰى ([2])**

**حل اللغة**< ① **سهم**:حصه ② **فارس**:د اس سور

**ترجمه و تشریح**< بیا دپاره د فارس(چه په جهاد کښې ئې دخپل اس سره حصه اخستې وی) اودپاره د راجل(چه صرف دې په جهاد کښې شریك شوې وی) یوه حصه ده په نیزدامام ابوحنیفه رحمه الله.

**دلیله**< دامام ابوحنیفه رحمه الله دپاره دلیل دا حدیث دې ابن عباس رضی الله عنهما فرمائی چه نبی ﷺ ورکړې وې فارس ته دوه حصې،اوراجل ته یوه حصه،([3])

**الاستدلال**< (نوددې حدیث نه دا معلومه شوه.چه دفارس دوه حصې کیږی.اود راروان حدیث کوم چې د صاحبینو مستدل دې د هغې نه به معلومه شی.چه د فارس درې حصې کیږی. خو دواړه فعلی حدیثونه دی.یعنی د نبی ﷺ دفعل ذکرپه کښې دې.قول نشته) نومتعارض شو دوه فعلونه د نبی ﷺ (اوکله چه د نبی ﷺ دوه فعلی احادیث متعارض شی.نوبیا قاعده دا ده.چه قولی حدیث ته رجوع کولې شی.نوچه قولی حدیث د کوم مؤید وی.په هغه حدیث عمل کولې شی.نواوس په دې مقام کښې هم دغه قاعده باندې عمل کولې شی.اوهغه داسې چه) رجوع به کولې قول د نبی ﷺ (چه د نبی ﷺ قول دکوم عمل مؤید دې) اویقیناً فرمائیلی دی نبی ﷺ دفارس دپاره دوه حصې دی اود راجل دپاره یوه حصه ده. ([4])

**(وَقَالَا: لِلْفَارِسِ ثَلَاثَةُ أَسْهُمٍ)**

**مسلک الصاحبین**< فرمائی صاحبین رحمهما الله چه د فارس دپاره درې حصې دی.

**دلائلهما**< ①(یونقلی دلیل دې.دهغې بیان دا دې.) دوجې دهغه حدیث نه چه روایت ئې کړې دې ابن عمر رضی الله عنهما چه نبی ﷺ مقررکړې وې دپاره د فارس درې حصې،اودپاره د راجل یوه حصه،([5])

**الجواب عنه**< صاحبینو رحمهما الله چه دحضرت ابن عمر رضی الله عنهما په روایت باندې استدلال کړې دې.نودغه استدلال به څنګه صحیح شی.حالانکه) یقیناً روایت کړې شوې دې دابن عمر رضی الله عنهما نه چه نبی ﷺ مقرر کړې وې دفارس دپاره دوه حصې اود راجل دپاره یوه حصه، (اود اصول حدیث دا قانون دې.چه کله د یو راوی دوه روایتونه متعارض شی.نود بل راوی حدیث ته به ګورو.چه هغه دکوم مؤید وی.په هغې به

---

١) من حديث ابن عباس رضی الله عنهما مجمع الزوائد للهيثمی رحمه الله ٣٤٠\١٥ـ

٢) القول الراجح هوهذا قول ابی حنيفة رحمه الله كذا فی الخانية (٤٦٣\٤) وردالمحتار(٢٥٦\٣) والبحرالرائق (٨٨\٥)نقلاً عن القول الراجح (٤٨٤\١)-

٢) قال الزيلعی رحمه الله قلت غريب من حديث ابن عباس رضی الله عنهما وفی الباب احاديث منها حديث مجمع بن جارية رضی الله عنه ... وفيه فاعطى الفارس سهمين واعطى الراجل سهماً اخرجه ابوداود فی الجهاد باب ١٤٣ رقم ٢٧٣٦)ـ

٣) قال الزيلعی رحمه الله قلت غريب جداً واخطأ من عزاه لابن ابی شيبة وسياتی لفظه فی الحديث الذی بعد هذا (نصب الراية ٦٣٢\٣)ـ

١) من حديث ابن عمر رضی الله عنهما اخرجه البخاری فی الجهاد باب ٥١ ومسلم فی الجهاد رقم ٥٧ وابوداود فی الجهاد باب ١٤٣ رقم ٢٧٣٣ والترمذی فی السير باب ٦ وابن ماجه فی الجهاد رقم ٢٨٥٤ واحمد فی المسند (٢٢)ـ

عمل کولې شي.نودغه شان په دې مقام کښې هم) کله چه متعارض شول دواړه روايتونه دده (ابن عمر رضي الله عنهما) نو ترجيح به ورکولې شي.روايت د بل (صحابي) ته.

④ اوځکه چه استحقاق (دغنيمت) راځي په کفايت باندې، (چه د جهادی ضرورياتوکفايت اوکړي) اوکفايت د ده(فارس) په درې چنده د راجل دې. (يعنې راجل چه څومره قرباني په جهاد کښې ورکوي.نوفارس دهغې په درې حصې قرباني ورکوي.يوپه درې چنده د کفايت تفصيل دا دې)ځکه چه دې (فارس عمل کوي) دپاره د واپس کېدو ،اومنډې اوثابت پاتې کېدووی. (يعنې دې درې کارونه کولې شي.مجاهد پرې د دارالحرب نه دارالاسلام ته واپس راتلې شي.په دشمن پسې منډه هم وهلې شي.اوپه ميدان جنګ کښې داس دپاسه د سورلی په حالت کښې مقابله کولې شي.نودا درې کارونه شو.ځکه د درې حصوحقداردې)

**الجواب عنه>** د دې نه جواب دا دې چه واپس راتلل اومنډه وهل دواړه د يوجنس عمل دې.په عرف کښې هم دې ته دوه عمله نشي وئيلې.نوهرکله چه واپس راتلل اومنډه وهل دواړه يو عمل شو.نويوعمل بل باقي شو.چه په ميدان جنګ کښې ثابت پاتې کېدل.اوپه دوو عملونو باندې ترتب د دوو حصو کيږی .نومعلومه شوه.چه د فارس دوه حصې کيږی)نوکيږی کفايت دده(فارس) پشان کفايت د راجل، نو پورته به وی (فارس) په راجل باندې،په يوه حصې سره،

## غازی ته د اس د حصې برابرحصه ملاويدل

| (وَلَا يُسْهَمُ اِلَّا لِفَرَسٍ وَّاحِدٍ)() |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اونه به شي ورکولې (هغه غازی ته چه په جهاد کښې ئې دوه اسونه شريك وی) مګرحصه ديواس (نوتولې به ده ته دوه حصې ملاويږی.يوه دده خپله اويوه دده داس) دا د طرفينو مسلك دې.

**دلائلهما>** ① طرفينودپاره دليل دا دې.چه براء بن اوس بوتلی وو دوه اسونه (جهادته) نو حصه نه وه ورکړې ده ته رسول الله مګرديواس(نوټولې ئې ده ته دوه حصې ورکړې وې.يوه دده خپله اويوه ده د دوواسونو) ([2])

② اوبل (عقلی دليل دا دې.چه) جنګ نه کيږی مګرپه يواس باندې په يو وخت کښې، (يعنې په يووخت کښې يوکس غازی په دوو اسونوسورلی نشي کولې.بلکه په اوس به سورلی کوی) نونه دې سبب ظاهری (داستحقاق غنيمت چه د اسلامی سرحد نه تيريدل دی) مفضی جنګ کولوته په دواړو (اسونو) باندې، (بلکه دې که جنګ کوی په يواس کوی) نوحصه به مقررکولې شي ديواس دپاره،اوددې وجې (چه په د دواسونوباندې په يووخت کښې جنګ نشي کيدې،اودا چه نه دې سبب ظاهری مفضی قتال ته په دواړوباندې) حصه نشي مقررکولې د درې اسونودپاره، (بلکه ددريم اس د وجود اوعدم وجود څه اعتبار نشته.هم ددې علت د وجې که يوکس سره درې اسونه وی.نوهم دې په يو وخت په درې اسونوباندې قتال نشي کولې.نولکه څنګه چه د استحقاق غنيمت په باب کښې د دريم اس وجود اوعدم وجود برابردی.دغه شان د دويم اس وجود اوعدم وجود برابرشو)

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في فتح القدير(۵\۲۳۸) والخانية (۴\۲۱۲) والهندية (۲\۲۱۲) نقلاً عن القول الراجح (۱\۴۸۵)-

۱) من حديث قال الزيلعي رحمه الله قلت غريب بل جاء عنه عكسه (نصب الراية ۳\۴۳۵)_

**مسلک ابي يوسف** > فرمائي امام ابويوسف رحمه الله چه ورکولي به شي (غازي ته) حصه د دوو اسونو،

**دليله** > ددې وجه چه روايت شوې دې چه نبي ﷺ حصه ورکړې وه د دوو اسونو (يوغازي ته. يعني ده ته ئې پنځه حصې ورکړې وې. يوه د غازي خپله حصه اودوه حصې ديو اس اودوه حصې د بل اس لکه حضرت ابوعمره بشيربن عمربن محصن رضي الله عنه چه روايت کړې دې. چه رسول الله ﷺ ماته زما د دوو اسونو څلورحصې او زما يوه حصه راکړې وه. او دغه شان ماته پنځه حصې ملاؤ شوې وې) (١)

**الجواب عنه** > دا روايت محمول دې په انعام ورکولوباندې (يعني نبي ﷺ ابن محصن ته د دوو اسونوحصې داستحقاق په طورنه وې ورکړې. بلکه دانعام په طورئې ورکړې وې. نوپه هغې باندې استدلال صحيح نشو. اوبطورانعام ورکول دامام دپاره جائزدی) لکه څنګه چه ورکړې وې (نبي ﷺ) سلمه بن اکوع ته دوه حصې (په مال غنيمت کښې) حالانکه هغه راجل وو. (دا دوه حصې ئې د انعام په طورڅکه ورکړې وې. چه هغوئ به د فارس پشان منډه وهله)

**دعجمي اوعربي اسونوپه استحقاق غنيمت کښې برابري**

(وَالْبَرَاذِينُ وَالْعِتَاقُ سَوَاءٌ)

**د لغت حل:** ① **البراذين:** جمع د براذ عجمي اس ② **العتاق:** عربي اس

**ترجمه و تشريح** > عجمي اوخالص عربي اسونه برابر دی (په استحقاق دغنيمت کښې)

**دلائله** > ① څکه چه ويرول (ددشمن) منسوب دی جنس اسونوته په کتاب (قرآن پاك) کښې، قال الله تعالى فرمائيلي دی. (او تيارئ کوئ د کافرانودمقابلې دپاره څومره چه مو وس کيږي دقوت حاصولونه، اود تيارئ د اسونونه، چه ويروئ په هغې (قوت اواسونو) دشمنان دالله تعالى اودشمنان خپل،

**الاستدلال** > (په دې آيت کښې دالله تعالى د دشمن دمقابلې دپاره دجنګي اسبابو او وسائلو د تيارئ حکم کړې دې. اوپه دغه جنګي سازوسان کښې ئې اسونه ياد کړی دی. او مقصد ددې تيارئ نې دا خودلې دې. چه په دې باندې تاسوکافران ويروئ. نوپه آيت کښې د «خيل» ذکر دې، او) اسم د «خيل» منطبق کيږي (يعني ددې اطلاق کيږي) په عجمي اوعربي اسونو، باندې په يوڅل، (يعني دخيل اطلاق په ټولوکيږي)

② اود برابرئ بل دليل ئې دا دې. چه) عربي اسونه اګرچه (ددشمن په) رالاندې کولوکښې يا واپس راتلوکښې تکړه دی. نو عجمي اسونه (په تکليف باندې) صبرکولواواوپه راتاويدو کښې زيات تکړه دی. نوپه هريوقسم کښې (که عربي دی اوکه عجمي) فائده ده معتبره، نو دواړه (په استحقاق د مال غنيمت کښې) برابرشول.

**داوښ او قچر دپاره حصه نشته**

وَلَا يُسْهَمُ لِرَاحِلَةٍ وَلَا بَغْلٍ

**ترجمه و تشريح** > اونشته حصه دپاره د مضبوطې اوښ. او نه دپاره د قچر

**دليله** > په جهاد کښې چې کوم اوښ يا قچرد غازيانو دپاره استعمال شي نو د هغې دپاره څه حصه نشته لکه څنګه چې د اس دپاره شريعت حصه مقرر کړې ده څکه چې قرآن پاك کښې الله تعالى دا فرمائيلي

---

٢) من حديث أبي عمرة بشيربن عمروبن محصن اخرجه الدارقطني في سننه (٤/١٠٤) رقم ١٦)_

دی چې تاسو د اسونو په تیاری سره دشمن اویروئ په هغې کښې د اوښانو او دقچرو ذکر نشته.نوځکه به ورله حصه هم نه وی.

**دارالحرب ته راجل اوبیا فارس ګرځیدل اوددې په عکس**

(وَمَنْ دَخَلَ دَارَالْحَرْبِ فَارِسًا فَنَفَقَ فَرَسُهُ اسْتَحَقَّ سَهْمَ فَارِسٍ وَمَنْ دَخَلَ رَاجِلًا فَاشْتَرَى فَرَسًا اسْتَحَقَّ سَهْمَ رَاجِلٍ)

**ترجمه و تشریح>** اوڅوك چه داخل شودارالحرب ته په اس سور، (اوددخول نه پس) نوهلاك شو اس د ده، نو مستحق دې دا (فارس) د حصې د یو فارس (یعنی چه نورو داسونوخاوندانوته څه حصه ملاویږی.هغه به ده ته هم ملاویږی) اوڅوك چه داخل شو(دارالحرب ته) پیدل،نووانې اخستلو(په دارالحرب کښې) اس مستحق کیږی(په مال غنیمت کښې) دحصې د راجل (یعنی صرف یوه حصه به ورته ملاویږی)

**دلیله>** دلیل دا دې.چه تیریدل(داسلامی سرحدنه) نفس ددې (یعنی صرف دا تیریدل) جنګ دې.ځکه چه راځی په هغوئ (حربیانو) باندې ویره په دې (تیریدو د اسلامی سرحد نه ،یعنی د سرحد نه تیریدل اګرچه حقیقی قتال نه دې.لیکن سبب داو ذریعه د قتال ده.اوکله کله سبب هم قائم مقام د مسبب ګرځی.بادشاه د ښار جوړولو حکم اوکړی.ګلکاران ښار جوړ کړی.او بیا خلق دا وائی.چه بادشاه ښار جوړ کړلو حالانکه بادشاه په خپله نه وی جوړکړې.خوچونکه بادشاه د ښار جوړولو سبب وو.ځکه هغه ته مجازاً د ښار جوړولو نسبت کیږی.دغه شان په زیر بحث مسئله کښې تیریدل اګرچه په حقیقت کښې قتال نه دې.خو چونکه دا تیریدل ذریعه او سبب د قتال دې.ځکه ورته قتال ویلې شی.اوچه قتال شو.نو ترتب د احکامودجهاد به په تیریدو باندې کیږی)اوحالت پس د دې نه حالت د دوام دې.نو نشته اعتبار د هغې (حالت دوام اوممکن نه دې ترتب د احکامو په حالت د دواوم باندې ځکه چه د فارس دپاره دا ممکن نه ده. چه همیشه دپاره دې په اس سور وی.او توره وهی. بلکه ده سره انسانی ضروریات هم ترلی دی.کله به د اودس ماتی دپاره د اس نه راکوزیږی. کله به د خوراك څکاك دپاره کله به د بل څه دپاره،نو اوس که مونږ دده د عین قتال وخت معتبر کوو.نودې مستحق د فارس دحصې دې.خوپه کوم وخت کښې چه دې د اس نه راکوز شوې وی.نوکه هغه وخت معتبر کوو.نو بیا د فارس د حصې نه محرومه کیږی.ځکه مونږ وایو چه دارالحرب ته د داخلیدو نه پس دده حالت د دوام دې.ددې اعتبار نشی کولې)

**دچاچه په مال غنیمت کښې حصه نشته**

(وَلَا يُسْهَمُ لِمَمْلُوكٍ وَلَا امْرَأَةٍ وَلَا ذِمِّيٍّ وَلَا صَبِيٍّ وَلٰكِنْ يَرْضَخُ لَهُمْ عَلَى حَسَبِ مَا يَرَى الْإِمَامُ)

**حل اللغة>** ① **الرضخ**:لږه حصه

**ترجمه و تشریح>** اونه به شی ورکولې (په مال غنیمت کښې حصه) غلام ته،اونه ښځې ته اونه ماشوم ته،اونه لیونی ته،اونه ذمی ته،بلکه معمولی څیزبه ورکولې شی دوئ ته. (رضخ په دیر مال کښې معمولی غونډې ورکولوته وائی) په هغه مناسب چه ګنړی ئې امام (ورکول دهغې)

**دليله مطلقا** ﴿ دوجي دهغه حديث نه چه روايت شوي دي چه نبي ﷺ به نه وركوله حصه زنانواوماشومانواوغلامانوته، (په مال غنيمت كښي) بلكه وو چه وركول به ئي لږ غوندي حصه دوئ ته. (١)(نوددي حديث نه معلومه شوه.چه ددوئ په مال غنيمت كښي دعاموغازيانوپشان حصه نشته)

**دليل عدم سهم الذمي** ﴿ جهاد عبادت دي.اوذمي نه وي اهل دعبادت، (ځكه چه دعبادت دصحت دپاره ايمان شرط دي.اوپه دوئ كښي ايمان نه وي)

**دليل عدم سهم المراة والصبي** ﴿ اوښځه اوماشوم عاجز دى ددي (قتال) نه. اوددي وجي (چه دوئ دخپل ضعف دوجي دقتال اوجنګ طاقت نه لري) نه دي پيوست شوي په دوئ (دواړو) پوري فرضيت دجهاد ،(يعني په عاموحالاتوكښي په ښځه اوماشوم باندي جهاد نه دي فرض شوي)

**دليل عدم سهم الغلام** ﴿ غلام چه دي موقع نه وركوى ده ته مولى (دجهاد كولو) اودده (مولى دپاره جائزدى په عاموحالاتوكښي) منع كول دده (غلام د شركت نه په جهاد كښي البته دا چه دشمن حمله اوكړي.اوعام اعلان اوشي.نوبيا دمولى داجازت ضرورت نشته.ځكه چه په دغه وخت كښي دا فرض عين ګرځي. اومولى خپل غلام د فرض عين نه نشي منع كولي.نو په مال غنيمت كښي ددوئ حصه نشته)

**دليل الرضخ** ﴿ مګردومره ده چه رضخ لږ غوندي څيزبه وركولي شي دوئ ته دپاره د تيزولو (ددوئ) په جهاد باندي (چه په جهاد كښي په شوق سره شركت كوى)

**دخمس تقسيم**

| (وَأَمَّا الْخُمُسُ فَيُقْسَمُ عَلَى ثَلَاثَةِ أَسْهُمٍ: سَهْمٌ لِلْيَتَامَى وَسَهْمٌ لِلْمَسَاكِينِ وَسَهْمٌ لِابْنَاءِ السَّبِيلِ |
|---|

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوهرچه خمس دي. (يعني كله چه د مال غنيمت نه پنځمه حصه جدا كړى شي.اوباقي څلور حصي په غازيانوتقسيم شي.نوددغه خمس تقسيم بيا په دي طريقه دي) تقسيمولي به شي په دري حصو باندي،يوه حصه د يتيمانودپاره،اوبله حصه د مسكينانو دپاره،اودريمه حصه د مسافرو دپاره،

**دلائله** ﴿ ① دليل دا دي.چه څلوروواړه خلفاء راشدينو ﷺ (حضرت ابوبكر ،عمر ،عثمان اوعلي ﷺ) تقسيم كړي دي دا (خمس) په دري حصوباندي،په هغه طريقه چه مونږ بيان كړه. (اشاره ده دي قول ته «فيقسم على ثلاثة أسهم» تراخره پوري.دحضرت ابن عباس ﷺ نه روايت دي..چه خمس به د رسول الله ﷺ په زمانه كښي په پنځو حصو تقسيمولي شو.يوه حصه دالله دپاره(يعني دالله تعالى حصه به د مسلمانانودخيګړي په كارونوكښي خرج كولي شوه.لكه جمات جوړول،پل جوړول وغيره) اوبله حصه د رسول الله ﷺ دپاره،اوبله حصه د نبي ﷺ د خپلوانو دپاره،اوبله حصه د يتيمانودپاره،اوبله حصه دمسكينانو دپاره،اوبله حصه دابن السبيل دپاره.بيا تقسيم كول حضرت ابوبكر ،عمر،عثمان اوعلي ﷺ په دري حصو باندي،يوه حصه د يتيمانو دپاره، بله د مسكينانو دپاره،اودريمه د ابن السبيل دپاره، په خلفاء راشدينوپسي مونږ احناف اقتداء كوو.اوددوئ د اقتداء په صحت كښي څه خبره نشته) (٢)

---

١) من حديث ابن عباس ﷺ اخرجه مسلم في الجهاد والسير رقم ١٣٧)_

١) من حديث ابن عباس اخرجه ابويوسف عن ابي صالح عن ابن عباس (نصب الراية ٣\٤٤١)_

② فرمائیلي دي نبي ﷺ يَامَعْشَرَبَنِي هَاشِمٍ إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى كَرِهَ لَكُمْ غُسَالَةَ النَّاسِ وَأَوْسَاخَهُمْ وَعَوَّضَكُمْ مِنْهَا بِخُمُسِ الْخُمُسِ) [1] اې توليه د بنوهاشمو الله تعالى ناخوښه کړی دی ستاسودپاره مستعمل اوبه د خلقواوخیري د دویٔ (خلقویعنی دخلقودګناهونوخیري د کومو نه چه هغویٔ د زکاة اوصدقاتو ورکولوپه ذریعه ځان پاکوی.تاسودپاره ناخوښه کړی دی) اوپه بدله کښې ئې درکړې دي تاسوته (په مال غنیمت کښې) پنځمه حصه.

| |
|---|
| وَيَدْخُلُ فُقَرَاءُ ذَوِي الْقُرْبَى فِيهِمْ وَيُقَدَّمُونَ، |

**ترجمه** اوداخلیږی فقیران د خپلوانو(درسول الله ﷺ) په دویٔ (یعنی درې صنفو) کښې (یعنی ذوی القربی څه مستقل مصرف نه دې.بلکه که په ذوی القربی کښې څوك یتیم یا مسکین یا ابن السبیل وی.نوهغه به هم د خمس مصرف وی.

**الاشکال** دا کومه طریقه چې تاسو بیان کړه نو بیا د ذوی القربی د ذکرکولومقصد څه شو. ځکه چه یوکس فقیریا یتیم یا مسکین وی.نوکه هغه ذوی القربی نه وی.نوهم دخمس مصرف دې.

**الجواب** اګر چه دا صفات په غیرذوی القربی کښې وی.نوهغویٔ هم د خمس مصرف دی. لیکن کله چه په مصارف کښې ذوی القربی اوغیرذوی القربی دواړه قسم خلق جمع شی.نو بیا به مسئله دا وی. چې وړاندې کولې به شی (خپلوان د رسول الله ﷺ په باقی درې قسمونو باندې چه غیرذوی القربی وی)

| |
|---|
| وَلَا يُدْفَعُ إِلَى أَغْنِيَائِهِمْ شَيْءٌ) |

**ترجمه** اونه به شی ورکولې مالدارانوته په دویٔ (خپلوانود رسول الله ﷺ) کښې.

**تشریح** په سیدانو کښې که څوك مالداران وی نو هغوی ته به نشی ورکولې

**په خمس کښې د الله او د رسول ﷺ دحصې مطلب**

| |
|---|
| فَأَمَّا ذِكْرُ اللَّهِ تَعَالَى لِنَفْسِهِ فِي كِتَابِهِ مِنَ الْخُمُسِ فَإِنَّمَا هُوَ لِافْتِتَاحِ الْكَلَامِ تَبَرُّكًا بِاسْمِهِ، |

**حل اللغة** ① **تبرك**:برکت حاصلول.خیرحاصلول ② **افتتاح**:شروع کول

**ترجمه و تشریح** ذکر دالله تعالى د خپل ځان دپاره په کتاب خپل د خمس (چه خمس کښې د الله تعالى دپاره حصه ده.حالانکه الله تعالى د خلقو د مال دولت نه غنی او لاپرواه دې.خو بیا هم دالله تعالى د نوم ذکر چه په دې آیت کښې شوې دې.) نودا (ذکرد نوم دالله چه ﴿وَاعْلَمُوا أَنَّمَا غَنِمْتُمْ مِنْ شَيْءٍ فَأَنَّ لِلَّهِ خُمُسَهُ﴾ دپاره دشروع د کلام دې.چه تبرك حاصل شی په نوم دالله تعالى (یعنی په آیت کښې دالله تعالى د نوم ذکر صرف دتبرك دپاره راغلې دې.دا نه چه الله تعالى د غنیمت په خمس کښې والعیاذ بالله مستقل مصرف دی)

| |
|---|
| وَسَهْمُ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ سَقَطَ بِمَوْتِهِ كَمَا سَقَطَ الصَّفِيُّ |

**ترجمه** اوحصه د نبي ﷺ ساقط شوې ده په وفات د دوی (نبي ﷺ) [2] لکه چه ساقط شوې ده حصه د

---

[1] من حدیث مطعم بن جبیر ﷺ اخرجه ابوداود في الخراج والإمارة والفئ باب ۲۰ رقم ۲۹۸۰ والنسائي في الفئ باب ۱ وابن ماجه في الجهاد باب ٤٦ رقم ۲۸۸۱)_

[2] **مسلك الشافعي**:- فرمائی امام شافعی ﷫ چه منتقل کیږی به حصه د پیغمبر ﷺ خلیفه ته (نو د

رشته داري: د نبي عليه السلام.

**دليله>** څکه چه نبي ﷺ مستحق وو ددې (صفي) دخپلې پيغمبرئ په وجه،اونشته پيغمبر ﷺ پس دده (نبي ﷺ) نه (بل څوك) او صفي هغه څيز وو.چه منتخب کولو به نبي ﷺ دخپل ځان دپاره د مال غنيمت نه لکه زغره ،توره او وينځه (نولکه څنګه چه د نبي ﷺ په وفات باندې صفي ختم شو.نودغه شان په مال غنيمت کښې د نبي ﷺ حصه هم ختمه شوه)

(وَسَهْمُ ذَوِي الْقُرْبَى كَانُوا يَسْتَحِقُّونَهُ فِي زَمَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنُّصْرَةِ

**ترجمه و تشريح>** اوحصه دذوي القربى (چه دغه ذوي القربى ئې) مستحق شوي وو (په خمس کښې) په زمانه د نبي ﷺ کښې په مدد کولو سره (چه دنبي ﷺ سره ئې مدد کړې وو)

**دليله>** د نبي کريم په زمانه کښې ذوي القربى ته څکه په خمس کښې حصه ملاويده چې هغوي د نبي کريم ﷺ سره مدد کولو او د نبي کريم ﷺ د وفات نه پس د هغوي د مدد سلسله ختمه شوه نو حصه به ئې هم ختمه وي.

**دخمس نه د ذوالقربى فقيرته د ورکولوحکم**

وَبَعْدَهُ بِالْفَقْرِ)

**ترجمه و تشريح>**.اوپس ددې (زماني د نبي ﷺ نه مستحق ګرځي ذوالقربى) په وجه د فقيرئ (يعني دنبي ﷺ د زماني نه پس د ذوالقربى په حيثيت په خمس کښې ددوئ حصه نشته.البته چه کوم کسان په ذوالقربى کښې فقيران وي.نوهغوئ ته ورکولې شي. او مالدارانو ته نشي ورکولې)

**دليله>** د فقرپه وجه د ذوالقربى داستحقاق خمس عدم صحت دا) ده.چه په دې خمس کښې معنى د صدقه ده.په نظرکولوسره مصرف ته، (يعني دخمس مصرف چونکه يتيمان،فقيران او ابن السبيل دي.اوهم دا کسان د زکاة په مصارفوکښې هم دي.نولکه څنګه چه زکاة سيدانو ته نشي ورکولې. نو دغه شان د خمس مصارف هم دغه د زکاة مصارف دي. پکارده چه دوئ ته هم خمس ورنکړې شي) نوحرام به وي (خمس په سيدانو باندې) لکه څنګه چه حرام دي عماله، (يعني که سيدسرې د صدقاتوپه راغونډولو باندې مقرر شي.اودې دخلقونه زکاة راغونډوي.نودې بيا هم د زکاة راغونډولود عمل په وجه د زکاة مستحق نه دې.دغه شان دلته هم دخمس مستحق نه دې)

**دامام داجازت نه بغيرد دارالحرب نه څه اخستل**

(وَإِذَا دَخَلَ الْوَاحِدُ أَوِ الِاثْنَانِ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ مُغِيرَيْنِ بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ فَأَخَذُوا شَيْئًا لَمْ يُخَمَّسْ)

**حل اللغة>** ① الاختلاس:تختول

**ترجمه و تشريح>** اوکله چه داخل شي يوکس يا دوه کسان دارالحرب ته لوټ کونکي(چه هلته دخلقومالونه لوټ کړي) بغيرداجازت دامام نه،اودوئ- واخستل څه څيز ، (دخلقونه په غلا يا په زبردستئ) نوخمس به نه ورکوي .

**دليله>** (څکه چه خمس په مال غنيمت کښې وي.اودا مال غنيمت نه دې) څکه چه (مال) غنيمت هغه وي.چه اخستې شوي وي په زورسره،اويا په غلبه سره(چه غازيان د حربيانو په مال باندې غلبه اوکړي) نه تختولو او غلا،اوخمس وظيفه ددې (مال غنيمت ده)

---

نبي ﷺ د وفات نه پس به په خمس کښې د خليفه وخت حصه وي)

په دارالحرب کښې د طاقتورې ألې په لوټ کښې دخمس حکم

(وان دَخَلَ جَمَاعَةٌ لَهُم مَنَعَةٌ فَأَخَذُوا شَيْئًا خُمِّسَ وَإِنْ لَمْ يَأذَنْ لَهُمُ الإِمَامُ)

**تشريح>** اوکه داخله شوه يوه ډله . (اوپه دارالحرب کښې ئې دحربيانوڅه څيزلوټ کړلو)او وودهغوئ دپاره قوت (اوقوت چه په څومره کسانوحاصليږي.نوپه محيط کتاب کښې دامام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه په څومره کسانوقوت حاصليږي.هغه لس کسان دی) په دې کښې خمس دې.اګرچه اجازت نه وی ورکړې دوئ ته امام، (او خمس په کښې واجب دې)

**دلائله>** ① ځکه دا (مال) اخستې شوې دې په زور اوپه غلبې سره، (اوکوم څيزچه په دارالحرب کښې د حربی کافرونه په غلبې اوزور سره واخستې شی.نوهغه غنيمت وی) نودا غنيمت شو. (اوچه غنيمت شو.نوپه غنيمت کښې خمس وی.په دې کښې به هم خمس وی)

②اوبله دا چه واجب دې په امام باندې مدد کول دوئ سره،ځکه که پريږدی دوئ (اودوئ سره نه کوی) نوکمزوری به شی مسلمانان (نوهرکله په امام باندې ددوئ سره مدد کول ضروری شو.نودا داسې شوه.لکه چه دامام په اجازت سره دوئ دغه لوټ کړې وی.اووراندې تيرشوی دی.چه کوم لوټ دامام په اجازت سره وی.په هغې کښې خمس وی.نوپه دې کښې به هم خمس وی)

(وَإِذَا دَخَلَ الْمُسْلِمُ دَارَ الْحَرْبِ تَاجِرًا فَلَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَتَعَرَّضَ بِشَيْءٍ مِنْ أَمْوَالِهِمْ وَلَا مِنْ دِمَائِهِمْ

**حل اللغة>** ① **يتعرض**:وراندې شی،

**ترجمه و تشريح>** اوکله چه داخل شی مسلمان په داسې حال کښې چه وی دې سوداګرنوحلال نه دی ده (مسلمان مستامن) دپاره چه تعرض اوکړی څه څيز ته د مالونودهغوی نه اونه د نفسونودهغوی نه، (يعنی دده دپاره دا حرام دی.چه دهغوی په مال په ناجائزه طريقه قبضه اوکړی.يا په هغوی کښې چاته جانی نقصان اورسوی

**دليله>** ځکه چه ده (مسلمان مستامن) ذمه واری ورکړې ده هغوی (د دارالحرب کافرانو) ته چه څه نقصان به نه رسوی هغوی ته، (ځکه چه هغوی چه ده ته خپل ملك ته د داخليدواجازت ورکړې دې.نوپه دې شرط چه دې به دهغوی مالونواونفسونوته څه نقصان نه رسوی.لکه په موجوده وخت کښې چه د يوملك نه بل ملك ته خی.نوويزه اوپاسپورټ ورکوی) د وجې د امان طلبولونه(يعنی هغوی ورته په دې شرط باندې خپل ملك په امن سره د اوسيدو اجازت ورکړې دې.چه دې به دهغوی مالونواونفسونوته تعرض نه کوی.اومسلمان به د معاهدې پابندی کوی) نو تعرض کول (مالونو اونفسونود کافرانوته) پس ددې(ذمه وارئ ورکولونه) کيږی دهوکه (دهغوی سره) اودهوکه (په اسلام کښې) حرامه ده. (لکه دحضرت عمر رضي الله عنه په روايت کښې چه راغلی دی.چه رسول الله ﷺ فرمائيلی دی.ددهوکه بازدپاره به دقيامت په ورځ يو بيرغ اولګلولې شی.اودا به وئيلی شی.چه دا د فلانی دهوکه ده)

(فَإِنْ غَدَرَ بِهِمْ) فَأَخَذَ شَيْئًا (وَخَرَجَ بِهِ) (مَلَكَهُ مِلْكًا مَحْظُورًا

**ترجمه و تشريح>** اوکه ده دهوکه اوکړه هغوی (کافرانو) سره، (مصنف فرمائی) زما مقصد سوداګر دې. (يعنی چه مسلمان سوداګرچه د مستامن په حيثيت دکافرانوملك ته داخل شوې وو) اووائې اخستل څه څيز(په ناجائزه طريقه د هغوی نه) او راوې ويستل هغه (د دارالحرب نه) نومالك شود هغې په ملك حرام سره (يعنی دا سوداګر ددغه څيزمالك شو.خودا ملکيت ئې په حرامه طريقه راغلې دې.اوملکيت ئې پرې راخی) د وجې د راتلو د غلبې نه په مال مباح باندې (ځکه چه دکافرانومال مباح دې.نودې دهغې مالك جوړيږی)

فَيُؤْمَرُ بِالتَّصَدُّقِ بِهِ)

**ترجمه** البته دومره ده چه دغه (مال) حاصل شوې دې په سبب د دهوکې سره، (

**دلیله** ځکه چه ده خو ورسره دا معاهده کړې وه. چه زه به ستاسو به ملك کښې ستاسو مال او جان ته تعرض نه کوم) نوپيدا کړله دې دهوکې پليتي په دغه (مال ماخوذه) کښې (او قاعده دا ده. چه سړې په يوه ناجائزه طريقه د يو څيز مالك شى. نو هغه څيز دده دپاره حرام وى. او په ده باندې دهغې صدقه كول واجب وى) نو حکم به کولې شى (دې سوداګرته) د صدقه کولو دهغې (څيزکوم چه ئې په ناجائزه طريقه د دارالحرب نه راوړې دې) ځکه چه دا مسئله ده چې کوم مال په ناجائزه طريقه حاصل شى او اصل مالك ته د هغې واپس كول ګران وى نو دثواب د نيت نه بغير به هغه صدقه كوى.

**دحربي دپاره په دارالاسلام کښې دامان غوښتلو موده**

وَإِذَا دَخَلَ الْحَرْبِيُّ إِلَيْنَا مُسْتَأْمَنًا لَمْ يُمَكَّنْ لَهُ أَنْ يُقِيمَ فِي دَارِنَا سَنَةً وَيَقُولُ لَهُ الْإِمَامُ: إِنْ أَقَمْتَ تَمَامَ السَّنَةِ وَضَعْتُ عَلَيْكَ الْجِزْيَةَ)

**ترجمه و تشريح** (دا) فصل (په بيان د مستامن حربي داحکامو کښې دې) ابو الحسن قدوري رحمه الله فرمائى. او كله چه راشي حربي زمونږ ملك ته په داسې حال كښې چه ده امن غوښتې وى. نو قدرت به نشي وركولې (مستامن) ته چه ډيره شى په ملك زمونږ كښې (چه دارالاسلام دې) يو كال (بلكه ديو كال نه به كمه موده تيروى) او وائى به امام ده (حربى مستامن) ته كه ته ډيره شوې پوره يو كال (په دارالاسلام كښې) نو مقرر كوم به زه په تا باندې جزيه

**دلیله** اصل (په دې باب کښې) دا دې. چه قدرت به نشى وركولې چه ستوګنه اختيار كړى په ملك زمونږ كښې مګر په حالت د غلامۍ كښې يا د جزيه كښې (چه په ده باندې به جزيه مقرر وى. اودا ده ته په دارالاسلام كښې ديو كال ستوګنه اجازت چه نشى وركولې) ځكه چه دې (حربى مستامن) ګرځى جاسوس دهغوى (حربيانو) دپاره (يعنى زمونږ د ملك د رازونو به خپلو حربيانو ته خبر وركوى) او مدد وركونكې به مونږ باندې (يعنى د مسلمانانو خلاف به خپلو حربيانو سره مدد كوى. مثلاً چه فلاني خانې باندې حمله اوكړئ. اودا كارداسې اوكړئ. وغيره) نو رسيږى ضرر (ديو كال په اقامت سره) مسلمانانو ته

فَإِنْ أَقَامَ سَنَةً أُخِذَتْ مِنْهُ الْجِزْيَةُ وَصَارَ ذِمِّيًّا)

**ترجمه و تشريح** نو كه پاتې شو (په دارالاسلام كښې) يو كال نو جزيه به ترې اخستلې شى او دې ذمى شو.

**دلیله** ځكه چه هر كله ده استوګنه اوكړله يو كال (په دارالاسلام كښې) پس د وينا د امام نه ده ته (كه تا يو كال تير كړلو. نو په تا به جزيه مقرر كوم) اوګرځيدلو دې لازمونكى (په خپل ځان باندې) د جزيه. نو ګرځى ذمى (ځكه چه ذمى هم هغه چاته وائى. چه مسلمان نه وى. خو په دارالاسلام كښې اوسيږى. او اسلامي حكومت ته جزيه وركوى)

وَلَا يُتْرَكُ أَنْ يَرْجِعَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ)

**ترجمه** نه به شى پريخودې چه واپس شى دارالحرب ته

**دلیله** ځكه چه معاهده د ذميت نشى ماتيدې ځنګه به ماته شى حالانكه په دې كښې ختميدل د جزيه دى.

وَإِنْ عَادَ إِلَى دَارِ الْحَرْبِ وَيَتْرُكَ وَدِيعَةً عِنْدَ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ أَوْ دَيْنًا فِي ذِمَّتِهِمْ فَقَدْ صَارَ دَمُهُ مُبَاحًا بِالْعَوْدِ

**ترجمه و تشریح** اوکه چرته حربی(کافر) داخل شو ملك زمونږ ته (چه دارالاسلام دی) په امان سره اوبیا واپس شو دارالحرب ته اوپرې ئې خودل امانت د یومسلمان سره اویا ذمی سره اویا قرض په ذمه ددوی (یعنی ذمی یا مسلمان باندې ئې قرض پاتې شی) نواوګرځیده وینه دده (حربی) مباح په واپس کیدو سره (خپل دار الحرب ته.نوکه مسلمان ددې حربی قاتل شو.په هغه باندې څه نشته)

**دلیله** څکه چه دده (حربی) باطل کړلو امان خپل (په واپس کیدو سره دارالحرب ته)

(وَمَا فِي دَارِ الْإِسْلَامِ مِنْ مَالِهِ عَلَى خَطَرٍ، فَإِنْ أُسِرَ أَوْ ظُهِرَ عَلَى الدَّارِ فَقُتِلَ سَقَطَتْ دُيُونُهُ وَصَارَتِ الْوَدِيعَةُ فَيْئًا)

**ترجمه** اوهغه چه وی په دارالاسلام کښې دمال دده نه (دامانت یا د قرض په صورت کښې) په خطره کښې دې.نوکه قیدی کړې شو دې (حربی واپس تلونکې خپل وطن ته) اویا غلبه اوکړې شوه په دارالحرب باندې.اودې قتل کړې شو.نوساقط شول قرضونه دده (حربی دائن دهغه کسانونه په چا باندې چه ئې قرضونه وو) اواوګرځیدلو امانت مال فئ (یعنی غنیمت)

## چه مسلمانان ئې بغیرجنګه حاصل کړی دهغې حکم

(وَمَا أُوجِفَ عَلَيْهِ الْمُسْلِمُونَ عَلَيْهِ مِنْ أَمْوَالِ أَهْلِ الْحَرْبِ بِغَيْرِ قِتَالٍ يُصْرَفُ فِي مَصَالِحِ الْمُسْلِمِينَ كَمَا يُصْرَفُ الْخَرَاجُ)

**ترجمه و تشریح** اوهغه چه حاصل کړی مسلمان په رعب اوویرولوسره هغه د مالونو د حربیانو نه بغیرد جنګ نه (یعنی مسلمانان بغیردجنګ نه صرف په رعب اوویرولوسره د حربیانونه دهغوی مالونه واخلی)نوخرچ کولې به شی مصالحود مسلمانانوکښې(لکه پلونه جوړول،لارې جوړول شفاخانې جوړول وغیره شول) لکه څنګه چه خرج کولې شی مال خراج (په مصالحود مسلمانانوباندې)

**دلیله** دلیل دا دې.چه روایت شوې دې چه نبی ﷺ اخستې وه جزیه اودغه شان حضرت عمر رضی الله عنه اومعاذ رضی الله عنه اوکیخودلې ئې وه په بیت المال کښې اوخمس ئې نه وو اخستې دهغې نه اوبل عقلی دلیل دادې.چه دا (ماأوجف علیه المسلمون)داسې مال دې چه اخستې شوې دې په طاقت د مسلمانانوسره بغیرد جنګ نه (بلکه د کافرانو نه په رعب سره اخستې شوې دې) ([1])

(أَرْضُ الْعَرَبِ كُلُّهَا أَرْضُ عُشْرٍ، وَهِيَ مَا بَيْنَ الْعُذَيْبِ إِلَى أَقْصَى حَجَرٍ بِالْيَمَنِ وَبِمَهْرَةَ إِلَى حَدِّ مَشَارِقِ الشَّامِ وَالسَّوَادُ كُلُّهَا أَرْضُ خَرَاجٍ، وَهِيَ مَا بَيْنَ الْعُذَيْبِ إِلَى عَقَبَةِ حُلْوَانَ، مِنَ الْعَلْثِ إِلَى عَبَّادَانَ)

**ترجمه و تشریح** دعربوټوله زمکه عشری ده.اودا زمکه د عذیب نه (چه د تمیم قبیله اوبه دی) واخله ترآخری حصې دمهرحجر (یعنی غټ کانړی) پورې په یمن کښې کښې ترملك شام پورې،اود سواد (دکلو د عراق) زمکه خراجی ده.اودا (سواد عراق) د عذیب مقام نه واخله ترعقبه حلوان پورې ده. (د پلنوالی په لحاظ سره) اود علث مقام نه ترعبادان مقام پورې (په اوږدوالی).

**دلیله** څکه چه نبی ﷺ اوخلفاء راشدینو رضی الله عنهم نه دی اخستې خراج د زمکو دعربو نه.([2])

---

١) قال الزيلعي رحمه الله اخرجه أبوداود في كتاب الخراج عن ابن لعدى بن عدى الكندى(نصب الراية،٣\٤٥٩)_

١) قال الزيلعي رحمه الله كذا روى أبوعبيدالقاسم بن سلام في كتاب الأموال (١\٥٧) نصب ٣\٤٦١)_

### دعراق د کلو د زمکو حکم

(وَأَرْضُ السَّوَادِ مَمْلُوكَةٌ لِأَهْلِهَا يَجُوزُ بَيْعُهُمْ لَهَا وَتَصَرُّفُهُمْ فِيهَا)

**ترجمه و تشریح** فرماني (ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوزمکه د عراق د کلو مملوکه ده دهغې د اوسیدونکو جائز دی دهغوی (اهل عراق) دپاره خرڅول دهغې اوتصرف کول دهغوی په هغې (زمکو) کښې

**دلیله** ځکه چه امام کله فتح کړی یوه زمکه په قوت اوغلبه سره نوجائزدی ده (امام) دپاره چه باقي پاتې کړی (ملکیت اوقبضه) د مالکانودهغې (زمکې) په هغې (زمکه) اومقرر کړی په هغې (زمکو) اوپه سرونودهغوی خراج (یعنی په زمکو باندې خراج او په نفسونونې جزیه مقررکړی) نو(پس د مقررکولود خراج نه په زمکودهغوی) باقي پاتې کیږي زمکې مملوکې د مالکانودهغې (یعنی چه هغوی دخپلو زمکو خراج ورکوی.نودغه زمکې به هم دهغوی په ملکیت کښې باقي وی)

### دعشري زمکې پېژندګلو

(وَكُلُّ أَرْضٍ أَسْلَمَ أَهْلُهَا عَلَيْهَا أَوْ فُتِحَتْ عَنْوَةً وَقُسِّمَتْ بَيْنَ الْغَانِمِينَ فَهِيَ أَرْضُ عُشْرٍ)

**ترجمه و تشریح** فرماني (ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوهره یوه زمکه چه چه اسلام قبول کړی اوسیدونکې دهغې اویا فتح شي په زور سره اوتقسیم شي په مینځ د غازیانوکښې نوهغه زمکه عشری ده.

**دلیله** ځکه چه حاجت (پیښ شوې دې) په اول کښې مقررکولود عشرته په مسلمان باندې اوعشر(داسې څیزدې چه) زیات لائق دې د مسلمان پورې ځکه چه په دې (عشر) کښې معنی د عبادت ده. (یعنی د مسلمان نه چه دهغه د زمکې عشر اخستې شي.نودا صرف ټیکس نه دې.لکه څنګه چه جزیه ده.بلکه) په دې (عشر) کښې معنی د عبادت ده (یعنی مسلمان په عشرورکولوکښې خپل رب ته د خپلې بندګۍ اوتابعدارۍ خودنه کوی)

### په زورسره د فتح شوې زمکې حکم

(وَكُلُّ أَرْضٍ فُتِحَتْ عَنْوَةً فَأُقِرَّ أَهْلُهَا عَلَيْهَا فَهِيَ أَرْضُ خَرَاجٍ)

**ترجمه و تشریح** اوهره یوه زمکه چه فتح شي په طاقت سره (چه مسلمان په زورباندې په هغې قبضه اوکړی) اوباقي پاتې کړی (امام) مالکان دهغې (زمکې) په هغې باندې نوهغه (زمکه) خراجي ده.

**دلیله** ځکه چه حاجت پیښ شوې دې داول نه مقررکولوته په کافرباندې (یعنی چونکه دغه زمکه داول نه خراجي ګرځیدلې ده.نوکه روسته د کافر نه دمسلمان قبضې اوملکیت ته لاړه شي.هم به خراجي وی)اوخراج زیات لائق دې دده (کافر) پورې.

**استثناء مکة** مکه خاص کړې شوې ده ددې (قاعدې) نه ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فتح کړې وه دا (مکه) په زور سره اوپریخودې نې وه خپلو مالکانوته اونه نې وو مقرر کړې خراج ([1])په هغوی باندې نوددې قاعدې مطابق بیا خوپکاردا ده.چه د مکې زمکه هم خراجي وه.خوداسې نه ده.ځکه چه ددې قاعدې نه هغه مستثنی ده)

---

[1]) قال الزيلعي رحمه الله فيه احاديث إستدل بها العلماء على ان مكة فتحت عنوة ثم روى رواية أبي هريرة رضي الله عنه وعزاه إلى مسلم (نصب الراية،٣\٦٦٣)_

## غیرآباده زمکه آبادول

وَمَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَوَاتًا فَهِيَ عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ مُعْتَبَرَةٌ بِحَيِّزِهَا،(١) فَإِنْ كَانَتْ مِنْ حَيِّزِ أَرْضِ الْخَرَاجِ فَهِيَ خَرَاجِيَّةٌ)، وَإِنْ كَانَتْ مِنْ حَيِّزِ أَرْضِ الْعُشْرِ فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ

**حل اللغة** ① حيز: نزدې، قريبه

**ترجمه و تشریح** اوچا چه ژوندي کړه (يعني آباده ئې کړه) زمکه مړه (يعني شاړه چه دچا ملکيت نه وي. اونه په دغه حالت کښې څه فائده اخستې شي، اوده په کښې څه فصل اوکرل.اودکرکروندې قابله ئې کړه) نوهغه په نيزدامام ابويوسف رحمه الله قياس کولې شي.په هغه زمکه چه نزدې وی دې (خراجی زمکې سره) نوکه وی نزدې دزمکۀ خراجی سره معنی ددې (بحيزها) چه نزدې وی دې.نوهغه به خراجی وي.اوکه وی نزدې د عشری زمکۀ سره،نوهغه به عشری وی.

**تعريف ارض الموات** په پښتوکښې ارض موات شاړه زمکې ته وائی.دې ته په عربئ کښې «ارض خالصه»هم وائی. ①دظاهرروايت مطابق ارض موات هغه زمکې ته وائی.چه هغه دچا ملکيت نه وی. اونه دچا مخصوص حق وی.اوقابل د منفعت هم نه وی.

②دامام طحاوی رحمه الله په نيزارض موات هغه زمکې ته وائی.چه آبادئ ته نزدې نه وی

③ دامام ابويوسف رحمه الله په نيزارض موات هغې زمکې ته وائی.چه هغه د آبادئ نه دومره لرې وی.چه په اوچت آواز سره هم هغې ته آواز نه رسی.په ظاهرروايت کښې چه امام طحاوی اوامام ابويوسف رحمه الله کوم شرطونه کيخودې دی.هغه شرط نه دی.دظاهرروايت مطابق کومه زمکه چه دسمندراو درياب په وچيدو باندې خالی شی.هغه هم د ارض موات په حکم کښې ده.قطع نظرددې نه چه دغه زمکه آبادئ سره نزدې ده اوکه لرې.دظاهرروايت په بناء ځنګل هم د ارض موات په حکم کښې راځی.صاحب د بدائع الصنائع فرمائيلی دی.چه صحيح قول ظاهرالروايت دې.

**اقسام ارض الموات** د رواياتواواحاديثو په رڼا کښې شاړه زمکه په درې قسمه ده. ①چه هميشه دپاره دکرکروندې قابله نه وی .

②شاړه زمکه، يعنی هغه زمکه چه قابل د کرکروندې وی.خودځه وجې نه په کښې خلق کرونده نه کوی.لکه داسې زمکه چه آبادې ترې ختم شوې وی.اودغه شان شاړه پرته وی.څوك ئې آبادونکې نه وی.يا داسې زمکه چه دهغې آبادولوته د ډيرمحنت او خرچې ضرورت وی.ځکه ئې څوك آبادولوته غاړه نګدی.لکه زمونږ په سرحد کښې د کرك ضلع زمکه شوه.

③ خالصه زمکه په مفتوحه علاقوکښې په هغه ټولوزمکوباندې د خالصه اطلاق کيږی.کوم چه داسلامی حکومت دپاره خاص شوې وی.

**اقسام الارض الخالص** داسې زمکې په شپږ قسمه دی. ① دکومې زمکې مالك چه په جنګ کښې قتل شوې وی

② دکومو زمکو مالکان چه تختيدلی وی.

③ کومې زمکې چه د بادشاه د اخراجاتود پوره کولودپاره خاص شوی وی

④ هغه زمکې چه د شاهی خاندان اوافسران جاګيروی

---

(١) القول الراجح هوهذا قول أبي يوسف رحمه الله كذا في الدرالمنتقى (١\٦٧٤) وفتح القدير(٥\٢٨١) وردالمحتار(٣\٢٨٤) والهندية (٢\٢٣٧) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٩١)–

⑤ هغه زمکه چه په هغې کښې جهیلونه اوبندونه وی.نوهغه هم په خالصه زمکه کښې راخي.
⑥هغه زمکې چه دیوځوکسانوپه قبضه کښې وی.اودهغوی پرې خپل عیش عشرت کوی.اود اسلامی حکومت د غلبة نه پس دهغې څوك مالك یا آبادونکې نه وی.نودا هم د خالصه زمکه په زمره کښې راخي.

| (وَالْبَصْرَةُ عِنْدَنَا عُشْرِيَّةٌ بِإِجْمَاعِ الصَّحَابَةِ |
|---|

**حل اللغة**> ① **فناء الدار**:د کور میدان، ② **العامر**:آبادی

**ترجمه و تشریح**> اوبصره په نیزدده(ابویوسف) توله عشری ده. په اجماع د صحابوﷺ.
**دلیله**> ځکه چه نزدې وی یو څیز ته،نوورکولې شی هغې ته حکم دهغې (څیزنوچونکه د بصره سره عشری زمکې نزدې دی.بصره به هم عشری وی) لکه څنګه چه دکورمخې ته میدان ته هم دهغې(کور) حکم ورکولې شی. (اګرچه میدان د کوردخاوندپه ملکیت کښې داخل نه وی) تردې چه جائز ده دمالك دهغې(کور) دپاره فائده اخستل دهغې (فناء) نه،اودغه شان جائزنه دی. اخستل(دخراج) دهغه زمکې نه چه نزدې وی آبادئ ته (ځکه چه هغه هم د آبادئ په حکم کښې ده.اوکومه زمکه چه په آبادئ کښې ګیره وی.په هغې باندې عشریا خراج نه وی)

**دعشری زمکې اطلاق په کوموزمکو کیږی؟**

| (وَقَالَ مُحَمَّدٌ: إِنْ أَحْيَاهَا بِبِئْرٍ حَفَرَهَا أَوْ بِعَيْنٍ اسْتَخْرَجَهَا أَوْ مَاءِ دِجْلَةَ أَوِ الْفُرَاتِ أَوِ الْأَنْهَارِ الْعِظَامِ الَّتِي لَا يَمْلِكُهَا أَحَدٌ فَهِيَ عُشْرِيَّةٌ) |
|---|

**د لغت حل**: ① **بئر**:کوهی ② **حفر**:کنده، ③ **العظام**:جمع د عظیم،لوئي

**ترجمه و تشریح**> اوفرمائیلی دی.امام محمدﷺ (په جامع صغیرکښې) که ژوندنې کړه دا (شاړه زمکه) په (اوبود) کوهی (سره) چه کنستې ئې وی (په دغه شاړه زمکه یا دې ته نزدې زمکه کښې یعنی د دغه کوهی نه ورته اوبه ورکوی)اویا په چینې (داوبوسره) چه راویستې ئې وی (دغه چینه په کنستلوسره) اویا په اوبو د دجلة یا دریائې فرات (چه دهغې نه ورته لختې یا ورکوتې نهرراوباسی)اویا (ئې سیراب کړی) په هغه لوئې نهرونوباندې چه مالك ئې نه وی څوك،نودغه زمکې عشری دی. (په دې کښې به عشر وی)

| (وَإِنْ أَحْيَاهَا بِمَاءِ الْأَنْهَارِ الَّتِي احْتَفَرَهَا الْأَعَاجِمُ) مِثْلَ نَهْرِ الْمَلِكِ وَنَهْرِ يَزْدَجِرْدَ (فَهِيَ خَرَاجِيَّةٌ) |
|---|

**ترجمه و تشریح**> اوکه ژوندنې کړه (یعنی آبادئ ئې کړه) دا (شاړه زمکه) په اوبود نهرونوهغه چه کنستې وی عجمیانولکه نهرد بادشاه یا نهرد یزدجرنودا (قسم زمکې) خراجی دی.دهغه وجې چه مونږ ذکرکړه.چه اعتبارپه (هغه) اوبو لره وی(په کومو چه دغه زمکه خروب شوې وی.که هغه اوبه د عشری زمکې وی.نودا زمکه به عشری وی.اوکه د خراجی زمکې وی.نودا زمکه به خراجی وی.اودا اوبه د عشری اوخراجی دپاره مدارګرځوو)
**دلیله**> ځکه چه دا (اوبه) سبب دې دپاره د لونیدو(د فصلونو چه کوم فصل ته اوبه ورنکړې شی. نو هغه نه وده نه کوی)

**دخراج مقررکولو معیار**

| (وَالْخَرَاجُ الَّذِي وَضَعَهُ عُمَرُ عَلَى أَهْلِ السَّوَادِ مِنْ كُلِّ جَرِيبٍ يَبْلُغُهُ الْمَاءُ وَيصلح للزرع قَفِيزٌ هَاشِمِيٌّ وَهُوَ |
|---|
| الصَّاعُ وَدِرْهَمٌ، وَمِنْ جَرِيبِ الرَّطْبَةِ خَمْسَةُ دَرَاهِمَ وَمِنْ جَرِيبِ الْكَرْمِ الْمُتَّصِلِ وَالنَّخِيلِ الْمُتَّصِلِ عَشَرَةُ |

دَرَاهِمَ)

**حل اللغة** ① **الجريب:** هغه زمکه چه اوږدوالې ئې د کسری بادشاه د گز په حساب سره شپیته گزه وو .اود کسری بادشاه گز اووه موټی وو.حالانکه گزونه شپږ موټی وی② **الرطبة:** ددې اطلاق په ترا، خربوزه،بادرنګ باټینګړوغیره باندې کیږی ③ **الکرم:**انګور ④ النخيل:قجورې

**ترجمه و تشریح** اوخراج هغه چه مقرر کړې وو حضرت عمر رضي الله عنه نووو (په عراقیانو باندې) په هریوجریب (یعنی هغه زمکه چه اوږدوالې ئې د کسری بادشاه د گز په حساب سره شپیته گزه وو .اود کسری بادشاه گز اووه موټی وو.حالانکه گزونه شپږ موټی وو) باندې چه رسیدلې به ورته اوبه اوصلاحیت لری د پیداوار(نودهغې په پیداوار کښې) هاشمی قفیز وو.اوهغه (هاشمی قفیز) یوصاع اویودرهم وو.اوپه جریب د رطبه کښې(رطبه د راء په فتح سره جمع د رطاب ده.ددې اطلاق په ترا، خربوزه،بادرنګ باټینګړوغیره باندې کیږی) پنځمه درهمه دی.اوپه جریب د انګوروباندې چه پیوست وی (یعنی چه د یویل دپاسه وی.اوزمکه پرې ټوله ډکه وی.خالی ځائې په کښې نه وی) اوقجورې پیوست باندې لس درهمه دی.

**دليله** دا (مقدار) نقل شوې دې د حضرت عمر رضي الله عنه نه ځکه چه دوی (حضرت عمر رضي الله عنه) لیږلې وو حضرت عثمان بن حنیف رضي الله عنه (د عراقی زمکو دپیمائش دپاره) تردې چه هغه پیمائش اوکړلو د عراقی زمکو،اوګرځولې ئې وو حضرت حذیفه رضي الله عنه نګران په ده (عثمان بن حنیف رضي الله عنه) باندې (هرکله چه پیمائش کړل نو) اورسیده (دغه عراقی زمکه) درې کروړه او شپیته لکهه جریبو ته اومقررئې کړلو (خراج) په دغه زمکه باندې هغه شان ځنګه چه مونږ بیان اوکړلو.اووو دا (مقررکول د خراج دحضرت عمر رضي الله عنه په موجودګئ د صحابه کرامو رضي الله عنهم کښې بغیرد څه انکار نه (یعنی هغوی پرې انکار اونکړلو) نوشو (دا عمل دحضرت عمر رضي الله عنه اوسکوت د صحابو رضي الله عنهم) اجماع د دوی (صحابو رضي الله عنهم) د طرفه (په دې مقدارباندې) ([1])

**التوضيح الضروري** په قفیزکښې یوصاع غله وی.کومه چه تقریباً درې نیم سیره وی.اویوسیر شپاړس چیټاکئ وی.اوپه موجوده زمانه کښې د کلوګرام رواج دې.نودچیټاکوپه حساب سره یوکلوګرام اتلس چیټاکئ وی.داخبره یاده ساتئ:چه د حضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کښې د یوقفیز قیمت درې روپئ وو.اولس درهم د اووه مثقالوبرابر وو.اود یودرهم وزن د درې ماشو اویوې رتئ برابر وی.اود یومثقال وزن څلورماشې او څلور رتئ وی.اود یوصاع وزن د مثقال په حساب سره دوه سوه اویا توله دې.اود درهم په حساب سره دوه سوه درې اویا توله دې. (اشرف الهدایه شرح هدایه از مولانا محمد ابوبکرقاسمی)

### په نورو اوباغ کښې د خراج مقررکولوطریقه

وَمَا سِوَى ذَلِكَ مِنَ الْأَصْنَافِ يُوضَعُ عَلَيْهَا بِحَسَبِ الطَّاقَةِ)

**ترجمه و تشریح** (ابو الحسن قدوری رحمه الله) فرمائی.اوهغه چه وی سوا ددې قسمونو نه، (چه د انګورو ،غله او رطابو زمکې اوباغونه دی) مقرر کولې به شی په دې باندې (خراج) په اندازه د طاقت (دزمکې)

**دليله** ځکه چه نشته په دې (څیزونو) کښې مقررکول د حضرت عمر رضي الله عنه نه (چه هغه د زعفرانو وغیره

---

[1]) كذا في كتاب الأموال لأبي عبيد القاسم بن سلام (نصب الراية،٣\٦٦٥)_

په باغونوکښې څومره خراج مقرر کړې دې.البته دومره ده چه) یقینا معتبر کړې دې حضرت عمر رضي الله عنه په دغه ځیزونوکښې (کوم چه ورانديو تیرشو) طاقت (حالت یعنې په پیدوار کښې د کمې او زیاتی ګتې په اندازه باندې حضرت عمر رضي الله عنه خراج مقرر کړې دې.چه په چا کښې ګټه زیاته وی.اومشقت کم وو.په هغې باندې ئې زیات خراج مقرر کړې دې.اوچه په چا کښې مشقت زیات او ګټه کمه وی.نوپه هغې باندې ئې کم خراج مقرر کړې دې.نودغه اصول به په نورو ځیزونوکښې هم مدنظرساتلې شی) نو مقرر کولې به شی په دې ځیزونوباندې (چه زعفران وغیره دی) په اندازه دطاقت (د زمکې او باغونو، یعنی په کومو باغونواو زمکوکښې چه د تیرو شوو ځیزونو نه علاوه نور ځیزونه کیږی.لکه زعفران شو. نوپه هغې کښې به د زمکې اوپیداوار حالت ته کتلې شی) ځکه چه نشته په دې ځیزونوکښې (چه زعفران وغیره دی) مقرر کول د حضرت عمر رضي الله عنه اویقیناً معتبر کړې دې حضرت عمر رضي الله عنه حالت د زمکې په دې (انګور،غله اورطابو) کښې نو معتبر کوو به ئې مونږ په هغه څه کښې چه نه وی مقرر کول په هغې کښې (دحضرت عمر رضي الله عنه دطرفه لکه په زعفران کښې)

**دخراج د زیادت په صورت کښې دهغې دکمې اجازت**

(فَإِنْ لَمْ تُطِقْ مَا وُضِعَ عَلَيْهَا نَقَصَهَا الْإِمَامُ)

**ترجمه و تشریح>** ابو الحسن قدوری رحمه الله فرمانی.چه که طاقت نه لری زمکه د هغه محصول چه مقررشوی وی په هغې (زمکه) باندې نوکمې به اوکړی امام دوی (مالکانو د زمکې په محصول دهغې پیداوارکښې)

**دلیله>** حضرت عمر، حذیفه اوعثمان بن حنیف رضي الله عنهم دعراق د زمکې نه د خراج راجمع کولودپاره اولیږل.او واپس راغلل.نودغه مکالمه ورسره شوې وه.کومه چه کتاب کښې ذکر ده) اودا (قول) دلالت کوی په جواز د نقصان باندې (یعنی حضرت عمر رضي الله عنه چه استفسارکوی.چه داسې خو نه ده.چه تاسوپه یوه زمکه دهغې دطاقت نه زیات محصول مقررکړې وی.نوددې استفسارمطلب دا دې.که چرته داسې وی.نوچه مونږ ددغه زمکو محصول اوخراج کم کړو) (۱)

**دخراج ختمیدو صورتونه**

(وَإِذَا غَلَبَ عَلَى أَرْضِ الْخَرَاجِ الْمَاءُ أَوِ انْقَطَعَ عَنْهَا أَوِ اصْطَلَمَ الزَّرْعَ آفَةٌ فَلَا خَرَاجَ عَلَيْهِمْ)

**حل اللغة>** ① **الاصطلام**:راتلل،لګیدل،واقع کیدل ② **الزرع**:فصل ،کرونده

**ترجمه و تشریح>** اوکه غلبه اوکړله.په زمکه خراجي باندې اوبو(سیلاب پرې راغلو) یا اوبه ختمې شوې ددې سره اویا اولګیدلو په فصل باندې څه آفت، (چه دهغې د وجې ددې پیداوار ختم شی) نونشته خراج په هغوی باندې

**دلیله>** ځکه چه فوت شو قدرت په پیداوار باندې اوهم دا (قدرت) نماء تقدیری ده چه معتبره ده په خراج کښې (یعنی چه یوه زمکه داسې وی.چه په هغې کښې د پیداوار صلاحیت وی.نودهغې په مالك باندې به خراج مقررکولې شی.اګرچه هغه په دغه زمکه کښې څه نه وی کرلې.ځکه چه دا خو دده کوتاهي ده.نوپه زمکه کښې د پیداوار صلاحیت تقدیری نماء ده.اوپه پیداوارکښې زیادت دې.اودا کوم علتونه چه دلته بیان شو.په دې سره په زمکه کښې د پیداوارصلاحیت ختم شو.نوتقدیری نماء کومه چه مونږ د خراج دپاره معیار ګرځولې وه. هغه ختمه شوه.نوخراج به هم ختم شی) اوپه هغه صورت

۱) من حدیث عمروبن میمون رضي الله عنه اخرجه البخاری فی فضائل الصحابة رضي الله عنهم باب ۸)ـ

کبني (هم خراج ساقطيږي) چه راشي په زمکه باندې څه افت او فوت شي نماء تقديري په بعضې کال کبني (يعنی که زمکه باندې يوداسې آفت راشي.چه عارضي طوردکرکروندۀ قابله پاتې نشي.خوبيا د زراعت قابله وی.نوپه دې صورت کبني که هم ددې نه څه پيداوار اوشي.په هغې کبني به خراج نه وی)

**د زمکه بيكاره پريخودو باندې دخراج عدم سقوط**

| (وَإِنْ عَطَّلَهَا صَاحِبُهَا فَعَلَيْهِ الْخَرَاجُ) |
|---|

**حل اللغة** ◁ ① **العطلة**:بيكاره كول،بغيركروندې پريخودل

**ترجمه و تشريح** ◁ اوكه بيكاره ئې پريخودله دا (زمكه او څه ئې په كبنې اونكرل) نو په مالك ددې (زمكې) خراج دې.

**دليله** ◁ ځكه چه قدرت (دكرلو) حاصل وو ده (مالك) ته،اوهغه (قدرت هغه ووچه) ضائع كړلو ده(ځكه چه زمكه ئې خالي پريخودله)

**دخراجی د اسلام په صورت کبنې دده د زمکې حکم**

| (وَمَنْ أَسْلَمَ مِنْ أَهْلِ الْخَرَاجِ أُخِذَ مِنْهُ الْخَرَاجُ عَلَى حَالِهِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** ◁ اوچا چه اسلام قبول كړلو.د خراجيانو نه،نو اخستې به شي دده نه خراج په خپل حالت باندې (لكه څنګه چه به ترې وړاندې اخستې شو)

**دليله** ◁ ځكه چه په دې (خراج) كبنې معنى دمؤنة (مشقت) ده. (يعنى خراج يوداسې څيزدې.چه ددې د مقرركولودارومدار د زمكې په حالت دې.د دې د مالك په حالت نه دې. نو د اول نه چه په دې زمكې باندې خراج مقررشوې دې.نوهم دغه خراج به مقررروی) په حالت د بقاء (دزمكه) كبنې، (چه زمكه باقي وی.نوخراج به هم باقي وی) نوممكن (جائز شو) باقي پاتې كول ددې (خراج) په مسلمان باندې(ځكه چه په مسلمان كبنې دا صلاحيت شته.چه دې ددغه زمكې خراج وركړی. داسې نه ده . چه دې د زمكې دخراج ادا كولونه عاجزدې.بلكه لكه څنګه چه ئې په حالت د كفركبنې ددې خراج وركولو .دغه شان به په حالت د اسلام كبنې هم وركوی.ځكه چه د زمكې حالت بدل شوې نه دې.دده حالت بدل شوې دې.او دخراج تعلق د زمكې سره دې.د مالك د زمكې سره نه دې.هم دا وجه ده.چه عشري زمكه كه د ماشوم په ملكيت كبنې وی.هم به په هغې كبنې عشر وی.اګرچه دماشوم په مال كبنې زكاة نشته.اوبله دا كه مونږ دده نه د زمكې خراج ساقط كړو.نومونږ به دې ته محتاج يو.چه دده په زمكه باندې عشرمقرر كړلو .او په خلاف د جزيه يعنى كه يوذمى كافرمسلمان شي. نودهغه نه چه جزيه ساقطه شي.د جزيه په بدل كبنې په هغه باندې د بل څيز مقرركولو ضرورت نشته)

**دمسلمان دپاره د خراجی زمکې اخستل**

| (وَيَجُوزُ أَنْ يَشْتَرِيَ الْمُسْلِمُ مِنَ الذِّمِّيِّ أَرْضَ الْخَرَاجِ وَيُؤْخَذُ مِنْهُ الْخَرَاجُ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** ◁ اوجائزده.چه واخلي مسلمان خراجي زمكه د ذمي نه او واخستې شي دده (مسلمان) نه خراج دهغه وجې كومه چه مونږ بيان كړه.((لأن فيه معنى المؤنة فيعتبر مؤنة في حالة البقاء))

**دليله** ◁ او په يقين سره ثابته ده.چه صحابوﷺ اخستې وې خراجي زمكې (دذميانونه) او وو هغوی(صحابهﷺ چه) ادا كول به ئې خراج دهغې (خراجي زمكو) ([1]) نودا (عمل د صحابوﷺ) دلالت

1) كذا نقله البيهقي في كتاب المعرفة (نصب الراية،٣\٦٦٦)۔

کوی په جواز د اخستلو (دخراجي زمکو) او په (جواز د اخستلو) د خراج (ددې مسلمانانونه) او ورکول ددې (خراج) مسلمان ته بغیرد کراهة نه،

**دخراجي زمکې په پيداوارکښې دعشرعدم فرضيت**

| (وَلَاعُشْرَفِي الْخَارِجِ مِنْ أَرْضِ الْخَرَاجِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اونشته عشرپه خراجي زمکه کښې (۱)

**دلائله>** ① دليل قول دنبي ﷺ دې. لَايَجْتَمِعُ عُشْرٌوَخَرَاجٌ فِي أَرْضِ مُسْلِمٍ} (۲) چه نه جمع کيږی عشر او خراج په زمکه دمسلمان کښې،

② اوبله دا چه هيڅ چا په امامانوعادلانواو ظالمانوکښې جمع والې نه دې کړې په دې کښې،اوکافی ده اجماع ددې امامانو حجت (چه په يوه زمکه کښې به عشر اوخراج نه جمع کيږی.

③ او ځکه چه خراج واجبيږی په هغه زمکه کښې چه فتح شوې وی په قوت او زور سره،اوعشر (واجبيږی) په هغه زمکه کښې چه اسلام راوړې وی اوسيدونکو د هغې (زمکې) په تابعدارئ (اوخپلې خوښې) سره،او دا دواړه وصفونه (چه زور او رضا ده) نه جمع کيږی په يوه زمکه کښې (چه يوه زمکه دې هم په زور باندې فتح شوې وی اوهم په رضا باندې)

**د جزئې قسمونه**

| (وَهِيَ عَلَى ضَرْبَيْنِ: جِزْيَةٌ تُوضَعُ بِالتَّرَاضِي وَالصُّلْحِ فَتَتَقَدَّرُ بِحَسَبِ مَا يَقَعُ عَلَيْهِ الِاتِّفَاقُ) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اودا (جزيه) په دوه قسمه ده. (يوه) جزيه هغه ده.چه مقررکولې شی په رضا او صلحې سره(يعنې چه کافرد مسلمانانوسره دجزيه په مقررکولوباندې متفق شی.چه ټيک ده تاسوته به مونږ جزيه در کوو .او تاسو به زمونږ د مال اوجان حفاظت کوئ) نو مقررکولې به شی دا (قسم جزيه د صلح او رضا) په هغه شان چه څنګه پرې راشی اتفاق (دمسلمانانو او کافرانو)

**دلائله>** ① حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمائي.چه نبی ﷺ د اهل نجران سره (نجران د يمن يوه علاقه ده.چه نصاری په کښې اوسيدل) په دې باندې صلح کړې وه.چه تاسويه مونږ ته يوزر او دوه سوه جوړې راکوئ.اوددې راکول به په دې طريقه وی.چه نيمې جوړې يعنې شپږ سوه به د صفرپه مياشت کښې راکوئ.اوباقی نيمې چه شپږ سوه دی.دا به د رجب په مياشت کښې راکوئ.اومسلمانانوته به ديرش اسونه،ديرش زره،ديرش اوښان ،او د دې نه علاوه ديرش تورې نيزې غشې ورکوی.خوپه دې شرط چه مسلمانان به د دې جنګی سازوسامان د واپس ورکولو ذمه واری وی اونبی ﷺ ورته دا ضمانت ورکړلو.که دا جزيه تاسو راکوئ.نو د اسلامی حدودو کښې چه کومې علاقه دی.په دغه علاقواو خايونوکښې به دعيسايانوګرجې نشی غورځولې.اونه به څوک عيسائی د وطن نه ويستلې شی.ترڅوچه نې معاهده ماته کړې نه وی.اويا نې سود خوړل شروع کړې نه وی . (يعنی که معاهده ماته کړی.يا سود خوړل شروع کړی.نوبيا ددغه علاقه نه دده ويستل جائز دی. (۳)

② اوځکه چه موجب (يعنی هغه مقدار مال چه په اتفاق سره مقرر شوې وی) هغه د دواړو طرفونو نه په

---

(۱) فرمائيلی دی امام شافعی ﷺ جمع والې به کوی په مينځ ددې دواړو (عشراوخراج) کښې

(۱) من حديث عبدالله بن مسعود ﷺ اخرجه ابن عدی فی الكامل (۷\۲۵۵)۔

(۱) من حديث ابن عباس ﷺ اخرجه ابوداود فی كتاب الخراج والإمارة والفیء باب ۳۰ رقم ۳۰۴۱)۔

رضامندی ده. (چه د مسلمانانو او کافرانو په کوم مقدار باندې اتفاق راغلې وی) نونه دې جائز تجاوز کول (یعنی اوړېدل) سوا د هغه مقدار نه چه واقع شوې وی په هغې باندې اتفاق (یعنی جانبینو چه د خراج په کوم مقدار باندې په اتفاق سره معاهده کړې ده. په هغه مقدار کښې به کمې زیاتې نشی راتلې. مثلاً که په کال کښې ئې دوه زره روپۍ مقرر کړې وی. نو په دې دوو زرو روپو کښې به کمې زیاتې نشی کولې)

(وَجِزْيَةٌ يَبْتَدِءُ الْإِمَامُ بِوَضْعِهَا إِذَا غَلَبَ الْإِمَامُ عَلَى الْكُفَّارِ، وَأَقَرَّهُمْ عَلَى أَمْلَاكِهِمْ، فَيَضَعُ عَلَى الْغَنِيِّ الظَّاهِرِ الْغِنَاءِ فِي كُلِّ سَنَةٍ ثَمَانِيَةً وَأَرْبَعِينَ دِرْهَمًا يَأْخُذُ مِنْهُ فِي كُلِّ شَهْرٍ أَرْبَعَةَ دَرَاهِمَ. وَعَلَى الْمُتَوَسِّطِ الْحَالِ أَرْبَعَةً وَعِشْرِينَ دِرْهَمًا فِي كُلِّ شَهْرٍ دِرْهَمَيْنِ، وَعَلَى الْفَقِيرِ الْمُعْتَمِلِ اثْنَيْ عَشَرَ دِرْهَمًا فِي كُلِّ شَهْرٍ دِرْهَمًا)

**ترجمه و تشریح>** او (بل قسم هغه) جزیه ده. چه ابتداء کړې وی امام د مقرر کولو د هغې کله چه غلبه کړې وی امام په کافرانو باندې او برقرارئې پاتې کړې وی هغوی (کافران) په خپلو ملکیتونو باندې (یعنی د هغوی نه ئې د هغوی مملوکه زمکې وغیره نه وی اخستې) نو مقرر کوی به (په دې قسم کښې) په مالدار باندې چه مالداری ئې ښکاره وی. په هر کال کښې اته څلویښت درهم، او اخلی به د دوی نه په هره میاشت کښې څلور درهم او (مقرر کوی به) په میانه حال باندې (چه نه ئې مالداری ښکاره وی. او نه فقیری. بلکه د دې دواړو په مینځ کښې وی. لکه بالفرض که دې مسلمان وی. نو چه نه په ده باندې زکاة واجب وی. ځکه چه صاحب نصاب نه وی. او نه ده د پاره زکاة اخستل جائز وی. ځکه چه مصرف هم نه وی. بلکه د دې دواړو په مینځ کښې وی. چه خپله ګزاره ئې روانه وی. نو د غه شان دلته په باب د جزیه کښې هم چه نه مالدار وی او نه فقیر) څلیریشت درهم په هره یوه میاشت کښې (به ورکوی) دوه روپۍ او (مقرر کوی به) په فقیر معتمل باندې (چه د ضرورت نه زیات مال ګټی خو مال نه جمع کوی) دولس روپۍ (ورکوی به) په هره میاشت کښې یوه روپۍ او دا (کوم ذمیانو درې حالتونو ته تقسیم) ([1])

**دلائله>** دا زمونږ مذهب منقول دې د حضرت عمر، عثمان، علی رضي الله عنهم نه ([2]) او انکار نه دې کړې په دوی باندې هیڅ یو کس د مهاجرینو او انصار صحابو رضي الله عنهم نه، (نو معلومه شوه. چه د مالدار، میانه حال او غریب په مینځ کښې چه د احنافو کوم فرق کړې دې. دا صحیح دې. ځکه چه دلیل ورله شته.

**جزیه به په چا مقررولې شی؟**

(وَتُوضَعُ الْجِزْيَةُ عَلَى أَهْلِ الْكِتَابِ وَالْمَجُوسِ)

**ترجمه و تشریح>** او مقررولې به شی جزیه په اهل کتاب (یعنی یهود او نصاری) باندې، او په مجوسو باندې (که هغوی عربیان وی او که عجم وی. او مجوس هغه کسان دی. چه د نور او ظلمت د خدائې قائلین دی. او دا وائی. چه خیر د نور د طرفه وی. او شر د ظلمت تیارهٔ د طرفه وی. او هم دا وجه ده. چه دوی د اور عبادت کوی. ځکه چه اور هم نور دې. کذا فی البنایه)

**دلائله>** ① د وجې د قول د الله تعالی نه (چه او جنګیږئ د هغه کسانو سره چه ایمان نه راوړی نه په الله

---

[1] **مسلک الشافعي:** - فرمائی امام شافعی رحمه الله مقرر کوی به (امام) په هر بالغ باندې یو دینار یا هغه چه برابروی د دینار سره مالدا راو فقیر (دواړه) په دې (مقدار د جزیه) کښې برابر دی. (دا نه چه د مالدار نه دې په کال کښې اته څلویښت او درمیانه نه څلیرشت او غریب نه دولس روپۍ اخستې شی.

[2] الروایة عن عمر رضي الله عنه اخرجه ابن ابی شیبة ق مصنفه (نصب، ٦٧٣\٣)

بانديږ اونه په ورځ د آخرت اونه حراموي هغه څه چه حرام کړي دي الله اونه قبلوي دين حق) دهغه کسانو نه چه ورکړې شوې دې ورته کتاب (په لاس بانديږ او وی دوی ذلیل)

② اومقررکړې وه رسول اللهﷺ جزیه په مجوس بانديږ، (لکه په بخاری کښې چه دی چه نبیﷺ د مقام حجرپه مجوسوبانديږ جزیه مقررکړې وه)[1]

**دجزیې اخستلو له وړاندې دکافرانود بنځو اوماشومانو حکم**

| (وَعَبَدَةِالْأَوْثَانِ مِنَ الْعَجَمِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** او(مقررکولې به شي جزیه) په بت پرستو عجميانوبانديږ

**دليله>** دليل دا دې.چه جائز دي غلامان جوړول دهغوی (یعنی داهل کتابو او مجوسو نه د علاوه نورو کافرانو) نو جائز به وی مقرر کول د جزیه په هغوی بانديږ،

**د عربو دمشرکانواو مرتدينو دبنځو اوماشومانو حکم**

| (وَلَاتُوضَعُ عَلَى عَبَدَةِالْأَوْثَانِ مِنَ الْعَرَبِ وَلَاعَلَى الْمُرْتَدِّينَ) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اونشته جزیه مقررکول په بت پرستود عربو اونه په مرتدیانو،

**دليل عدم قبول الجزية من مشرک عربي>** ځکه چه کفرد دې دوارو (ولو) سخت دې.هرچه مشرکان دعربودی.(نوددوی کفرزیاته گناه ده) ځکه چه نبیﷺ پیدا شوې وو ددوی په مینځ کښې اوقرآن پاک نازل شوې وو په ژبه ددوی نو (دقرآن) اعجاز ددوی په حق کښې ښکاره وو. (خودديږ باوجود چه هم په دوی کښې پیغمبرپیدا شوې وو.اوهم ددوی په ژبه قرآن نازل شوې وو.دوی ایمان راونړی .نویقیناً چه دوی د سخت عذاب مستحق دی.اوهغه دنیاوی سزا دا ده.چه دوی به یا ایمان راوړی.اویا به قتلولې شی.جزیه قبلول د دوی نه نشته)

**دليل عدم قبول الجزية من مرتد>** اوهرچه مرتد دې(نوپه ده بانديږ جزیه مقررکول نشته)ځکه چه ده انکارکړې دې د رب خپل نه پس ددې نه چه ده ته توفيق ملاؤ شوې وو داسلام او پوهه شوې وو دې په خوبیانوددې (اسلام،نوچه الله تعالی په ده بانديږ يوځل دومره عظيم احسان اوکړلو.چه داسلام غونديږ اوچت نعمت ئې ورته ورکړلو .اودې د اسلام دخوبیانونه هم خبرشو.اوددې نه پس دې کفر کوی.نوددې دهيڅ قسم رعات مستحق نه دې) نو نه به شی قبلولې د دوارو فرقو نه (كه داهل عربو بت پرست دی.اوکه مرتدیان دی)

**په بنځه او ماشوم بانديږ دجزيه عدم وجوب**

| (وَلَاجِزْيَةَعَلَى امْرَأَةٍوَلَاصَبِيٍّ) |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اونشته جزیه په ښځه او په ماشوم بانديږ

**دليله>** ځکه چه جزیه واجب شوې ده په بدل کښې د قتل (دهغه کسانوچه په جنگ کښې مغلوبه شوې وی.نوددوی مستحق دقتل وو.خوچه تسليم شو.نود قتل په بدله کښې په دوی جزیه مقررکړې شوه) یا د جنگ نه، (یعنی دنصرت نه مطلب دا چه ځوک په اسلامی سلطنت کښې اوسیږی.نوپه ده بانديږ لازم

---

۱) فيه احاديث منها حديث مجالد وهو ابن عبدة المكى قال أتانا كتاب عمربن بالخطاب قبل موته بسنة ،فرقو بين كل ذى محرم من المجوس ولم يكن عمرؓ اخذ الجزية من المجوس حتى شهد عبدالرحمن بن عوفؓ ان رسول الله اخذها من مجوس هجراخرجه البخارى فى الجزية باب ۱ وابوداود فى الخراج والإمارة باب ۳۱ واحمد فى المسند (۱۹۱\۱)۔

ده.چه په خپل مال اوجان سره د اسلامي حکومت حفاظت کوي.که دې مسلمان وي.اوکه مسلمان نه وي.نوچونکه دده همدردی د کافرانو سره وي.دده نه دا توقع نشي کيدې.چه دې به داسلامي حکومت دحفاظت دپاره د جان يا د مال قرباني ورکړي.نوددې مالي او جاني قرباني، په بدله کښې شريعت په ده باندې جزيه مقرر کړې ده.چه دې چونکه په اسلامي حکومت کښې اوسيږي.نولکه چه څنګه په نورو مسلمانانو باندې په وخت د ضرورت د اسلامي حکومت سره مدد کول ضروري دي.دغه شان په ده باندې هم ضروري دي.نوددغه نصرت په بدله کښې په ده جزيه مقرر شوه) اودا دواړه (كه ښځه ده اوکه ماشوم) نشي قتلولې (په جنګ کښې.بلکه دوی ته به تعرض نشي کولې.اوورانديې تيرشو.چه جزيه د قتل بدله ده.چه کافرجزيه ته غاړه کيږدي.نودې د قتل نه بچ شو.اود ماشوم او ښځې قتلول جائز نه دي.نوځکه پرې جزيه هم نشته) او نه دوی جنګ کولې شي.د وجې د عدم اهليت نه (يعنی په ماشوم اوښځه کښې د جنګ کولو اهليت او صلاحيت نه وي.نوځکه په دوی باندې په جان او مال سره د اسلامي حکومت مدد او نصرت کول لازم نه دي.ځکه چه دوی کمزوري دي.اوورانديې تيرشو.چه جزيه د نصرت بدل دې.چه مسلمانان په خپل جان او مال سره داسلامي حکومت حفاظت کوي.نوذمي به ددغه نصرت په بدله کښې جزيه ورکوي .خوچونکه په ماشوم او ښځه باندې نصرت واجب نه دې.نوجزيه پرې هم نشته.ځکه چه جزيه بدل د نصرت نه دې.اوچه مبدل منه نه وي لازم بدل به څنګه لازم شي!)

**په شل ړونداوبوډا باندې دجزيه عدم جواز**

| (وَلَا زَمِنٍ |
|---|

**د لغت حل:** ① **زمن:** شل

**ترجمه و تشريح>** ) اونشته (جزيه) په شل، باندې

**دليله>** دليل هم هغه دې کوم چې مونږ په ښځې او ماشوم باندې د عدم وجوب په مسئله کښې بيان کړل چې ځکه چه جزيه واجب شوې ده په بدل کښې د قتل الخ

| (وَلَا عَلَى فَقِيرٍ غَيْرِ مُعْتَمِلٍ |
|---|

**ترجمه و تشريح>** اونشته (جزيه) په معتمل (هغه فقيرچه دهغه ګټه دهغه د خرچ نه زياته نه وي) باندې[1]

**دلائله>** ① حضرت عثمان رضي الله عنه نه وه مقرر کړې دا (جزيه) په فقير غيرمعتمل باندې اوودا (عمل دحضرت عثمان رضي الله عنه) په موجودګۍ د صحابو رضي الله عنهم کښې، (نوپه هغوی کښې چا په حضرت عثمان رضي الله عنه باندې انکارنه دې کړې.نودا اجماع سکوتی شوه.چه په فقيرغيرمعتمل باندې جزيه نشته.

② اوبله دا چه خراج د زمکې نشی مقرر کولې په هغه زمکه چه نه وي صلاحيت په هغې کښې (د پيداوار) نو دغه شان دا خراج (جزيه ده.اوخراج د راس دې.به نشی مقررکولې په هغه کس باندې چه په هغې کښې د ګټلو صلاحيت نه وي)

**په راهبانو جزيه مقررکولوحکم**

| (وَلَا تُوضَعُ عَلَى الرُّهْبَانِ الَّذِينَ لَا يُخَالِطُونَ النَّاسَ) |
|---|

[1] **مسلك الشافعي:-** امام شافعي رحمه الله فرمائی.چه په متمل فقيرباندې جزيه واجب ده)

**ترجمه و تشریح** اونه به شي مقررکولې (جزیه) په راهبانو باندې هغه کسان چه ګډون نه کوي د خلقو سره (بلکه دخلقو نه ځانله په خپله عبادت خانه کښې وي)

**دليله** اووجه د پورته کولو(دجزیه) ددوي (راهبانو) نه (دا ده.) چه نشته قتل په دوی باندې ځکه چه دوي ګډون نه کوي دخلقو سره (په جنګ کښې) اوجزیه په حق ددوي (اهل کتابو) کښې په بدله د ساقط کولو د قتل کښې ده. (چه دوي جزیه ورکړي.نودوي به د قتل نه بچ شي. او هرکله چه د راهبانو قتل نشته.نوجزیه به پرې هم نه وي.ځکه چه مبدل منه نه وي.نوبدل به هم نه وي)

**دچانه جزیه ساقطیږي؟**

| (وَمَنْ أَسْلَمَ وَعَلَيْهِ جِزْيَةٌ سَقَطَتْ عَنْهُ) |
|---|

**ترجمه و تشریح** اوچا چه اسلام قبول کړلو.اوپه ده باندې جزیه وي.نوساقطیږي (جزیه) دده نه (د اسلام نه پس به دې جزیه نه ورکوي)

**دلائله** ① دليل د نبی ﷺ قول دې. لَيْسَ عَلَى مُسْلِمٍ جِزْيَةٌ } ([1]) چه نشته په مسلمان باندې جزیه (په دې کښې دا تفصیل نشته.چه پیدائشي مسلمان وي.اوکه د روسته ئې ایمان راوړې وي)

② اوبله دا چه دا (جزیه) واجب شوې ده (په کافرباندې) په حیثیت د سزا په کفرباندې (چه ده یوحق دین چه دين اسلام دې.دهغې د قبلولو نه انکارکړې دې.نوده ته دې په دنیا کښې هم ددې عمل سزا د جزیه په شکل کښې ملاؤ شي) اوددې وجې (چه دا جزیه جزا د کفرده) نامداره کړې شوې ده په جزیه سره او دا (جزیه) او جزاء (دواړه) يوه معنی لري. (ځکه چه جزیه هم د کفرجزاء ده.نوهرکله چه جزیه سزا د کفرده.اوددې کس د کفرنه توبه اوویستله.اوپه اسلام کښې داخل شو.نوبیا قانون دا دې.چه) جزاء د کفرساقطیږي په اسلام سره (مثلاً چه حربي کافر وي. نودې واجب القتل دې.خوچه ده اسلام قبول کړلو.نودده سزا چه قتل وو.هغه په اسلام راوړلو سره ساقط شو)

③ اوځکه چه مقررکول د سزا په دنیا کښې نه وي مګردپاره د لرې کولو د شراویقیناً هغه (شر) دفع شو په اسلام باندې (يعنی جزیه چه مقرر کولې شي.نودا يو قسم سزا ده.چه کافرته دهغه په کفرباندې په دنیا کښې ورکولې شي.هم دا وجه ده.چه ذمي کافرکله جزیه ورکوي.نوپه رسوائۍ اوذلت باندې ئې ورکوي.اودا جزیه چه په ده باندې په دنیا کښې مقررکولې شي.نوددې دپاره چه دده د شرنه مسلمانان محفوظ وي.هغه داسې چه په ده باندې جزیه مقرر وي.نودې به د جزیې د رقم پیدا کولو دپاره مزدوری کوي.نوچه مزدوری کوي.دده ځان به هم په خپل کارکښې مشغول وي.اوچه بیا په مزدورئ باندې کومې پیسې اوګټي.نوهغه به د جزیه په شکل کښې اسلامي حکومت ته ورکړي.نومال ئې هم خرچ شو.نوپه دې طریقه به دې د مسلمانانو خلاف خپل ځان او مال نشي استعمالولې.اوکه چیرته په ده باندې جزیه نه وه مقرر،نودې به د مسلمانانو خلاف سازشونو جوړولو او دوی ته نقصان رسولوته اوزګاروي) اویقیناً لرې شو شر (ددې کافر) په اسلام سره (چه مسلمان شو.نودده د شر ویره ختمه شوه.نودکومې ویرې د وجې چه په کافرانوباندې جزیه مقررشوې وه.هغه ویره ختمه شوه.نو جزیه هم ختمه شوه.ګویا چه د کافرانو د شر نه ویره د جزیه مقررکولو سبب وو.اودا قاعده ده.چه په انتفاء د سبب سره انتفاء د مسبب راځي)

---

1) من حديث ابن عباس رضی الله عنهما اخرجه ابوداود في الخراج باب ٣٣ رقم ٣٠٥٣ والترمذی في الزكاة باب ١١ واحمد في المسند (٢٢٣\١)_

**ددوو کالونو جزیه کبني تداخل**

| (وَإِنِ اجْتَمَعَ عَلَيْهِ الْحَوْلَانِ تَدَاخَلَتِ الْجِزْيَتَانِ. |
|---|

**ترجمه و تشريح** اوکه جمع شي په ده (ذمی) باندې (جزيه) ددو کلونو،نوتداخل به راځي په دې کښې (يعنی چه د يوکال جزيه ورکړی.نودا به د بل کال د جزيئ نه هم کافی کيږی)

| وَلَا يَجُوزُ إِحْدَاثُ بِيعَةٍ وَلَا كَنِيسَةٍ فِي دَارِ الْإِسْلَامِ) |
|---|

**د لغت حل**: ① **احداث**:جوړول ② **بيعة**:د يهوديانو عبادت خانه ③ **كنيسة**:د نصاراو عبادتخانه

**ترجمه و تشريح** اوجائز نه دی از سرو نو جوړول د عبادت خانې د يهودو او د عبادت خانې د عيسايانو په دارالاسلام کښې،

**دليله** لَا خِصَاءَ فِي الْإِسْلَامِ وَلَا كَنِيسَةَ} (١) دوجې د قول د نبی ﷺ نه چه نشته خصی کول په اسلام کښې(چه يو سړې خپل ځان خصی کړی.اودې په جماع باندې قادر پاتې نشی) اونه کنيسه (يعنی عبادت خانه د يهوديانو) اومراد د دې نه د اول نه جوړول ددې دی. (يعنی په دارالاسلام کښې د يهودو دعبادت خانې داول نه جوړول جائز نه دی .

**حکم معابد الکفار من قبل** اوکه بالفرض د وړاندې نه موجود وی.نودهغې په باره کښې دا حديث نه دې.ځکه چه د نورو رواياتو نه معلوميږی.چه کله اسلامی لښکر په دارالحرب باندې غلبة اوکړی.نودهغوی عبادت خانوته به څه نه وائی. البته کوم حديث چه علامه مرغينانی نقل کړې دې.امام بيهقی اوابوعبيد رحمهماالله دا نقل کړې دې.خودا حديث ضعيف دې.تفصيل په نصب الرايه او بنايه شرح هدايه کښې کتلې شې)

**اقسام بلاد المسلمين** دمسلمانانوښارونه په درې قسمه دی. ① يوهغه چه هغه مسلمانانو آباد کړې وی.لکه بصره، شوه. نو په داسې ښارونوکښې دعالمانو ﷺ په اجماع سره د غيرمذهبودعبادت خانو جوړولواجازت نشته.اودوی ته به په دې کښې د خپل مذهبی رسوماتو اجازت نشی ورکولې
② دويم هغه ښارونه دی.چه مسلمانانوپه زور باندې فتح کړې وی.نوپه اجماع دعالمانوپه داسې ښارونوکښې دغيرمذهبودعبادتخانوجوړول جائز نه دی. اوکه د وړاندې نه په کښې موجود وی.نود هغې نړول واجب دی اوکه نه، په دې باره کښې د عالمانو ﷺ اختلاف دې.دامام شافعی اومالك رحمهماالله اودغه شان د امام احمد رحمه الله په يوقول کښې به دا وجوباً نړولې شی. او د احنافو ﷺ په نيزيه غيرمذهبو ته حکم کولې شی.چه دا په کورونوکښې بدلې کړی.اودوی ته به په هغې کښې د عبادت اجازت نشی ورکولې.خونړولې به هم نشی.خودا حکم په دې شرط دی.چه د فتح نه پس نې هغوی سره صلح کړې وی.اودوی ذميان جوړ کړې شوی وی.ځکه صحابه کرامو ﷺ ډير ښارونه هم دغه فتح کړې وو.اودهغوی عبادت خانې نې نه وې نړولې
③ هغه ښارونه چه په صلح باندې فتح شوی وی.نوکه په دې نې ورسره صلح کړې وی.چه زمکه به د دغه ذميانووی.اوخراج به اسلامی حکومت ته ورکوی.نوهغوی لره دعبادت خانوجوړول جائز دی.اوکه په دې نې ورسره صلح کړې وی.چه حکومت به د مسلمانانو وی.اودوی به جزيه ورکوی.نوپه دې صورت کښې چه دوی د عبادتخانوپه باره کښې څنګه فيصله کړې وی.هغه شان به وی.که د

---

١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما أخرجه البيهقي في سننه الكبرى (١٠١١٠)۔

مسلمانانو نه ئې د عبادتخانود جوړولو اجازت اخستې وی.نوبیا ئې نشی منع کولې.اوکه اجازت ئې ترې نه وی اخستې.نوبیا به ئې منع کوی.اوغوره دا ده.چه دوی سره به دې صلح اوکړی.چه نورې عبادت خانې به نه جوړوی.لکه څنګه چه حضرت عمر ﷜ کړې وو.

## د لړېدلې کرجه او عبادت خانې حکم

(وَإِذَا انْهَدَمَتِ الْبِيَعُ وَالْكَنَائِسُ الْقَدِيمَةُ أَعَادُوهَا)

**حل اللغة** ① **الصومعة**: د راهب عبادت خانه ② **دائمة**: همیشه دپاره

**ترجمه و تشریح** اوکه اونړېدله عبادتخانه د یهودیانو اوزړې ګرجې د عیسایانو،نودوباره به ئې جوړې کړی.

**دلیله** ځکه چه عمارتونه نه پاتې کیږې همیشه دپاره،اوهرکله چه برقرار پاتې کړلو امام (دمسلمانانو ذمیانو لره په دارالاسلام کښې) نویقیناً ده وعده اوکړه دوی (ذمیانو) سره د دوباره جوړولو (که چرته اونړیږی عبادت خانې دهغوی)

(وَيُؤْخَذُ أَهْلُ الذِّمَّةِ بِالتَّمَيُّزِ عَنِ الْمُسْلِمِينَ فِي زِيِّهِمْ وَمَرَاكِبِهِمْ وَسُرُوجِهِمْ وَقَلَانِسِهِمْ وَلَا يَرْكَبُونَ الْخَيْلَ وَلَا يَعْمَلُونَ السِّلَاحَ)

**حل اللغة** ① **زي**: لباس ② **مراکب**: جمع د مرکب،سورلی ③ **سروج**: جمع د سراج، د اس زین ④ **قلانس**: جمع د قلنسوة، ټوپۍ ⑤ **الخيل**: اسونه ⑥ **السلاح**: وسلې

**ترجمه و تشریح** سختی به کولې شی د ذمیانو سره په تمیزکولوسره د مسلمانانو نه(یعنی چه ذمیان د مسلمانانو نه جدا معلومیږی) په لباس دهغوی (ذمیانو)کښې اوپه سورلواوپه زینونواوپه ټوپوکښې، (یعنی دا څیزونه به ددوی د مسلمانانو پشان نه وی.بلکه دمسلمانانوبه یو شان جامې،سورلی زینونو اوټوپۍ وغیره وی.اوذمیانوبل شان) نو نه به سوریږی (ذمیان) په اسونو باندې ، (ځکه چه اس دعزت سورلی ده.اوذمی قابل داهانت دې)اونه به اوچوی وسله (ځکه چه په وسله کښې سرې رعب داربنکاری.اویکارده چه ذمی خوار او ذلیله ښکاری)

**دلائله** ① سلوك به کولې شی دوی سره دغه (په امتیاز سره د مسلمانانونه) دپاره دښکاره کولو د ذلت ددوی (ځکه چه الله تعالی د جزیه ورکولوحکمت دا بیان کړې دې.چه دوی په ذلت او رسوائې سره جزیه ورکوی)

② اودپاره د حفاظت د کمزورو (اوغریبانانو) مسلمانانو(په اعتبارد دین سره یعنی که ذمیانوته د ښه خوراك اوپوشاك او استوګنه اجازت ورکړې شی.نوهسې نه چه کوم کمزوری او غریبانان مسلمانان دی. د هغوی په زړه کښې دا راشی.چه دا دالله تعالی دشمنان دی.اودوی په ښه حالت کښې ژوند تیروی.اومونږ په حق دین باندې یو.اوبیا هم د سختو او مشقتونو ژوندتیروو)

③ اوځکه چه د مسلمان عزت کولې شی(دده داسلام په وجه) اود ذمی سپکوالې کولې شی(دده د کفرد وجې.نوځکه به ورسره داسې امتیازی سلوك کوی)

## په کوموڅیزونو د ذمیت معاهده نه ماتیږی؟

(وَمَنِ امْتَنَعَ مِنَ الْجِزْيَةِ أَوْ قَتَلَ مُسْلِمًا أَوْ سَبَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ أَوْ زَنَى بِمُسْلِمَةٍ لَمْ يُنْتَقَضْ عَهْدُهُ)

**ترجمه و تشریح** اوڅوك چه منع شی د جزیه ورکولو نه(یعنی د جزیه ورکولو نه ئې انکاراوکړلو) اویا ئې قتل کړلو مسلمان اویا ئې کنځل اوکړلو نبی ﷺ ته او یا ئې زنا اوکړله دمسلمانې ښځې سره،نو نه ماتیږی معاهده دده (کومه چه ده د جزیه ورکولو په وخت کښې کړې وه)

**دلیله>** دلیل دا دي.چه کنځل کول نبی ﷺ ته کفر دې دده (ذمي) د طرفه او کفرچه یوځاني وی په وخت د عهد ذمیت کېنې) نه منع کوی دا (معاهده د ذمیت،یعنی په کوم وخت کېنې چه ذمي کافرجزیه قبلوی.اومعاهده د ذمیت کوی.نوپه هغه وخت کېنې هغه کافروی.اوددې باوجود دده کفر د عهدذمیت سره منافی نه وی.بلکه کفرهم وی.اوذمیت هم وی) نوروسته راتلونکې (کفرچه د نبی ﷺ په کنځلوسره راغلې وی) به نه ماتوی دغه (امان د ذمیت،یعنی هرکله چه د ذمیت د معاهدې لیکلو په وخت کېنې دې کافر وی.اودده عهد ذمیت صحیح وی.نودغه شان که روسته دده د خولې نه کفریه اوشرکیه الفاظ واوړی.هم به عقد ذمیت نه باطلیږی)

### دارالحرب ته په تلو سره عهد ذمیت باطلیدل

وَلَا يَنْتَقِضُ الْعَهْدُ إِلَّا بِأَنْ يَلْحَقَ بِدَارِ الْحَرْبِ أَوْ يَغْلِبُوا عَلَى مَوْضِعٍ فَيُحَارِبُونَنَا

**ترجمه و تشریح>** اونه ماتیږی معاهده (دذمیت په دارالاسلام کېنې) مګردا چه لاړ شی دارالحرب ته(نوبیا ئې عهد ذمیت باطلیږی) اوغالب شی (کافران) په یوځائې باندې اوجنګیږی زمونږ سره، (نوپه دې صورت کېنې هم معاهده ماتیږی)

**دلیله>** ځکه چه اوګرځیدل دوی جنګ کونکی زمونږ سره،نوخالی به شی عقد ذمیت د فائدې نه اوهغه فائده لرې کول شردجنګ دی.

وَإِذَا ارْتَدَّ الْمُسْلِمُ عَنِ الْإِسْلَامِ عُرِضَ عَلَيْهِ الْإِسْلَامُ فَإِنْ كَانَتْ لَهُ شُبْهَةٌ كُشِفَ لَهُ

**د لغت حل:** ① **اعترت**:پیښه شوې ② **تزاح**:لرې کولې شی

**ترجمه و تشریح>** فرمائی(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوکله چه واپس شی (والعیاذبالله) مسلمان داسلام نه نو پیش به کړې شی په ده باندې اسلام (اودا به ورته اووئیلی شی.چه دوباره اسلام قبول کړه) که چیرته وی دده څه شبه (د دین اسلام په حقانیت کېنې چه د هغې د وجې دې مرتد شوې وی) نولرې به کړې شی (هغه شبه) دده نه

**دلیله>** ځکه چه کیدې شی راغلې وی ده ته څه شبه (په حقانیت داسلام کېنې) نو لرې به کړې شی. اوپه دې (پیش کولو داسلام) کېنې دفع کول د شر دده (مرتد) دی په یوه ښه طریقه د دوو طریقو نه (یعنی هرکله چه دې مرتد شو.نومسلمانانواو اسلام ته دده نه خطره پیدا شوه.نودده د شر لرې کولو دپاره اسلام دده د قتل حکم کړې دې.چه دقتل په ذریعه مسلمانان اواسلام دده د شرنه محفوظ شی.نودده د شرلرې کولودپاره یوه طریقه دده قتلول دی.اوبله طریقه ئې دا ده.چه ده ته داسلام دعوت ورکړې شی.کیدې شی.چه دې مسلمان شی.اوښکاره خبره ده.چه یوکس په کفرباندې قتل کړې شی.دهغې نه دا غوره ده.چه دې بیرته مسلمان شی.اوپه اسلام مرشی)

**حکم عرض الاسلام>** البته دا ده.چه پیش کول (داسلام مرتد ته) لکه څنګه چه عالمانو رحمهم الله فرمائیلی دی.واجب نه دې.ځکه چه دعوت (داسلام) رسیدلې دې ده ته وړاندې (ځکه چه دې څه داسلام نه ناخبره خونه دې.بلکه داسلامی تعلیماتو لاندې ئې ژوند تیرکړې دې.خوبیا هم اسلام پیش کول ښه خبره اوغوره طریقه ده)

### د مرتد د قیدکولو حکم

وَيُحْبَسُ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ فَإِنْ أَسْلَمَ وَإِلَّا قُتِلَ

**ترجمه و تشریح>** ) او قیدکولې به شی (مرتد) درې ورځې که اسلام ئې راوړلو(نو ډیره ښه خبره ده) اوکه نه (داسلام راوړلونه ئې انکاراوکړلو) قتلولې به شی

**دليله** درې ورځې (اودرې ورځې به په جيل کښې قيد کولې شي) ځکه چه دا (درې ورځې) موده ده چه مقرر شوې ده دپاره دلرې کولودعذرونو (يعنې چه يوکس يوکار کوي.اوهغه په کښې اختيار غواړي.نودرې ورځې مهلت ورته ورکولې شي)

**رواية عن ابي يوسف** د امام ابويوسف رحمه الله نه نقل دی.چه شان دا دې.مستحب دی چه مهلت ورکړې شی ده (مرتد) ته درې ورځې که ده (مرتد) درخواست کړې وی د دې (مهلت) اوکه نه، (درخواست او مطالبه ئې نه وی کړې.يعنې د درې ورځو مهلت ورکولو استحبابي حکم دې وجوب حکم نه دې) (١)

**دلائل عدم الامهال** ① دليل قول دالله تعالى دې.چه قتل کړئ مشرکان (الله تعالى په دې آيت کښې دمشرکانو دقتل حکم مطلقاً کړې دې) بغيرد قيد د مهلت ورکولونه (نوهرکله چه الله تعالى د مهلت ذکرنه دې کړې.دخپل طرفه د درې ورځو ورکول په کتاب الله باندې زيادت دې.کوم چه ټيك نه دې)

② اودغه شان قول د نبي ﷺ دې مَنْ بَدَّلَ دِيْنَهُ فَاقْتُلُوْهُ} (٢) چا چه بدل کړلو دين خپل نوتاسونې قتل کړئ (گورئ په دې حديث کښې هم نبي ﷺ مطلقاً دمرتد سزا قتل خودلې ده.د مهلت ورکولوذکرئې په کښې نه دې کړې.اودريم دليل دا بيانوی) اوځکه چه دې (مرتد) کافرحربي دې. (حربي کافرځکه دې.چه نه خودې ذمي دې.چه جزيه ورکوی. اونه مستامن دې.نوده سره به دحربي کافرمعامله کولې شی) او رسيدلې دې ده (مرتد) ته دعوت (د داسلام) نو قتلولې به شی فی الحال بغيردمهلت ورکولونه.

**داسلام پیش کولونه وراندې دمرتدقتلول**

| (فَإِنْ قَتَلَهُ قَاتِلٌ قَبْلَ عَرْضِ الْإِسْلَامِ عَلَيْهِ كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ، وَلَا شَيْءَ عَلَى الْقَاتِلِ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** فرمائي (ابو الحسن قدوري رحمه الله) که قتل کړلو ده (مرتد) لره يوقتل کونکي وراندې د پيش کولوداسلام نه (چه ده ته ئې اسلام نه وی پيش کړې.چه بيرته اسلام ته راواوره.اوقتل ئې کړی) نومکروه دې (دا قتل) اونشته څه څيز (ديت يا قصاص) په قاتل باندې،

**المراد من الكراهة** اومطلب دکراهت په دې مقام کښې پريخودل د استحباب دی. (دهغه چا په نيزچه داسلام پيش کول ورته مستحب گڼي) اونفی دضمان ده. (يعنې په دې قاتل باندې د مقتول ضمان نشته.چه د هغه وارثانوته ديت ورکړی.

**دليله** اوپه ده باندې دڅه څيزد عدم وجوب دليل دا دې چه کفرمباح کونکې دقتل دې. (يعنې دحربي کافرقتل مباح دې) اوپيش کول داسلام (ده ته) پس د رسيدود دعوت نه واجب نه دې. (البته څوك چه داسلام پيش کول واجب گڼرې. د هغوی په نيزد عرض اسلام نه وراندې دمرتد قتل حرام دې)

**مرتده ښځه به نشي قتلولې**

| (وَأَمَّا الْمَرْأَةُ إِذَا ارْتَدَّتْ فَلَا تُقْتَلُ) |
|---|

**دلائله** ① دليل دا دې.چه نبي ﷺ منع کړې ده د قتلولو د زنانو نه (٣) لکه وراندې چه حديث

---

(١) **مسلك الشافعي**:- دامام شافعي رحمه الله نه نقل دی.چه په امام باندې لازم دی.چه مهلت ورکړی ده (مرتد) ته درې ورځې اوجائز نه دی ده (امام) دپاره چه قتل کړی دې (مرتد) وراندې ددې (درې ورځو) نه،

١) من حديث ابن عباس رضي الله عنهما اخرجه البخاري في كتاب الجهاد باب ١٤٩ وإستتابة المرتدين باب ٢)_

(٣) تقدم تخريجه في وسط كتاب الجهاد)_

تیرشو.چه نبي ﷺ په جنګ کښې یوه ښځه قتل شوې بیا موندله.نووې فرمائیل.دا ولې قتل شوې ده.دې خو جنګ نشو کولې.نوهرکله چه کافره ښځه نشی قتلولې.دغه شان به مرتده ښځه هم نشی قتلولې)

② اوبله دا چه (په عقوباتوکښې) اصل روستو کول د سزا دې آخرت ته،ځکه چه تندی کول په دې (سزا) باندې خلل راولی په معنی د امتحان کښې، (یعنی دالله تعالی قانون په دې باندې جاري دې.چه څوك ګناه اوکړی.نوسمدستی په دنیا کښې ده ته د هغې سزا نه ورکوی.بلکه مهلت ورکوی.اودهغې سزا بیا په آخرت کښې ورکوی.اونکته په کښې دا ده.چه چیرته د ګناه په کولوپه دنیا کښې سزا ملاویدله. نو خلقو به دالله تعالی د ویرې ګناه نه پریخودله.بلکه د دنیاوی سزا د وجې به ئې پریخودله.اواوس چه په دنیا کښې په ګناه باندې سزا نه وی.اوددې باوجود څوك دګناه نه ځان ساتی.نودې په صحیح معنی کښې دالله تعالی نه ویریدونکې دې.اودې په امتحان کښې کامیاب دې)

| |
|---|
| وَلَكِنْ تُحْبَسُ حَتَّى تُسْلِمَ |

**ترجمه و تشریح** فرمائی لیکن قیدکولې به شی (مرتده زنانه) تردې چه اسلام قبول کړی. (اوقتولې به نشی) **دلیله** ځکه چه دا (مرتده) منع شوه د پوره کولو د حق دالله تعالی پس د اقرارنه (یعنی دې چه یوځل کلمه اوونیله. نودې دالله تعالی سره وعده اوکړله.چه زه به ستا حقوق ادا کوم،هرکله چه دې یوځل وعده کړې ده) نو مجبوره کولې به شی په پوره کولو دهغې (یعنی حق دالله) لکه څنګه چه په حقوق العباد کښې (بندولې) شی (یعنی که دچا په زیدباندې قرض وی.نودائن ته دا اختیار شته.چه مدیون په خپل قرض کښې بندی کړی)

**د مرتد د مملوك څیزونو نه د ملك زوال**

| |
|---|
| وَيَزُولُ مِلْكُ الْمُرْتَدِّ عَنْ أَمْوَالِهِ بِرِدَّتِهِ زَوَالًا مُرَاعًى، فَإِنْ أَسْلَمَ عَادَتْ إِلَى حَالِهَا |

**ترجمه و تشریح** فرمائی (ابو الحسن قدوری رحمه الله) او زائله کیږی ملك د مرتد د خپلو مملوك څیزونو نه په مرتد کیدو سره په زوال عارضی سره چه (اود زوال عارضی تفصیل دا دې) که اسلام ئې (بیرته) قبول کړلو .نو ګرځی مالونه خپل (پخوانی) حالت ته (یعنی بیرته دده مملوك ګرځی) فرمائیلی دی مشائخو رحمهم الله دا (حکم) په دې مسئله کښې دامام ابوحنیفه رحمه الله دې.([1])

**دلیله** دلیل دا دې.چه دې (مرتد) حربی دې (ځکه چه نه مستامن دې اونه ذمی دې) اومغلوب دې (ځکه چه) په لاسونوزمونږ کښې (اوچه دې مرتد شو.نودده د نفس عصمت ختم شو) تردې چه قتل کولې شی. اونشته جوازد قتل (دکافر) مګر په فساد سره، (چه دې دمسلمانانو سره جنګ کوی.اودده نه مسلمانانوته خطره وی.اوکه د ده نه د فساد ویره نه وی.نوبیا د کافرقتل مباح نه دې.هم دا وجه ده.چه ړوند اوګوډ او شیخ فانی په جنګ کښې نشی قتلولې.ځکه چه د دوی نه مسلمانانو ته د شر رسولو ویره نه وی) اودا خبره (چه دې حربی دې او زمونږ په لاس نو کښې مغلوب دې) واجبوی زوال د ملك دده (مرتد) او مالکیت دده (مرتد) البته دومره ده چه دې (مرتد) بللې شوې دې اسلام ته په زور کولوسره په ده (یعنی مرتد به بیرته اسلام قبلولو ته مجبوره کولې شی) او امید کیدې شی د واپس کیدو دده (مرتد) دې (اسلام) ته (ځکه چه ده د اسلامی معاشرې لاندې ژوند تیر کړې دې.ده ته به څه نه

---

[1] القول الراجح هو هذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في مجمع الأنهر(١\٦٩٠) وفتح القدير(٥\٣١٣) ورد المحتار(٣\٣٢٨) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٩٨)-

څه داسلامي تعليماتو ثمرات او فوائد معلوم شوی وی نو چه هغې ته اوګوری.کیدې شي چه اسلام قبول کړی) نو مونږ توقف اوکړلو په کار دده کښې (اود توقف تفصيل دا دې)که ده ايمان راوړلو.نواوبه ګرځولی شي عارض لکه چه دا هډو وو نه،په حق ددې حکم کښې او ن نه وی کړې سبب (يعنی مملوك څيزونو نه دده د ملکيت په نه ختميدو کښې.اوهرچه نور احکام دی.نوهغه به موجود ګڼړلی شي.لکه په ارتداد باندې دده ښځه مبتوته شوه.اوکلمه د شهادت به دوباره وائي.څکه چه دده ارتداد ددې حکمونو په باب کښې معدوم نشی ګرځولې.بلکه په دې به احکام مرتب کولې شي) او اوګرځيدو دې لکه چه هميشه دپاره مسلمان وو.اوعمل نه وی کړې شوی په سبب (يعنی سبب د زوال ملك چه ارتداد دې.کله چه مرتد دوباره مسلمان شو.نو ارتداد چه د ملك د زوال سبب دې.داسې به وی لکه چه دغه سبب يعنی ارتداد هډو موجود شوې نه دې)

**مسلك الصاحبين**> په نيزد صاحبينو رحمهما الله نه زائله کيږی ملك دده

**دليلهما**> څکه چه دې (مرتد) مکلف دې (اوممکن نه دی د مکلف دپاره ادا کول د موجب تکليف مګر په ملك سره،يعنی مکلف هله يوحکم پوره کولې شي.چه دهغه حکم پوره کولواسباب ده سره وی) اومحتاج دې نوترد قتليدو پورې به باقي وی ملك دده (اوچه کله قتل کړې شي.نوملکيت به ئې ختم شي) پشان د هغه کس چه حکم شوې وی په هغه د رجم اود قصاص (نود رجم اوقصاص کيدو نه وړاندې دده په خپل مملوك څيزونوباندې ملکيت باقي وی.نودغه شان په زيربحث مسئله کښې به هم د مرتد د قتل کيدو نه وړاندې دده په خپلو مملوکو څيزونوباندې ملکيت باقي وی)

**دمرتد دميراث حکم**

| وَإِنْ مَاتَ أَوْقُتِلَ عَلَى رِدَّتِهِ انْتَقَلَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ الإِسْلَامِ إِلَى وَرَثَتِهِ الْمُسْلِمِينَ،وَكَانَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ رِدَّتِهِ فَيْئًا) |
|---|

**ترجمه و تشريح**> اوکه مړ شو (مرتد) يا قتل کړې شو په ارتداد خپل (يعنی د ارتداد په سزا کښې قتل کړې شو) نو منتقل کيږی به هغه څه چه حاصل کړی وی ده (مرتد) په حالت د اسلام خپل کښې وارثانو دده ته چه مسلمانان دی.اوکيږی به هغه څه چه حاصل کړی وی ده(مرتد) په حالت د ارتداد خپل کښې (يعنی دارتداد نه پس) مال فيئ (نودمال فيئ چه کوم مصارف دی.په هغې کښې به د مرتد دحالت کفرحاصل شوې څيزونه هم صرف کولی شي) اودا(حکم) په نيزد امام ابوحنيفه رحمه الله دې. (چه د حالت اسلام ګټه به مسلمانانوته ملاويږی.اودحالت کفرګټه به مال فيئ وی) (1)

**دليله**> دامام ابوحنيفه رحمه الله دپاره دليل دا دې.چه ممکن دې اضافت (د ميراث اوړلو) ګټې د اسلام ته، (يعنی کوم کسب چه په حالت داسلام کښې شوی وی.نوکه مرتد په حالت د کفرکښې هم مړ شي.هغه به ترې مسلمان وارث اوړی) دوجې دوجود ددغه (ګټې) وړاندې د مرتد کيدو نه (يعنی دليل ئې دا دې.چه دغه کسب مسلمان څکه په ميراث کښې اوړې شي.چه دا کسب داسلام د وخت ګټه ده.نوکه بالفرض دا کس په حالت داسلام کښې مړ شوې وو.نومسلمان به ترې ميراث اوړلو.نودغه شان به که په حالت د کفر کښې مړ شي.خو کسب ئې دحالت اسلام وی.هم به ئې اوړی) اونه دې ممکن اضافت (دتوريث حالت د اسلام ته) د کسب د ارتداد، (يعنی کوم کسب چه په حالت د ارتداد کښې شوی

(1) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في الخانية (٤\٤٧١) وردالمحتار(٣\٣٢٩) والهندية (٢\٢٥٤) نقلاً عن القول الراجح (١\٤٩٩)-

وی.نوددې اضافت حالت داسلام ته نشي کیدې.اوداسې نشی وتیلې.چه د ارتداد کسب داسې دی.لکه د حالت اسلام کسب، او مسلمان ئې ترې په میراث کښې اوړې شي) د وجې دعدم وجود ددې (کټې) وراندې د ارتداد نه، (یعنی دا کسب دحالت اسلام نه دې.بلکه د حالت ارتداد دې.نوځکه ددې نسبت حالت اسلام ته نشی کولې.اوچه نسبت ئې نشی کولې) او شرط ددې (میراث اوړلو) وجود ددې (کسب دې) وراندې ددې (مرتد کیدو) نه، (یعنی مسلمان هله دکافرنه میراث اوړې شی.چه کافرکوم کسب کړې وی.هغه په حالت داسلام کښې دده په ملك کښې موجود وی)

**مسلک الصاحبین** فرمائی امام ابویوسف اومحمد رحمهماالله دواړه (که د حالت اسلام ګټه وی او که دحالت ارتداد) د وارثانو دده (مرتد) دپاره دی.

**دلیلهما** دصاحبینو رحمهماالله دپاره (دلیل دا دې.چه) بیشکه ملك دده(مرتد) په دواړو ګټوکښې (که د حالت اسلام ګټه ده اوکه دحالت ارتداد) باقی دې (په خپلومملوکو څیزونوباندې) بناء په هغه چه مونږ بیان کړې دې (چه دې مکلف اومحتاج دې) نومنتقل کیږی به (ملکیت دده نه) په مرګ دده (مرتد) سره وارثانو د ده ته،اواضافت به کولې شی ددې (ګټې) هغه زمانې ته چه وړاندې د ردت دده نه وی. (یعنی کوم مال چه د مرګ په وخت کښې دمرتد نه پاتې شی.نودا به داسې ګنړلې شی.چه دا د ده د اسلام د وخت ګټه ده) ځکه چه ردت سبب د مرګ دې. (یعنی کله چه دې مرتد شو.نودده دا ارتداد سبب د مرګ دې.ځکه چه د ارتداد په وجه به دې قتل کولې شی.نوګویا چه د ده ارتداد حکمی مرګ دې.اودا داسې شوه لکه چه دې په حالت اسلام کښې مړ شوې دې)نوشو میراث وړل د مسمان د مسلمان نه،

**دمرتد د دارالحرب سره په الحاق د ده دملکیت زوال**

| |
|---|
| وَإِنْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ مُرْتَدًّا وَحَكَمَ الْحَاكِمُ بِلِحَاقِهِ عَتَقَ مُدَبَّرُوهُ وَأُمَّهَاتُ أَوْلَادِهِ وَحَلَّتِ الدُّيُونُ الَّتِي عَلَيْهِ وَانْتَقَلَ مَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ الْإِسْلَامِ إِلَى وَرَثَتِهِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ). |

**ترجمه و تشریح** فرمائی(ابو الحسن قدوری رحمه الله) اوکه یوځائې شومرتد د دارالحرب سره، (یعنی د دارالاسلام نه دارالحرب ته اوتختیدلو) اوحکم اوکړلو قاضی په لحاق دده (چه دې اوس د دارالحرب اوسیدونکې شو. اودحربیانو سره ملګرې شو) نوآزادیږی مدبر(غلام) دده اوامهات الاولاد،اوواجب الادا شول قرضونه (موجله) هغه چه په ده باندې وی. (یعنی دچا چه په ده باندې په نیته قرض وی.نوهغه به فی الحال واجب الادا اوګرځی)اومنتقل کیږی هغه مال چه کسب کړې وی ده(مرتد) په حالت داسلام کښې وارثانو د ده (مرتد) ته،د مسلمانانو نه (یعنی دده نه چه په دارالاسلام کښې دسابقه غلامانو نه علاوه څه پاتې شی.هغه به دده وارثان اخلی) [1]

**دلیله** دلیل دا دې.چه دې(مرتد) په یوځائې کیدو سره (دارالحرب کښې) اوګرځیدلو د حربیانوځنې. اودوی (حربیان) مړه دی په حق داحکامو داسلام کښې،دوجې د ختمیدو د ولایت دا الزام ددوی نه لکه ځنګه چه ختم دې دا (ولایت) د مړو نه (یعنی کوم کسان چه په دارالحرب کښې وی. نوپه دوی باندې د مسلمان حاکم څه وس اوقدرت نه رسی.ځکه چه هغه دده د ولایت دلاندې نه وی. نولکه ځنګه چه مړی په اسلامی احکامو لکه مونځ وغیره شو.نشی مجبوره کولې.دغه شان کوم کسان چه په دارالحرب کښې وی.هغوی هم داسلامی احکامو په ادا کولونشی مجبوره کولې)

---

[1] **مسلک الشافعي**:- فرمائی امام شافعی رحمه الله باقی پاتې کیږی مال دده (مرتد) موقوف لکه ځنګه چه وړاندې وو. ؛اوحاکم به دهغې حفاظت کوی

**دليل اشتراط حکم القاضي**﴾ البته دومره ده چه نه محکم کیږي ملحق کیدل د ده (مرتدپه دارالحرب پورې) مګرپه فیصله د قاضی (یعنی که مرتد دارالحرب ته لاړ هم شي.نوبيا هم دي داسلامی احکامو په حق کښې دمړو پشان نه دي.ترڅوچه قاضي ددی د لحوق فیصله نه وی کړې.اودارالحرب ته صرف په تختیدوباندې مونږ ددی د لحوق احکام څکه نه جاري کوو) دوجې داحتمال د واپس راتلو ددی (مرتد) نه (چه دي بیرته دارالاسلام ته راشي) نو ضروری ده فیصله (دقاضي په لحوق ددی دارالحرب سره) اوکله چه ثابت شي مرګ د ده (مرتد په فیصله د قاضي سره) نوثابت شول احکام متعلقه په ده (مرتد) پورې.اوهغه (احکام) دی.کوم چه مونږ ذکر کړی دی. (چه ددی مدبراوام ولده آزادیږی.اوددی دنیتي قرضونه في الحال واجب الادا ګرځي.اوددی مملوک څیزونه ددی وارثانو ته منتقل کیږی) لکه څنګه چه (ثابتیږی دا احکام) په مرګ حقیقي کښې.

(وَتُقْضَى الدُّيُونُ الَّتِي لَزِمَتْهُ فِي حَالِ الْإِسْلَامِ مِمَّا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ الْإِسْلَامِ، وَمَا لَزِمَهُ مِنْ الدُّيُونِ فِي رِدَّتِهِ يُقْضَى مِمَّا فِي حَالِ رِدَّتِهِ)

**ترجمه و تشريح**﴾ اوادا کولې به شي قرضونه هغه چه لازم شوی وی په ده (مرتد) باندې په حالت د اسلام کښې دهغه مال نه چه حاصل کړی وی ده په حالت داسلام کښې،اوهغه چه لازم شوی وی په ده باندې په حالت د ردت کښې دقرضونو نه نوادا کولې به شي دهغه مال نه چه حاصل کړی وی ده په حالت د ردت کښې

**بدء قضاء الدين من کسب الاسلام**﴾ اود دوی(امام ابوحنيفهؒ) نه بل روايت دا دې.چه شروع به کولې شي (په خلاصولو د قرضونو ددی) دګټې داسلام نه (یعنی په ده باندې چه کوم قرضونه لازم شوی وی.که په حالت داسلام کښې وی اوکه په حالت د ردت کښې نول به اول دهغه مال نه ادا کولې شي.کوم چه ده په حالت داسلام کښې ګټلې دې) اوکه نه پوره کیږی په دغه (کسب د حالت اسلام) نو پوره کولې به شي(قرضونه ددی) د ګټې د ردت نه (یعنی که په هغه مال نه ددی قرضونه خلاص نشو.کوم چه ده په حالت اسلام کښې ګټلې وو.نوبيا به د هغه مال نه ددی قرضونه ادا کولې شي.کوم چه ده په حالت د ردت کښې ګټلې وی)

**دليله**﴾ وجه داول روايت (چه ادا کول دهريوقرض دهغه حالت په ګټه په کوم کښې چه پرې قرض لازم شوې وی) چه مستحق(مراد دمستحق نه قرض دي.یعنی قرض لازم شوې دې) په دوو سببو مختلفو(یعنی هغه سبب چه په حالت داسلام کښې واقع شوې دې.اوبل هغه سبب چه په حالت د ردت کښې واقع شوې دې. نودا سببونه دیوبل نه د وخت په اعتبارسره مختلف دی)اوحاصلیدل دهرواحد دګټو نه (چه ګټه دحالت اسلام ده اوګټه د حالت ردت ده) په وجه دهغه سبب سره چه لازم شوې دې په هغې باندې قرض ، (مثلاًزيد په حالت اسلام کښې يوڅيزقرض واخستلو.اوبيا نې په حالت اسلام کښې هغه څيزپه ګټه باندې خرڅ کړلو.دغه شان ددې په عکس چه يوڅيزنې په حالت ردت کښې قرض واخستلو.اوبيانې په ګټه خرڅ کړلو) نو ادا کولې به شي هريوقرض دهغه ګټې نه چه حاصله شوې وی په دغه حالت کښې (نود اسلام د حالت قرض به په هغه ګټه باندې خلاصولې شي.چه داسلام په حالت کښې نې ګټلې ده.اود ردت دحالت قرض به په هغه ګټه باندې خلاصولې شي.چه په حالت د ردت کښې ده ته حاصله شوې وی) ددې دپاره چه شي تاوان په مقابله د نفع کښې، (مراد دتاوان نه د قرض خلاصول دی.نودحالت اسلام تاوان یعنی قرض به د دغه حالت په ګټه خلاص کړې شي.اودحالت ردت تاوان یعنی قرض به ددغه حالت په ګټه خلاص کړې شي)

**بدء قضاء الدين من كسب الردة** او ددوی (ابوحنيفه رحمه الله) نه ددې په عکس (قول هم) منقول دې. (يعنى چه اول به دده د ردت د وخت په ګټه قرضونه خلاصولې شى.اوکه په هغې خلاص نشو.نوبيا به دحالت اسلام په ګټه باندې خلاصولې شى)

**دليله** وجه د روايت (چه د دواړو حالتو قرض به د اسلام د وخت په ګټه باندې خلاصولې شى) چه ګټه دحالت اسلام ملك دده (مرتد) دې.هم دا وجه ده. (چه دې ددغه ګټې مالك دې) نائب جوړيږى د ده (مرتد) وارث په دې (ګټه دحالت اسلام) کښې، (يعنى په حالت اسلام کښې چه ده کومه ګټه کړې ده.په هغې باندې دده ملکيت صحيح دې.ځکه چه دې نه وى.نودده وارث به دهغې حقداروى) اود شرط ددې خلافت نه،فراغت دې دحق د مورث نه (يعنى کوم کس چه وفات شى.نود ده وارث دده دمال خليفه اونائب جوړيږى .خويه دې شرط چه کوم مال د مړى نه پاتې شوى وى.په هغې باندې دهغه حقوق ادا کړې شى.اودهغه په حقوقو کښې دا هم دې.که په هغه باندې قرض وى.نواول به قرض ادا کولې شى.اوچه دقرض نه زياتى شى .نوبيا به وارث ته پاتې کيږى) نومقدم کولې به شى قرض په دې (وراثت) باندې. (يعنى اول به قرض خلاصولې شى.اوکه دهغې نه زياتى شو.بيا به ئې وارث حقدار وى)

**دمرتدد تصرفاتو په صحت کښې اختلاف**

| |
|---|
| وَمَا بَاعَهُ أَوِ اشْتَرَاهُ أَوْ تَصَرَّفَ فِيهِ مِنْ أَمْوَالِهِ فِي حَالِ رِدَّتِهِ فَهُوَ مَوْقُوفٌ، فَإِنْ أَسْلَمَ صَحَّتْ عُقُودُهُ، وَإِنْ مَاتَ أَوْ قُتِلَ أَوْ لَحِقَ بِدَارِ الْحَرْبِ بَطَلَتْ) |

**ترجمه و تشريح** ) اوهغه چه خرڅ ئې کړى (مرتد) يا ئې واخلى اويا تصرف اوکړى په هغې کښې دمالونوخپلونه، په حالت د ردت خپل کښې،نودا (ټول تصرفات) به موقوف وى.که اسلام ئې (دوباره) قبول کړلو .نوصحيح شو عقود دده.اوکه مړ شويا قتل کړې شو اويا ملحق شوپه دارالحرب پورې نوباطل شول (دغه ټول تصرفات دده) اودا حکم (د وقوف دتصرفاتود مرتد) په نيزدامام ابوحنيفه رحمه الله دې.

**دليله** دامام ابوحنيفه رحمه الله دپاره دليل دا دې.چه دې (مرتد) حربى دې(ځکه چه نه مستامن دې اونه ذمى دې) مغلوب دى په لاسونوزمونږ کښې(يعنى زمونږ دتصرف لاندې دې) اوموقوف کيدل دتصرفات مبنى دى په دې (توقف دملك) باندې. (نوکه ملك ثابت وى ،تصرف به هم نافذ وى.اوکه ملك موقوف وى.نوتصرف به هم موقوف وى)

**مسلك الصاحبين** اوفرمائيلى دى امام ابويوسف اوامام محمد رحمه الله جائز دى هغه څه چه ده (مرتد) کړى دى په دواړو حالتونوکښې (که ده دوباره اسلام قبول کړلو اوکه مړ شويا قتل کړې شو)

**دليلهما** دصاحبينو رحمهما الله دپاره دليل دادې.چه صحت (ددې تصرفاتو)اعتماد کوى په اهليت (د متصرف .يعنى چه متصرف کوم تصرف کوى.چه دې ددغه تصرف اهل وى.نوهله به دده تصرف صحيح کيږى) اونفاذ(د تصرف) اعتماد کوى.په ملك باندې (يعنى تصرف به هله نافذ کيږى.چه په کوم څيز کښې متصرف تصرف کړې وى.هغه دده ملکيت وى) او(په موجوده صورت کښې) نشته څه پټوالې په وجود داهليت (دمتصرف) کښې (اوددې دپاره دليل چه دې اهل د تصرف دې.دابيانوى) ځکه چه دې (مرتد) مخاطب دې (د شريعت په احکامو ،اودده دمخاطب کيدو دليل دا دې.چه په ارتداد سره دې واجب القتل دې.نوکه دې مکلف نه وو.ولې به واجب القتل ګرځيدلو) اودغه شان (ښکاره دې) ملکيت دده. (په متصرف فيها څيزونوکښې) دوجې د قيام ددې (ملك) وړاندې د مرګ دده نه (يعنى چه ترڅوپورې دې مړ شوې نه وى. نو دغه څيزونه دده په ملکيت کښې دى)

**دمرتد اسلام قبلول اودوباره دارالاسلام ته په راتلودده دمال مورونه حکم**

وَإِنْ عَادَ الْمُرْتَدُّ بَعْدَ الْحُكْمِ بِلَحَاقِهِ إِلَى دَارِ الْإِسْلَامِ مُسْلِمًا فَمَا وَجَدَهُ فِي يَدِ وَرَثَتِهِ مِنْ مَالِهِ بِعَيْنِهِ أَخَذَهُ

**ترجمه و تشريح** که راواپس شو مرتد پس دفیصلې (کولودقاضی) نه په ملحق کیدو دده (مرتد) دارالحرب سره، په داسې حال کښې چه وی دې مسلمان (یعنی دمرتد په دارالحرب پورې د الحاق حکم قاضی کړې وی. او په دارالاسلام کښې دده مال دده په وارثانو تقسیم شوې وی.خودې بیرته مسلمان شی.او دارالاسلام ته راشی) نوهغه چه وې مومی دې په لاس د وارث خپل کښې دمال خپل نه بعینه (یعنی کوم مال چه دده وی. هغه مال وارث ته پاتې شوې وی.اوچه دې دوباره مسلمان شی.نوهم هغه مال دده د وارث سره وی) نواخلی به ئې

**دليله** ځکه وارث خلیفه جوړشوې دده(مرتد) په دغه (مال) کښې،د وجې د عدم احتیاج دده(مرتد دغه مال ته په دارالاسلام کښې،ځکه چه دارالاسلام کښې که مثلاً د ده کور وو.اودې ترې د ارتداد نه پس دارالحرب تـه اوتختیدلو.نـودې خودغـه کـورکښې نـشی اوسیدې) اوچـه کلـه مـسلمان راواپـس شو.نومحتاج شو دې (مال) ته،نو وړاندې کولې به شی (دغه مال) ده ته، (چه دې پرې خپل احتیاج پوره کړی)

وَالْمُرْتَدَّةُ إِذَا تَصَرَّفَتْ فِي مَالِهَا فِي حَالِ رِدَّتِهَا جَازَ تَصَرُّفُهَا

**ترجمه و تشريح** اومرتده ښځه کله چې دا تصرف کوی په خپل مال کښې په حالت د ارتداد خپل کښې نو جائز دې تصرف د دې

**دليله** هرکله چې مرتده ښځه قتلولې نشی بلکه قید کولې به شی تردې چې دوباره اسلام قبول کړی نو ښکاره خبره ده چې دا به دخپل ژوند ضروریاتو پوره کولو دپاره تصرفات کوی.نو دا چې د ارتداد په وخت کښې کوم تصرفات کوی هغه به صحیح او نافذ وی.

(وَنَصَارَى بَنِي تَغْلِبَ يُؤْخَذُ مِنْ أَمْوَالِهِمْ ضِعْفُ مَا يُؤْخَذُ مِنَ الْمُسْلِمِينَ مِنَ الزَّكَاةِ)

**ترجمه و تشريح** (دا) فصل دې (په بیان د احکامود بنوتغلب د جزیه په کښې) اونصاری د بنوتغلب اخستلې به شی د مالونو ددوی نه دوچنده دهغه څه چه اخستې شی د مسلمانانو نه دزکاة (یعنی د مسلمانانونه چه څومره زکاة اخستې شی.دهغې په دوچنده به د بنوتغلب د عیسایانو نه اخستې شی.پکارخودا وه.چه ددوی نه هم دعاموکافرانوپشان جزیه اخستې شوه.دکوم بیان چه وړاندې اوشو.خوددوی نه دزکاة په دوچنده اخستې شی)

**دليله** ځکه چه عمر رضی الله عنه صلح کړې وه د دوی (بنوتغلب) سره په دې باندې (چه د دوی نه به د مسلمانانو د زکاة په دوچنده جزیه اخلی) اودا (صلح د حضرت عمر رضی الله عنه) وه په موجودګئ د صحابو رضی الله عنهم کښې (خوچا پرې هم انکار اونکړلو.نودا اجماع سکوتی شوه.اواجماع حجت دې.بیا خاص کرد صحابه کرامو رضی الله عنهم اجماع) [1]

**من هم بنو تغلب؟** بنوتغلب په اصل کښې عربی النسل وو.دجاهلیت په دور کښې ئې عیائیت قبول کړې وو.حضرت عمر رضی الله عنه په خپل دورخلافت کښې د دوی نه جزیه اوغوستله.خو دوی انکاراوکړلو.او ورته ئې اووئیل.چه زمونږ نه به هم د مسلمانانو پشان زکاة اخلې.خوحضرت عمر رضی الله عنه اوفرمائیل.چه زه د مشرک نه صدقه نه اخلم.په دې باندې بعضې تغلبیان د روم د نصاروٴ سره ملاوٴ شو.په دې باندې

[1]) تقدم تخريجه في آخر باب زكاة الخيل.

حضرت نعمان بن زرعه رضي الله عنه اوفرمائيل.اې اميرالمومنين دا عرب قوم دې.اوبهادرهم دی.دوی دجزيه په ورکولوکښې خپل هتك او بې عزتي ګڼړي.اودا ورته شرم ښکاري.د دوی نه د زکاة په نوم باندې جزيه اخله.هسې نه چه دوی د روميانو سره تل شي.اوزمونږ دشمن په دوی سره په مونږ باندې مدد حاصل کړي.دحضرت عمر رضي الله عنه دا مشوره خوښه شوه.او د دوی په سرواو ښځوباندې ئې د مسلمانانو د زکاة په دوچنده مقرره کړله.اودا ئې ورته اوفرمائيل .دا جزيه ده.باقي چه تاسو ورته څه نوم ورکوئ.هغه ورته ورکړئ.اوپه دغه وخت کښې چه کوم نور صحابه کرامو رضي الله عنهم موجود وو.هغوی ددوی په دې عمل باندې انکار اونکړلو.بلکه متفق شو ورسره،نودا اجماع شوه.

## دخراج وغيره مصارف

(وَمَا جَبَاهُ الْإِمَامُ مِنَ الْخَرَاجِ وَمِنْ أَمْوَالِ بَنِي تَغْلِبَ وَمَا أَهْدَاهُ أَهْلُ الْحَرْبِ إِلَى الْإِمَامِ وَالْجِزْيَةُ يُصْرَفُ فِي مَصَالِحِ الْمُسْلِمِينَ فَيُسَدُّ منه الثُّغُورُ وَتُبْنَى الْقَنَاطِرُ وَالْجُسُورُ وَيُعْطَى مِنْهُ قُضَاةُ الْمُسْلِمِينَ وَعُمَّالُهُمْ وَعُلَمَاؤُهُمْ مَا يَكْفِيهِمْ، وَيُدْفَعُ مِنْهُ أَرْزَاقُ الْمُقَاتِلَةِ وَذَرَارِيِّهِمْ)

**حل اللغة** ① **الثغور**:د لوښې سورې ② **القناطر**:په دريابونو باندې ترلې شوې پولونه ③ **الجسور**:په نهرونو باندې جوړ کړې وشې پلونه

**ترجمه و تشريح** فرمائي(ابو الحسن قدوري رحمه الله) اوهغه چه راجمع ئې کړي امام د خراج (دزمکې) اود مالونود بنوتغلب نه او هغه چه هديه ئې کړي اهل حرب امام (دمسلمانانو) ته او (دغه شان) جزيه،نوخرچ کولې به شي په خيرخيګړه د مسلمانانوکښې،لکه داسلامي مملکت سرحدونه (په لښکروسره) د لوښو د سورو بندول ، (مثلا چه کوم مات شوي وي هغه پيوند کړي) اوجوړول دوړو پلونواود دريابونودپلونو، (نوداکوم څيزونه چه ورانده ذکرشو.دجزيه وغيره مصارف دا دي. او ورکولې به شي قاضيانود مسلمانانوته اوعاملانود دوی (مسلمانانو) ته اوعالمانوته د دې (جزيه وغيره) نه په هغه مقدارچه کافي کيږي د دوی دپاره او ورکولې به شي ددې (مالونو) نه خرچه د فوځيانواود هغوی د اولاد ،

**دليله** څکه چه دا (کوم مال چه مونږ ته راکوي) مال د بيت المال دې.څکه چه دا (مال ماخوذه دې د بنوتغلب نه) رسيدلې دې مسلمانانوته بغيرد جنګ نه،اودا (بيت المال) تيارشوې دې دپاره د مصالحود مسلمانانو،اودا کسان (چه قاضي،عالمان وغيره دي) کارکونکي دي ددوی (مسلمانانو) اود خرچه د اولاد په پلارانوباندې وي.نوکه چيرته ورنکړې شي دوی (قاضيانووغيره ته) مال چه کافي وي د دوی دپاره، نو دوی به محتاج وي مزدورۍ کولو ته، (اوچه مزدوري کوي) نونه به اوزګاريږي جنګ کولوته.

## دباغيانوپه يوه علاقه باندې غلبه کول

(وَإِذَا تَغَلَّبَ قَوْمٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ عَلَى بَلَدٍ وَخَرَجُوا مِنْ طَاعَةِ الْإِمَامِ دَعَاهُمْ إِلَى الْعَوْدِ إِلَى الْجَمَاعَةِ وَكَشَفَ عَنْ شُبْهَتِهِمْ)،

**ترجمه و تشريح** اوکله چه غالب شي يوقوم دمسلمانانونه په يوښارباندې،اواوځي دتابعدارۍ دامام نه،نو(امام به) راوبلې دوی واپس کيدو ته ډلې دمسلمانانوته(يعنی دوی ته به دا دعوت ورکړې شي.چه تاسو مخالفت اوبغاوت مکوئ.اود نورومسلمانانوسره متفق شئ) اولرې به کړې شي شبهات ددوی(د کومو د وجې چه دوی دامام نه بغاوت کړې وي)

**دلائله** ① امام ته پکاردی.چه دباغيانوسره سمدستي جنګ نه شروع کوي.بلکه دوی ته دعوت ورکړي.چه تاسو دخپل مخالفت نه منع شي.څکه چه حضرت علي رضي الله عنه هم داسې کړي وو.دحضرت

عثمان رضي الله عنه د قصاص په باره كښې دحضرت علي رضي الله عنه اوحضرت اميرمعاويه رضي الله عنه په مينځ كښې اختلاف پيدا شو.حضرت اميرمعاويه په هغه وخت كښې دشام گورنروو.په نتيجه كښې جنگ صفين اوشو.په جنگ كښې د اميرمعاويه رضي الله عنه فوځ شكست ته نزدې شو.نوقرآن پاك ئې اوچت كړلو.چه فيصله به په دې كيږي.نوحضرت علي رضي الله عنه اوحضرت اميرمعاويه دخپل طرف نه يويو كس حكم مقرر كړلو.دحضرت علي رضي الله عنه دطرفه ابوموسى اشعري رضي الله عنه اودحضرت اميرمعاويه دطرفه عمروبن العاص رضي الله عنه مقررشول.په دې باندې دحضرت علي رضي الله عنه د فوځ نه يوه ډله جدا شوه.چه تاسو په كتاب الله فيصله اونكړه.بلكه حكمين مومقرركړل.حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي.ماحضرت علي رضي الله عنه ته اووئيل.چه كله ددوى غصه سړه شي.نوتاسو ما دوى ته اوليږه.چه زه دوى سره خبرې اوكړم.كيدې شي.دوى دخپل مخالفت نه راوګرځي.نوحضرت علي رضي الله عنه راته اووئيل.زه ويريږم.هسې نه چه تاسو ته څه نقصان اورسوى.ما ورته اووئيل.د فكرخبره نه ده.الله به خيركړي.دوى فرمائي.چه زه ورغلم.كله چه دوى زه اوليدم.نو دوى ووئيل.تاسو څه دپاره تشريف راوړې دې.ما ورته اووئيل.زه دنبي ﷺ دصحابه كرامو رضي الله عنهم اوحضرت علي رضي الله عنه د طرفه چه دنبي ﷺ د تره څوئې اوځوم دې.راغلې يم.ستاسونه دا تپوس كول غوارم.چه آخرتاسو په حضرت علي رضي الله عنه كښې داسې كوم عيب اوليدلو.چه دهغې د وجې تاسو دهغه مخالف شوئ.تاسو ماته هغه بيان كړئ.كيدې شي.چه تاسو مطمئن كړم.نوهغوى اووئيل.هغه درې خبرې دى .يوه دا چه علي رضي الله عنه دالله تعالى په دين كښې ابوموسى اشعري رضي الله عنه حكم مقرر كړل.حالانكه الله تعالى فرمائيلى دى.﴿اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ﴾ دويمه خبره دا ده.چه حضرت علي رضي الله عنه داميرمعاويه رضي الله عنه سره جنگ اوكړلو.اوپه هغوى باندې ئې غلبه هم حاصله كړه.خو نه ئې د هغوى مالونه حاصل كړل.اونه ئې دهغوى ښځې وينځې جورې كړې.اونه ئې ماشومان غلامان كړل.اوس خبره دا ده.كه دوى كافران وو.نودكافرانومالونه مال غنيمت وى.اوښځې اوبچي ئې هم وينځې اوغلامان جوړولى شي.اوكه دوى كافران نه وى.مسلمانان وى.نودمسلمان سره جنگ كول حرام دى.بيا ئې ورسره جنگ ولې كولو.دريمه خبره دا ده.چه علي رضي الله عنه په حكم نامه كښې دخپل نوم نه د اميرلفظ كټ كړلو.اوس كه دې اميرنه وى.معاويه رضي الله عنه به امير وى.حضرت ابن عباس رضي الله عنه فرمائي.چه ماورته اووئيل.كه زه كتاب الله اوسنت رسول الله ﷺ نه تاسو ته ددې اعتراضاتو جوابونه دركړم .نوآيا تاسويه دخپلې خبرې نه منع شئ.اومخالفت به پريږدئ.نوهغوى اووئيل.په الله قسم مونږ به مخالفت پريږدو.ماورته اووئيل.الله تعالى فرمائيلى دى.﴿يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ۭ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَــزَاۗءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ مِّنْكُمْ هَدْيًۢا بٰلِــغَ الْكَعْبَةِ﴾ يعنى داحرام په حالت كښې تاسو ښكارمه كوئ.اوچه كوم كس ښكار اوكړلو. نو دهغې ښكارد قيمت مقرركولودپاره الله تعالى په مسلمانانو كښې په دوو عادلانوباندې دهغې ذمه وارى اچولې ده.حضرت ابن عباس رضي الله عنه دهغوى د دويم اعتراض جواب دا وركړلو.چه په جنگ جمل كښې چه د حضرت علي رضي الله عنه اوحضرت عائشې رضى الله عنها په مينځ كښې قتال شوې وو.كه چيرته په هغې كښې حضرت عائشه رضى الله عنها گرفتاره شوې وه.نوآيا هغه وينځه جوړول به جائز وو.حالانكه هغه خود مسلمانانو مورده.نوكه تاسو دا جائز گنړئ.بيا تاسو مسلمانان نه ئې.نولكه څنګه چه په جنك جمل كښې دغه شان نشوكيدې.دغه شان به په دې موقع جنك صفين كښې هم نشى كيدې. دخوارجود دريم اعتراض جواب حضرت ابن عباس رضي الله عنه دا وركړلو.چه دصلح حديبيه په موقع نبي ﷺ په معاهده كښې دخپل نوم نه د رسول لفظ لرې كړې وو.حالانكه ددې لفظ په لرې كولو نبي ﷺ دپيغمبرئ نه نه وو وتلې.نودغه شان حضرت علي رضي الله عنه هم د خلافت نه نه اوځى.چه كله ئې دا مسكت جوابونه واوريدل.نوخوارج چه د هغوى شمارشپږ زره وو.په

هغوی کښې دوه زره دحضرت علی رضی الله عنه اطاعت ته راواوړيدل.اوځلور زره په خپل ضد قائم پاتې شو. او مقتول شول.ددې واقعه نه ثابته شوه.چه د باغيانو سره جنګ کول جائز دی. (۱)

۞ اوبله دا آسانه طريقه په دواړو طريقو کښې، (چه دباغيانود شردفع کول مقصود دی .نوددوی د شردفع کولو دپاره دوه طريقې دی.يوه دا چه دوی ته دعوت ورکړې شی.اوددوی شبهات لرې کړې شی.اودوی واپس دامام په اطاعت کښې داخل شی.اودويمه طريقه دا ده.چه دوی سره جنګ اوکړې شی .اوقتل کړې شی.خويه دې دواړو طريقوکښې د دعوت طريقه اسانه ده.ځکه چه په دې کښې جنګ نه حفاظت دی)) اوکيدې شی چه شردفع شی په دې (دعوت باندې) نوشروع به کولې شی ددې (دعوت) نه، (که په دعوت اونشوه.نوبيا به ورسره جنګ کولې شی)

**باغيانوسره دجنګ شروع کولوممانعت**

| (وَلَا يَبْدَأُ بِالْقِتَالِ حَتَّى يَبْدَءُوهُ، فَإِنْ بَدَءُوا قَاتَلَهُمْ حَتَّى يُفَارِقَ جَمَاعَتَهُمْ) |
|---|

**ترجمه و تشريح** ﴿ اوشروع به نه کوی(امام) په جنګ کولو(باغيانوسره) تردې چه شروع اوکړی هغوی(باغيان) که هغوی شروع اوکړه په دې(جنګ) نوجنګ به کوی هغوی سره تردې چه ماته شی جمع ددوی. (اوتختی)

**دليله** ﴿ دليل دا دې.چه حکم مرتب کيږی (دجواز قتال باغيانوسره) په دليل(دقتال) باندې ،اوهغه چه جمع کيدل دی.اومنع کيدل دی(يعنی کله چه دوی راجمع شی.نوددوی قوت پيدا شو.اودغه قوت به په جنګ باندې ختميږی) اودا(ترتب دحکم په دليل باندې.ځکه کولې شی) چه شان دا دې.که چيرته انتظارکوی امام د حقيقی جنګ د دوی(چه کله دوی حمله اوکړی.نوبيا به ورسره ګوري) نو ډيرکرته داسې وی.چه ممکن نه وی ده(امام) لره دفع کول (ددوی دحملې ،ځکه چه دوی حمله اوکړی.اوامام ورته د وړاندې نه تياري نه وی کړې.يا اسلامی لښکرپه غفلت کښې وی.نوبيا به څه دوی دباغيانو مقابله اوکړی) نومرتب کولې به شی حکم (دجواز قتال) په دليل باندې،دوجې د ضرورت د دفع کولو شر د دوی. (يعنی باغيانوسره د جنګ شروع کول ځکه جائز دی.چه ددوی دطرفه د شر ويره ده)

**دباغيانومددګارجماعت سره څه عمل ښکاردې ؟**

| (وَإِنْ كَانَتْ لَهُمْ فِئَةٌ أُجْهِزَ عَلَى جَرِيحِهِمْ وَاتُّبِعَ مُوَلِّيهِمْ) |
|---|

**حل اللغة** ﴿ ① **فئة**:ډله ② **اجهز**:تلواره کوی ③ **الاندفاع**:دفع کول

**ترجمه و تشريح** ﴿ که چيرته وی ددوی(باغيانو) دپاره ډله (چه ددوی مدد کوی) نوتلواردقتل به اوکړې شی دزخمی ددوی (يعنی کوم کس چه په دوی کښې زخمی شوی وی.هغه به زرقتلولې شی) اومنده به وهلې شی په تختيدونکی ددوی(يعنی کوم کس چه په دوی کښې تختی.نوهغه به رالاندې کولې شی

**دليله** ﴿ دپاره د دفع کولود شرد دوی(ډلې) چه يوځائې نشی (زخمی اوتختيدونکې) د دوی (باغيانو سره،

| وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ فِئَةٌ لَمْ يُجْهَزْ عَلَى جَرِيحِهِمْ وَلَمْ يُتْبَعْ مُوَلِّيهِمْ) |
|---|

اوکه چيرته نه وی ددوی(باغيانو) ډله (مدد کونکی) نو نه به شی قتلولې زخمی ددوی اونه به شی رالاندې کولې تختيدونکې ددوی.

---

۱) اخرجه النسائی فی السنن الکبری (۵\۱۶۵) رقم ۸۵۷۵-

**دلیله** دوجې د دفع کیدو د شربغیرددې (قتلولواوتختولونه)

(وَلَاتُسْبیٰ لَهُمْ ذُرِّيَّةٌ وَلَا يُقْسَمُ لَهُمْ مَالٌ)

**ترجمه و تشریح** اونه به شي قید کولې ماشومان د دوی اونه به شي تقسیم کولې (په حیثیت دمال غنیمت) مال د دوی

**دلائله** ① جمل په عربي: کښې اوښ ته وائی.چونکه په دې جنګ کښې حضرت عائشه ﷺ په اوښ باندې سوره وه.ځکه ورته جنګ جمل وائی.ددې جنګ شان ورود داسې دې.چه د حضرت عثمان ﷺ قاتلین حضرت عثمان ﷺ یوکم پنځوس ورځې محاصره کړې وو.اوبیا ئې ډیرپه ظالمانه مرګ سره قتل کړلو.دحضرت عثمان ﷺ د شهادت نه پس حضرت علي ﷺ ته خلافت ملاؤ شو.دبدقسمتئ نه دحضرت عثمان ﷺ په قتل کښې چه کوم کسان ملوث وو.هغوی دحضرت علي ﷺ سره بیعت کولوته وړاندې شو.خلقوددې نه دا اندازه واخستله.چه حضرت علي ﷺ دعثمان ﷺ د قاتلینوسره په صلاح وو.صحابه کرامو ﷺ دحضرت علي ﷺ نه مطالبه شروع کړله.چه تاسود حضرت عثمان قاتلینونه قصاص واخلئ:خوچونکه یو خودحضرت عثمان قاتلین ښکاره معلوم نه وو.اوبله دا چه هغوی ته دومره قوت اوطاقت حاصل شوې وو.چه دخپل خلافت په ابتدائی ورځو کښې دحضرت علي ﷺ په وس اوقدرت کښې دا خبره نه وه.چه دهغوی نه قصاص واخلي.ددې وجې هغوی به دا وئیل.چه زه به ضرور د حضرت عثمان ﷺ قصاص اخلم.خیرپه دې دوران کښې څه کسان حضرت عائشې ﷺ ته لاړل.دا په دغه وخت کښې په مکه معظمه کښې وه.اوهغې ته ئې اووئیل.چه ستاسوپه سرکردګئ کښې چه د حضرت عثمان ﷺ د قصاص مطالبه اوشي.نوکیدې شي.په دې باندې عمل اوشي.اوبل حضرت عائشې ﷺ ته دا خبره هم په غوږوکښې واچولې شوه.چه حضرت علي ﷺ دحضرت عثمان په قتل کښې صلاح کار وو.ددې وجې حضرت عائشه ﷺ په اوښ باندې سوره شوه .بل طرف ته حضرت علي ﷺ ته هم دحضرت عائشې ﷺ د لښکرعلم اوشو.نوهغوی هم دلښکر سره راروان شول.کله چه دواړه لښکرې یوځائې ته اورسیدې. نو حضرت علي ﷺ حضرت عائشې ﷺ ته دحضرت عثمان ﷺ دقتل نه خپل براءت ښکاره کړلو.په دې باندې حضرت عائشه ﷺ اودهغې لښکرمطمئن شول.خودحضرت علي ﷺ په لښکرکښې چه دحضرت عثمان ﷺ کوم قاتلان موجود وو.هغوی سره ویره شوه.که چیرته د دوی دواړو صلح وشوه.نوبیا زمونږ خیرنشته.نود شپې شپې څه کسانود حضرت عائشې ﷺ په لښکر حمله اوکړله.اوڅه کسانودحضرت علي ﷺ په لښکر.د دواړو لښکرو دا ګمان اوکړلو .چه مونږ سره دهوکه اوکړې شوه.اودغه شان په غلط فهمئ کښې ډیربل په قتلولوکښې لګیا شول.دې ته د جنګ جمل واقعه وائی.په دې کښې حضرت علي ﷺ امام برحق وو.ددې وجې چه د دوی کوم هدایات دی. هغې ته شرعي حیثیت حاصل دې. ( [1] )

② اوبله دا چه دوی(باغیان) مسلمانان دی.اواسلام حفاظت ورکوی نفس اومال ته، (نودمسلمان نفس اومال ته به تعرض نشي کولې.لکه نبی ﷺ چه فرمائیلی دی.چا چه ایمان راوړلو.نوده زما نه خپل مال او جان محفوظ کړلو) اونښته څه باك چه جنګ اوکړې شي دوی(باغیانو) سره هم دهغوی په وسله باندې(چه وړاندې ترې اخستې شوې وی) که محتاج شول مسلمانان دې (وسله دباغیانو) ته،

ولاباس بان يقاتلوا بسلاحهم ان احتاج المسلمون اليه

---

۱) اخرجه الحاكم ف المستدرك (۸٦\١٢)۔

**ترجمه و تشريح** ﴾ اوځه باك نشته چې د باغيانو سره په وسله سره اوجنګيږي كه مسلمانان دې ته محتاج شو.

**دليله** ﴾ ځومره چې كيدې شي چې جنګ اونشي اوكه د جنګ نوبت راشي نو چې وسله استعمال نشي خو كه بغير د وسلې داستعمال نه كار نه كيږي نو بيا جائز ده چې د باغيانو سره په وسله سره جنګ اوكړې شي چې د دوى د شر نه اسلامي رياست محفوظ شي.

(وَيَحْبِسُ الْإِمَامُ أَمْوَالَهُمْ فَلَا يَرُدُّهَا عَلَيْهِمْ وَلَا يُقَسِّمُهَا حَتَّى يَتُوبُوا فَيَرُدَّهَا عَلَيْهِمْ)

**ترجمه** ﴾ اوبندبه كړي امام مالونه ددوى(باغيانو) نو نه به نې واپس كوى دوى(باغيانو) ته اونه به نې تقيسموى (په مينځ دمسلمانانوكښې) تردې چه توبه اوباسى(دبغاوت نه.چه توبه اوباسى) نوواپس به نې كړى دوى(باغيانو) ته،

**دليل عدم القسمة** ﴾ هرچه نه تقيسمول دى. (چه دمال غنيمت پشان به نې نه تقسيموى) ځكه چې دا د مسلمانانو مال دې نو په دې سره د هغوى د اجازت نه بغير فائده اخستل جائز نه دى

**دليل جواز الحبس** ﴾ اوهرچه بندول دى.نودپاره د دفع كولو د شر د دوى (باغيانو) چه ددوى قوت به ختم شي. (يعنى چه وسله ترې واخستې شي.نودوى به مسلمانانوته ضرر نشى رسولې.اوچه وسله ورسره وى.نويه دوى به حمله اوكړى) نوددې وجې (چه د دوى قوت ختم شي. او دوى د شرنه مسلمانان محفوظ شي)

**دليل رد الاموال** ﴾ اوهرچه واپس كول دى پس د توبې نه(يعنى چه باغيان توبه اوباسى.نوددوى مالونه به دوى ته واپس كولى شي) دوجې د ختميدو د ضرورت نه، (ځكه چه ددوى نه خووسله او اسونه په دې مقصد اخستې شوى وو.چه په دې باندې مسلمانانوته ضرر اونه رسوى .خوچه دوى توبه ويستله.نود ضرر ويره ختمه شوه.نوضرورت هم ختم شو)

**دباغيانوداخستى عشراوخراج حكم**

وَمَا جَبَاهُ أَهْلُ الْبَغْيِ مِنَ الْبِلَادِ الَّتِي غَلَبُوا عَلَيْهَا مِنَ الْخَرَاجِ وَالْعُشْرِ لَمْ يَأْخُذْهُ الْإِمَامُ ثَانِيًا

**حل اللغة** ﴾ ① **الجباية**:اخستل

اوهغه چه واخلي اخلى باغيان د(اوسيدونكود) ښارونوهغه نه چه غلبه كړى وى دوى په هغې(ښارونو) خراج او عشر،نونه به نې اخلى امام (دمسلمانانودهغوى نه) دوباره،

**دليله** ﴾ ځكه چه اختيارد اخستلو(دعشراوخراج) ده (امام) ته دې. په وجه د حفاظت، (چه امام د دوى حفاظت كوى) او(په موجوده صورت كښې چه باغيانوددوى نه خراج اوعشر واخستلو) حفاظت نې اونكړلو د هغوى، (نوځكه به ترې دوباره خراج اوعشرنه اخلى.بيا)

فَإِنْ كَانُوا صَرَفُوهُ فِي حَقِّهِ أَجْزَأَ مَنْ أُخِذَ مِنْهُ

**ترجمه** ﴾ كه چيرته هغوى(باغيانو) خرچ كړلو(دغه خراج اوعشركوم چه نې دمسلمانانونه اخستى وى) په ځپل مصرف كښې،نوجائز شو(دغه خراج او عشر) دهغه چا دپاره چه اخستې شوې وى د هغه نه،دوجې د رسيدو دحق نه ځپل مستحق ته.

**دليله** ﴾ (ځكه كه د مسلمانانو امام ترې اخستې وو.نوهغه به هم ځپلو مستحقينوته وركول.اوباغيانوهم وركړل.نوځيزځپل مستحق ته اورسيدلو.البته په واسطه كښې فرق راغلو)

(وَإِنْ لَمْ يَكُونُوا صَرَفُوهُ فِي حَقِّهِ فَعَلَى أَهْلِهِ فِيمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللهِ تَعَالَى أَنْ يُعِيدُوا ذَلِكَ)؛

**ترجمه و تشریح>** اوکه نه وو دوی(باغیان چه) خرچ کړي وو (دغه خراج اوعشر) په مصرف خپل کښې، (بلکه د عشراوخراج چه کوم مصارف دی.دهغې نه علاوه په خپلونورو مقاصدو کښې ئې استعمال کړل) نوپه ورکونکی د هغې. (عشراوخراج.یعنې چه دچا نه باغیانوعشراوخراج اخستې وی.نوپه هغوی باندې لازمه ده) په مینځ دهغه اوالله کښې.چه دوباره ورکړي دغه (عشر یا خراج.خراج اګرچه دکافرپه زمکه کښې وی.خوچه خراجی زمکه دمسلمان په ملکیت کښې راشی.نودې به هم دهغې خراج ورکوی.نوځکه به مسلمان هم خراج دوباره ورکوی.چه غاړه ئې خلاصه شی.اوکه دکافرنه ئې خراج اخستې وی.نوچونکه هغه خودثواب په نیت باندې خراج نه ورکوی.بلکه د هغه په حق کښې خو دا یودنیاوی ټیکس دې.چه دخپل جان اومال دحفاظت په بدله کښې ئې مسلمان بادشاه ته ورکوی)

**دلیله>** ځکه چه اونه رسیدلو(دغه عشر اوخراج) خپل مستحق ته، (نودا داسې شوه.لکه چه یوکس دزکاة پیسې دخپل مال نه جدا کړي.اوهغه ئې لا فقیرانوته نه وی ورکړي.چه ضائع شی.نوده باندې دوباره زکاة ورکول واجب دی.ځکه چه اولنې پیسې خپلو مستحقینوته اونه رسیدلې.دغه شان دلته به هم دوی دوباره عشراوخراج ورکوی)

**الاعادة في الخراج>** صاحب دهدایه رحمه الله فرمائیلی دی عالمانو رحمهم الله دوباره ورکول په دوی (مسلمانانو ماخوذمنهم الخراج والعشر) باندې په خراج کښې دی (دیانة) ځکه چه دوی (باغیانو) سره جنګیدونکی دی.نوشول (باغیان) مصارف د خراج.اګرچه وی دوی(باغیان) مالداران، (ځکه چه باغیان اګرچه باغیان دی .خواسلام نه خوخارج شوی نه دی.اودخراج مصرف مسلمانان دی.نوځکه د هغه مسلمانانو خراج ادا شو.دچا نه چه باغیانوخراج اخستې وی.اګرچه چاته دغه خراج ملاؤ شوې وی.هغوی مالداران وی.ځکه چه د خراج په مصرف کښې فقرشرط نه دې)

**الاعادة في العشر>** اوپه عشرکښې(چه باغیانودمسلمانانونه عشراخستې وی) که وی (باغیان) فقیران نوهم دغه شان حکم دې. (یعنې چه دچا نه عشراخستې شوی وی.په هغوی باندې دیانة دوباره ورکول نشته) ځکه چه دا (عشر)حق د فقیرانو دې. (اوباغیان هم فقیران اومسلمانان دی. اګرچه نافرمان دی. نوځکه ددوی عشرادا شو)

## كِتَابُ الْحَضَرِ وَالْإِبَاحَةِ

**ترجمه>** (دا) کتاب د ناروا او رواو (د احکامو په بیان کښې) دې.

**تشریح>** صاحب دقدوری رحمه الله د دې نه وړاندې کتاب السیر بیان کړو په هغې کښې د مال غنیمت احکام وو.اوکوم څیزونه چې په مال غنیمت کښې حاصل شی په هغې کښې د بعضو استعمال جائز دې او د بعضې ناجائز د دې وجې ئې وریسې کتاب الحضر والاباحة ذکر کړو.

**د سړو او ښځو دپاره د ریښمو اغوستلو حکم**

| |
|---|
| لَا يَحِلُّ لِلرِّجَالِ لُبْسُ الْحَرِيرِ چه سړو دپاره ریښم اغوستل حلال نه دی |

**تشریح>** مسئله ښکاره ده اشکال په کښې نشته.

**دلیله>** ځکه چه نبی کریم ﷺ د ریښمو او دیباج (خالص ریښم) اغوستلو نه منع فرمائیلې ده او وې

فرمانيل إِنَّمَا يَلْبَسُهُ مَنْ لَا خَلَاقَ لَهُ فِي الْآخِرَةِ ()چه ،، دا هغه کس اغوندی.د چا چه آخرت کښې هيڅ حصه نه وی،،

| |
|---|
| وَيَحِلُّ لِلنِّسَاءِ ښځو دپاره حلال دی |

**تشریح>** مسئله ښکاره ده اشکال په کښې نشته.

**دلیله>** د حضرت علی رضی الله عنه نه روايت دې أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ خَرَجَ وَبِإِحْدَى يَدَيْهِ حَرِيرٌ وَبِالْأُخْرَى ذَهَبٌ وَقَالَ: هَذَانِ مُحَرَّمَانِ عَلَى ذُكُورِ أُمَّتِي حَلَالٌ لِإِنَاثِهِمْ ()،، چه نبی کريم ﷺ بهر ته تشريف راوړو.او ددوی ﷺ په يو لاس کښې ريښم او په دويم لاس کښې سره زر وو او وې فرمانيل.چه دا دواړه د امت په سړو باندې حرام دی.ددوی ښځو دپاره حلال دی،

## د ريښمو په تکيه او په دې باندې د اوده کيدو حکم

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِتَوَسُّدِهِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ .او هيڅ باك نشته.د ريښمو تکيه لګولو کښې، د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز. |

**تشریح>** د امام صاحب رحمه الله په نيز د ريښمو په تکيه لګولو کښې هيڅ باك نشته.

**دلیله>** ① د حضرت عبدالله بن عباس رضی الله عنهما په تولاتی به د ريښمو تکيه پرته وه نوهسې به نه وه پرته بلکه تکيه به نې ورته لګوله.

| |
|---|
| وَقَالَا: يُكْرَهُ تَوَسُّدُهُ او صاحبين رحمهما الله فرمانی.مکروه دی تکيه لګول دې ته |

**مسلك الصاحبين>** دصاحبينو په نيز د ريښمو بالخ ته تکيه لګول مکروه دی

**دلائلهما>** ① د صاحبينو رحمهما الله دليل د ذکر شوو احاديثو عموم دې.(کماهوظاهروفيه بحث في النتائج)

② او په دې وجه هم (مکروه دی).چه دا د عجمو باشاهانو او متکبرينو طريقه ده.او ددوی سره تشبيه حرام ده.او د حضرت عمرفاروق رضی الله عنه فرمان دې.چه د عجميانو طريقه اختيارولونه خپل خانونه بچ کړئ. (٣)

## د صاحبينو رحمهما الله په نيز حالت د جنګ مستثنی دې

وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ عِنْدَهُمَا او په جنګ کښې د صاحبينو رحمهما الله په نيز په

---

١ – قال الزيلعي رحمه الله هما حديثان فالأول أخرجه الجماعة عن حذيفة رضی الله عنه الذى تقدم تخريجه عن قريب وأما الثاني فاخرجه البخاري في الجمعة باب ٧ ومسلم في ١ للباس رقم ٦ وأبوداود في الصلاة باب ٢١٣ والنسائي في الجمعة باب ١١ ومالك في اللباس رقم ١٨ )من حديث عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ان عمربن الخطاب رضی الله عنه رأى حلة عند باب المسجد فقال يا رسول الله لواشتريت هذه فلبستها يوم الجمعة وللوفد إذا قدموا عليك فقال رسول الله ﷺ إنما يلبس الحرير في الدنيا من لا خلاق له في الآخرة ثم جاء رسول الله ﷺ منها حلل فاعطى عمر منها حلة فقال عمر رضی الله عنه يا رسول الله كسوتنيها وقد قلت ما قلت؟ فقال رسول الله ﷺ إن لم أكسكها لتلبسها فكساها عمر أخا له مشركا (نصب: ٤\٥٢١)

٢ – اخرجه البخاري في ا لجنائزباب ٢ ومسلم اللباس رقم ٢ والترمذى في الأدب باب ٤٥)

٣) اخرجه ابن حبان في صحيحه في النوع التاسع من القسم الرابع من حديث شعبة عن قتادة رضی الله عنه (نصب: ٤\٥٢٥)

ريښمو او دیباج (چه تنسته او بوده ئې دواړه د ريښمو وی) اغوستو کښې هيڅ باك نشته

**حل اللغة** ① **الديباج**: غټ ريښم ② **الحرب**: جنګ

**تشريح** د صاحبينو رحمهما الله په نيز په جنګ کښې د ريښمو په اغوستو کښې هيڅ باك نشته.

**دلائله** ① امام شعبی روایت کړې دې أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَخَّصَ فِي لُبْسِ الْحَرِيرِ وَالدِّيبَاجِ فِي الْحَرْبِ(١) چه نبی کریم ﷺ اجازت ورکړې دې په جنګ کښې د ريښمو او ديباج اغوستلو.

② او د دې وجې چه په دې کښې ضرورت دې ځکه چه خالص ريښم زيات مدد کونکی دی او زيات هيبت اچونکی دی د خپل چمك په وجه د دښمن په سترګو کښې.

**د امام صاحب رحمه الله نقطه نظر**

وَيُكْرَهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز مکروه دې.

**تشريح** امام ابوحنيفه رحمه الله خالص ريښم اغوستل په جنګ کښې هم مکروه ګرځوی.

**دليله** ځکه چه ددې په ممانعت کښې کوم احاديث وړاندې ذکر شوی دی.هغې کښې د جنګ او غير جنګ تفصيل نشته.

**تنبيه** کله چه فوجيان د جنګ تياری کوی.نو په ريښمو اغوستلو کښې هيڅ باك نشته.اګرچه اوس دښمن حاضر شوې نه وی.خو په دې کښې به مونځ نه کوی.البته که د دښمن يره وی.نو په دې کښې مونځ هم کولې شی.

**که پلنوالې د ريښمو او اوږدوالې د ريښمو نه وی نوڅه حکم دې ؟**

وَلَا بَأْسَ بِلُبْسِ الْمُلْحَمِ او نشته هيڅ باك په اغوستلو د داسې جامې إِذَا كَانَ سَدَاهُ إِبْرَيْسَمًا چې د هغې اوږدوالې د ريښمو وی وَلُحْمَتُهُ قُطْنًا أَوْ خَزًّا او پلنوالې د مالوچو يا وړيئ وی

**حل اللغة** ① **خز**: ديو دريابی ځناور د ايختو (وړئ) نه جوړه شوې کپړه، ② **سدی** درسداء نه د اسم مفعول صيغه ده.په معنی د تانا اودل،سدی: بانا (تنسته، ملاست تارونه) ③ **لحمة**: تانا (بوده، ولاړ تارونه) ④ **القطن**: مالوچ]

**تشريح** مسئله واضح ده.

**دليله** ځکه چه صحابوؓ به خز (د وړئ او ريښمو جوړه شوې کپړه) اغوستله (٢)

**سرو دپاره په سرو زرو سره ښائست جوړول جائز نه دې**

وَلَا يَجُوزُ لِلرَّجُلِ التَّحَلِّي بِالذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ او سړو دپاره په سرو زرو سره ښائست کول جائز نه دی او نه په سپينو زرو سره

**حل اللغة** ① **التحلي**: ښائست ② **الخاتم**: ګوتمه ③ **السيف**: توره

**تشريح** د سړو دپاره د سرو زرو او سپينو زرو زيور جائز نه دی.د هغه احاديثو په وجه کوم چه تير شوی دی.او په دغه رواياتو کښې اګرچه صرف د سرو زرو ذکردې.خو سپين زر هم ددې د جنس ځنې

---

١ – من حديث حكيم بن عمير رضي الله عنه اخرجه ابن عدى في الكامل في ضعفاء الرجال (٥\٢٥٠)
٢ – قال الزيلعي رحمه الله فيه الآثار منها نقل عمل عمران بن الحصين وانس بن مالك وغيرهما رضي الله عنهم (نصب:٤\٢٢٧)

دي.په دې وجه به د سپينو زرو هم دا حکم وي.

**دليله**› وړاندې حديث تير شوي دې چې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی سره او ريښم دواړه زما د امت په نارينو باندې حرام کړې شوی دی

| |
|---|
| ولاباس بِالْخَاتَمِ وَالْمِنْطَقَةِ وَحِلْيَةِ السَّيْفِ مِنَ الْفِضَّةِ او نشته څه باك په ګوتمه او ملابند او د تورې زيور سره، سپينو زرو سره |

**تشريح**› البته د سپينو زرو ګتمه او د سپينو زرو ملا بند (کمربندی) او د سپينو زرو هغه زيور کوم چه په توره باندې اوخيژولی شی.نو جائز دی.

**دليله**› د سپينو زرو ګتمه وغيره څکه جائز ده.چه ددې په جواز کښې ډير آثار رانقل دی.نبی کريم ﷺ هم د سپينو زرو ګتمه جوړه کړې وه.او د ګتمې او ملابند او د تورې په باره کښې روايات ذکر دی. اوګورئ: [نصب الرايه ص: ۲۳۲، ج۴]

| |
|---|
| ويجوز للنساء التحلی بالذهب والفضة او جائز دی د ښځو دپاره کالی اوچول د سروزرو او د سپينو زرو |

**تشريح**› نفس مسئله آسانه ده د تشريح ضرورت نشته.

**دليله**› دليل وړاندې تير شوي دې چې نبی کريم ﷺ فرمائيلی دی سره او ريښم دواړه زما د امت په نارينو باندې حرام کړې شوی دی

**الاستدلال**› په حديث کښې د ذکور قيد نه معلوميږی.چې د زنانو دپاره د سرو او ريښمو استعمال جائز دې

## د ماشومانو دپاره د ريښمو او سرو زرو اچولو حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ أَنْ يَلْبَسَ الصَّبِيُّ الذَّهَبَ وَالْحَرِيرَ او مکروه دی.هلك سره زر، او ريښم واغوندی |

**تشريح**› لکه څنګه چه سره زر او ريښم سړو لره اغوستل حرام دی.دغه شان وړو هلکانو ته اغوستول هم حرام دی.لکه څنګه چه شراب څکل حرام دی.نو څکول هم حرام دی.

**دليله**› لکه څنګه چې د سړو دپاره پخپله سره زر او ريښم استعمالول حرام دی دغه شان ماشومانو ته اغوستول به هم حرام وی.لکه څنګه چې پخپله قبلې طرف ته متيازې کول مکروه تحريمی دی دغه شان ماشوم قبلې طرف ته کينول هم مکروه تحريمی دی.

## د سرو زرو او سپينو زرو په لوښو کښې د خوراك څکاك حکم

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ الْأَكْلُ وَالشُّرْبُ او جائز نه دې خوراك او څکاك وَالِادِّهَانُ وَالتَّطَيُّبُ او تيل لګول،او خوشبو لګول فِي آنِيَةِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ د سرو زرو او سپينو زرو په لوښو کښې لِلرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ د سړو او ښځو دپاره |

**تشريح**› نفس مسئله آسانه ده.

**دلائله**› ① نبی کريم ﷺ د هغه سړی په باره کښې فرمائيلی دی څوك چه څکل کوی.د سرو زرو

اوسپینو زرو په لوخو کښې، چه هغه پخپله خیټه کښې د جهنم اور اچوی (١)

②حضرت ابوهریره رضي الله عنه ته سپینوزرو په لوخی کښې اوبه ورکړې شوې. نو هغوی دا قبول نکړلې او داسې نې اوفرمائیل. نَهَانَاعَنْهُ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ (٢) چه مونږه ددې نه رسول الله ﷺ منع کړی یو .

**دلیل الحرمة في الادهان والتطییب** هرکله چه دا (ممانعت) په څکلو کښې ثابت شو نو هم دغه شان په تیلو لګولو او ددې په مثل کښې (هم ممانعت) دې.څکه چه دا د څکلو په معنی کښې دی.او څکه چه دا د مشرکانو هیئت سره تشبیه ده

**د سیکې ، شیشې ،او د عقیق د لوخو استعمالولو حکم**

وَلَابَأْسَ بِاسْتِعْمَالِ آنِيَةِ الزُّجَاجِ وَالرَّصَاصِ وَالْبَلُّوْرِ وَالْعَقِيْقِ او هیڅ باك نشته.د د کانچ (شیشې) په لوخو کښې او سیکې (سیسې) په لوخو کښې، او د بلور (یو قسم شیشه) او د عقیق (په لوخو کښې)

**حل اللغة** ① **آنية**: لوښې ② **الرصاص**: سیکه ③ **الزجاج**:شیشه ④ **البلور**:د شیشې یو قسم دې ⑤ **عقیق**:دا هم د شیشې یوقسم دې

**تشریح** د دې ذکر شوو ټولو لوخو استعمالول جائز دی.

**دلیله** د دې څیزونو نه په جوړو شوو لوښو کښې خوراك څكاك څكه جائز دې چې د دې په استعمال باندې څوك فخر نه کوی.بلکه که پخواه زمانه کښې پرې فخر کول هم خو نن صبا د غریبانانو کره د شیشې لوښی موجود دی.

**د سپینو زرو لګولې شوي لوخو،ګدۍ،کټ،او کرسۍ استعمالولوحکم**

وَيَجُوزُ الشُّرْبُ فِي الْإِنَاءِ الْمُفَضَّضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله (٣) او جائز دی څکل په داسې لوخو کښې ، چه دهغې په غاړو باندې سپین زر لګولې شوې وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز وَالرُّكُوبُ عَلَى السَّرْجِ الْمُفَضَّضِ او سوریدل په داسې ګدۍ باندې، چه هغې ته سپین زر لګیدلی وی وَالْجُلُوسُ او کیناستل په عَلَى السَّرِيرِ الْمُفَضَّضِ ،.او په داسې کټ باندې، چه هغې کښې سپین زر لګیدلی وی.

**حل اللغة** ① **المفضض**: لګولې شوې، ② **السرج**:ګدۍ ③ **الجلوس**:ناسته ④ **السریر**:کټ

**تشریح** مفضض: په کوم چه سپین زر خیجولې شوې وی.یعنی ددې په غاړو باندې سپین زر لګولی شوی وی. حضرت امام صاحب رحمه الله فرمائی.چه کله خالص د سپینو زرو لوخې نه وی.بلکه لوخې یا د استعمال آله د بل څه څیز ده.او ددې په غاړو باندې سپین زر خیجولې شوې وی.نو ددې استعمال

---

(١) من حدیث أم سلمة رضي الله عنها أخرجه البخاری فی الأشربة با ب٢٨ ومسلم فی اللباس رقم ١ وأبن ماجه فی الأشربة باب ١٧ والدارمی فی الأشربة باب ٢٥ ومالك فی صفة النبی ﷺ رقم ١١)۔

(٢) قال الزیلعی رحمه الله غریب من حدیث أبي هریرة رضي الله عنه وهول الکتب الستة عن حذیفة من روایة عبدالرحمن بن أبي لیلی قال استسقی حذیفة رضي الله عنه فسقاه مجوسی فی إناء من فضة فقال إني سمعت رسول الله ﷺ یقول:لاتلبسوا الحریرولاالدیباج ولا تشربوا فی آنیة الذهب والفضة ولا تأکلوا فی صحافها فإنها لهم فی الدنیا ولکم فی الآخرة (أخرجه البخاری فی الأشربة باب ٢٩ ومسلم فی اللباس رقم ٥ وأبوداود فی ا لأشربة باب ١٧ والترمذی فی الأشربة باب ١٠ والنسائی فی الزینة باب ٨٧ وابن ماجه فی الأشربة باب ١٧) (نصب:٤\٥١٨)

(٣) القول الراجح هو هذا قول أبي حنیفة رحمه الله كذا في خانیة (٤\٣٧٠) کر (٣٦٧) هندیة (٥\٣٣٤) نقلاً عن القول الراجح (٢\٢٩٩)۔

جائز دي.په دې شرط چه د سپينو زرو د ځاني نه پرهيز کوی.يعني که د څکلو لوخي دي.نو د سپينو زرو ځاني ته خوله نه لګوی.بلکه بل ځاني ته خوله لګوی.دغه شان که په ګدئ باندې سپين زر اولګولی شو.نو د سپينو زرو په ځاني باندې نه کيني.په بل ځاني باندې کيني.نو دا جائز ده.دغه شان که په يوه کرسئ باندې سپين زر ځيجولي شوې وی.يا په کټ باندې، نو دواړو صورتونو کښې د سپينو زرو په ځاني باندې نه کيني.نو جائز ده.

**دليله**> امام صاحب رحمه الله فرماتي.چه د توابعو اعتبار نشي کولي.او دلته چه کوم سره زر او سپين زر لګولی شوی دی.دا ټول تابع دی.نو دا به مکروه نه وی.لکه کله چه د چوغي جهالر د ريښمو وی.او هم دغه شان که د ريښمو نه په کپړه کښې نقش ونګار اوکړې شی.نو دا مکروه نه ده.او هم دغه شان که د ګتمې په غمی کښې د سرو زرو ميخ وی.نو دا هم د تابع کيدو په وجه مکروه نه دې.

**مسلک الصاحبين**> دا ذکر شوی ټول صورتونه امام صاحب رحمه الله جائز ګرځولی دی.او امام ابويوسف رحمه الله مکروه ګرځوی.او پاتې شوه مسئله د امام محمد رحمه الله نو په دې کښې دوه قوله دی: ① بعض حضراتو روايت کړې دې.چه دوی د امام صاحب رحمه الله سره دې.او ددې دحلت قائل دې. ② او بعضو حضراتو فرمائيلی دی.چه دوې د امام ابويوسف رحمه الله سره دې.او ددې د کراهت قائل دې.

**دليلهما**> د صاحبينو رحمهما الله دليل دا دې.چه د لوخو د بعضو اجزاو استعمال ګويا دټولو اجزاو استعمال دې.نو لکه څنګه چه د سرو زرو او سپينو زرو د ځاني استعمالول مکروه دی.دا به هم دغه شان مکروه وی.

| وَيُكْرَهُ التَّعْشِيرُ او تعشير (په لسم آيت باندې علامت لګول) وَالنَّقْطُ فِي الْمُصْحَفِ |
|---|

**حل اللغة**> ① **التعشير**: تعشير: په هر لسم آيت باندې نشان لګول، نقطه : نقطې لګول، تجريد: خالی کول

**تشريح**> د قرآن نه علاوه (نور هيڅ) او نه ليکلې شي.مطلب دا دې.چه حديث کښې حکم ورکړې شوې دې.چه قرآن د غير قرآن نه خالی کړئ.په دې وجه آمين هم نشی ليکلې.نو په قران باندې نقطې او اعراب لګول، دغه شان په هر لسم آيات باندې نشان لګول، او لکه مقررول، ټول مکروه دی.

**دليله**> د حضرت ابن مسعود رضي الله عنهما چې چه قرآن د نورو څيزونو نه خالی کړئ (۱) اوتعشير وغيره لګول د تجريد (خالی کولو) منافی دی.او تعشير او نقطې به په آياتونو يادولو کښې مخل وی.او په اعراب يادولو کښې به مخل وی.څکه چه ټول خلق به په ليکلی شوی باندې اعتماد کوی.او يادول به پريږدی.خو مشائخو فرمائيلی دی.

**الفتوى في زماننا**> چه زمونږ په زمانه کښې عجميانو دپاره د اعراب او نقطو لګول ضروری دی.ګنی ددې نه بغير به اونشی وئيلې.نو ددوی په حق کښې د اعراب وغيره کيدل ضروری دی.ګنی هغوی به بالکل قرآن پريږدی.په دې وجه اعراب وغيره خوښ ګڼړی شوی دی.خلاصه دکلام دا چه دا بدعت حسنه دې.

### د مصحفونو ښائسته کولو حکم

| وَلَا بَأْسَ بِتَحْلِيَةِ الْمُصْحَفِ او په قرآن ښائسته کولو کښې هيڅ باك نشته وَنَقْشِ الْمَسْجِدِ وَزَخْرَفَتِهِ بِمَاءِ |
|---|

(۱) اخرجه ابن ابي شيبة في مصنفه قاله الزيلعي رحمه الله (نصب: ۴\۵۷۹)_

| |
|---|
| الذَّهَبِ او د جمات د سرو زرو په اوبو سره نقشدار او ښائسته کول. |

**حل اللغة** ① تحلية: ښائسته کول ② تزيين: مزين کول }

**تشریح** قرآن کریم په زیوراتو سره ښائسته کول جائز دی.لکه څنګه چه جمات د سرو زرو په اوبو سره ښائسته کول جائز دی. خو دا ښائسته کول د جمات په مال سره کول پکار نه دی.بلکه متولی دې پخپل مال سره اوکړي.که د جمات په مال سره ئې اوکړي.نو متولی به ضامن وی.

**دلیله** په موجوده وخت کښې خلقو خپل کورونه په نقش اونګار سره ښائسته کړی دی اود خلقو طبیعتونه داسې جوړ شوی دی چې هغه جمات ته دمانځه دپاره ځی په کوم کښې چې سهولیات زیات وی بله دا هم چې غیرمسلمه خلق د خپلو عبادتخانو په ښائست کښې کوشش کوی.نومونږ لره هم پکار دی چې د هغوی نه روسته نشو.بله دا چې جماتونه اسلامی شعائر دی.نو د دې ښائست پکار دې

## د خصی نه د خدمت اخستلو حکم

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ اسْتِخْدَامُ الْخُصْيَانِ او د خصیانو نه خدمت اخستل مکروه دی |

**حل اللغة** ① خصیان: جمع د حصی، هغه څوك چه هګۍ ترې ویستلې شوې وی

**تشریح** یعنی کوم خلق چه خصیې (هګۍ) اوباسی.او هیجړا او خصیان کیږی.د هغوی نه خدمت اخستل مکروه دی.

**دلیله** ځکه کله چه ددوی نه خدمت اخستلې شی.نو نورو خلقو ته به هم شوق کیږی.چه دا خو د آمدنۍ ذریعه ده.نو هغوی به هم ځان نه هیجړاګان جوړه وی.حالانکه دا حرام دی.ځکه چه دا مثله کول دی.چه ددې نه صراحت سره منع شوې ده.

## د څاروو خصی کول.او خر په اسپې د خیجولو حکم

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِخِصَاءِ الْبَهَائِمِ او د څاروو په خصی کولو کښې، |

**حل اللغة** ① اخصاء: خصی کول

**تشریح** د څاروی خصی کولو باندې څه باك نشته.

**دلیله** د څاروی په خصی کولوکښې دڅاروی هم فائده ده.چه دا ښه سربه کیږی.او چاقیږی.او د انسان فائده هم ده.چه ددې د شر نه محفوظ کیږی.

| |
|---|
| وَإِنْزَاءِ الْحَمِيرِ عَلَى الْخَيْلِ او خر په اسپو باندې اچولو کښې هیڅ باك نشته |

**حل اللغة** ① انزاء الحمير: خرۀ په اسپو اچول

**ترجمه** او خر په اسپې باندې خیجول، ددې دپاره چه خچره پیدا شی.نوجائز دی.

**دلیله** ځکه چه نبی کریمﷺ په خچر باندې سور شوې دې. [1] که دا (خر په اسپه خیجول) حرام وې.نو نبی کریمﷺ به په خچر باندې نه سواریدو.چه ددې ممنوع فعل دروازه کلاو نشی.

---

[1] ) من حدیث براء بن عازب رضي الله عنه اخرجه البخاری فی الجهاد باب ۵۲ ومسلم فی الجهاد رقم ۷۸ والترمذی فی الجهاد باب ۱۵ واحمد فی المسند (۴\۲۸۰)۔

## په هديه او اجازت کښې د غلام، وينځې او د بچي د خبر حکم

وَيَجُوْزُ اَنْ يُقْبَلَ فِي الْهَدِيَّةِ وَالْاِذْنِ قَوْلُ الْعَبْدِ وَالصَّبِيِّ او جائز دې په هديه، او اجازت کښې د غلام او د ماشوم قول،

**حل اللغة** ◄ ① **الهدية:** دالۍ؛ ② **الصبي:** ماشوم

**تشريح** ◄ که ماشوم يا غلام يا وينځه هديه راوړي.چه زما پلار يا زما مالك راليګلې ده.يا دوی په دوکان کښې څه سامان اخستلو دپاره څي.او وائي.چه مونږ ته د اخستلو او خرڅولو اجازت دې.نو ددوی قول به قبلولې شي.

**دليله** ◄ ځکه چه عادت (او رواج) هم دا دې.چه هديه هم ددوی په لاسونو ليګلې شي.او دا ممکن نه ده.چه دوی هر وخت د اجازت ګواهان خان سره تړلي ګرځوی.نو که ددوی قول معتبر نه وی.نو ډيره زياته تنګسيا به لازمه شي.

## په دياناتو او معاملاتو کښې د فاسق د قول حکم

وَيُقْبَلُ فِي الْمُعَامَلَاتِ قَوْلُ الْفَاسِقِ او په معاملاتو کښې به د فاسق قول قبلولې شی وَلَا يُقْبَلُ فِي اخْبَارِ الدِّيَانَاتِ اِلَّا قَوْلُ الْعَدْلِ او په دياناتو په خبرو کښې به نشی قبلولې.مګر د عادل (مسلمان) قول.

**اقسام المعاملات** ◄ زده کړه دا خبره چه معاملات په دريې قسمه دی ① په کومو کښې چه الزام نه وی.لکه مضاربات او د تجارت اجازت، نويه دې قسم کښې صرف عقل کافی دې.عدالت وغيره شرط نه دې.

② په کومو کښې چه خالص الزام وی.لکه هغه حقوق په کومو کښې چه خصومات جاری کيږی.نو په دې قسم کښې د شهادت د ټولو شرطونو کيدل ضروری دی.

③ په کومو کښې چه من وجه الزام وی.او من وجه نه وی.لکه وکيل معزول کول، او په ماذون باندې پابندی يعنی حجر چه په دې کښې هم وکيل باندې الزام دې.چه د معزول کولو نه روستو هغه د اخستلو پخپله ذمه دار دې.او د حجر (بنديز) نه پس د عقد فاسدولو الزام دې.او د الزام وجه دا ده.چه موکل او مولا خالص پخپل حق کښې تصرف کوی.نو په دې اعتبار سره د اذن (اجازت) پشان شو.په دې قسم کښې د امام صاحب رحمه الله په نيز عدد د شهادت يا عدالت ضروری دې.خلاصه د کلام دا چه دلته د معاملاتو نه رومبی قسم معاملات مراد دی.

**وجه قبول قول الفاسق في المعاملات** ◄ دمعاملاتو (يعنی هغه معاملاتو په کومو کښې چه الزام نه وی.ګنی د نورو معاملاتو دا حکم نه دې) واقع کيدل د مختلف قسمه خلقو په منځ کښې کيږی.نو که په دې کښې د عدالت شرط اولګولې شي.نو ډير زيات حرج به لازم شي.په دې وجه دا حکم ورکړې شوې دې.چه د فاسق قول به هم معاملاتو کښې معتبر وی.نو هرکله چه خبره هم داسې ده.نو عادل او فاسق،کافر او مسلمان، غلام او آزاد، سړې او ښځه ټول برابر دی.او د ټولو قول به معتبر وی.

**وجه عدم قبول قول الفاسق في المعاملات** ◄ ديانات دومره زيات نه واقع کيږی. (د دياناتو نه خالص ديانات مراد دی.ضمنی ديانات مراد نه دی.او هغه ديانات مراد نه دی.کوم چه د ملك زوال ته متضمن وی)لکه څومره چه معاملات واقع کيږی.نوکه په دياناتو کښې زيات شرطونه اولګولې شي.نو په دې کښې به هيڅ باك نه وی.نو په دياناتو کښې به صرف د مسلمان عادل قول معتبر وی.د فاسق او کافر به (معتبر) نه وی.ځکه چه فاسق خو پخپله د خپلو دروغو ونيلو په وجه متهم دې.نو په دې خبرکښې هم هغه دروغ ونيلې شي.

## د پردئ ښځې مخ او تلو ته د کتلو حکم

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ أَنْ يَنْظُرَ الرَّجُلُ مِنَ الْأَجْنَبِيَّةِ إِلَّا إِلَى وَجْهِهَا وَكَفَّيْهَا او جائز نه ده.دا چه اوګوري سړې پردئ ښځې طرف ته، خو د هغې مخ او د هغې دواړه تلو ته |

**تشریح>** سړې د څه ضرورت نه بغیر د پردئ ښځې بدن اوګوري.جائز نه ده.علاوه د مخ نه او تلی نه.

**دلائله>** ① د الله تعالی ددې فرمان د وجې ﴿وَلَا يُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ إِلَّا مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ اودوی دې نه ښکاره کوی زینت خپل مګر هغه چې ښکاره وی د دې نه.

**الاستدلال>** سره دوه خبرې معلومې شوې.① خایونه د زینت پټ ساتی:② مخ او تلی ښکاره کول جائز دی.حضرت علی او حضرت ابن عباس ددې آیت په تفسیر کښې فرمائی.چه د ﴿مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ نه مراد رانجه او ګتمه ده. (١) او د مجاز مرسل د څلیریشت علاقو نه یوه علاقه د حالیت او محلیت هم ده.یعنی حال وئیل او محل مراد اخستل، او محل وئیلو نه حال مراد اخستل.نو دلته حال وئیلی شوې دې.او محل مراد اخستې شوې دې.یعنی رانجو سره سترګې او دا په مخ کښې وی. نو د رانجو نه مراد مخ دې.او د ګتمې نه مراد ګوته ده.او دا په تلی کښې وی.نو د ﴿مَا ظَهَرَ مِنْهَا﴾ نه مخ او تلی مراد دی.او دغه شان آیت کښې د زینت نه مراد د زینت خایونه دی.د علاقې د حالیت په وجه، او په خایونو د زینت کښې د مخ او تلی نه علاوه ټول بدن داخل دې.

② د دې دواړو اندامونو ښکاره کولو ته ضرورت دې.ځکه چه ښځو ته کله کله سړو سره په معاملاتو کښې د اخستلو خرڅولو ضرورت راپیښیږی.

**تنبیه>** دا حکم د سلفو (مقدمینو) په زمانه کښې وو.او زمونږ په زمانه کښې به ددې ښځو د مخ کتلو نه منع کولې شی.او د والوالجیه په کتاب الایمان کښې دی.چه دا مکروه دی.او شهوت سره حرام دی.لکه څنګه چه په نادرة الفتاوی کښې دی. [سکب الانهر:۴۶۰،ج۲]

## د پردئ ښځې مخ کتل کله جائز دی؟

| |
|---|
| فَإِنْ كَانَ لَا يَأْمَنُ الشَّهْوَةَ نو که دې د شهوت نه په امن کښې نه وی لَمْ يَنْظُرْ إِلَى وَجْهِهَا إِلَّا لِحَاجَةٍ نو نه به ګوری د ښځې مخ طرف ته، خو د څه حاجت په وجه |

**تشریح>** وړاندې نې چه کوم حکم بیان کړې وو.چه د پردئ ښځې مخ او تلی کتل جائز دی.نو دا هغه وخت جائز دی.کله چه شهوت نه وی.اوکه شهوت وی.نو جائز نه دی.البته که څه ضرورت وی.نو کتلې شی.اګرچه شهوت وی.او ضرورت دا چه مثلاً ښځه باندې ګواهی ورکول وی.یا هغې سره د نکاح اراده وی.یا وینځه ده.چه ددې د اخستلو اراده وی.

**دلیله>** د نبی کریمﷺ ارشاد دې مَنْ نَظَرَ إِلَى مَحَاسِنِ امْرَأَةٍ أَجْنَبِيَّةٍ عَنْ شَهْوَةٍ صُبَّ فِي عَيْنَيْهِ الْآنُكُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ(٢)کوم کس چه اوکتل د یوې پردئ ښځې د ښائست خایونو طرف ته په شهوت سره نو د قیامت په ورځ به د هغه په سترګو کښې سیسه (قلعی) اچولې شی

---

١) أماالرواية عن ابن عباس رضي الله عنهما فأخرجه الطبراني في تفسيره (نصب:٤\٥٩٣)۔

٢) قال الزيلعي رحمه الله غريب والمعروف من إستمع إلى حديث قوم وهم له كارهون أو يفرون منه صب في أذنيه الآنك يوم القيامة أخرجه البخاري في صحيحه في كتاب التعبير (نصب:٤\٥٤٠)

اګرچه احقر شاه فیصل په المراة الصافیه کښې د امام زیلعي رحمه الله نه د حدیث ضعف نقل کړو خو نور صحیح حدیثونه په وعید کښې وارد دي.که په کتلو کښې د شهوت یره (یعني ظن غالب) وي.بیا به هم د حاجت (او ضرورت) نه بغیر نه ګوري.چه د حرام نه بچ شي.امام قدوري رحمه الله فرمائیلي دي.کله چه د شهوت په امن کښې نه وي.نو نه به ګوري.ددې نه دا خبره معلومه شوه.چه که ده ته د شهوت شك وي.بیا هم کتل جائز نه دي.لکه څنګه چه د یقین او غالب ګمان په صورت کښې جائز نه دي.

**حرمة مس الوجه والید**> که شهوت نه وي.نو د ښځې مخ او ددې لاس کتل جائز دي.خو لاس لګول جائز نه دي.اګرچه شهوت هم نه وي.ولې؟ څکه چه ضرورت نشته.او په دې کښې ابتلاء عام نه ده.او په کتلو کښې ضرورت هم شته.او بلوی هم شته.او دلته داسې نص هم موجود دې.چه د لاس لګولو په حرمت باندې دلالت کوي.او حرامونکې نص دا حدیث دې.چه کوم کس داسې ښځې ته لاس اولګولو.چه دې ته لاس لګول شرعاً جائز نه دي (یعنی دا نه دده ښځه ده او نه وینځه ده) نو د قیامت په ورځ به دده په لاس باندې انګار (سروټکه) ایخودې شي.او دا د لاس لګولو حرمت هغه وخت دې.کله چه دا پردئ ښځه ځوانه وي.چه دې طرف ته طبیعت مائل کیږي.خو که دا بوډئ وي.یعنی داسې چیچړه وي.چه دې طرف ته د طبیعت میلان نه کیږي. نو ددې سره مصافحه کولو او ددې لاس سره په لاس لګولو کښې هیڅ باك نشته.څکه چه د فتنې یره نشته.

**حکم مس وجه الصغیرة**> که وړه ماشومه ده.چه دا اوسه پورې لا د شهوت حد ته نه ده رسیدلې.نو دې ته په کتلو او دې ته په لاس اوړلو کښې چونکه د فتنې یره نشته.نو دا ټول جائز دي.علامه شامي په [ردالمحتار ص:۲۳۵،ج۵] باندې په دې باندې بحث کړې دې.

| |
|---|
| وَيَجُوزُ لِلْقَاضِي إِذَا أَرَادَ أَنْ يَحْكُمَ عَلَيْهَا او جائز ده قاضي دپاره، کله چه هغه اراده اوکړي په ښځه باندې د فیصلې کولو وَلِلشَّاهِدِ إِذَا أَرَادَ أَدَاءَ الشَّهَادَةِ عَلَيْهَا او ګواه دپاره کله چه هغه په ښځه باندې د ګواهئ ورکولو اراده اوکړي النَّظَرُ إِلَى وَجْهِهَا د ښځې مخ ته کتل وَإِنْ خَافَ أَنْ يَشْتَهِيَ اګرچه د شهادت یره کوي |

**تشریح**> قاضي او ګواه ته د فیصلې او شهادت ادا کولو دپاره دښځې مخ ته کتل جائز دي.اګرچه د شهوت یره وي.بیا هم (جائز دي)

**دلیله**> څکه که هغه د شهادت د یرې په وجه د کتلو نه منع شي.نو فیصله به څنګه کوي.او شهادت به څنګه ورکوي.نو د فیصلې او شهادت ادا کولو دروازه به بنده شي.چه په دې سره به د خلقوحقوق ضائع شي.او د خلقو د حقوقو ژوندی کولو ضرورت دې.نو کتل به جائز وي.

**استحباب عدم الشهوة**> خو دوی دواړه دې د شهوت پوره کولو قصد نه کوي.بلکه د فیصلې او شهادت ادا کولو قصد دې اوکړي.څکه چه نیت خو صحیح کیدې شي.نو د کوم څیز نه چه بچ کیدل ممکن دي.د هغې نه بچ کیدل به ضروري وي.او د بد قصد نه بچ کیدل ممکن دي.

### ډاکټر دپاره د ښځې د مرض ځائې کتلو حکم

| |
|---|
| وَيَجُوزُ لِلطَّبِيبِ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى مَوْضِعِ الْمَرَضِ مِنْهَا او جائز ده ډاکټر دپاره دا چه اوګوري دښځې د مرض ځایونو طرف ته |

**تشریح**> که ښځه بیماره وي.او مرض په نازك (خطرناك) ځائې باندې وي.نو ډاکټر دپاره جائز دي.چه صرف د مرض ځائې اوګوري.او ددې علاج اوکړي.

**دلیله**> څکه چه دا جواز د ضرورت په وجه دې.نو د ضرورت په اندازه به اجازت وي.

**فصل تعليم المداواة الي امراة** > او غوره داده.چه سړي پخپله علاج اونکړي.بلکه يوې ښځې ته اوښائي.اوهغه دا کار پوره کړي.

**دليله**> خکه چه اګرچه ښځې دپاره هم جائز نه ده.چه هغه د يوې ښځې شرمګاه يا عورت اوګوري .بهرحال د جنس، جنس طرف ته کتل بيا هم معمولي دي.خو که څوك ښځه داسې ملاو نشي.نو بيا دې ټول بدن پټ کړې شي.او صرف هغه ځائې دې ډاکټر اوګوري.کوم ځائې چه مرض دي.

**نظيره**> ددې نظيردا دې چه د ښځو ختنه کونکې ښځه او د سړو ختنه کونکې سړې به صرف د ختنه کولو ځائې ګوري.باقي به نه ګوري.هم دغه شان د ډاکټر حکم دې.او هم دغه شان که د ضرورت په وجه او د سختې کمزورئ (تپ والي) په وجه د حقنې کولو ضرورت وي.نو حقنه کونکې سړې به د حقنه کولو ځائې ګوري.خکه چه حقنه کول هم يوعلاج دې.چه دا د بعضو مرضونو دپاره ضروري دې.او په بعضو کښې فائده مند دې.او په بعضو کښې طاقت ورکوي.

تنبيه① ۞ په [سکب الانهر ص:۴۶۲،ج۲] باندې دي.چه ختنه کول عذر نه دې.خکه چه بالغ خپله ختنه پخپله کولې شي.يا دې نکاح اوکړي.او پخپله ښځه دې خپله ختنه اوکړي.يا دې وينځه واخلي.او په هغې دې خپله ختنه اوکړي.،،قلت،، دغه شان د ښځو په حق کښې هم هيڅ عذر نه دې.خکه چه ددوی په حق کښې دا صرف اعزاز دې.سنت نه دې.د علامه عيني ﷫دا فرمانيل چه د سړو او ښځو دواړو دپاره ددې پريخودل جائز نه دي.تسامح ده. اوګورئ: [شامي ص:۲۳۷،ج۵]

تنبيه② ۞ ختنه کول سړو دپاره سنت مؤکده دې.او د شعائر اسلام څخه دې.او ختنه کول د ښځو دپاره د مرتبې او اعزاز څيز دې.نو بهرحال د سړو او ښځو ختنه کولو په باره کښې خافظه دپاره او ختنه کونکې دپاره شرمګاه کتل جائز دي.خکه چه دا يو قسم ضرورت دې.نو هم دا حال به د ډاکټر د کتلو هم وي.،،فتدبرفيه،،

تنبيه③ ۞ که حقنه دځه مرض په وجه نه وي.بلکه منفعت دپاره کوي.چه په جماع باندې قوت حاصل شي.نو دا زمونږ په نيز حلال نه دي.،،کما في الذخيرة،، [شامي ص:۲۳۷،ج۵]

## سړي دپاره د سړي څومره بدن کتل جائز دي؟

| |
|---|
| وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنَ الرَّجُلِ اِلٰى جَمِيعِ بَدَنِهِ اِلَّا مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ اِلٰى رُكْبَتِهِ او ګورې دې سړې د سړی ټول بدن طرف ته.خو کومه چه دده د نوم د منځ نه د کونډو پورې ده |

**حل اللغة**> ① **سرة:** نوم ② **ركبة:** پنډئ]

**تشريح**> يوسړې د بل سړی ټول بدن ته کتلې شي خو د نامه نه واخله تر پنډو پورې نشی کتلې.

**دليله**> دنبی کريم ﷺ ارشاد دې عَوْرَةُ الرَّجُلِ مَا بَيْنَ سُرَّتِهِ اِلٰى رُكْبَتِهِ وَيُرْوٰى مَا دُوْنَ سُرَّتِهِ حَتّٰى يُجَاوِزَ رُكْبَتَيْهِ د سړی عورت (ستر) هغه دې.کوم چه دده د نوم دمنځ نه دده د کونډو پورې دې او نقل دی.چه کوم چه دده د نوم د لاندې دې تردې چه دده د کونډو نه زياتي شي

| |
|---|
| وَيَجُوْزُ لِلْمَرْاَةِ اَنْ تَنْظُرَ مِنَ الرَّجُلِ اِلٰى مَا يَنْظُرُ اِلَيْهِ الرَّجُلُ اود ښځې دپاره جائز دی چی د سړی د بدن هغه حصې ته اوګوری کوم ته چې دبل سړی دپاره کتل جائز وی |

**تشريح**> د سړی د بدن چې کومې حصې ته د بل سړی دپاره نظر کول جائز دی نود ښځې دپاهر هم جائز دی چې هغه حصې ته اوګوری مثلاً يو سړې د بل سړی مخ ته کتلې شی.دغه شان ښځې هم د هغه مخ ته

کتلې شي.دغه شان شاه او خيټه خو په دې شرط چې شهوت ئې نه پيدا کيږي.اوکه د ښځې شهوت پيدا کيږي.نو بيا ورله کتل جائز نه دي.

**ښځې دپاره د سړي يا د بلې ښځې څومره بدن کتل جائز دي؟**

| |
|---|
| وَتَنْظُرُ الْمَرْأَةُ مِنَ الْمَرْأَةِ إِلَى مَا يَجُوزُ لِلرَّجُلِ او گوري دې ښځه د بلې ښځې هغه ځائې کوم چه جائز دې.سړي دپاره، أَنْ يَنْظُرَ إِلَيْهِ مِنَ الرَّجُلِ چه کتلې شي هغې ته بل سړي. |

**تشريح>** سړي چه دبل سړي څومره حصه کتلې شي.دغومره يوه ښځه دبلې ښځې کتلې شي.

**دليله>** څکه چه دا د يوجنس دي.او عام طور باندې شهوت نه کيږي.لکه د يو سړي بل سړي ته په کتلو کښې،او په دې وجه هم چه ښځې د دومره بدن د ښکاره کولو په غسل خانه وغيره کښې ضرورت محسوسوي.نو ددې به اجازت وي.

**سړي دپاره د خپلې وينځې او ښځې د شرمګاه کتلو حکم**

| |
|---|
| وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ أَمَتِهِ الَّتِي تَحِلُّ لَهُ او سړي کتلې شي د خپلې هغه وينځې ته کومه چه دده دپاره حلال ده وَزَوْجَتِهِ إِلَى فَرْجِهَا او د خپلې ښځې نه ددې شرمګاه طرف ته |

**تشريح>** سړي د خپلې ښځې او هغه وينځې ټول بدن کتلې شي.کومه چه دده دپاره حلال ده.که شهوت وي.اوکه نه وي.

**دليله>** د نبی کريم ﷺ حديث دې غُضَّ بَصَرَكَ إِلَّا عَنْ أَمَتِكَ وَامْرَأَتِكَ [1] چه خپل نظر ښکته کوه.مګر د خپلې وينځې نه، او د خپلې ښځې نه

**سړي د خپلو محارمو ښځو کوم اندامونه کتلې شي اوکوم نشي کتلې ؟**

| |
|---|
| وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهِ إِلَى الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ وَالصَّدْرِ وَالسَّاقَيْنِ وَالْعَضُدَيْنِ او سړي دې ګوري د محارمو نه مخ، او سر، اوسينې، او پنډۍ ،او متو طرف ته وَلَا يَنْظُرُ إِلَى ظَهْرِهَا وَبَطْنِهَا وَفَخِذِهَا او نه دې ګوري د هغې شا او خيټه او ددې رون طرف ته |

**حل اللغة>** ① **الوجه:** مخ ② **الصدر:** سينه ③ **الساقين:** تثنيه د ساق: پنډۍ ④ **العضدين:** تثنيه د عضد: مټ ⑤ **ظهر:** شاه ⑥ **بطن:** خيټه

**تشريح> تعريف المحرم>** محرم هغه وي.چه ددې سړي او ښځې په منځ کښې نکاح نه جائز کيږي.که دا رشته د نسب وي.اوکه د سبب وي.او د سبب نه مراد رضاعت او مصاهرت (زوم جوريدل) دي.څکه چه دلته هم ضرورت دې.او د رغبت کموالې دې.بيا که مصاهرت د نکاح په وجه قائم شوې وي.اوکه د زنا په وجه، د ذکر شوی دليل په وجه.

کومې ښځې چه د سړي محرم دي.د هغوی مخ، سر، سينه، پنډۍ او متې کتلې شي.او خيټه او شا او رون نشي کتلې.

---

[1]) من حديث بهزبن حکيم عن أبيه عن جده معاوية بن حيدة ﷺ أخرجه أبوداود في الحمام باب ۲ رقم ۴۰۱۷ والترمذي في الأدب باب ۲۲ رقم ۲۷۶۹ وابن ماجه في النكاح باب ۲۸ رقم ۱۹۲۰ والنسائي في السنن الكبرى (۳۱۳\۵) رقم ۸۹۷۲)۔

**دلائل**﴿ ① د الله تعالی ارشاد دي وَلَايُبْدِينَ زِينَتَهُنَّ اِلَّا لِبُعُوْلَتِهِنَّ ﴾ الاٰیة په دې آیت کښې خپلو محارمو دپاره د زینت ښکاره کولو اجازت ورکړې شوي دې.او د زینت نه مراد ځایونه د زینت دی.او دا هم هغه ځایونه دی.کوم چه ذکر دی. او په دې کښې مروند، مرئ، غوږونه، او خپې داخل دی ځکه چه دا ټول د زینت ځایونه دی.لکه څنګه چه په دې ټولو ځایونو کښې د زیوراتو وغیره اغوستلو عام عادت دې.البته اوګې، شا او رون د زینت ځایونه نه دی.نو ددې د ښکاره کولو اجازت به نه ملاویږی.
② د محارمو ته دکتلو عقلی دلیل دې. چه داسې رشته داران بې اجازته د یو بل کورونو ته ورځی. نو که دې ځایونو ته کتل حرام شوې وې.نو ډیر حرج (او تنګې) به لازم شوې وو.او د همیشوالی د حرمت په وجه رغبت کم وی.البته ددې نه علاوه نور ځایونه مثلاً خیټه، اوګې او رون، دې ته به کتل جائز نه وی.ځکه چه ددې د ښکاره کولو عادت نشته. او د زینت د ځایونو نه علاوه قرآن اجازت نه دې ورکړې.او دا د زینت ځایونه نه دی.،، کما مر،،

**د خپلو محارمو د بدن کومو ځایونو ته لاس اوړل جائز دی**

| |
|---|
| وَلَابَأْسَ او هیڅ باك نشته بِاَنْ یَّمَسَّ مَاجَازَلَهٗ اَنْ یَّنْظُرَ اِلَیْهِ مِنْهَا چه دې لاس اولګوی د محارمو هغه حصې ته کومې حصې ته چه کتل جائز دی |

**تشریح**﴿ د خپلو محارمو څومره بدن کتل چه جائز دی.هغې ته لاس لګول هم جائز دی.
**دلیل**﴿ ځکه چه د محرمیت رشتې په وجه شهوت کم دې.او د سفر کولو په حالت کښې د لاس لګولو ضرورت راپیښیږی.البته د پردئ ښځې مخ او لاس کتل جائز وو.خو لاس اوړل جائز نه دی.ځکه چه هلته شهوت کامل دې.

**د بل کس د وینځې دڅومره حصې کتلو ګنجائش شته؟**

| |
|---|
| وَيَنْظُرُ الرَّجُلُ مِنْ مَمْلُوْكَةِ غَيْرِهٖ اِلٰی مَا یَجُوْزُلَه اَنْ یَّنْظُرَ اِلَیْهِ مِنْ ذَوَاتِ مَحَارِمِهٖ او ګوری دې سړې د پردئ وینځې هغه ځائې ته کوم ځائې ته چه دې کتلې شی.د خپلو محارمو نه |

**تشریح**﴿ سړې چه د خپل ذی رحم محرم ښځو څومره بدن کتلې شی.دغومره بدن د پردئ وینځې کتلې شی.
**دلیل**﴿ ځکه چه دا وینځه د خپل مولا په کار(خدمت) کښې بهر ته اوځی.او د خپل مولا د میلمنو خدمت کوی.او هغه د خپل کار په کپړو کښې وی.نو لکه څنګه چه د محارمو په حق کښې د آزادې ښځې حال دې، په کور کښې دننه اوسیدو سره، هم دغه حال د وینځې د کور نه بهر دې.

**د وینځې اخستلو دپاره لاس لګول هم جائز دی**

| |
|---|
| وَلَابَأْسَ بِاَنْ یَّمَسَّ ذٰلِكَ اِذَا اَرَادَ الشِّرٰی او هیڅ باك نشته.ده ته لاس لګول (هغه ځایونوته د کوموکتل چه جائز دی) کله چه دې د اخستلو اراده کوی. وَاِنْ خَافَ اَنْ یَّشْتَهِیَ اګرچه دې د شهوت یره لری |

**تشریح**﴿ نفس مسئله آسانه ده.
**دلیل**﴿ ځکه چه شهوت سره لاس لګول معنا جماع ده.چه ددې اجازت نشته.البته شهوت سره کتل جماع نه ده.نو د رومبی (لاس لګولو) اجازت نشته.او د دویم (دکتلو) اجازت دې.او که د اخستلو اراده نه وی.نو لاس لګول او کتل به هله جائز وی.چه شهوت نه وی.
**مسئله**﴿ د ضرورت په وجه لاس لګول جائز دی.چه دده د بدن نرمی معلومه شوی.او دا صحیح غرض دې.بعضو حضراتو وئیلی دی.که شهوت وی.نو زمونږ په زمانه کښې لاس لګولو ته جائز نشی

ونیلي.اوپه ،، اختیار شرح مختار ،، کښې هم په دې جزم ښکاره کړې دې.

### خصي دپاره پردئ ښځې طرف ته دکتلو حکم

| |
|---|
| وَالْخَصِيُّ فِي النَّظَرِ إِلَى الْأَجْنَبِيَّةِ كَالْفَحْلِ او خصي (چه هګۍ ئې تکولې شوې وی) پردئ ښځې طرف ته په کتلو کښې دنر پشان دې |

**حل اللغة** ① **الخصي**: هغه ځوك چه هګۍ ئې تکولې شوې وی ② **فحل**: نر

**تشریح** پردئ ښځې ته په کتلو کښې چه کوم حکم د نر دې.هم هغه د خصي دې.

**دلیله** د حضرت عائشې رضي الله عنها فرمان په دې دلالت کوی.چه دا مثله کول دی.نو دا جائز نه دی.نو ددې ناکاره فعل په وجه هغه کار نشي جائز کیدې.کوم چه ددې نه وړاندې حرام دې.او خصي هم نر دې.جماع کولې شي. [1]

### غلام دپاره خپله مالکه کتل جائز نه دی

| |
|---|
| وَلَا يَجُوزُ لِلْمَمْلُوكِ او غلام دپاره جائز نه دی أَنْ يَنْظُرَ مِنْ سَيِّدَتِهِ .دا چه اوګوری خپلې مالکې ته إِلَّا مَا يَجُوزُ لِلْأَجْنَبِيِّ النَّظَرُ إِلَيْهِ مِنْهَا مګر دومره حصه چه ددې ځومره حصه چه پردې سړې کتلې شي. |

**تشریح** غلام د خپلې مالکې صرف دومره بدن کتلې شي.لکه ځومره چه بل اجنبی سړې کتلې شي. [2]

**دلیله** ځکه چه رشته د محرمیت نشته.بلکه فی الجمله غلام ددې سره د نکاح صلاحیت لرلې شي.چه هغه آزاد کړی.نو نکاح به جائز وی.او شهوت هم پوره دې.او غلام داسې نر دې.چه دې نه محرم دې.او نه خاوند دې.او دلته ضرورت هم نشته.ځکه چه غلام خو دکور نه د بهر کار کوی.نو بیا د داخلیدو ضرورت نشته.

### د وینځې او ښځې نه عزل دپاره د اجازت حکم

| |
|---|
| وَيَعْزِلُ عَنْ أَمَتِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهَا او عزل کولې شي.خپلې وینځې سره بغیر دهغې اجازت نه |

**حل اللغة** ① **العزل**: چه کله انزال کیږی نوذکر د فرج نه راوباسی اوبهر انزال اوکړی]

**تشریح** که خپلې ښځې سره عزل کول اوغواړی.نو ددې د اجازت نه بغیر نشي کولې.

**دلیله** نبی کریم ﷺ د وینځې په باره کښې د هغې مالك ته فرمائیلی وو اعْزِلْ عَنْهَا إِنْ شِئْتَ [3] که ته غواړې.نو ددې سره عزل کوه.

| |
|---|
| وَلَا يَعْزِلُ عَنْ زَوْجَتِهِ او عزل به نه کوی.خپلې ښځې سره إِلَّا بِإِذْنِهَا خو دهغې په اجازت سره (کولې شي). |

**ترجمه** او خپلې وینځې سره د هغې د اجازت نه بغیر عزل جائز دې.

---

[1] قال الزيلعي رحمه الله غريب واخرج ابن أبي شيبة في مصنفه عن ابن عباس رضي الله عنهما ..قال خصاء البهائم مثلة ثم تلا (ولآمرنهم فليغيرن خلق الله) (نصب: ٤\٥٥٤)ـ

[2] **مسلك مالك**:- امام مالك رحمه الله فرمائی چې غلام د خپلې مالکې دپاره د محرم پشان دې.نوچې کومو ځایونو ته محرم کتې شی هغې ته غلام هم کتې شي.

[3] من حديث جابر رضي الله عنه اخرجه مسلم في الطلاق رقم ٢٤ وابوداود في النكاح با ب٤٨ واحمد في المسند(٣\٣١٢)ـ

**تشریح>دلائله>** ① د آزادې ښځې په باره کښې نبی کریم ﷺ د عزل کولو نه منع فرمائیلې ده() ② په وطی کولو کښې د آزادې ښځې حق دې.په دې وجه هغه د وطی مطالبه کولې شی.د شهوت پوره کولو دپاره هم،او د بچې حاصلولو دپاره هم، نو هرکله چه ددې (آزادې) حق دې.نو خاوندته به حق نه وی،چه ددې داجازت نه بغیر ددې په حق کښې نقصان اوکړی.

**په غله او د خارووپه خوراکه کښې د احتکار(ستور کولو) حکم**

وَيُكْرَهُ الإِحْتِكَارُ فِي أَقْوَاتِ الْآدَمِيِّينَ وَالْبَهَائِمِ احتکار (غله د ګران والی په انتظار کښې جمع ساتل) مکروه دی.د انسانانو په غذاګانو کښې، او د خارووپه غذاګانو کښې إِذَا كَانَ ذٰلِكَ فِي بَلَدٍ يَضُرُّ الإِحْتِكَارُ بِأَهْلِهِ کله چه دا په داسې ښار کښې وی.چه احتکار ددې د اوسیدونکو دپاره مضر وی

**حل اللغة>** ① **الاحتكار**:د ګران والی دپاره غله ذخیره کول ② **بلد**: ښار

**تشریح>** د انسانانو او د څناورو د خوراك څیزونه په دې نیت باندې ذخیره کول چې قیمت به ئې زیات شی او د دغه ښار خلقو ته د دغه څیز ضرورت هم وی نودا عمل مکروه دې.اوکه دده په احتکار بأندې خلقو ته څه ضرر نه رسی نو بیا په احتکار کښې څه ګناه نشته.

**دلائله>** ① د نبی کریم ﷺ حدیث مبارك دې وَالْمُحْتَكِرُ مَلْعُونٌ ()یعنی کوم کس چې احتکار کوی په هغه د الله تعالی لعنت دې.

② دویم عقلی دلیل دا دې چه دې سره د خلقو حق متعلق شوې دې.نو ددې په نه خرڅولو سره د عوامو حق باطلول او دوی پریشانه کول دی.نو د ضرر په صورت کښې دا مکروه دی.اوکه په څه وجه ضرر نه متعلق کیږی.نو مکروه نه دې.ځکه چه مالك خپل ملکیت منع کړې (او جمع ساتلې) دې.چه ددې هغه ته حق شته.او چاته د نقصان رسولو نه بغیر ئې منع کړې دې.یاد ساتئ: چه احتکار چه کله د ښار د خلقو دپاره مضر وی.نو مکروه تحریمی دې.اوکه د ښار خلقو له مضر نه وی.نو مکروه نه دې.

**د خپلې زمکې د غلې احتکار کولو حکم**

وَمَنِ احْتَكَرَ غَلَّةَ ضَيْعَتِهِ او چا چه د خپلې زمکې غله بنده اوساتله أَوْمَا جَلَبَهُ مِنْ بَلَدٍ آخَرَ یا کومه غله چه ده دبل ښار نه راوړلې ده.(او هغه ئې بنده اوساتله). فَلَيْسَ بِمُحْتَكِرٍ نو دې محتکر (جمع کونکې نه دې .

**حل اللغة>** ① **ضيعة**: زمکه ② **بلد**: ښار]

**تشریح>** کوم کس چه دخپلې زمکې غله بنده اوساتی.نو دې به احتکار کونکې نه شمارلې کیږی.
**دلیل عدم الاحتکار الصورة الاولی>** ځکه چه دا خالص دده حق دې.چه په دې کښې دعامو خلقو حق نه متعلق شوې.ځکه که ده پخپله زمکه کښې غله نه کرله.نو ده ته حق وو.دغه شان ده ته د نه خرڅولو هم حق شته.

[1] من حديث عمربن الخطاب ﷺ اخرجه ابن ماجه في النكاح باب ٣ واحمد في المسند(١\٣١) والبيهقي في السنن الكبرى (٧\٣٧٦) رقم ١٤٣٢٤)۔
[2] من حديث عمربن الخطاب ﷺ اخرجه ابن ماجه في التجارات باب ٦ رقم ٢١٥٣) ومسلم في التوبة رقم ٥٣ وابوداود في الجهاد باب ١٦ واحمد في المسند(٣\٤٥٩)۔

**دليل عدم الاحتكار الصورة الثانية**> ځکه چه د عامو خلقو حق دې غلې سره متعلق وی.کوم چه ښار کښې جمع کړې شی وَجُلِبَ إِلَى فِنَائِهَا اوکوم چه د ښار په احاطه کښې راوړلې شی کومه غله چه ښار ته دبل ځائې نه راوړلې شی.او هلته راوړلو سره خرڅولې شی.او څوك دا واخلي.او بنده ئې اوساتي.نو دا مکروه دی.او که د بل یو ښار نه غله راوړی.او جمع ئې کړی.نو دا دامام صاحب رحمه الله په نیز احتکار نه دې.

**بادشاه دپاره د څیزونو نرخونو مقررولو حکم**

| |
|---|
| وَلَا يَنْبَغِي لِلسُّلْطَانِ أَنْ يُسَعِّرَ عَلَى النَّاسِ او بادشاه دپاره مناسب نه دی.چه په خلقو باندې نرخ مقرر کړی. |

**حل اللغة**> ① **المسعر**: گرانی راوستونکې ② **السلطان**: بادشاه ③ **القابض**:بندونکې ]

**تشریح**> بادشاه دې کنټرول ریټ نه مقرر کوی.

**دليله**> د نبی کریم ﷺ فرمان دې لَا تُسَعِّرُوا فَإِنَّ اللهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الرَّازِقُ(۱) چه تاسو نرخ مه مقرر کوئ الله تعالی نرخ مقرر کونکې دې تنگی او فراخی ورکونکې رزاق دې

**د جنګ په ورځو کښې وسله خرڅول مکروه دی**

| |
|---|
| وَيُكْرَهُ بَيْعُ السِّلَاحِ فِي أَيَّامِ الْفِتْنَةِ چه د فتنې (فساد) په وخت وسله خرڅول مکروه دی |

**تشریح**> کله چه بعضو خلقو د عادل امام په باره کښې دده خلاف بغاوت راپورته کړو.نو په داسې ورځو کښې د فسادیانو او باغیانو په لاس وسله خرڅول مکروه دی.خو کله چه دا معلومات وی.چه دې د باغیانو ځنې دې.

**دليله**> ځکه چه دا په گناه باندې امداد کول دی.او د الله تعالی فرمان دې(وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ)اوکه دا معلومه نه وی.چه دې د باغیانو ځنې دې.نو بیا دده په لاس وسله خرڅولو کښې هیڅ باك نشته.ځکه کیدې شی.چه هغه دا په فتنه کښې استعمال نکړی.نو مقابل طرف ته صرف شك دې.او د شك په بنیاد به بیع ته مکروه نشی وئیلې.دا مسئله [هدایة په دویم جلد کښې] تیره شوې ده.

**د انګورو شیره خرڅول جائز دی**

| |
|---|
| وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ الْعَصِيرِ او د انګورو په شیرې خرڅولو کښې هیڅ باك نشته مِمَّنْ يَعْلَمُ د هغه سړی په لاس چه د هغه په باره کښې معلومه وی أَنَّهُ يَتَّخِذُهُ خَمْرًا.چه هغه به ددې نه شراب جوړه وی |

**حل اللغة**> ① **العصير**: دانګورو جوس

**تشریح**> د یو سړی په باره کښې دا معلومه ده.چه هغه به د انګورو د شیرې نه شراب جوړه وی.ددې باوجود هم د هغه په لاس د انګورو شیره خرڅول جائز دی.

**دليله**> ځکه چه گناه شرابو سره متعلق ده.او شراب به ددې د بدلولو نه پس جوړیږی.په خلاف د وسلې، ځکه چه گناه وسلې سره د بدلولو نه بغیر قائمیږی.په دې وجه د فتنې په ورځو کښې د وسلې بیع مکروه ده.او د انګورو د شیرې بیع جائز ده.

---

(۱) من حديث انس رضي الله عنه اخرجه ابوداؤد فى البيوع باب ٤٩ رقم ٢٩٤٥ والترمذى فى البيوع باب ٧٣ وابن ماجه فى التجارات باب ٢٧ رقم ١٣٣٦)۔

# كِتَابُ الْوَصَايَا

**ترجمه>** (دا) كتاب د وصيتونو(په بيان كښې) دې.

**الالفاظ الاصطلاحية>** ① **موصي:** وصيت كونكې، ② **موصى له:** هغه سړې چا دپاره چه وصيت اوكړې شي ③ **موصى به:** هغه څيز د كوم چه وصيت اوكړې شي.

**حكمها>** اودوصيت حكم دا دې.چه موصى له د موصى به په ملك جديد سره مالك كيږي.لكه څنګه چه د هبې په صورت كښې موهوب له مالك كيږي.او موصى د موصى له قائم مقام جوړيږي.

**شروطها>** د وصيت دپاره يو څو شرطونه دي ① موصى ته دا اهليت وي.چه هغه په چا باندې تبرع او احسان كولې شي.

② موصى قرضدار نه وي.

③ د وصيت په وخت موصى له ژوندې وي.اګرچه هغه اوس د مور د خيټې نه پيدا شوې نه وي.يعنى د جنين دپاره هم وصيت جائز دې.په دې شرط چه هغه د وصيت په وخت يقيناً په خيټه كښې موجود وي.يعنى د وصيت نه شپږ مياشتو كښې پيدا شي.

④ موصى له د موصى وارث نه وي.

⑤ موصى له د موصى قاتل نه وي.

⑥ موصى به قابل تمليك وي.

⑦ د تركې د دريمې نه د زيات وصيت نه وي.

**د وصيت شرعي حيثيت**

| |
|---|
| (الْوَصِيَّةُ غَيْرُ وَاجِبَةٍ وَهِيَ مُسْتَحَبَّةٌ) چه وصيت واجب نه دې.مستحب دې |

**تشريح>** وصيت واجب نه دې.بلكه دا مستحب دې.

**وجه الاستحسان>** د وصيت جواز د استحسان په وجه دې .ځكه چه خلقو ته ددې حاجت دې.لكه څنګه چه خلقو ته د اجارې حاجت دې. وجه ددې دا ده.چه انسان اميدونو راګير كړې دې.چه ددې په وجه دې ديرې زياتې كوتاهيانې كوي.خو كله چه په مرض كښې راګير شو.نو اوس دې خپيمانه شو.نو شريعت هغه ته اجازت وركړو.چه د اميدونو په چكر كښې چه د مال په باره كښې كومې كوتاهيانې شوې دي.هغه پوره كړه.كه هغه په دې مرض كښې مړ شي.نو د آخرت مقصد به ئې پوره شي.اوكه مړ نشي.نو په دنياوي مقصدونو كښې به ئې اوس استعمال كړي.او فائده به حاصله كړي.او په وصيت كښې هم دا كيږي.په دې وجه دا وصيت جائز ګرځولې شوې دې.

**القياس>** او د قياس تقاضا دا ده.چه وصيت جائز نه وي.ځكه چه موصى موصى له په داسې وخت مالك جوړوي.كله چه موصى پخپله هم مالك نه وي.اوكه د يوكس ملكيت باقي وي.خو هغه د ملكيت نسبت راروانې زمانې طرف ته اوكړي.او داسې اووائي.چه ته ما ددې څيز صباله مالك جوړ كړې.نو دا تمليك باطل دې.حالانكه د مملك ملكيت نن هم شته.او صباله هم شته. ددې باوجود دا باطل ګرځولې شوې دې.نو هركله چه د مرګ نه روستو د سره ملكيت پاتې نه وي.نوهلته خو په درجه اولى باطليدل پكار دي.بهرحال د قياس تقاضا دا وه.خو قياس پريخودې شو.

| |
|---|
| وَلَا تَجُوزُ الْوَصِيَّةُ لِوَارِثٍ او جائز نه دې وصيت دپاره د وارث |

**تشريح>** د وارث دپاره وصيت جائز نه دي

**دليله>** ځکه چې نبي کريم ﷺ د دې نه منع کړې ده ﴿الاَلاوَصِيَّةَ لِوَارِثٍ﴾ (۱) يعنی خبردار د وارث دپاره وصيت نشته.دا نفی ده خو په حکم د نهی کښې ده.نوعدم جواز فائده کوی.

**مړي د خپل څومره مال پورې وصيت کولی شی؟**

| |
|---|
| وَلَايَجُوزُبِمَازَادَعَلَى الثُّلُثِ)او دغه شان د ثلث مال نه زيات کښې وصيت جائزنه دي. |

**تشريح>** د مرض الموت مريض ته دمال حق دريمې حصې مال پورې دي.نو دريمې حصې پورې هغه تصرف کولې شی.ددې نه په زيات کښې وصيت کول جائز نه دي.

**دليله>** ځکه چه حديث کښې د حضرت سعد بن وقاص رضی الله عنه تفصيلی واقعه موجود ده.چه په هغې کښې نبی کريم ﷺ د پوره مال وصيت نه او د نيم مال د وصيت نه منع فرمائيلې ده.او په دريمه حصه مال کښې ئې د وصيت کولو اجازت ورکړې وو.او ورسره ئې دا هم فرمائيلی وو.چه داسې (وصيت کول) په ثلث کښې هم زيات دي.

**د دريمې حصې نه زيات وصيت د وارثانو په اجازت باندې موقوف دي**

| |
|---|
| إِلَّاأَن يُجِيزَهُ الْوَرَثَةُ بَعْدَمَوْتِهِ.خو دا چه وارثان ددې (دريمې نه د زيات) اجازت ورکړی. |

**تشريح>** د وارث دپاره وصيت کول دغه شان د دريمې نه د زيات مال وصيت کول جائز نه دي.خو که مريض د وارث دپاره يا د دريمې حصې نه د زيات وصيت اوکړو.او د هغه د مرګ نه روستو وارثانو د هغې اجازت ورکړو.او وارثان بالغ وی.نو بيا جائز دي.

**دليله>** ځکه چه ددې وصيت ممتنع کيدل، د وارثانو د حق په وجه وو.او هرکله چه هغوی خپل حق ساقط کړو.نو جائز دي.

**قاتل دپاره وصيت کول څنګه دی؟**

| |
|---|
| وَلَاتَجُوزُالْوَصِيَّةُ لِلْقَاتِلِ او جائزنه دي وصيت قاتل دپاره |

**تشريح>** قتل د ارث دپاره د منعې سبب نه دې.ګنی که قتل عمداً وی اوکه خطا سره وی.دا د ارث نه مانع دې. ([2])

**دلائله>** ① ځکه چه دې کښې صفا حديث موجود دې. (لاوصية للقاتل....)د قاتل دپاره وصيت نشته.
② دويمه وجه دا ده. چه قاتل موصی قتلولو سره د وصيت مال په جلتئ سره اخستل غواړی.حالانکه شريعت دا فيصله کړې ده.چه دا مال به د موصی د مرګ نه پس ملاويږی.نو داسې جلدباز بالکل محروموليږ شی.لکه څنګه چه هم په دې سبب سره وارث د ميراث نه محروموليږ شی.

---

۱) من حديث ابي امامة رضی الله عنه اخرجه ابوداود ق الوصايا باب ٦ رقم ٢٨٦٩)_

[2]) د امام شافعی رحمه الله په نيز که موصی د يو کس دپاره وصيت اوکړو او بيا هغه موصی له راولړيدو دې ئې قتل کړو يا يو کس په بل باندې ګذار اوکړو او د ګذار نه پس هغه د دې ضارب دپاره وصيت اوکړو او هم د دغه ضرب نه مړ شو نو په دواړو صورتونو کښې وصيت جائز دي.

**د مسلمان او ذمي د يو بل دپاره د وصيت کولو حکم**

| |
|---|
| **(وَيَجُوزُ أَنْ يُوصِيَ الْمُسْلِمُ لِلْكَافِرِ وَالْكَافِرُ لِلْمُسْلِمِ)** او جائز دي چه وصيت اوکړي مسلمان کافر دپاره، اوکافر د مسلمان دپاره |

**تشريح**﴾ که مسلمان کافر دپاره او کافر د مسلمان دپاره وصيت اوکړي.نوجائز دي.

**دليله**﴾ خکه چه وصيت يو تبرع (احسان) دي.او ذميان هم د تبرع او احسان قابل دی.الله تعالی فرمانيلی دی **(لَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ لَمْ يُقَاتِلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَلَمْ يُخْرِجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ أَنْ تَبَرُّوهُمْ وَتُقْسِطُوا إِلَيْهِمْ)**

الله تعالی تاسو ته هغه خلقو سره د نيکئ او د انصاف سلوك کولو نه نه منع کوی.چه هغوی نه د دين په باره کښې تاسو سره جنګ کوی.او نه هغوی تاسو د ستاسو د کورونو نه اوبنکلی يئ، نو په دې آيت کښې د ذميانو دپاره په ژوند کښې د تبرع او احسان جواز ثابت شو.او ورسره دا هم ثابته شوه.چه ددوی دپاره وصيت هم جائز دي.

**عدم جواز الوصية للكافر الحربي**﴾ البته هغه کافر حربی کوم چه دارالحرب کښې دي.هغه دپاره وصيت باطل دي.البته که هغه مستامن وی.نو دهغه حکم هم د ذمی پشان دي.

**دليله**﴾ **(إِنَّمَا يَنْهَاكُمُ اللَّهُ عَنِ الَّذِينَ قَاتَلُوكُمْ فِي الدِّينِ وَأَخْرَجُوكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ وَظَاهَرُوا عَلَى إِخْرَاجِكُمْ أَنْ تَوَلَّوْهُمْ)** الله تعالی تاسو د هغه خلقو سره د دوستئ کولو نه منع کوی.کوم خلق چه تاسو سره د دين په باره کښې جنګ کوی.او تاسو ئې ستاسو د کورونو نه اوبنکلئ.او ستاسو په ويستلو کښې شريك شو.

**الاستدلال**﴾ ددې آيت نه چه لکه خنګه دا معلومه شوه.چه حربيانو سره دوستی کول ممنوع دی.دغه شان دا هم معلومه شوه.چه ددوی دپاره وصيت کول باطل دی.او بيا وصيت د ژوندو دپاره وی.او زمونږ په نيز حربی د مړی په درجه کښې دي.نو دده دپاره وصيت خنګه جائز کيدې شی.

**د مرګ نه روستو د وصيت قبلولو يا رد کولو حکم**

| |
|---|
| **(وَقَبُولُ الْوَصِيَّةِ بَعْدَ الْمَوْتِ)** او د وصيت قبلول د مرګ نه پس دی **(فَإِنْ قَبِلَهَا الْمُوصَى لَهُ فِي حَالِ الْحَيَاةِ أَوْ رَدَّهَا فَذَلِكَ بَاطِلٌ)** نو که موصی له د موصی په ژوند کښې وصيت قبول کړو.يا ئې رد کړو.نو دا باطل دي. |

**تشريح**﴾ په ميراث کښې دا شرط نشته.چه وارث ئې قبول هم کړی.خکه چه ميراث کښې اسباب نه وی.چه ددې د قبلولو حاجت راپيښ شی.بلکه ارث خو په طريقه د خلافت دي.او په هبه کښې چه لکه خنګه ملك جديد حاصليږی.دغه شان په وصيت کښې هم ملك جديد حاصليږی.نو په وصيت کښې د وصيت د جواز دپاره اګرچه د موصی له قبلول شرط نه دی.خود موصی به د مالك کيدو دپاره د موصی له قبلول شرط دی.

**دليله**﴾ ددې تفصيل نه معلومه شوه.چه د موصی له د مملوك کيدو دپاره د موصی له د طرفه قبلول پکار دی.خو دا قبلول د موصی د مرګ نه پس کيدل پکار دی.د موصی په ژوند کښې چه کوم قبلول او ردکول موصی له کړی دی.د هغې هيڅ اعتبار نشته.خکه چه لکه خنګه د هغه قبلولو هيڅ اعتبار نشته .کوم عقد چه د وصيت نه وړاندې وی.دغه شان د هغه قبلولو اعتبار نشته.کوم چه د وصی په ژوند کښې وی.ددې وجه ښکاره ده.چه د وصيت د حکم ثبوت د مرګ نه پس دې.نو قبلول به هم دغه وخت معتبر وی.

**صورة الجواز**﴾ البته بعضې صورتونه داسې دی.چه ۱ د موصی له د قبلولو نه بغير استحسانا جائز

دی.لکه مثلاً د وصیت نه روستو د موصی انتقال اوشی.بیا د قبلولو او رد کولو نه بغیر د موصی له هم انتقال اوشی.نو استحساناً به موصی به د موصی له د وارثانو وی. (دسیجین تفصیله)

### د دریمې حصې مال نه کم کښې د وصیت کولو د استحباب بیان

| |
|---|
| وَيُسْتَحَبُّ آنْ يُوصِيَ الْإِنْسَانُ بِدُونِ الثُّلُثِ)مستحب دی.چه انسان د ثلث نه دکم وصیت اوکړی. |

**تشریح**> شریعت انسان لره دده د ژوند په آخری لمحاتو کښې پخپل دریمه حصه مال کښې د تصرف اختیار ورکړې دې.نو په دریمه حصه کښې دده دپاره وصیت کول جائز دی.خو هغه دپاره مستحب دا دی. د پوره دریمې وصیت اونکړی.بلکه د کم وصیت اوکړی.

**دلیله**> ځکه چه د کم وصیت کولو په صورت کښې چه کوم مال ده خپلو وارثانو دپاره پریخودې دې.نو په دې کښې خپلوانو او رشته دارانو سره سلوك او صله رحمی ده.چه دا محمود فعل دې.اوکه ده د پوره دریمې وصیت اوکړو.نو ده خپل حق وصول کړو.نو دا هیڅ صله رحمی، او احسان او حسن سلوك نه دې.بهرحال د ثلث نه د کم وصیت دې اوکړی.

### د موصی په وړاندې د وصیت قبلولو نه پس دده په غیر موجدګئ کښې د رد کولو حکم

| |
|---|
| وَاذاأَوْصَى اِلَى رَجُلٍ اوکله چې یوکس وصی جوړ کړو فَقَبِلَ الْوَصِيَّةَفِي وَجْهِ الْمُوصِي نو وصی، وصی جوړیدل د موصی په وړاندې قبول کړو وَرَدَّهَا فِي غَيْرِوَجْهِهِ فَلَيْسَ بِرَدٍّاو وصی د موصی په غیر موجودګئ کښې وصی جوړیدل رد کړل.نو نه رد کیږی |

**تشریح**> زید خپل مرګ ته نیزدې خالد خپل وصی جوړ کړو.او خالد دا ذمه داری قبوله کړله.یعنی د موصی په وړاندې خالد قبوله کړله.او بیا نې د هغه په غیر موجودګئ کښې وصی جوړیدل رد کړل.نو وصی جوړیدل به نه رد کیږی.

**دلیله**> ځکه چه زید خو په خالد باندې اعتماد کولو سره د دنیا نه رخصت شوې دې.نوکه د خالد ردکول معتبر شی.نو په دې کښې سخت ضرر دې.او په دې کښې زید ته دهوکه ورکول دی.او دهوکه ورکول حرام دی.نو د زید دا ردکول به مردود وی.

### د موصی په وړاندې د ردکولو حکم

| |
|---|
| فَإِنْ رَدَّهَا فِي وَجْهِهِ فَهُوَرَدٌّ نوکه وصی، وصی جوړیدل د موصی په وړاندې رد کړو.نو دا به رد وی |

**تشریح**> که خالد د زید په وړاندې وصی جوړیدل رد کړل.نو رد به وی.ځکه چه زید ته دا اختیار نشته.چه هغه په بل کس باندې دا تصرف لازم کړی.یعنی زید ته په خالد باندې د ولایت الزام حاصل نه دې.او کله چه خالد د زید په وړاندې رد کړو.نو په دې کښې د دهوکې هم څه خبره نشته.

**دلیله**> ځکه چه دلته زید بل څوك خپل وصی مقرر کولې شی.

### د وصیت قبلولو نه بغیر د ملکیت مسئله

| |
|---|
| وَالْمُوصَى بِهِ يُمْلَكُ بِالْقَبُولِ)[1] او د موصی به د قبلولو په وجه ملکیت کښې راځی |

**تشریح**> ددې مسئلې څه تفصیل اوس وړاندې تیر شوې دې.هلته فرمائیلې شوی وو.چه وصیت قبلول

---

[1]) القول الراجح هوهذا قول الجمهور ﷺ كذا في الفقه الإسلامي (٨\٢٢) وردالمحتار(٥\٤٦٥) وملتقى (٤\٤٢٠) والهندية (٦\٩٠) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٧٢)- ج.

د مرګ نه روستو معتبر دي.بهرحال زمونږ په نيز چه ترکومه پورې موصى له قبول نکړي.تر هغه وخته پورې به هغه د موصى به نه مالك کيږي.

**دليله>** دليل دا دې.چې په وصيت کښې د ملك جديد اثبات دې. ددې واضح دليل دا دې.که مريض موصى يو څيز واخستلو.او مثلاً د زيد دپاره ئې وصيت اوکړو.بيا زيد دا څيز عيب دار اوموندلو.نو زيد ته دا اختيار نشته.چه ددې عيب په وجه دا څيز د موصى بائع ته واپس کړي.او که يو مريض د خپل ټول مال وصيت اوکړو.مثلاً د زيد دپاره، بيا مريض د ترکۀ نه څه څيز خرڅ کړو.او مشترى په دغه څيز کښې عيب اوموندلو.نو مشترى ته به دا حق نه وى.چه دا موصى له ته واپس کړى. خلاصه د کلام داچه په وصيت کښې د ملك جديد اثبات دې.او هيڅ يوکس د چا ملکيت هغه وخته پورې نشى ثابتولې. ترکومه پورې ئې چه هغه قبول نکړى.

**د وصيت قبلولو نه وړاندې د موصى له مرګيدو مسئله**

| |
|---|
| إِلَّا فِي مَسْأَلَةٍ وَاحِدَةٍ خو په يوه مسئله کښې (د موصى له په ملك کښې داخليږى). وَهِيَ أَنْ يَمُوتَ الْمُوصِي ثُمَّ يَمُوتَ الْمُوصَى لَهُ قَبْلَ الْقَبُولِ او هغه دا ده.چه موصى مړ شى.بيا د قبلولو نه وړاندې موصى له مړشى فَيَدْخُلُ الْمُوصَى بِهِ فِي مِلْكِ وَرَثَتِهِ نو موصى به د موصى له د وارثانو په ملکيت کښې داخليږى |

**تشريح>** موصى به به هغه وخت د موصى له په ملکيت کښې داخليږى.کله چه د موصى له د طرفه قبول اوموندې شى.خو دا يوه مسئله استحساناً ددې اصولو نه مستثنى ده.او هغه دا ده.چه اول موصى مړشى .او تر اوسه پورې موصى له قبول کړې نه وو.چه هغه هم مړشو.نو دلته استحساناً دا حکم ورکړې شوې دې.چه د موصى له وارثان به د موصى به وارث وى

**وجه الاستحسان>** د استحسان دليل دا دې.چه د موصى د طرفه خو وصيت مکمل او پوره دې.نو دده د طرفه به وصيت نه فسخ کيږى.البته تر اوسه پورې چه کوم وصيت موقوف دې.دا د موصى له د حق په وجه دې.نو هغه ته اختيار دې.که غواړى.رد دې کړى.او که غواړى.اجازت دې ورکړى.خو هرکله چه د قبول نه وړاندې موصى له مړ شو.نو موصى پخپله دده په ملکيت کښې داخل شو.او ددې مثال بالکل داسې دې.لکه چه مشترى د خپل ځان دپاره خيار شرط کړې وى.او تر اوسه پورې مشترى اجازت نه وو ورکړې.چه په دريو ورځو کښې دننه هغه مړ شو.نو بيع مکمل کيږى.او بيع د مشترى وارثانو دپاره کيږى.دغه شان دلته هم ده.

**القياس>** دلته د قياس تقاضا دا ده.چه وصيت باطل شى.ځکه چه د موصى له د طرفه قبول اونه موندې شو.نو ددې صورت داسې شو.لکه چه بائع ايجاب اوکړو.او مشترى تر اوسه پورې قبول کړې نه وو.چه دهغه انتقال اوشو.نو ايجاب باطل شو.دغه شان دلته کښې وصيت باطليدل پکار وو.خو مونږ قياس پريخودې دې.اوپه استحسان مو عمل کړې دې.

**قاضى د يوکس وصى غلام، کافر او فاسق د وصيت نه اوبکلې شى**

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَى إِلَى عَبْدٍ أَوْ كَافِرٍ أَوْ فَاسِقٍ او کوم کس چه يو غلام، يا کافر يا فاسق وصى جوړ کړو أَخْرَجَهُمُ الْقَاضِي مِنَ الْوَصِيَّةِ وَنَصَّبَ غَيْرَهُمْ نو قاضى به هغوى د وصى جوړيدو نه خارجوى.او ددوى نه به غير مقرر کوى |

**تشريح>** که زيد د خالد غلام خپل وصى جوړ کړو.يا ئې يو کافر يا فاسق خپل وصى جوړ کړو.نو امام قدورى رحمه الله فرمائيلى دى.چه قاضى به دوى درې واړه د وصى جوړيدو نه خارجوى.او ددوى نه علاوه

به یو کس مقرر کوي.
**دلیل صحة الوصیة والاخراج﴾** ددوی دریو وارو په حق کښې وصیت ځکه صحیح گرځولې شوې دې.چه په دې دریو وارو کښې اصل شفقت شته.خو په دې کښې نقصان او کمی ده.نو د اصل موجود کیدو په وجه صحت اوشو.او د نقصان موجود کیدو په وجه خارجول صحیح شو.اوس پاتې شوه دا خبره چه اصل قدرت څنګه شته.د دې تفصیل دا دې چه غلام ته داسې شته.چه هغه عاقل بالغ دې.نو هغه د تصرف اهل دې.او فاسق ولایت لری.
او پاتې شو کافر نو فی الجمله هغه ته هم ولایت شته.مثلاً یو کافر یو مسلمان غلام واخستلو.نودهغه اخستل صحیح دی.او په غلام به د کافر مشتری ملکیت ثابت وی.او کافر مشتری ته به په دې غلام باندې ولایت حاصل وی.هغه بله خبره ده.چه په دغه کافر به ددې مسلمان غلام په خرڅولو باندې زبردستی کولې شی.بهرحال معلومه شوه.چه فی الجمله کافر ته هم ولایت شته.خو په دوی کښې د هیڅ یو کس شفقت کامل او تمام نه دې.ځکه چه د غلام ولایت خو د آقا په نظر او کرم باندې دې.که هغه اجازت ورکړی.نو باقی دې.ګنی ختم به وی.او د اجازت ورکولو نه پس هم چه کله آقا اوغواړی.هغه لره محجور علیه گرځولې شی.او په کافر کښې د نقصان سبب دا دې.چه هغه کافر دې.چه هغه لره دینی دشمنی په دې خبره راپورته کوی.چه هغه مسلمان دپاره شفقت پریږدی.او په فاسق کښې دا کمی ده.چه هغه خیانت سره متهم دې.نو ددې وجوهاتو په بناء به قاضی دوی د وصی جوړیدو نه خارجوی.او ددوی په ځائې به بل څوک مقرروی.چه د شفقت پوره پوره خیال اوساتلې شی.

**د خپل غلام د وصی جوړولو حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَىٰ إِلَىٰ عَبْدِنَفْسِهِاو چاچه خپل غلام وصی جوړ کړو وَفِي الْوَرَثَةِ كِبَارٌاو په وارثانو کښې بالغ خلق موجود وی لَمْ تَصِحَّ الْوَصِيَّةُ نو وصیت به صحیح نه وی |

**تشریح﴾** که زید خپل غلام وصی جوړ کړو.نو که ټول وارثان بالغان وی یا په دوی کښې بعضې خلق بالغ وی.نوپه دې صورت کښې به وصیت صحیح نه وی.
**دلیله﴾** بالغ ته حق شته.چه هغه دا وصی غلام منع کړی.او تصرف ته نې پرې نږدی.ځکه چه دا بالغ دهغه مولا دې او ده ته په خپل غلام باندې ولایت حاصل دې.اودې غلام ته دا حق هم شته.چه هغه خپله حصه خرڅه کړی.نوکوم مشتری چه دده حصه اخستې ده.هغه دا غلام د تصرف نه منع کولې شی.نو په دې طریقه به دا وصی غلام د وصی جوړیدو د حق پوره کولو نه عاجز او قاصر وی.نو بیا به د وصی جوړیدو هیڅ فائده نه وی.

**د وصیت د فرائضو پوره کولو نه د عاجز سړی د وصی جوړولو حکم**

| |
|---|
| وَمَن اوصى الى مَنْ يَعْجِزُعَنْ الْقِيَامِبِالْوَصِيَّةِ او چاچه داسې سړې وصی جوړ کړو.چه هغه د وصیت ادا کولو نه عاجز دې ضَمَّ اِلَيْهِ الْقَاضِي غَيْرَهُنو قاضی به هغه طرف ته د هغه غیر ملاو کړی. |

**تشریح﴾** زید خالد خپل وصی مقررکړې وو.خو هغه د وصیت فرائض پوره کولو نه قاصر دې.یا عاجز دې.نو په داسې موقع باندې به قاضی هغه سره بل څوک ملاو کړی.
**دلیله﴾** چه د موصی او وارثانو دواړو رعایت اوشی ځکه چه په داسې کولو کښې به مکمل شفقت حاصلیږی.اوپه دې سره به د عاجز وصی حفاظت او صیانت هم کیږی.او په بعضو کارونو کښې به دویم دده کفایت کوی.نو کله چه دویم دده مددګار شو.نو شفقت تمام شوې دې.

د دوو سرو د وصي جوړولو حکم

وَمَنْ أَوْصَى إِلَى اثْنَيْنِ او چا چه دوه کسان وصي جوړ کړل لَمْ يَجُزْ لِأَحَدِهِمَا أَنْ يَتَصَرَّفَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ دُونَ صَاحِبِهِ)[1] نوبه دوی کښې به يوکس دپاره دا جائزنه وی چه تصرف اوکړی د بل ملګری نه بغير، د طرفينو په نزد،

**تشريح** زيد ، خالد او بکر دواړه خپل وصي جوړ کړل.نو اوس سوال دادې.چه د ټولو کارونو په تصرف کښې ددوی دواړو جمع کيدل ضروري دي. په انفرادي طريقه هيڅ يو ته حق نشته.چه هغه تصرف اوکړی.

**دليلهما** دليل دا دې.چه وصي ته کوم ولايت ملاو شوې دې.دا د موصي د تفويض (او سپارلو) په وجه ملاو شوې دې.نو څنګه چه تفويض شوې دې.د هغې اعتبار به کولې شی.او کله چه موصي د ولايت تفويض اوکړو.نو د اجتماع وصف سره ئې کړې دې.نو د اجتماع د وصف رعايت به ساتلې شی.څکه چه دا شرط مفيد هم دې.څکه چه انفراد ته هغه قوت حاصل نه وی.کوم چه اجتماع ته حاصل وی.او دلته موصي د دوو په رائې سره راضي شوې دې.د يو په رائې سره نه دې راضي شوې.او يو د دوو پشان نشي کيدې.

**مسلک ابي يوسف** د امام ابويوسف رحمه الله په نيز حق شته چه يوکس د خپل ملګری نه بغير تصرف اوکړی.

**دليله** دليل دا دې.چه د وصي جوړيدو حاصل ولايت دې.يعنی موصي وصي ته د ولايت شرف ورکړې دې.او ولايت يو شرعي وصف دې.چه دا تجزی او انقسام نه قبلوی .نوهرکله چه ولايت تجزی نه قبلوی.نو هر وصي ته به پوره پوره ولايت حاصل وی.او هرکله چه پوره پوره ولايت حاصل شی.نو هر يو ته به د دويم (ملګری) نه بغير د تصرفاتو حق وی.لکه مثلاً يوه ښځه ده.او د هغې دوه رونړه دی.نو دواړه ته ددې په نکاح د ورکولو پوره ولايت دې.نو يو ته حق شته.چه د دويم رور نه بغير د خور نکاح اوکړی.نو دغه شان به دلته کښې هم دا حق وی.

إِلَّا فِي شِرَاءِ كَفَنِ الْمَيِّتِ وَتَجْهِيزِهِ خود مړی کفن اخستلو کښې، او دده په تجهيز کښې

**تشريح** په دې عبارت کښې د هغه کارونو ذکر کوی په کومو کښې چې هريو وصي ته اختيار شته چې د خپل ملګری نه بغير دغه کارونه اوکړی هغه دا دی

① که د مړی د کفن اخستلو ضرورت وی.نو يو وصي به ئې اخلې.انتظار به نشی کولې.چرته داسې اونشی.چه کومه پورې دويم وصي راځی.نو د مړی لاش خراب شی.ددې تاخير په وجه ګاونډيانو ته هم حق وی.چه هغوی مړی دپاره کفن واخلی. ② د مړی په تجهيز کښې به د دويم وصي انتظار نشی کولې.او په تجهيز کښې هغه ټول امور داخل دی.چه قبر کښې د مړی ايخودو پورې چه کومو څيزونو ته هغه محتاج دې.

**دليله** په دې کارونو کښې ورته څکه د تصرف کولو اختيار شته.که د مړی د کفن اخستلو ضرورت وی.نو يو وصي به ئې اخلې.انتظار به نشی کولې.چرته داسې اونشی.چه کومه پورې دويم وصي راځی.نو د مړی لاش خراب شی.ددې تاخير په وجه ګاونډيانو ته هم حق وی.چه هغوی مړی دپاره کفن واخلی.

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول الطرفين رحمهما الله كذا في ردالمحتار(ص،٤٩٧) والهندية (١٣٩\٦) وملتقى (٤٥٦\٤) نقلا عن القول الراجح(٣٨٦\٢)—

وَطَعَامِ اولادهِ الصِّغَارِ وَكِسْوَتِهِمْ هم په دې وجه د تاخير په وخت به ګاونډيان د تجهيز مالك وي. او د ماشومانو خوراك، او ددوى په كپړو اخستلو كېنى

تشريح﴾ ⑥ كه د موصى د وړو ماشومانو دپاره د خوراك اخستلو ضرورت راپيښ شي.نو يو وصي اخستلې شي.د دويم انتظار به نشي كولې.ګنې تركومه پورې چه د دويم انتظاركولې شي.خطره ده.چه د سختې اولږې د وجې نه دا بچي مړه شي. ⑦ دغه شان كه د بچو دپاره د كپړو اخستلو ضرورت وي.نو ددې دپاره به د دويم وصي انتظار نشي كولې.

دليله﴾ كه په مذكوره دوو صورتونو كښې د بل وصي انتظار اوكړې شي.نو يره ده.چه بچي د برېنډ كېدو په وجه د ګرمۍ يا يخنۍ د سختوالي برداشت اونكړې شي.او مړه نشي.

**دوارو وصيانو ته به د جدا جدا تصرف حكم كوم ځائي كښي وي؟**

وَرَدِّ الْوَدِيعَةِ بِعَيْنِهَا او معين وديعت واپس كول،

تشريح﴾ كه موصى سره د يو كس متعين وديعت وي.نو دهغې واپس كولو دپاره د دويم وصي د انتظار ضرورت نشته.

دليله﴾ ددې كارونوخانله د جائز كيدو وجه دا ده.چه دا امور د باب د ولايت سره تعلق نه ساتي.ځكه چه كوم كس د موصى د طرفه ولايت نه دې حاصل كړې.دا امور هغه هم پوره كولې شي.ځكه چه كوم كس د وديعت مالك دې.كله چه هغه ته خپل سامان ملاو شي.نو هغه پخپله دا اخستلې شي.

وَتَنْفِيذِ وَصِيَّةٍ بِعَيْنِهَا وَعِتْقِ عَبْدٍ بِعَيْنِهِ او ځكه چه دې كښې رائې طرف ته حاجت نشته.او متعين وصيت نافذ كول، او متعين غلام آزادول

تشريح﴾ كه د يومعين كس دپاره ئې وصيت كړې وي د هغې په نافذ كولو كښې به د دويم وصي د انتظار كولو ضرورت نه وي. او د يو معين غلام آزادي وي.هغه دپاره هم د وصي د انتظار كولو ضرورت نشته.

دليله﴾ ځكه چه دې كښې هم د رائې هيڅ ضرورت نشته. يو سړى سره د مړى په حق كښې خصومت كول وي.نو يو وصي كولې شي.ځكه چه خصومت خو به د دواړو د جمع كېدو په صورت كښې هم يو وصي كوي.چه په مجلس د قضاء كښې د دواړو د جمع كيدو په وجه شور شغف جوړ نشي.په دې كه د يوكس دوه وكيلان وي.بيا به هم خصومت يوكس كوي.

وَقَضَاءِ الدَّيْنِ او د قرضونو ادا كول

تشريح﴾ دغه شان كله چه قرضخواه ته د خپل حق جنس ملاو شي.نو هغه دا پخپله اخستلې شي.د يوم وصي د موجودګۍ ضرورت نشته.

دليله﴾ ځكه چه قرضخواه د هغه څيز مالك جوړيږي.كله چه هغه د خپل مقروض نه يو داسې څيز قبضه كړي كوم چې د هغه د حق دجنس نه وي

وَالْخُصُومَةِ فِي حُقُوقِ الْمَيِّتِ او د مړى په حق كښې خصومت كول

تشريح﴾ يا د قاضي په عدالت كښې ئې د مقدمه پيش كولو دپاره دوو كسانو ته وصيت اوكړو.نواوس كه يو كس د بل د حضور نه بغير مقدمه پيش كړه.نودا جائز ده.

دليله﴾ ځكه كه دواړه په عدالت كښې خبرې كوى نودا دعدالت د آدابو خلاف ده.نويس چې يو كس مقدمه پيش كړه جائزده.

**د دوو جدا جدا سړو دپاره د یو یو ثلث وصیت کولو حکم**

وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِثُلُثِ مَالِهِ او چاچه د یو سړي دپاره د خپل ثلث مال وصیت اوکړو.او د دویم کس دپاره ئې د خپل ثلث مال وَلِلْآخَرِ بِثُلُثِ مَالِهِ وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ او وارثانو اجازت ورنکړو.نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کښې (مشترك) وي

**تشریح>** وړاندې تفصیلات تیر شوي دي.چه که د دریمې حصې نه د زیات مال وصیت ئې اوکړو.نو د وارثانو اجازت سره دا (وصیت) نافذ کیدې شي.ګنی نشی نافذ کیدې.اوس اوګورئ.چه زید د خپل ثلث مال وصیت خالد دپاره اوکړو.او د بکر دپاره ئې هم د ثلث مال وصیت اوکړو.نو ددې دواړو وصیتونو مال دوه ثلثه (دوه دریمې حصې) شو.او د وصیت نافذ کیدو محل صرف ثلث دې.او وارثانو د ثلث نه په زیات کښې اجازت ورنکړو.نو یو ثلث به د خالد او بکر په منځ کښې نیم په نیمه وي.

**دلیله>** خکه چه په یو ثلث کښې دومره وسعت او ګنجائش نشته.چه ددې نه هر یو ته پوره پوره ثلث ملاو شي.خکه چه هرکله د وارثانو اجازت نه وي.نو وصیت په ثلث باندې نشی زیاتیدې.او د استحقاق په سبب کښې دواړه برابر او مساوي دي.نو بیا به په استحقاق کښې هم دواړه برابر وي.او په ثلث کښې هم دا صلاحیت شته.چه په دې کښې شرکت کیدې شي.نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کښې مشترك ګرځولې شي.

**یو سړي دپاره د ثلث او دویم دپاره د سدس د وصیت کولو حکم**

وَإِنْ أَوْصَى لِأَحَدِهِمَا بِالثُّلُثِ وَلِلْآخَرِ بِالسُّدُسِ او که په دوی دواړو کښې ئې یو دپاره د ثلث او دویم دپاره د سدس (شپږمې حصې) وصیت اوکړو فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا أَثْلَاثًا نو ثلث به ددوی دواړو په منځ کښې درې حصو سره تقسیمولې شي

**تشریح>** که موصی د خالد دپاره د ثلث مال وصیت اوکړو.او د بکر دپاره ئې د سدس (وصیت اوکړو).نو دده مال نصف شو.او نصف د وارثانو د اجازت نه بغیر دوی ته نشي ورکولې.نو صرف ثلث به هم دوی دواړو ته ورکولې شي.ددې صورت به دا وي.چه خالد ته به د ثلث نه ۲/۳ او بکر ته به ۱/۳ ملاویږي.

**دلیله>** خکه چه د دواړو استحقاق د وصیت په ذریعه شوې دې.او دا صحیح سبب دې.او په ثلث کښې دومره وسعت نشته چه دا ددوی دواړو حق پوره کړي.

**یو د پاره د ټول مال او دویم دپاره د ثلث د وصیت کولو حکم**

وَإِنْ أَوْصَى لِأَحَدِهِمَا بِجَمِيعِ مَالِهِ او که موصی په دوی دواړو کښې د یو دپاره : خپل پوره مال وصیت اوکړو وَلِلْآخَرِ بِثُلُثِ مَالِهِ او د دویم دپاره ئې د خپل ثلث مال وصیت اوکړو وَلَمْ تُجِزِ الْوَرَثَةُ او وارثانو ددې اجازت ورنکړو فَالثُّلُثُ بَيْنَهُمَا عَلَى أَرْبَعَةِ أَسْهُمٍ عِنْدَ أَبِي يوسف ومحمد نو د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ثلث ددوی دواړو په منځ کښې څلورو حصو باندې (تقسیمولې) شي

**تشریح>** زید د خالد دپاره د خپل پوره مال وصیت اوکړو.او د بکر دپاره ئې د ثلث مال وصیت اوکړو.نو وارثانو اجازت ورنکړو.نو په دې کښې اختلاف دې. حضرات صاحبین رحمهما الله دا فرمائي.چه د ثلث به څلور حصې کولې شي.بیا به په دې کښې درې حصې خالد ته او یوه به بکر ته ورکولې شي.

**دلیلهما>** د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه په مذکوره صورت کښې د موصی اراده د دوو څیزونو

ده. ① دا چه هغه د ټول مال يوکس مستحق جوړول غواړي.خو دده دا اراده د وارثانو د حق په وجه نشي پوره کيدې. ② دويمه اراده ئې دا ده.چه هغه خالد ته په بکر باندې ترجيح ورکول غواړي.نو ددې تفضيل او ترجيح ورکولو نه هيڅ مانع موجود نه دې.نو تفضيل به ثابتيږي.لکه څنګه چه په محابات وغيره کښې تفضيل ثابت شوې دې.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ: الثُّلُثُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ ()او امام ابوحنيفهرحمه الله فرمائيلي دی.چه ثلث به دوی دواړو په منځ کښې نيم په نيمه وی |

تشريح> مسلک ابي حنيفة> او د امام صاحبرحمه الله په نيز په ذکر شوی صورت کښې به دواړه په ثلث کښې برابر شريك وی.

دليله> دا د امام صاحبرحمه الله دليل دې.ددې حاصل دا دې.چه کله وارثانو اجازت ورنکړو.نو د دريمې حصې نه زيات وصيت مشروع نه دې.ځکه چه د وارثانو د اجازت نه بغير د ثلث نه زيات کښې ددې د نافذ کولو هيڅ صورت نشته.نو د ثلث نه په زيات کښې وصيت بالکل باطل شو.او هرکله چه زياتوالې باطل شو. نو په دواړو کښې برابري پاتې شوه.

| |
|---|
| وَلَا يَضْرِبُ أَبُوحَنِيفَةَ لِلْمُوصَى لَهُ بِمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ إِلَّا فِي الْمُحَابَاةِ وَالسِّعَايَةِ وَالدَّرَاهِمِ الْمُرْسَلَةِ او امام ابوحنيفهرحمه الله د موصی له په حق کښې د ثلث نه په زيات کښې د تناسب لحاظ نه کوی.خو په محابات کښې، او په سعايه کښې او په دراهم مرسله کښې. |

تشريح> التعريفات> ① محابات في البيع: د زيد دوه غلامان دی.په دوی کښې د يو قيمت مثلاً يوولس سوه روپۍ دې.او د دويم شپږ سوه روپۍ دې.اوس د ړومبی قيمت والا وصيت زيد د خالد دپاره اوکړو.او د دويم غلام ئې بکر دپاره اوکړو.او داسې ئې اووئيل.چه دا غلام په خالد باندې خرڅ کړه.په سل روپۍ کښې.او دا دويم په بکر باندې خرڅ کړۍ په سل روپۍ باندې.نو هم دغه شان اوکړې شو.او زيد ددې دواړو غلامانو نه علاوه هيڅ نه دی پريخودی.نو وصي به صرف په دريمه کښې نافذ کيږی.او دا دريمه به دواړو موصی له ته ددوی د حق تناسب سره ملاويږی.نو ګويا زيد د خالد دپاره د زرو روپو او د بکر دپاره ئې د پنځو سوو روپو وصيت کړې دی.چه ددې ثلث پنځه سوه دې.نو خالد دپاره به د پنځو سوو ۲۱۳ او بکر ته به ۱۱۳ ملاويږی.او باقی قيمت به د موصی وارثانو ته ورکولې شی.بهرحال د امام صاحبرحمه الله په نيز که دا صورت مستثنی نه وې.نو خالد او بکر دواړو دپاره به د پنځو سوو نه نيم په نيمه وه.او باقی قيمت به د موصی وارثانو ته ورکولې شو. خو دلته دوی دا خپل اصول پريخودې دې.او د حق د تناسب په لحاظ سره ئې ثلث تقسيم کړې دې.

② سعايه (دغلام مزدوری)دسعايه صورت دا دې.چه زيد د خپلو دوو غلامانو د آزادولو وصيت اوکړو.او د زيد ددې دواړو غلامانو نه علاوه هيڅ مال نشته.او په دوی کښې د يو قيمت دوه زره دې.او د دويم زر (روپۍ) دې.نو دا وصيت به په ثلث کښې نافذ کيږی.او په دوه ثلثو کښې به په دوی باندې قيمت واجب وی.چه دا به دوی ګټه کوی.او وارثانو ته به ئې ورکوی.خو په دې ثلث کښې به د دواړو د قيمت په اندازه سره تقسيم کولې شی.او ددوی دواړو د قيمت مجموعه درې زره ده.چه ددې ثلث زر (روپۍ) دی.نو دکوم غلام قيمت چه دوه زره دې.د هغه د قيمت نه به (۶۶۶) روپۍ ساقطيږی.او

---

[1]) القول الراجح هو هذا قول ابي حنيفةرحمه الله كذا في العناية (۹\۳۶۹) وملتقى (۴۲۵) وردالمحتار(۵\۴۷۲) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۷۵)-

باقی به دې مزدوري کوی.او وارثانوته به ئې ورکوي.او د کوم غلام قيمت چه زر روپۍ دي.د هغه د قيمت نه به (۳۳۳) روپۍ سقاطيږي .او هغه به د خپل باقي قيمت دپاره مزدوري کوی.او وارثانو ته به ئې ورکوی.

③ دراهم مرسله: ددې مطلب دا دې.چه دا متعين نکړې شي.چه ثلث دده او نصف دهغه وغيره.بلکه موصی مطلق داسې اووائي.چه د دوو سوو روپو وصيت خالد دپاره دې.او د بکر دپاره د سلو روپو وصيت دې.او دده سره صرف هم دا مال دې.نو دا وصيت به صرف په ثلث يعنی سلو روپو کښې نافذ کيږي.چه په دې کښې به رومبی ته (۶۶) روپۍ او دويم ته به (۳۳) روپۍ ملاويږي.

**القاعدة الكلية**﴿ يوه قاعده کليه ده چه د خالد او د بکر د حقوقو تناسب خو کټلې کيدې شي.خو د ثلث مال پورې کټلې کيدې شي.او که وصيت د ثلث نه زيات شي.بيا به د حقوقو تناسب ته نشي کتلې.بلکه دواړه به برابر په ثلث کښې شريکولې شي.او په ذکر شوی صورت کښې وصيت د ثلث مال نه زيات شوې دې.(لکه څنګه چه ښکاره ده).نو ددې قاعدې مطابق به د تناسب لحاظ نه کيږي.بلکه دواړه به برابر شمارلې کيږي.

**المسائل المستثناة**﴿ يوځو مستثنی صورتونه البته ددې قاعدې کليې نه درې مسئلې مستثنی دی: ① په بيع کښې محابات، ② د غلام مزدوري، ③ دراهم مرسله.اوس ددې دريو واړو تفصيل اوګورئ.

### د قرض برابر د مال مالک دپاره د وصيت کولو حکم

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَىٰ او چا چه وصيت اوکړو وَعَلَيْهِ دَيْنٌ يُحِيطُ بِمَالِهِ لَمْ تَجُزِ الْوَصِيَّةُ او هغه باندې دومره قرض دې.کوم چه دده مال ته محيط (راګيرونکې) دې.نو وصيت جائز نه دې |

**تشريح**﴿ که په يوکس باندې دومره قرض وی.کوم چه دده مال راګيرونکې دې.نو دده دپاره وصيت کول جائز نه دې.

**دليله**﴿ څکه چه دين وصيت باندې مقدم دې.د سراجي په شروع کښې ددې بحث تير شوې دې.بيا په قرض او وصيت کښې زيات اهم حاجت قرض ادا کول دی.څکه چه قرض ادا کول فرض دی.او وصيت خو صرف يو احسان دې.او د هميشه مسلم اصول دې.چه مخکښې د اهم نه ابتداء کولې شي.بيا درجه په درجه (باقي پاتې پوره کولې شي).او هرکله چه اهم قرض دې.نو ابتداء به هم ددې نه کولې شي.ددې نه پس د وصيت نمبر دې.

| |
|---|
| إِلَّا أَنْ يُبْرِئَهُ الْغُرَمَاءُ مِنَ الدَّيْنِ خو دا چه قرضخواه هغه لره د قرض نه بری کړی |

**تشريح**﴿ البته که قرضخواهانو مقروض د قرض نه بری کړې وی.نو اوس به دده مذکوره وصيت جائز وی.

**دليله**﴿ څکه چه قرض د ختميدو په وجه مانع زائل شوې دې.نو په کوم صورت کښې چه څومره وصيت جائز دې.هغه به اوس ټول جائز وی.څکه چه موصی د وصيت محتاج دې.چه ددې وجه د کتاب الوصايا په شروع کښې تيره شوې ده.

**الفائدة**﴿ ① که حربی مستامن د خپل ټول مال وصيت اوکړی.نو جائز دې.څکه چه وارثان ئې نشته.(فتدبر) [شامی ص:۴۱۸،ج۵]

**الفائدة**﴿ ② د چاچه نه څوك وارث وی.او نه په ده قرض وی.نو هغه دپاره افضل دا دی.چه پخپل لاس سره د صدقه کولو نه پس چه کوم مال باقي پاتې شي.د هغې ټول وصيت اوکړی. [شامی ص:۴۱۸،ج۵]

### د خپل خوی د مال نه د یو برخې دپاره د وصیت کولو حکم

وَمَن أَوْصَى بِنَصِيبِ ابْنِهِ فَالْوَصِيَّةُ بَاطِلَةٌ او موصی چې د خپل خوی د حصې وصیت اوکړو.نو وصیت باطل دې

**تشریح** که موصی داسې وصیت اوکړو.چه زما د خوئي حصه فلانی دپاره وصیت دې.نو دا وصیت به جائز نه وی.

**دلیله** ځکه چه د خوئي حصه به دخوئي ملکیت وی.نو موصی ته به دا حق نه وی.چه هغه د بل د مال وصیت اوکړی.

وَإِن أَوْصَى بِمِثْلِ نَصِيبِ ابْنِهِ جَازَتْ او که د خپل خوی د حصې د مثل وصیت ئې اوکړو.نو جائز دې
فَإِن كَانَ لَهُ ابْنَانِ فَلِلْمُوصَى لَهُ الثُّلُثُ نو که د موصی دوه خامن وو نو د موصی له دپاره به یو ثلث وی

**تشریح** او که موصی داسې وصیت اوکړو.چه زما د خوئي څومره حصه ده.د هغې په اندازه ما د فلانی دپاره وصیت اوکړو.نو دا وصیت جائز دې.نوکه د موصی دوه خامن وی نو د موصی له به یو ثلث وی.

**دلیله** ځکه چه دلته موصی د بل د مال وصیت نه دې کړې .بلکه موصی به ئې د غیر مال سره اندازه کړې دې.اوپه دې کښې هیڅ باك نشته.ځکه قاعده مشهوره ده.چه د شی مثل ددې شی غیر وی.نو معلومه شوه.چه موصی د بل د حق وصیت نه دې کړې.بلکه د خپل خوی حق سره ئې موصی به ناپ کړې دې.او دموصی به اندازه ئې لګولې ده.

**مسلك زفر** امام زفر رحمه الله فرمائی.چه لکه څنګه په دویم صورت کښې وصیت جائز دې.دغه شان په رومبی صورت کښې هم جائز دې.

**دلیله** د ا مام زفر رحمه الله نظر په دې خبره دې.چه فی الحال دا مال د خوئي مال نشو .بلکه دا خو اوس لا ټول په ټوله د موصی مال دې.نو د غیر د مال وصیت نشو.

**الجواب عنه** خو ددې جواب دا دې اګرچه دا فی الحال د خوئي مال نه دې.خو د موصی د مرګ نه پس کله چه د موصی له د مالك جوړیدو نمبر راځي.هغه وخت به دا د خوئي مال وی.نو موصی ته دا حق چرته شته.چه هغه د غیر د مال وصیت اوکړی.نو دا وصیت به باطل وی.

### په مرض الموت کښې د غلام آزادولو، یا د محابات او د هبې کولو حکم

وَمَنْ أَعْتَقَ عبده فِي مَرَضِهِ أَوْبَاعَ او چا چه پخپل مرض الموت کښې یو غلام آزاد کړو.یا ئې خرڅ کړو
وَحَابَى أَوْوَهَبَ اوپه دې کښې ئې محابات اوکړو.یا ده هبه اوکړله فَذَلِكَ كُلُّهُ جَائِزٌ نو دا ټول جائز دی
وَهُوَمُعْتَبَرٌمِنْ الثُّلُثِ او دا به د دریمې نه معتبر وی وَيُضْرَبُ بِهِ مَعَ أَصْحَابِ الْوَصَايَا اودې به په ثلث کښې د وصیتونو والا سره شریك وی

**تشریح** په مرض الموت کښې یو کس خپل غلام آزاد کړو.یا ده بیع اوکړله.اوپه بیع کښې ئې محابات اوکړو .مثلاً د دوه زره (روپو) څیز ئې په شل روپئ باندې خرڅ کړو.یا ده هبه اوکړله.نو دا ټول صورتونه جائز دی.(دا هم صحیح ده.اوکه داسې اوونیلی شی.چه دا ټول صورتونه وصیت دی.دا هم جائز ده).نو د یو ثلث نه به دا تصرف معتبر وی.

**دلیله** ځکه چه وصیت کښې تملیك د مرګ نه روستو طرف ته مضاف کیږی.او په دې کښې په یو کښې هم د مرګ نه روستو طرف ته اضافت نشته.بلکه ټول تصرفات د تنجیز په طریقه دی.بلکه مطلب

دا دي.چه دا ټول تصرفات د وصيت پشان د ثلث مال نه معتبر وي.او دي په د نورو وصيتونو والا سره شريكولي شي.اوس پاتي شوه دا خبره چه ددي ټولو تصرفاتو به د ثلث مال نه ولي اعتبار كولي شي؟ نو ددي وجه دا ده.چه دلته هم مال سره د وارثانو حق متعلق شوي دي.

**كه ثلث نه كافي كيږي.نو محابات او عتق كښي به كوم يو مقدم وي؟**

| |
|---|
| فَإِنْ حَابَى ثُمَّ أَعْتَقَ او كه مريض محابات اوكړو.بيا ئي آزاد كړو. فَالْمُحَابَاةُ أَوْلَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رحمه الله نودامام ابوحنيفه رحمه الله په نيز محابات غوره دي وَإِنْ أَعْتَقَ ثُمَّ حَابَى فَهُمَا سَوَاءٌ(¹) او كه هغه آزاد كړو.بيا ئي محابات اوكړو .نو دوى دواړه برابر دي |

**تشريح** د مرض الموت ټول وصيتونه برابر وي.يو ته په بل باندي فضيلت نه وي.نو ټول وصيتونو والا به په ثلث كښي برابر شريك وي.يعنى د خپلي خپلي حصي په اندازه به ثلث كښي ټول شريك وي.البته دري څيزونه داسي دي.چه دا د ټولو وصيتونو نه مقدم دي.① د مرض الموت آزادول. ② د مرض الموت مدبر كول. ③ د مرض الموت محابات- دا دري څيزونه به د نورو وصيتونو نه مخكښي كولي شي.نو كه په دي دريو واړو كښي د يو سره نور وصيتونه جمع شي.نو د ثلث نه به ورانديي دا پوره كولي شي.اوكه د دي ادا كولو نه روستو په ثلث كښي څه بچ پاتي شي.نو نورو وصيتونو والا ته به ملاويږي.كني هيڅ به نه ملاويږي. خو كه محابات او آزادول جمع شي.نو د دي حكم په راروان متن كښي راځي.

**دليله** د امام ابوحنيفه رحمه الله دليل دا دي.چه محابات د آزادئ نه مقدم دي.ځكه چه محابات د عقد بيع په ضمن كښي ثابتيږي. نو محابات د خپلي صيغي او الفاظو په اعتبار سره تبرع نه ده.بلكه د الفاظو په اعتبار سره دا عقد بيع ده. البته د معنى په اعتبار سره دا تبرع ده.او آزادي د لفظ او معنى هر اعتبار سره تبرع ده.نو ددي نه معلومه شوه.چه محابات زيات قوي دي.ځكه چه عقد معاوضه د خالص تبرع نه زيات قوى وي.نو هركله چه زيات قوى يعنى محابات وړاندي وي.او هلته كمزوري يعنى آزادي تلل غواړي.نو زيات قوى به هغي ته ديكه وركوي.او لري كوي به يې.او هركله چه د محابات مخي ته ددي پنجه نه خښيږي.نو ثبوت به چرته وي.اوكه وړاندي آزادي اوموندي شي.او روستو محابات اوموندي شي.نو آزادي چونكه زيات كمزوري ده.په دي وجه آزادي محابات ته ديكه نشي وركولي.نو ددي دواړو په منځ كښي مقابله ثابته شوه.او هركله چه د دواړو په منځ كښي مقابله ثابته شوه.نو د مجبورئ نه اوونيلي شو.چه دواړه مساوي او برابر دي.

| |
|---|
| وَقَالَا: الْعِتْقُ أَوْلَى فِي الْمَسْأَلَتَيْنِ او صاحبين رحمهما الله فرماني.چه په دواړو مسئلو كښي آزادي غوره ده. |

**تشريح** .صاحبين رحمهما الله فرماني.چه عتق په هرحال كښي د محابات نه اولى دي.

**توضيح الاختلاف** او امام ابوحنيفه رحمه الله فرماني.كه مخكښي مريض محابات كړي وي.او ددي نه پس ئي آزاد كړي وي.نو په دي صورت كښي محابات د عتق نه اولى دي.اوكه ده مخكښي آزاد كړي وي.او بيا ده محابات كړي وي.نو دواړه برابر دى.د برابر كيدو مطلب دا دي.چه په ثلث كښي به دواړه برابر شريك وي. او د محابات د مقدم كيدو مطلب دا دي.چه په ثلث كښي به مخكښي محابات جاري

---

¹) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى (٤\٤٣٧) وكنز(٤١٩) والدرالمختار(٥\٤٨٢)نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٨٠)-

کولې شي.که څه بچ پاتې شي.نو په باقي پاتې کښې به آزادي نافذ کيږي.ګنی (که څه باقی پاتې نشي) نو نه به آزاديږي.او د آزادئ مقدم کولو مطلب دا دې.چه د ثلث نه مخکښې به آزادي نافذ کولې شي.که څه بچ پاتې شي.نو په باقي پاتې کښې به محابات جاري کيږي.ګنی (که څه پاتې نشو.نو) نه به جاري کيږي.

**القاعدة الكلية** ﴿ يوه قاعده کليه ده چه کله ډير وصيتونه جمع شي.او په دې کښې هيڅ يو وصيت انفرادي طور باندې د ثلث نه زيات نه وي.نو دا ټول وصيتونو والا به برابر شريك وي.او بعضو ته به په بعضو باندې افضليت نشي ورکولې.مثلاً د زيد ټوله ترکه دولس زره روپۍ دی.چه ددې ثلث څلور زره روپۍ جوړيږي.او زيد د عمرو دپاره د زر روپو وصيت اوکړو.او بکر دپاره ئې د دوو زرو روپو، او خالد دپاره ئې د دريو زرو روپو، او ساجد دپاره ئې د دوو زرو،چه ددې مجموعه اته زره جوړيږي.خو انفرادي طريقه باندې هيڅ يو وصيت د ثلث نه زيات نه دې.نو ټول وصيتونه صحيح دی.او ټول به په ثلث کښې شريك وي.خو دخپلو حصو تناسب سره.نو هر يو ته به دده د وصيت نصف ملاويږي.چه ددې مجموعه څلور زره روپۍ جوړيږي.چه دا د ټولې ترکې ثلث دې.نو عمرو ته به پنځه سوه، او بکر ته به زر روپۍ، اوخالد ته به پنځلس سوه، او ساجد ته به هم زر روپۍ ورکولې شي.او ددې ټولو مجموعه څلور زره روپۍ جوړيږي.خلاصه د کلام دا چه دلته هيڅ يوکس ته په بل باندې برتري حاصل نه ده.

**المستثناة الثلاثة** ﴿ خو ددې قاعدې کليې نه درې څيزونه مستثنی دی.که په دې کښې يوڅيز د نورو وصيتونو سره جمع شي.نوددوی په وړاندې به دا وصيتونه ښکته کيږي.په ثلث کښې به مخکښې هغه نافذ کولې شي.کوم چه موجود دې.که څه بچ پاتې شي.نو په دې کښې به نور وصيتونو والا د خپلو حصو مناسبت سره شريك وي. وکه هيڅ بچ پاتې نشي.نو د وصيتونو والا دپاره به هيڅ نه وي.او هغه درې څيزونه دا دی.

① په مرض الموت کښې تنجيزاً آزادول،

② داسې آزادي کوم چه د موصی په مرګ باندې معلق وي.لکه مدبر جوړول،چه د مدبر آزادي د موصی په مرګ باندې کيږي.او مدبر جوړول د صحيح قيد سره ځکه مقيد کړې دې.چه د فاسد تدبير نه احتراز اوشي.لکه مثلاً که موصی داسې اووئيل.چه دا غلام زما د مرګ نه يوه مياشت پس آزاد دې.نو دا مدبر کول صحيح نه دی.نو دې به د نورو وصيتونو والا نه نشی مقدم کولې.بلکه دا به د نورو وصيتونو والا سره شريك وي.او که مدبر کول صحيح وی.لکه مثلاً موصی دا اووائی.چه دا غلام زما په مرګ باندې آزاد دې.نو دا آزادي به د نورو وصيتونو والا نه مقدم وي.

③ په بيع کښې محابات کله چه محابات په مرض الموت کښې وي.بهرحال دا درې څيزونه مستثنی دی.ددې نه علاوه باقی ټول وصيتونه داسې دی.چه په دې کښې يو ته په بل باندې هيڅ افضليت نشته.بلکه دا ټول برابر دی.او هرکله چه د استحقاق په سبب کښې برابری او مساوات دې.نو په نفس استحقاق کښې به هم برابري وي.

**دليلهما** ﴿ صاحبين رحمهماالله فرمائي.چه آزادي د محابات نه زيات قوی ده ځکه چه آزادي نشی فسخ کيدې.او محابات فسخ کيدې شي.يعنی که آزادونکې اوغواړي.چه آزادي فسخ کړم.نو نشی ئې کولې.اوکه غلام اوغواړي.چه آزادي فسخ کړم.نو نشی کولې.او محابات اګرچه د موصی د طرفه فسخ نه قبلوي.خو د مشتري د طرفه فسخ قبلوي.مثلاً مشتري د څلور زره درهمو يو څيز په زر درهمه باندې واخستلو.او د بائع مريض ددې مبيع نه علاوه هيڅ مال نشته.او وارثانو اجازت ورنکړو.نو مشتري ته به وئيلې شي.چه تا ته به صرف د مرې د دريمې حصې نه محابات ملاويږي.او باقی قيمت به وارثانو دپاره پوره کولې شي.ګنی بيع فسخ کړه.نواوس مشتري ته اختيار شته.که غواړي.باقی

قیمت دې ورکړي.اوکه غواړي.بیع دې فسخ کړي.نو معلومه شوه.چه محابات داسې څیز دې.چه دې ته فسخ لاحق کیدې شي.او آزادئ ته په هیڅ شان فسخ نشي لاحق کیدې.

**په لفظ د حصې او جزء سره د یوکس دپاره د وصیت کولو حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَى بِسَهْمٍ مِنْ مَالِهِاو چا چه پخپل مال کښې د یوې حصې وصیت اوکړو فَلَهُ أَخَسُّ سِهَامِ الْوَرَثَةِ إِلَّا أَنْ يَنْقُصَ عَنْ السُّدُسِنو موصی له دپاره به د وارثانو په حصو کښې اخس (د ټولو نه کم) دې.خو دا چه اخس د سدس نه کم شي فَيُتَمُّ لَهُ السُّدُسُنو دده دپاره به سدس پوره کولې شي. |

**تشریح**﴾ که موصی په دې الفاظو کښې وصیت اوکړو.چه زما د مال یوه حصه فلاني دپاره ده.یا زما د مال یو جزء فلاني دپاره دې.نو د حصې او د جزء دواړه یوه معنی ده.او په دواړو کښې جهالت دې.او جهالت وصیت دپاره مضر نه دې.نو وصیت به جائز او صحیح وی.خو په دې کښې دا ابهام پاتې شو.چه هر کس ته به څومره ملاویږي.نو دا فیصله د موصی په وضاحت باندې موقوف ده.او که موصی وضاحت اونکړې شو.تردې چه د موصی انتقال اوشو.نو اوس به دده وارثان د موصی قائم مقام وی.نو وارثان به ددې وضاحت کوی.چه د حصې او جزء نه څه مراد دې؟ وارثان چه څه وضاحت هم اوکړی.که هغه لږ وی او که ډیروی.په دې باندې به عمل کولې شي.دا اصل مسئله ده.خو د کوفې د خلقو په اصطلاح کښې به حصه د سدس په معنی کښې استعمالیدله.په دې وجه د امام صاحب او د صاحبینو رحمهم الله په نیز د حصې ونیلو په صورت کښې اختلاف شو.کوم چه کتاب کښې ذکر دې.

**مسلک ابي حنیفة**﴾ د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز ذکر شوی صورت کښې به موصی له ته سدس ورکولې شي.نه به ددې نه کمولې شي.او نه به زیاتولې شي.او هم دا سدس په نسبي ذوی الفروضو کښې د ټولو نه کمه حصه ده.

**دلیله**﴾ د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه د حصې نه مراد سدس دې.د ابن مسعود رضي الله عنه نه مرفوعاً او موقوفاً یو روایت نقل دې.چه په دې کښې هم دا فرمائیلې شوی دی.چه حصه سدس دې.([1])

**مسلک الصاحبین**﴾ صاحبین رحمهما الله فرمائي.که حصه ئې اوونیله.نو د موصی د وارثانو حصو ته به کتلې شي.په هغوی کښې چه د چاحصه د ټولو نه کمه وی.هم دغومره حصه به موصی له ته ورکولې شي.خو که اتفاق سره چرته داسې راپیښ شو.چه په دې کښې کمه حصه د ثلث نه زیاته شي.نو هلته به د وارثانو د اجازت نه بغیر د ثلث نشي زیاتولې.مثلاً موصی یوه لور پریخودله.چه هغې دپاره نصف دې.او بل هیڅ څوك وارث ئې نشته.نو دلته د نصف نه کمه هیڅ حصه نشته.خود وارثانو د اجازت نه بغیر موصی له ته نصف نشي ورکیدې.په دې وجه به صرف ثلث ورکولې شي.او که وارثان مختلف وی.نو په دوی کښې چه د کوم وارث حصه د ټولو نه کمه وی.هغومره به موصی له ته ورکولې شي.

**دلیلهما**﴾ د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه د حصې نه مراد په وارثانو کښې د یوکس حصه ده.او چونکه وصیت د میراث خور ده.نو په وصیت کښې به هم د حصې نه هم دا مراد اخستلې شي.او چونکه حصې مختلف دی.بعضې نصف ده او څلورمه ده، او اتمه ده، او چرته ثلثان او ثلث او ثمن دې.او په داسې ځایونو کښې اقل یقیني وی.نو د حصې نه به په ټولو کښې کمه حصه مراد اخستلې شي.او که په یو ځائې کښې موصی به د کمې حصې نه هم زیات شي.نو هلته به د ثلث نه زیات موصی

---

[1] اخرجه البزار في مسنده والطبراني في معجمه الوسیط (نصب:۵\۲۲۷)۔

له ته نشي ورکولې.بلکه د ثلث نه زيات به وارثانو ته ورکولې شي.ځکه چه کله د وارثانو اجازت نه وی.نو موصی له ته د ثلث نه زيات نشي ورکيدې.

**د مجهول جزء وصيت کولو سره د تفصيل مسئله**

| |
|---|
| وَاِنْ اَوْصٰى بِجُزْءٍ مِنْ مَالِهٖ او که د خپل مال نه ئې د يو جزء وصيت اوکړو قِيْلَ لِلْوَرَثَةِ اَعْطُوْهُ مَا شِئْتُمْ نو وارثانو ته به وئيلې شي.چه موصی له ته کوم څه تاسو غواړئ ورکړئ |

**تشريح** نوره مسئله وړاندې بيان وې ده البته دلته د حصې د وصيت کولو بيان دې.نودا وصيت جائز دې

**دليله** ځکه چه جزء مجهول دې.چه دا لږ او ډير ته شامل دې.علاوه ددې خبرې نه چه جهالت د وصيت صحت ته مانع نه دې او وارثان د موصی قائم مقام دی نو بيان وارثانو طرف ته دې.

**په دريمه حصه مال کښې مختلف قسمه وصيتونه راجمع کول.او ددې د ادا کولو مسئله**

| |
|---|
| وَمَنْ اَوْصٰى بِوَصَايَا مِنْ حُقُوْقِ اللّٰهِ تَعَالٰى او چاچه وصيتونه اوکړل.مختلف وصيتونه، د حقوق الله څخه وَقُدِّمَتِ الْفَرَائِضُ مِنْهَا عَلٰى غيرهـانو ددې نه به فرائض په نورو باندې مقدم کولې شي. قَدَّمَهَا الْمُوْصِيْ اَوْ اَخَّرَهَا مِثْلَ الْحَجِّ وَالزَّكَاةِ وَالْكَفَّارَاتِ که موصی هغه مقدم کړې وی اوکه مؤخر کړې وی.لکه حج او زکاة او کفارات |

**تشريح الوصية بالحقوق** که د يوسړی وفات اوشی.او د هغه په ذمه د الله تعالى بعضې حقوق دی.مثلاً مونځ، يا روژه يا زکاة يا حج يا کفاره يا نذر يا صدقة فطر، نو اوس دوه صورتونه دی.مړکيدونکی ددې په باره کښې څه وصيت کړې دې اوکه نه؟ که نه ئې دې کړې.نو په وارثانو باندې ددې اداکول واجب نه دی.بلکه وارثانو ته د اوښکلو او نه اوښکلو اختيار شته.او که ړومبې صورت وی.يعنی هغه وصيت کړې وی.نو د مرحوم د ثلث مال نه به دهغې اداکول واجب وی.

**اقسام الحقوق** بيا به د وصيتونو نه کوم وصيت مخکښې کولې شي. نو په دې کښې تفصيل دې.دغه وصيتونه به يا د الله تعالى حقونه وی.يا به د بنده ګانو حقونه وی.او کوم چه د الله تعالى حقونه دی.هغه به يا ټول وصيتونه په فرائضو کښې داخل وی.لکه زکاة او حج او روژه، او مونځ، يا به ټول په واجباتو کښې داخل وی.لکه کفارات او نذر او صدقة فطر، يا به ټول وصيتونه په نفلو کښې داخل وی.لکه د نفلی حج وصيت، او په فقيرانو باندې د صدقې وصيت، نو که وصی دا ټول وصيتونه جمع کړې وی.نو که د موصی ثلث مال د ټولو وصيتونو نافذ کولو دپاره کافی کيږی.نو دا ټول وصيتونه به نافذ کولې شي.او که د موصی ثلث مال ددې ټولو وصيتونو دپاره نه کافی کيږی.خو وارثانو اجازت ورکړو.چه دا ټول وصيتونه نافذ کړې شي.نو دا ټول به نافذ کولې شي.

**تقديم الفرائض** او که وارثانو اجازت ورنکړو.نو اوس به کتلې شي.چه دا ټول وصيتونه په فرائضو کښې داخل دی او که نه دی؟ که ټول فرائضو کښې داخل وی.نو کوم وصيت چه موصی مقدم بيان کړې دې.د هغې نه به شروع کولې شي.اوکه بعضې فرائض او بعضې غير فرائض وی.نو مخکښې به د فرائضو نه ابتداء کولې شي.اګرچه موصی په ذکر کښې فرائض مؤخر کړی وی.او واجبات او تطوعات ئې مقدم کړې وی.

**وجه تقديم الفرائض** فرائض به ولې مقدم کولې شي؟ ځکه چه فرائض د نفلو نه اهم دی.او ښکاره هم دا ده.چه د موصی مقصد هم اهم مقدم کول دی.ځکه چه په کوم سړی باندې فرض وی.هغه عام طور باندې په خيراتونو او صدقو کښې نه مشغوليږی.

وَمَا لَيْسَ بِوَاجِبٍ قُدِّمَ مِنْهُ مَا قَدَّمَهُ الْمُوصِي.او كوم چه واجب نه دى.په هغې كښې به هغه مقدم كولې شي.كوم چه موصى مقدم كړې دي.

**تشريح** او وصيتونه چه كله د فرائضو او واجباتو څنې نه وى.بلكه د نوافلو څنې وى.نو كوم چه موصى مقدم بيان كړې دې.هم هغه به مقدم كولې شى.

**دليله** چه موصى به هم ددې نه شروع كوى.كوم چه د هغه په نيز اهم وى.او كه هغه ددې خبرې صراحت كوى.چه ما كوم وصيت مقدم كړې دې.هغه دې مقدم كړې شي.نو بيا دهغې مقدم كول ضرورى دى.نو دغه شان به هلته كښې هم مقدم كولې شى.كله چه ده صراحت نه وى كړې.خو په ذكر كښې ئې هغه مقدم كړې وى.

## د حج وصيت به څنګه ادا كولې شى؟

وَمَنْ أَوْصَى بِحَجَّةِ الْإِسْلَامِ او كوم كس چه د حج اسلام وصيت اوكړو أَحَجُّوا عَنْهُ رَجُلًا مِنْ بَلَدِهِ يَحُجُّ رَاكِبًا نو په وارثانو كښې به دده د طرفه يوكس باندې حج كولې شى.د موصى د ښار نه، چه دې به په سورلئ باندې حج كوى

**تشريح** په زيد باندې حج فرض دې.هغه په مرض الوفات كښې وصيت اوكړو.چه زما د طرفه حج اوكړئ.نو په داسې صورت كښې به وارثانو باندې واجب وى.چه دهغه د مال نه حج اوكړى.او يو سړې منتخب كړى.چه هغه د موصى د ښار نه حج اوكړى.او دا حج په پيدل تللو سره نه كوى.بلكه په سوريدو به ئې كوى.

**دليله** څكه چه په زيد باندې هم چه كوم حج فرض وو.هغه د خپل ښار نه واجب وو.هم دا وجه ده.چه په زيد به هغه وخت حج فرض وى.كله چه هغه سره دومره مال وى.كوم چه دهغه د ښار نه حج كولو دپاره كافى وى.ګنى كه د لارې خرچ او سورلى نه وى.نو په زيد به د استطاعت نه كيدو په وجه حج فرض نه وى.نو هركله چه په زيد باندې حج ادا كول د خپل ښار نه واجب دې.او دهغه د مرګ نه روستو چه په كوم سړى باندې حج كولې شى.دا هم دهغه حج ادا كول دى.كوم چه په زيد باندې واجب دې.او په زيد باندې د خپل ښار نه حج كول واجب وو.نو دې به هم د زيد د ښار نه حج كوى.او دا غير چه كوم حج كوى.په سورلئ باندې به ئې كوى.څكه چه په زيد باندې پيدل تللو سره حج كول لازم نه وو.بلكه په سوريدو باندې واجب وو.نو په غير باندې به هم حج په هغه طريقه ادا كول واجب وى.په كومه طريقه چه په زيد باندې واجب وو.

## كه د ثلث مال له د حج وصيت لنې پوره كيدې نو څه حكم دې؟

فَإِنْ لَمْ تَبْلُغِ الْوَصِيَّةُ النَّفَقَةَ نو كه مقدار د وصيت د حج د نفقې دپاره كافى نه وى أَحَجُّوا عَنْهُ مِنْ حَيْثُ تَبْلُغُ نو وارثان دې د هغه د طرفه دهغه ځائې نه حج اوكړى.د كوم ځائې نه چه رسيدې شى

**تشريح** وړاندې دا خبره ډير ځل تيره شوې ده.چه وصيت د مړى په ثلث مال كښې نافذ كيږى.ددې نه په زيات كښې نه نافذ كيږى.نو كه مريض وصيت اوكړو.چه زما د مال نه دې حج اوكړې شى.خو دده سره دومره مال نشته.چه په هغې سره حج اوكړې شى.نو په داسې صورت كښې چه د كوم ځائې نه حج كيدې شى.د هغه ځائې نه به كولې شى.مثلاً دومره مال شته.چه په هغې سره د ديوبند نه حج نشى كيدې.البته د بمبئ نه حج كيدې شى.نو د بمبئ نه به حج كولې شى.او دا حكم استحساناً دې.

**وجه الاستحسان** خو مونږ استحساناً دا جائز ګرځولې دې.څكه چه مونږ ته دا خبره معلومه ده.چه د موصى مقصد دا دې.چه دده وصيت نافذ اوكړې شى.نو تركومه پورې چه ممكنه وى.د هغه وصيت

نافذ کول واجب دي.او کومه طریقه چه بیان کړې شوې ده.دا طریقه ممکن ده.نو هم دا به اختیارولې شي.او د امکان حده پورې وصیت نافذ کول د مطلق وصیت باطلولو نه افضل دي.

**القیاس**> د قیاس تقاضا دا ده.چه اوس د موصي د طرفه دسره حج اونکړې شي.ځکه چه دهغه د وصیت مقصد دا دې.چه د دیوبند نه حج اوکړې شي.ځکه چه موصي د دیوبند اوسیدونکې دې.او د دیوبند نه په دومره مال سره حج نشي کیدې.نو هغه وصف د سره اونه موندې شو.کوم چه موصي بیان کړې دې.

**د حاجي په لاره کښې مرکیدل او د حج وصیت کولو مسئله**

| |
|---|
| وَمَنْ خَرَجَ مِنْ بَلَدِهٖ حَاجًّا او کوم سړې چه د حج په ارادې د خپل ښار نه اووتلو فَمَاتَ فِي الطَّرِيْقِ نوهغه په لاره کښې مړ شو وَأَوْصَىٰ أَنْ يُحَجَّ عَنْهُ او دا وصیت ئې اوکړو.چه دده د طرفه حج اوکړې شي يُحَجَّ عَنْهُ مِنْ بَلَدِهٖ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو دده د طرفه به دده د ښار نه حج کولې شي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز، |

**تشریح**> زید د خپل کور نه اووتلو.او صرف د حج په ارادې سره اووتلو.تجارت وغیره مقصد ئې نه وو.او هغه په لاره کښې مړ شو.او دا وصیت ئې اوکړو.چه زما د طرفه حج اوکړې شي.نو دده د طرفه به حج کولې شي.خو اختلاف په دې کښې دې.چه دا حج به د کوم ځائې نه کولې شي.د مرکیدونکې د ښار نه، اوکه د هغه ځائې نه کوم ځائې چه دهغه انتقال شوې دې؟ نو امام ابوحنیفه قول دا دې.چه د زید د ښار نه حج اوکړې شي.

**دلیله**> د اما ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه هرکله هغه د حج پوره کولو نه وړاندې مړ شو.نو د هغه وتل به د غیرحج دپاره شمارلې شي.نو داسې شوه.لکه څنګه چه د سوداګر د مرګ حکم دې.نو اوس به داسې ګڼړلې شي.لکه چه ده په ابتداء کښې د حج وصیت کړې دې.او وړاندې دا خبره تیره شوې ده.چه کله د حج وصیت اوکړې شي.نو د موصي د ښار نه حج کول واجبیږي.لکه څنګه چه واجب وو.هم هغه شان دا آدا کړې شي.

| |
|---|
| وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ يُحَجُّ عَنْهُ مِنْ حَيْثُ مَاتَ او صاحبینو رحمهما الله فرمائیلی دي.چه د هغه ځائې نه به حج کولې شي.کوم ځائې ته چه هغه مړشوې وو. |

**تشریح**> **مسلک الصاحبین**> حضرات صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه چرته د زید وفات شوې دې.د هغه ځائې نه به د زید د طرفه حج کولې شي.اوصاحبینو رحمهما الله دا حکم استحساناً فرمائیلې دې.

**دلیلهما**> د صاحبینو رحمهما الله دلیل دا دې.چه هرکله موصي د سفر په ارادې سره وتلې دې.نو د هغه چه څومره سفر پوره شوې دې.دا قربت دې.او په هغه باندې د خپل ښار نه حج کول واجب وو.خو کوم سفر چه هغه پوره کړې دې.دغومره فریضه د هغه د ذمې نه ادا شوې ده.او د هغې ثواب هغه ته ملاو شوې دې.نو اوس به دویم سړې ددغه ځائې نه حج دپاره لیګلې شي.اوداسې به ګڼړلې شي. چه موصي هم ددې ځائې اوسیدونکې دې.او هرکله چه هغه ددغه ځائې اوسیدونکې شمار کړې شو.نو دهغه د طرفه به هم ددغه ځائې نه حج کول واجب وي.

**دهاشوم د وصیت حکم او د امام شافعي رحمه الله نقطه نظر**

| |
|---|
| وَلَا تَصِحُّ وَصِيَّةُ الصَّبِيِّ)او د بچي وصیت صحیح نه دې |

**تشریح** که ماشوم وصیت اوکړی.نو صحیح دي [1]

**دلیله** دلیل دا دی.چه بچي د تبرع اهل نه دي.حالانکه وصیت تبرع ده.او دویمه خبره دا ده.چه د بچي قول داسي نه دی.چه دا په ده باندي څه څیز لازم کړی.او که دده وصیت حقیر اومنلي شی.نو دده د قول ملزم کیدل به لازمیږی.او دا باطل دی.

| |
|---|
| وَلَا الْمُكَاتَبُ وَإِنْ تَرَكَ وَفَاءً او د مکاتب وصیت صحیح نه دي اګرکه دومره مال پریږدی چي دده وصیت پري پوره کیدي شی. |

**تشریح** که مکاتب په زمانه د کتابت کښي وصیت اوکړی چي زه مړ شم نو زما دومره مال به د فلانی وی.نودده دا وصیت جائز نه دي.

**دلیله** څکه چي په کوم وخت کښي ده وصیت کولو.په هغه وخت کښي دي پوره آزاد نه وو.بلکه هله به آزادیدو چي بدل کتابت ئي ادا کړو.نو چي آزاد نشو.نو غلام او دغلام وصیت صحیح نه وی.

**د وصیت نه د رجوع کولو حکم**

| |
|---|
| وَيَجُوزُ لِلْمُوصِي الرُّجُوعُ عَنِ الْوَصِيَّةِ)او موصی دپاره د وصیت نه رجوع جائز ده |

**تشریح** که موصی د وصیت نه رجوع اوکړی.نو جائز دي.

**دلیله** څکه چه وصیت تبرع ده.او تبرع چه ترکومه پوري تمام نشی.نو د هغی نه رجوع جائز ده.لکه څنګه چه د هبي د پوره کیدو نه وړاندي دده نه رجوع جائز ده.چه ددي تفصیلی بیان په کتاب الهبه کښي تیر شوي دي.

**د وصیت نه د رجوع کولو دوه طریقي**

| |
|---|
| وَإِذَا صَرَّحَ بِالرُّجُوعِ كَانَ رُجُوعًا) |

**حل اللغة** ① صرح:تصریح اوکړه،ښکاره والي اوکړو]

**تشریح** وړاندي معلومه شوي ده.چه موصی دپاره د وصیت نه رجوع جائز ده.اوس فرمائی. چه په صراحت سره رجوع اوکړي شی.نورجوع صحیح کیږی

**دلیله** چي په صریحو الفاظو کښي د رجوع صراحت اوکړی نو ښکاره خبره ده چي رجوع صحیح شوه

**د وصیت نه د انکار کولو حکم**

| |
|---|
| وَمَنْ جَحَدَ الْوَصِيَّةَ لَمْ يَكُنْ رُجُوعًا او چاچه د وصیت نه انکار اوکړو.نو دا انکار به رجوع نه وی |

**تشریح** وړاندي تیر شوی دی.چه د وصیت نه رجوع جائز ده. اوس ددي ځائي نه دا مسئله بیانولي شی.که موصی د سره د وصیت انکار اوکړی.نو دا انکار به رجوع نه وی.

**دلیله** دلیل دا دي.چه د جحود او انکار مقصد دا دي.چه په ماضی کښي د وصیت نفی اوکړي شی.او هرکله چه په ماضی کښي نفی اوکړي شوه.او هیڅ تبدیلي او نه مونډي شوه.نو دا فی الحال هم منتفی شمار کړي شی.

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَى لِجِيرَانِهِ او چاچه د خپلو ګاونډیانو دپاره وصیت اوکړو فَهُمُ الْمُلَاصِقُونَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ |

[1]. د امام شافعی رحمه الله په نیز که بچي د خیر په کارونو کښي وصیت اوکړی .نو جائز دي.

نو هغوی به ملاصق (پیوست) وی.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز

**تشریح** زید وصیت اوکړو.چه زما د مال ثلث زما ګاونډیانو دپاره دې.نو ددې نه به کوم ګاونډی مراد وی. ځکه چه د ګاونډیانو مختلف قسمونه دی.یو ګاونډی د قرابت، چه هغه سره د قرابت ګاونډتوب وی.او بل ګاونډتوب د زمکې دې.یعنی د زمکې ګاونډی، او دریم ګاونډتوب د کور دې.یعنی د کور ګاونډی، او دلته بالاتفاق د ګاونډی نه مراد ګاونډتوب د قرابت دې.او د زمکې ګاونډتوب مراد نه دې.البته د کور ګاونډتوب مراد دې.

بیا ددې په تفسیر کښې اختلاف دې.نو امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائی.چه د جیران (ګاونډی) نه مراد هغه ګاونډیان دی.چه د هغه کور د موصی کور سره متصل (پیوست) او ملاو شوې وی.که ددوی دروازې نیزدې وی.اوکه لرې وی.

**دلیله** د امام ابوحنیفه رحمه الله قول قیاس دې.د قیاس دلیل دا دې. چه جار د مجاورت نه مشتق دې.او مجاورت په حقیقت کښې ملاصقت (یوځائې والی) ته وائی.نو دچا کور چه موصی سره متصل دې.وصیت به هغوی دپاره وی.او پیوست ګاونډی د ګاونډتوب په وجه د شفعې مستحق کیږی.نور خلق به د شفعې نه مستحق کیږی.او دویمه وجه دا هم ده.چه ټولو ګاونډیانو طرف ته وصیت ورګرځول متعذر دی.ځکه چه ګاونډتوب د قرابت اوګاونډتوب دزمکې په دې کښې داخل نه دې.بلکه په دې کښې تخصیص کړې شوې دې.نو دا به اخص الخصوص طرف ته ورګرځولې شی .او اخص الخصوص پیوست ګاونډی دې.

**مسلک الصاحبين** او صاحبین رحمهما الله فرمائی.چه د ګاونډیانو نه مراد ملاصقین هم دی.(دچا کورونه چه دده سره پیوست لګیدلی دی).او ورسره ورسره هغه خلق هم په دې کښې داخل دی.کوم چه د موصی په محله کښې اوسیږی.او کوم خلق چه دده د جمات مونځ ګزار دی.

**دلیلهما** د استحسان دلیل دا دې.چه په عرف کښې هغه ټولو خلقو ته ګاونډیان ونیلې شی.کوم چه په یوه محله کښې اوسیږی.او په یو جمات کښې مونځ کونکی وی.او په یو حدیث سره ددې تائید کیږی.حدیث کښې دی. (لاصلاة لجار المسجد إلا في المسجد) یعنی د جمات د ګاونډی مونځ به صرف په جمات کښې کیږی.نو دلته د جمات د ګاونډی نه هغه کس مراد نه دې.چه دهغه کور جمات سره متصل (پیوست) دې .بلکه هر هغه سړې مراد دې.کوم کس چه دجمات آذان اوری.او د حضرت علی رضی الله عنه نه ددې هم دا تفسیر رانقل شوې دې.او د موصی مقصد دا دی.چه خپلو ګاونډیانو سره ښه سلوك (او احسان) اوکړی.او دا مستحب امر دې.خود نیکئ کولو دا استحباب صرف د ملاصق (او پیوست ګاونډی) دپاره مخصوص نه دې.بلکه ملاصق او غیر ملاصق دواړو ته شامل دې.خوپه موصی او موصی له کښې څه نا څه اختلاط کیدل پکار دې.نو د جمات د یو والی په وجه اختلاط ثابت دې.

**د سخرګنئ روميې مصداق**

وَمَنْ أَوْصَى لِأَصْهَارِهِ او چاچه د خپل اصهار (سخرګنئ) دپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ لِكُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْ امْرَأَتِهِ نو وصیت به دده د ښځې هر ذی رحم محرم دپاره وی

**حل اللغة** ① اصهار: سخرګنئ ]

**تشریح** یو سړی د خپلې سخرګنئ دپاره وصیت اوکړو.نو په دې وصیت کښې به کوم خلق داخل وی.نو وې فرمائیل.چه د ښځې ټول ذو رحم محرم به په دې کښې داخل وی.یعنی دده د ښځې د قرابت د خلقو (رشته دارانو) ځنې هغه سړی به داخل وی.چه د هغوی رشته ددې ښځې سره د نسب په طور دامې

وي.چه هغه شرعاً ددې محرم وي.يعنې دده (موصى) ښځې ته د هغوی سره همیشه دپاره نکاح حرام وي.لکه د ښځې پلار، او رور، او ماما، او تره وغیره.نو د ښځې داسې رشته داران ددې د خاوند اصهار (سخرګنې) ده. او دا د عربو عرف دې.او زمونږ په ملك کښې د صهر ترجمه په سخر سره کولې شي.

**دلیله** د جویریه رضي الله عنها پلار د بنومصطلق (قبیلې) سردار وو.کله چه د بنو مصطلق سره جهاد اوکړې شو.او هغوی قید کړې شو.نو جویریه رضي الله عنها هم قیدی راوستلې شوه.او دا د ثابت بن قیس رضي الله عنه یا ددوی د تره د خوئې په حصه کښې راغلله.او دوی (جویریه رضي الله عنها) خپل خان مکاتبه کړل.او جویریه رضي الله عنها ډیره ښائسته وه. خلاصه د کلام دا چه جویره رضي الله عنها د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې راغلله.عرض ئې اوکړو.چه ایٔ د الله رسوله صلی الله علیه وسلم ! زه جویریه بنت الحارث یم.او کومه واقعه چه ما سره اوشوه.هغه ستا نه پټه نه ده.او زه د ثابت بن قیس رضي الله عنه په حصه کښې راغلې یم.نو ما خپل خان مکاتبه کړې دې.نو زه ستا په دربار کښې ددې دپاره حاضره شوې یم.چه ستاسو نه د کتابت اداکولو په باره کښې سوال اوکړم.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.چه ته ددې نه افضل غوارې.هغې اووئیل.هغه څه دی.نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل.چه زه ستا بدل کتابت ادا کړم.او تا سره نکاح اوکړم.هغې دا منظوره کړله.او نبی کریم صلی الله علیه وسلم بدل کتابت ادا کړو.او دوی د هغې سره نکاح اوکړله.کله چه خلقو ته دا معلومه شوه.چه نبی کریم صلی الله علیه وسلم د جویریه رضي الله عنها سره نکاح کړې ده.نو د بنومصطلق نه چه چا په حصه کښې کوم قیدی مملوك وو.دوی هغه آزاد کړو.او وې وئیل.چه دا خلق خو اوس د نبی کریم صلی الله علیه وسلم اصهار (سخرګنې) دی.

### دذومانو دپاره د وصیت حکم او د ,,اختان،، مصداق

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَى لِأَخْتَانِهِ او چاچه د خپلو ذومانو دپاره وصیت اوکړو فَالْخَتَنُ زَوْجُ كُلِّ ذَاتِ رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو دده د هر ذي رحم محرم خاوند دپاره به وصیت وي |

**حل اللغة** ① **اختان**:جمع دختن، زوم، د لور خاوند]

**تشریح** که یوکس دا وصیت اوکړو.چه زما ذومانو ته دومره مال ورکړئ.نو په اختان کښې به د هرهغه ښځې خاوند داخل وي.کوم چه د موصی ذو رحم محرم دې.لکه خور، ترور، وغیره.

**دلیله** څکه چه دوی ټولو ته ختن (ذوم) وائي.په دې باندې بعضو مشائخو رحمهم الله فرمائیلی دی.چه دا د کوفې د خلقو عرف دې.ګنې زمونږ په عرف کښې د اختان نه مراد د ښځو د خاوندانو محارم مراد دی.اوهرکله چه ددې نه د ښځو د خاوندانو محارم مراد دی.نو بیا په دې خاوندانو کښې عموم دې.که هغه آزاد وي.اوکه غلام وي.د موصی قریبي رشته دار وي، اوکه نه وي. څکه چه لفظ د ختن دوی ټولو ته شامل دې.

### اقاربو دپاره وصیت کولو کښې به اقاربو کښې څوك داخل وي؟

| |
|---|
| وَمَنْ أَوْصَى لِأَقَارِبِهِ او چاچه د خپلو اقاربو دپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ لِلْأَقْرَبِ فَالْأَقْرَبِ مِنْ كُلِّ ذِي رَحِمٍ مَحْرَمٍ مِنْهُ نو وصیت به اقرب دپاره وي.بیا هغه چا دپاره کوم چه دده نه پس اقرب وي.یعنی د موصی هر ذو رحم محرم وَلَا يَدْخُلُ فِيهِمُ الْوَالِدَانِ وَالْوَلَدُ او په دې کښې به مور پلار او اولاد نه داخلیږی وَيَكُونُ لِلِاثْنَيْنِ فَصَاعِدًا او دا وصیت به د دوو یا زیاتو دپاره وي |

**تشریح** وصیت د میراث خور ده.او په میراث کښې د الاقرب فالاقرب اعتبار کیږی.چه ددې تفصیل په ,, باب العصبات،، کښې سراجی کښې ذکر شوې دې.نو دغه شان به په وصیت کښې هم د الاقرب

فالاقرب اعتبار کولې شي.او په میراث کښې د جمعې نه مراد دوه دي.نو دغه شان به په وصیت کښې هم د جمعې نه مراد کم ازکم دوه وي.

**مسلک الصاحبین** صاحبین رحمهماالله فرمائي.چه په اقرباو کښې به هغه ټول حضرات داخل وي.کوم چه اسلام کښې آخري پلار طرف ته منسوب وي.ددې څه مطلب دې؟ نو ددې په تفسیر کښې د مشائخو دوه اقواله دي : ① یعنی هغه پلار کوم چه رومبې اسلام راوړلې وي.لکه اولاد د حضرت علی رضی الله عنه ② رومبې هغه پلار چه هغه د اسلام زمانه موندلې وي.او هغه مسلمان شوي نه وي.لکه اولاد د ابوطالب، چه کله څوك علوي د خپلو اقرباو دپاره وصیت اوکړي.نو د رومبی تفسیر په اعتبار سره به اقرباو کښې صرف د حضرت علی رضی الله عنه اولاد داخل وي.او د جعفر او د عقیل اولاد به په دې کښې داخل نه وي.او د دویم تفسیر په اعتبار سره به په دې کښې د حضرت علي رضی الله عنه اولاد سره سره د جعفر او د عقیل اولاد هم داخل وي.خلاصه د کلام داچه د موصی نه واخله تر آخري پلاره پورې چه کوم په اسلام کښې دي. د صاحبینو رحمهماالله په نیز به ددې په منځ کښې ټول اولاد په دې وصیت کښې داخل وي.که هغه سرې وي او که ښځې وي، که اقرب وي او که ابعد وي.دا ټول تفصیل د صاحبینو رحمهماالله په قول باندې دې.

**دلیلهما** د صاحبینو رحمهماالله دلیل دې.فرمائي.چه قریب د قرابت نه مشتق دې.نو چا سره چه قرابت قائم وي.هم هغه ته به قریب ونیلې کیږي.نو کوم سړې چه د خپل خاندان ځنې دې.که هغه ذو رحم محرم وي او که نه وي.قرابت خو هر یو سره قائم دې.نو هر یو ته به قریب ونیلې شي.

**په تره او ماما کوم کښې زيات اقرب دې ؟**

وَإِذَا أَوْصَى بذلك وَلَهُ عَمَّانِ وَخَالَانِ او کله چه هغه په دې باندې وصیت اوکړي او دده دوه ترونه او دوه ماماګان دي فَالْوَصِيَّةُ لِعَمَّيْهِ عِنْدَهُ اعْتِبَارًا لِلْأَقْرَبِ كَمَا فِي الْإِرْثِ نو دده دوارو ترونو دپاره به وي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز، د اقرب اعتبار کولو سره، لکه څنګه چه میراث کښې دي

**تشریح** دامام ابوحنیفه په نیز په میراث کښې د اقرب فالاقرب قاعده جاري ده.نوکه یو کس د خپلو رشته دارانو دپاره وصیت اوکړو.او په هغوی کښې دوه ترونه او دوه ماماګان وو.نوامام ابوحنیفه په نیز ترونه د ماماګانو نه اقرب دی د دې وجې به وصیت د ترونو دپاره وي ماماګانو ته به څه نه ملاویږي.

**مسلک الصاحبین** د صاحبینو په نیز په وصیت کښې هغه قاعده نه ده کومه چې د امام ابوحنیفه په نیز ده.نو ددې وجې په دې وصیت کښې به د دوارو ترونو سره دواړه ماماګان هم حقدار وي.

**د اقرباء دپاره ئې وصيت اوکړو اوصرف تره او دوه ماماګان دي نوځه حکم دې؟**

وَإِن كَانَ لَهُ عَمٌّ وَخَالَانِ او که د موصی یو تره او دوه ماماګان وي فَلِلْعَمِّ النِّصْفُ نو تره دپاره د وصیت نصف دې وَلِلْخَالَيْنِ النِّصْفُ او نصف د دوارو ماماګانودپاره دې

**تشریح** که موصی د اقرباو دپاره وصیت اوکړو.او هغه صرف یو تره او دوه ماماګان پریخودې دي.نونیم وصیت به د تره دپاره وي او نیم وصیت به د دوارو ماماګانو دپاره وي

**دلیله** چونکه اقرباء د جمعې صیغه ده.چه ددې دپاره کم ازکم دوه افراد ضروري دي.او تره صرف یوکس دې.په دې وجه به دا تره صرف د نصف وصیت حقدار وي.او نصف بچ پاتې شو.نودا به دواړه ماماګان اخلي.

وَقَالَا الْوَصِيَّةُ لِكُلِّ مَنْ يُنْسَبُ إِلَى أَقْصَى أَبٍ لَهُ فِي الْإِسْلَامِ او صاحبین رحمهماالله فرمائي.چه وصیت

به دهر هغه سرې دپاره وي.کوم چه اسلام کښې آخرې پلار طرف ته منسوب وي

**تشریح** ﴿ **مسلك ابي حنيفة** ﴾ زید د خپلو اقرباو دپاره وصیت اوکړو.نو په دې کښې به څوك داخلیږي.د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دلته د شپږو څیزونو لحاظ ساتلې شوې دی:
**مسلك الصاحبين** ﴾ صاحبین رحمهما الله فرمائي.چه په اقرباو کښې به هغه ټول حضرات داخل وي.کوم چه اسلام کښې آخرې پلار طرف ته منسوب وي.ددې څه مطلب دې؟
**الاقوالان في مفهوم النسبة** ﴾ نو ددې په تفسیر کښې د مشانخو رحمهم الله دوه اقواله دی : ① یعنی هغه پلار کوم چه رومبې اسلام راوړلې وي.لکه اولاد د حضرت علي رضي الله عنه
② رومبې هغه پلار چه هغه د اسلام زمانه موندلې وي.او هغه مسلمان شوې نه وي.لکه اولاد د ابوطالب، چه کله څوك علوی د خپلو اقرباو دپاره وصیت اوکړي.نو د رومبی تفسیر په اعتبار سره به اقرباو کښې صرف د حضرت علي رضي الله عنه اولاد داخل وي.او د جعفر او د عقیل اولاد به په دې کښې داخل نه وي.او د دویم تفسیر په اعتبار سره به په دې کښې د حضرت علي رضي الله عنه اولاد سره سره د جعفر او د عقیل اولاد هم داخل وي.خلاصه د کلام داچه د موصی نه واخله تر آخرې پلاره پورې چه کوم په اسلام کښې دی. د صاحبینو رحمهما الله په نیز به ددې په منځ کښې ټول اولاد په دې وصیت کښې داخل وي.که هغه سړې وي او که ښځې وي، که اقرب وي او که ابعد وي.دا ټول تفصیل د صاحبینو رحمهما الله په قول باندې دې.
**دليلهما** ﴾ دا د صاحبینو رحمهما الله دلیل دې.فرمائي.چه قریب د قرابت نه مشتق دې.نو چا سره چه قرابت قائم وي.هم هغه ته به قریب وئیلې کیږي.نو کوم سړې چه د خپل خاندان څښې دې.که هغه ذو رحم محرم وي او که نه وي.قرابت خو هر یو سره قائم دې.نو هر یو ته به قریب وئیلې شي.

## د وصیت کولو نه پس د مال هلاکیدو حکم

> وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ دَرَاهِمِهِ او چاچه وصیت اوکړو.پخپلو دراهمو کښې د ثلث، أَوْبِثُلُثِ غَنَمِهِ یا پخپلو چیلو کښې د ثلث فَهَلَكَ ثُلُثَا ذٰلِكَ وَبَقِيَ ثُلُثُهُ نو ددې دوه ثلثه هلاك شو.او ددې یو ثلث باقی پاتې شو وَهُوَيَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَابَقِيَ مِنْ مَالِهِ او دا (کوم ثلث چه باقی پاتې شوې دې) دده د باقی مال د ثلث نه اوځی فَلَهُ جَمِيعُ مَابَقِيَ نو هغه دپاره ټول باقی پاتې دې

**تشریح** ﴾ زید سره څه دراهم دی.او څه چیلۍ دی.او ددې دراهمو او چیلو نه علاوه هم څه مال شته.چه دا د چیلو یادراهمو د ثلث نه دوچند دې.کله چه زید وصیت کوی.چه زما د دراهمو دریمه حصه فلانی دپاره وصیت دې.یا اووائي.چه زما د چیلو یو ثلث وصیت دې.نو وصیت صحیح دې.خو اوس دا واقعه راپیښه شوه.چه په دې دراهمو یا چیلو کښې دوه ثلثه هلاك شو.او صرف یو ثلث باقی پاتې شو.او ددې ثلث نه علاوه موصی سره دومره مال موجود دې.چه هغه ددې په مقابله کښې دوچند یا ددې نه هم زیات دې.نو اوس به موصی له ته چه په دراهمو او په چیلو کښې چه کوم ثلث باقی دې.هغه پوره ثلث به موصی له ته ورکولې شي.
**مسلك زفر** ﴾ امام زفر رحمه الله فرمائي.چه کوم ثلث باقی دې.د هغې ثلث به موصی له ته ملاویږي.مثلاً ټول نهه سوه دراهم وو.په دې کښې ثلث یعنی ۳۰۰ باقی پاتې شو.او ۶۰۰ دراهم هلاك شو.نو د امام

زفر رحمه الله په نیز د باقي پاتې ۳۰۰ ثلث یعنی ۱۰۰ به موصی له ته ورکولې شي.(۱)

**دلیله** > د امام زفر رحمه الله دلیل دا دې.چه ټول مال یعنی دراهم او چیلې به موصی له او وارثانو په منع کښې مشترك وی.نو کوم مقدارچه هلاك شو.هغه هم مشترك دې.او کوم چه باقي پاتې دې.هغه هم مشترك دې.او اصول دا دې.چه کوم مال مشترك وی.د هغې هلاکت هم په شرکت باندې وی.او کوم چه باقي پاتې کیږی.د هغې بقاء هم شرکت باندې باقي پاتې کیږی.نو په ذکر شوی صورت کښې چه هرکله دا مال مشترك شو.نو هلاك شوې او باقي پاتې ټول مشترك شو.او که ترکه مختلف اجناس وی.او هلته موصی دا طریقه اختیار کړې وی.نو هلته د ټولو (امامانو) په نیز هم دا حکم دې.چه د باقي پاتې ثلث به موصی له ته ورکولې شي.مثلاً زید سره څه د چیلو رمه ده.او څه د اوښانو ده.او څه د غویانو ده.او زید په دې کښې د یو ثلث وصیت اوکړو.او اتفاق سره د هر یوې رمې دوه ثلثه هلاك شو.او صرف یو ثلث باقي پاتې شوې دې.نو هلته به بالاتفاق موصی له ته د هر جنس د باقي پاتې ثلث نه یو ثلث ورکولې شي.نو دلته کښې هم دغه شان پکار ده.

**دلیل جمهور الحنفیة** > د جمهورو احنافو د طرفه د امام زفر رحمه الله جواب دې.ددې حاصل دا دې.چه جنس واحد په مختلفو اجناسو باندې قیاس کول قیاس مع الفارق دې.ځکه چه په کتاب القسمة کښې دا بحث تیر شوې دې.په جنس واحد کښې به د تقسیم په درخواست باندې قاضي په باقي شریکانو باندې زبردستي کوی.او د مختلفو اجناسو په صورت کښې به قاضي زبردستي نه کوی.او ددې وجه دا ده.چه په یو جنس کښې د یو څیز ډیر شریکان راجمع کیدې شي.یعنی په دې کښې د موصی له هم حق وی.او د وارثانو حق هم وی.نو هرکله چه اجتماع اوشوه.یعنی د یو جنس په صورت کښې په ۹۰۰ سوه دراهمو کښې، نو د موصی له حق به وراندې وی.ځکه چه وصیت د میراث نه مقدم وی.نو په دې کښې د موصی له حق اصالتاً وی.او د وارثانو حق تبعاً وی.او بیا قاعده کلیه دا ده.چه هرکله یو مال په اصل او تابع باندې مشتمل وی.او په دې کښې بعضې هلاك شي.نو هلاك شوې تابع طرف ته ګرځولې شي.اصل طرف ته نشي ګرځولې.لکه څنګه چه په مال مضاربت کښې هم دغه شان کیږی.نو دلته به هلاکت هغه ثلثان طرف ته ګرځولې شي.کوم چه د وارثانو حق وو.او اصل ثلث باقي دې.نو هغه به موصی له ته ورکولې شي.

**صورة الاجناس المختلفة** > که اجناس مختلف وی.نو هلته نه زبردستي کیدې شي.او نه ټول په شي واحد کښې جمع کیدې شي. او هرکله چه دا ټول څیزونه نشي کیدې.نو د وصیت به د میراث نه تقدیم هم نه ثابتیږی.او نه به د اصل او تبع مسئله جاری کیدې شي.دا دلیل حاصل شو.او که موصی د دراهمو په خانې درهم ونیلې وې.مثلاً داسې نې ونیلې وو.چه ما فلانی ته یو درهم هبه کړو.او مثلاً درې درهمه وو.چه د هغې نه دوه درهمه هلاك شو.او یو باقي پاتې شو.نو دا یو به موصی له ته ورکولې شي.یعنی دلته به دا نشي ونیلې.چه ددې یو درهم ثلث به موصی له ته ورکولې شي.باقي خبره واضحه ده.

**د یو ثلث وصیت کولو نه پس دوه ثلثه مال هلاك شي نو څه حکم دې ؟**

> وَمَن أَوْصَى بِثُلُثِ ثِيَابِهِ او څوک چې د خپلې دریمې حصې کپړو وصیت نې اوکړو فَهَلَكَ ثُلُثَاهَا وَبَقِيَ ثُلُثُهَا نو په دې کپړو کښې دوه ثلثه هلاك شو.او ددې ثلث باقي پاتې شو وَهُوَ يَخْرُجُ مِنْ ثُلُثِ مَا بَقِيَ

---

(۱) القول الراجح هوهذا قول زفر رحمه الله كذا في كشف الأستار(۲\۳۲٤) وحاشية السعدى على العناية (۹\۳۷٤) وردالمحتار(۵\٤۷۵) والعينى (۱۳\٤۲۳) نقلاً عن القول الراجح (۲\۳۷٦)-

مِنْ مَالِهِ او دا (باقي پاتې ثلث) دده د باقي پاتې مال د ثلث نه خارجيږي لَمْ يَسْتَحِقَّ إِلَّا ثُلُثَ مَا بَقِيَ مِنَ الثِّيَابِ نو موصى له به مستحق نه وي.خو د باقي پاتې کپړو د ثلث

**تشريح>** كه موصي د خپلو كپړو د ثلث وصيت كړې وي.او اتفاق سره ددې كپړو نه دوه ثلثه هلاكې شي.او صرف يوثلث باقي پاتې شي.نو موصى له ته به د باقي پاتې ثلث ملاويږي.اوكه باقي پاتې ټول به ملاويږي ؟ نو په دې كښې تفصيل دې.كه كپړې د مختلف جنس وي.نو د باقي پاتې كپړو ثلث به ملاويږي.اوكه د يو جنس وي.نو باقي پاتې به ټول ملاويږي.ځكه چه د جنس د اتحاد په صورت كښې كپړې د دراهمو پشان شوې.او هم دغه شان هركيلي او وزني څيز هم د دراهمو په مرتبه كښې دې.ځكه چه لكه څنګه چه په دراهمو كښې تقسيم باندې زبردستي جائز ده.دغه شان كيلي او وزني څيزونو كښې تقسيم باندې زبردستي جائز ده.او لكه څنګه چه په دراهمو وغيره كښې جمع كول ممكن دي.دغه شان په كيلي او وزني څيز كښې جمع كول ممكن دي.

**چه مال نغد هم وي او قرض هم وي نو د زرو روپو وصيت به څنګه پوره كولې شي؟**

وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِأَلْفِ دِرْهَمٍ او چا چه د يوكس دپاره د زرو درهمو وصيت اوكړو وَلَهُ مَالٌ عَيْنٌ وَدَيْنٌ او د هغه نغد مال شته.او قرض هم شته فَإِنْ خَرَجَ الْأَلْفُ مِنْ ثُلُثِ الْعَيْنِ دُفِعَتْ إِلَى الْمُوصَى لَهُ نو كه زر (درهم) راوځي.د نغد ثلث نه، نو زر (درهم) به موصى له ته وركولې شي

**تشريح>** زيد وصيت اوكړو.چه زما د مال نه دې زر روپۍ بكر ته وركړې شي.نو وصيت صحيح دې.خو زيد څه مال نغد پريخودو.او بعضې مال هغه دې.كوم چه په خلقو باندې قرض دې.نو بكر ته چه كوم هزار روپۍ وركولې شي. كه نغد مال دومره وي.چه د هغې ثلث زر روپۍ جوړيږي.مثلاً درې زره يا ددې نه زيات نغد مال موجود دې.نو بكر ته به زر روپۍ ددې نغد مال نه وركولې شي.

**دليله>** ځكه چه هر حقدار ته د هغه حق وركول ممكن دی.د څه كمی نه بغير، نو دې طرف ته به رجوع كولې شي

وَإِنْ لَمْ يَخْرُجْ او كه زر (درهم) دثلث نه نه اوځي دُفِعَ إِلَيْهِ ثُلُثُ الْعَيْنِ نو موصى له ته به د نغد مال ثلث وركولې شي وَكُلَّمَا خَرَجَ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ أَخَذَ ثُلُثَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ الْأَلْفَ او د قرض نه چه كوم مقدار وصوليږي.د هغې نه به ثلث اخلي.تردې چه هغه (موصى له) زر (درهم) وصول كړي

**تشريح>** او كه نغد مال دومره نه دې.بلكه كم دې.مثلاً ټولې زر روپۍ نغدې دی.او باقي مال په خلقو باندې قرض دې.نو بكر ته به د زرو روپو ثلث په نغدو كښې وركولې شي.او باقي حصه به هغه ته د قرضو نه ملاويږي.چه ددې صورت به دا وي.چه څومره قرض وصوليږي.د هغې دريمه حصه به بكر ته وركولې شي.تردې چه د هغه حق پوره شي.يعني زر روپۍ پوره شي.

**دليله>** ددې طريقې اختيارولو وجه دا ده.چه موصى له او وارثان په تركه كښې دواړه شريكان دی.ددې باوجود كه نغد مال صرف موصى له ته وركړې شي.نو د وارثانو په حق كښې كمی كول لازميږي.او كمی ځكه لازميږي .چه موصى له ته نغد مال ملاو شو.او وارثانو ته هغه مال ملاو شو.كوم چه په خلقو باندې قرض دې .حالانكه نغد مال د قرض نه غوره او افضل وي.ځكه چه قرض فی الحال مال نه دې.بلكه د وصولولو نه پس به مال وي.نو د موصى له او وارثانو په منځ كښې برابري به په هغه صورت كښې پاتې كيږي.كوم چه مونږ بيان كړې دې.

**حمل دپاره د وصيت حکم**

وَتَجُوزُالْوَصِيَّةُ لِلْحَمْلِ وَبِالْحَمْلِ امام قدوري رحمه الله اوفرمانيل.او وصيت جائز دې د حمل إِذَاوُضِعَ لِأَقَلَّ مِنْ سِتَّةِ أَشْهُرٍمِنْ يومِ الْوَصِيَّةِ)او د حمل وصيت (هم جائز دې). کله چه دا د وصيت د ورځ نه د شپږو مياشتو نه په کم کښې پيدا شي

**تشريح** که يو بچې په خيټه کښې دې.او دده د يو مورث وفات اوشي.نو حمل ته به هم ميراث ملاويږي.او ميراث او وصيت ګويا چه دواړه خويندې دی.نو که حمل دپاره وصيت اوکړې شي.نو جائز دې.او هم دغه شان که د حمل وصيت اوکړې شي.نو هغه هم جائز دې.مثلاً اووائي.چه زما د وينځې په خيټه کښې چه کوم بچې دې.دا فلاني سړی ته ورکړئ.نو دا هم صحيح دې.او وصيت جائز دې.خو دا وصيت حمل دپاره، يا وصيت د حمل هغه وخت جائز دې.کله چه حمل په خيټه کښې موجود وی.ددې علامت دا دې.چه د وصيت د وخت نه د شپږو مياشتو نه په کم کښې پيدا شي.

**دليل جواز الوصية للحمل** دحمل دپاره د وصيت د جواز دليل دا دې.چه وصيت فی الحال مالك جوړول نه دی.بلکه د ميراث پشان په دې کښې هم استخلاف دې.نو لکه څنګه چه ميراث جائز دې.دغه شان وصيت هم جائز دې.ځکه چه وصيت او ميراث پخپلو کښې د يو بل مثالونه دی.صرف دومره فرق دې.چه وصيت په رد کولو سره ردکيږی.او ميراث نه رد کيږی.ځکه چه وصيت کښې د موصی د طرفه تمليك (مالك جوړول) دی.او کوم ځائې چه تمليك وی.هلته رجوع جائز ده.او په ميراث کښې تمليك نشته.بلکه صرف استخلاف دې.

**دليل جواز الوصية بالحمل** د حمل وصيت نو دا هم جائز دې.ځکه چه زمونږ خبره د داسې جنين حمل په باره کښې ده.چه دده د وصيت په وخت کښې موجود کيدل معلوم وی.او هرکله چه دلته دده موجود کيدل معلوم شوی دی. نو دا جنين به يو څو ورځې پس را موجود کيږی.او د مړی د حاجت او عجز په لحاظ سره د وصيت باب وسيع دې.او د وسعت دليل دا دې.چه که يو کس وصيت اوکړو.چه زما په باغ کښې کومې ميوې راشی.دا د فلانی دپاره وصيت دې.نو دا وصيت جائز دې.حالانکه ميوې اوس موجود نه دی.نو کوم څيز چه موجود دې.د هغې وصيت به په درجه اولی جائز وی.

**د حامله وينځې چا دپاره وصيت کول او د حمل استثناء کول**

واذاأَوْصَى لرجلٍ بِجَارِيَةٍ إِلَّا حَمْلَهَا او کله چې وصيت د يو سړی دپاره د وينځې خو د هغې د حمل (نې اونکړو). صَحَّتِ الْوَصِيَّةُ وَالِاسْتِثْنَاءُ نو وصيت او استثناء صحيح ده

**حل اللغة** ① **أفراد:** خانله والې]

**تشريح** که موصی د وينځې وصيت اوکړو.او ددې د حمل استثناء نې اوکړله.نو د وينځې وصيت صحيح دی.او استثناء هم صحيح ده.نو حمل به په وصيت کښې داخل نه وی.

**دليل صحة الوصية** ځکه چه لفظی اعتبار سره لفظ د جاريه حمل ته شامل نه دې.خو که مطلق جاريه (وينځه) نې اووئيلې.او د حمل استثناء نې اونکړله.نو د تابع کيدو په وجه به حمل هم د وينځې لاندې داخل وی.او وصيت به صحيح وی.نو هرکله چه موصی يواځې د مور وصيت اوکړو.نو وصيت صحيح دې.

**دليل صحة الاستثناء** او که يواځې د حمل وصيت اوکړی. نو دا هم جائز دې. نو ددې استثناء هم صحيح ده.ځکه چه قاعده کليه هم دا ده.چه د کوم څيز يواځې عقد صحيح کيږی.د هغې د عقد نه استثناء هم کيدې شی.او د کوم څيز چه خانله عقد نشی کيدې.د هغې استثناء هم نه صحيح کيږی.

**د داسي وينځي وصيت کول، چه د موصى د وفات نه پس ددې بچى پيدا شي نو څه حکم دى ؟**

(وَمَنْ أَوْصَى لِرَجُلٍ بِجَارِيَةٍ)او چا چه د يوکس دپاره د وينځې وصيت اوکړو فَوَلَدَتْ بَعْدَ مَوْتِ الْمُوصِي قبل ان يقبل الموصى له ولدا ثم قبل الموصى له وهما يَخْرُجَانِ مِنَ الثُّلُثِ نو هغې د موصى د مرګ نه روستو اود موصى لـه د قبض کولـو نـه وړاندې بچې راوړو.بيا موصى لـه قبول کړو.فَهُمَا لِلْمُوصَى لَهُ نو دوى دواړه به موصى له دپاره وى

**تشريح** زيدخالد دپاره د خپلې وينځې وصيت اوکړو.او د زيد د مرګ نه روستو، د ترکې تقسيمولو نـه وړاندې وينځې يو بچى راوړو.او د وينځې او د بچى قيمت دومره دې.چه دوى دواړه د ترکې د دريمې نه اوځى.يعنى ترکه او ددوى دوه ثلثه يا ددې نه زيات موجود دى.نو وينځه او بچې دواړه به خالد ته ملاويږى.

**دليله** ځکه چه وصيت کښې مور اصالتاً داخله ده.ځکه چه ددې وصيت زيد کړې دې.او بچې چونکه د وصيت په وخت کښې مور سره متصل دې.نو بچې به د تبعيت په بناء وصيت کښې داخل وى.او ترکه د تقسيمولو نه وړاندې د مړى په ملکيت باندې باقى پاتې وى.ددې دليل دا دې.چه د مړى د ترکې نه د مړى قرضې ادا کولې شى.نو هرکله چه ترکه لا اوس د مړى (د زيد) په ملکيت باندې باقى پاتې ده.او هيڅ مانع موجود نه دې.نو بچې به هم وصيت کښې داخل وى.او هرکله چه مور او بچې (دواړه) په وصيت کښې داخل شو.نو دوى دواړه به خالد ته ملاويږى.

**که مور او څوئې د ثلث نه نه اوځى نو څه حکم دى ؟**

وَإِنْ لَمْ يَخْرُجَا مِنَ الثُّلُثِ او که دوى دواړه د دريمې حصې نه نه اوځى ضَرَبَ بِالثُّلُثِ نو موصى له به دريمه حصه اخلى وَأَخَذَ بالحصة مِنْهُمَا جَمِيعًا فِي قَوْلِ أَبِي يُوسُفَ وَمُحَمَّدٍ رحمهماالله او په دوى دواړو کښې چه کوم يو دده په حصه کښې راشى.هغه به اخلى.د صاحبينو رحمهماالله په قول باندې

**تشريح** او که مور او بچې دواړه د دريمې نه نه اوځى.يعنى ددوى د قيمت نـه عـلاوه دوه ثلثه يـا ددې نه زيات باقى پاتې نشى.نو د صاحبينو رحمهماالله په نيز به د مور او بچى دواړو نـه پـه يوځـائې ثلث وصولولې شى.

**دليلهما** د صاحبينو رحمهماالله دليل دا دې.چه بچې هم په وصيت کښې داخل شوې دې.اګرچه بچې په وصيت کښې اصالتاً داخل دې.او بچې تبعاً داخل دې.بهرحال که هرڅنګه داخل شى. خو داخل دې.او هرکله چه بچې د اتصال د وخت نه وصيت کښې داخل دى.نو اوس هرکله چه هغه د مور نه جدا شوې دې.نو اوس به د وصيت نه نه خارجيږى.نو اوس به داسې کنړلې شى.چه مور او بچې په وصيت کښې دواړه برابر داخل دى.نو اوس ددې هيڅ وجه پاتې نشوه.چه مور په بچى باندې مقدم کړې شى.او ددې مثال داسې دې.

وَقَالَ أَبُوحَنِيفَةَ يَأْخُذُ ذَلِكَ مِنَ الْأُمِّ فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ أَخَذَهُ مِنَ الْوَلَدِ(¹) او امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائيلى دى.چه هغه به ثلث د مور نه وصولوى.نو که څه بچ پاتې شى.نو هغه به د بچى نه اخلى.

---

¹) القول الراجح هوهذا قول أبي حنيفة رحمه الله كذا في ملتقى (٤\٣٥٤) وردالمحتار(٥\٤٨٠) نقلاً عن القول الراجح (٢\٣٧٩)-

**تشریح﴾ مسلک ابي حنیفة﴾** امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي.چه هغه به خپله دریمه حصه د مور نه اخلي. کـه د مور نه دده دریمه پوره شي.نو صحیح ده.ګنی که څه پاتې شي.نو دا کمې به په بچی سره پوره کولې شي.

**دلیله﴾** د امام ابوحنیفه رحمه الله دلیل دا دې.چه په وصیت کنبې مور اصل ده.او بچې د هغې تابع دې.او دا اصول پخپل ځائې مسلم دی.چه تابع د اصـل مقابـل نه جوړیږي.نو دلتـه بچې د مـور مقابـل څنګه جوړیدې شي.ځکه که په مور او بچي دواړو کنبې وصیت نافذ اومنلې شي.نو بچې (چه تابع دې) د مور (چه اصل ده) مقابل وی.مور دپاره به په بعضې حصه کنبې وصیت باطلوی.او دا ناجائز ده.چه بچې په اصل کنبې وصیت باطل کړي.ځکه چه د صاحبینو رحمهماالله د قول مطابق د مور ۲۱۳ وصیت کنبې داخل دې.او ۱۱۲ د وصیت نه خارج شو.او دا ټول د تابع په وجه شوې دې.

**توضیحه في ضوء المثال﴾** مثلاً زید سره شپږ سوه درهمه دی.او یوه وینځه ده.چه د هغې قیمت درې سوه درهمه دې.اوس زید ددې وینځې وصیت خالد دپاره اوکړو.نو وصیت صحیح دې.او پوره وینځه به خالد ته ملاویږي.ځکه چه وینځه د پوره ترکې دریمه (حصه) ده.خود زید د مرګ نـه روستو او د ترکې تقسیمولو نه وړاندې دغه وینځې یو بچې راوړو.چه د هغه قیمت هم درې سوه درهمه دې.اوس ټوله ترکه ۱۲۰۰ سوه درهمه شوه.چه ددې ثلث څلور سوه جوړیږي.نو د امام ابوحنیفه رحمه الله په نیز به پوره وینځه خالد ته ورکولې شي.خو اوس هم دهغه ثلث پوره نشو.نو د بچی د قیمت نه به ۱۱۳ نوره هم خالد ته ورکولې شي.اوس څلور سوه مالیت خالد ته ملاو شوې دې.چه دا د دولسو سوو ثلث دې.او د صاحبینو رحمهماالله په نیز به د مور او بچی دواړو۲۱۳ خالد تـه ورکولې شي.او دمور دوه ثلثه ۲۱۳ دوه سوه دراهم دی.او د بچی دوه ثلثه هم دوه سوه درهم دی.نو د دولسو سوو ثلث پوره شو.نو خالد ته به ددوی دواړو دوه ثلثه ملاویږي.اوس به په دې باندې د فریقینو دلیلونه پیش کولې شي.

**د غلام د خدمت یا په کور کنبې د اوسیدو وغیره د وصیت حکم**

| |
|---|
| وَتَجُوزُ الْوَصِيَّةُ بِخِدْمَةِ عَبْدِهِ وَسُكْنَى دَارِهِ سِنِينَ مَعْلُومَةً اود خپلو غلامانو د خدمت،اودخپل کوردسکنٰی دمعین کالونو پورې وصیت کول جائز دې وَتَجُوزُ بِذَلِكَ أَبَدًا او ددې وصیت د همیشه دپاره کول جائز دې |

**تشریح﴾** لکه څنګه چه انسان په خپل ژوند کنبې د خپل څیز د منافعو نور خلق مالك جوړولې شي.چه ددې یوڅوصورتونه دی ① کرایه باندې ئې ورکړي.نوپه کرایه باندې اخستونکې د اجرت په بدله کنبې د منافعو مالك شو. ② عاریت باندې ئې ورکړي. د عاریت په صورت کنبې عاریت باندې اخستونکې په مفتو کنبې د منافع مالك کیږي.دغه شان انسان ته دا حق حاصل دې.چه د خپل مرګ نه پس یوکس د خپل څیز د منافعو مالك جوړ کړي.

**دلیله﴾** ځکه چه لکه څنګه هغه ته د اعیـان د وصیت حاجت راپیښیږي.د غـه شـان هغـه تـه د منـافعو د وصیت حاجت راپیښیږي.

**د غلام د خدمت په وصیت کنبې د نفاذ طریقه**

| |
|---|
| فَإِنْ خَرَجَتْ رَقَبَةُ الْعَبْدِ مِنَ الثُّلُثِ نوکه د غلام رقبه د دریمې حصې نه اوځی سُلِّمَ إِلَيْهِ لِلْخِدْمَةِ نو غـلام به موصی له ته سپارلې کیږي.چه غلام د موصی له خدمت اوکړي |

**تشریح﴾** زید د خالد دپاره د غلام د خدمت وصیت اوکړو.او د غـلام قیمت دوه ثلثـه دې.یا ددې نه زیات نور مال هم موجود دې.یعنی غلام د ثلث نه وتلې شي.نو غلام به خالد ته سپارلې کیږي.چه غلام د خالد خدمت کوی.

**دليل** خکه چه د خالد حق په ثلث کښي دي.په دې ثلث کښي وارثان دده مقابل نشي جوړيدي.

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ لَامَالَ لَهُ غَيْرُهُ خکه چه د موصی له حق په دريمه حصه کښي دي.چه په دې کښي وارثان مقابل نشي جوړيدي.که د موصي د غلام نه علاوه مال نه وی خَدَمَ الْوَرَثَةَ يَوْمَيْنِ وَالْمُوصَى لَهُ يَوْمًا نو غلام به دوه ورځي د وارثانو خدمت کوی.او يوه ورځ به د موصی له (خدمت) کوی |

**تشريح** اوکه موصی سره ددې غلام نه علاوه نور هيڅ مال نه وی.نو بيا به دا طريقه اختيارولې شی.چه دا غلام به دوه ورځي د وارثانو خدمت کوی.او يوه ورځ به د خالد خدمت کوی.
**دليل** خکه چه د وارثانو حق دوه ثلثه دي.او د خالد حق يو ثلث دي.لکه څنګه چه د اعيانو په وصيت کښي کيږی.او غلام درې حصې کول، او ټکړې کولو سره تقسيم کيدې نشی.خکه چه غلام په دې اعتبار سره غير متجزی دي.نو اوس د مهايات (نمبرواری) نه علاوه هيڅ لاره نشته.نو مهايات به اختيارولې شی.چه دواړه حقونه پوره کړې شی.د وارثانو حق هم او د موصی له حق هم.

**د موصی له په مرګ سره به موصی به وارثانو ته ورکولې شی**

| |
|---|
| فَإِنْ مَاتَ الْمُوصَى لَهُ نو که موصی له مړ شو عَادَ إِلَى الْوَرَثَةِ نو موصی به وارثانو طرف ته راواپس کيږی |

**تشريح** زيد د خالد دپاره پخپل کور کښي د اوسيدو وصيت کړې وو.او د زيد د وفات نه پس د وصيت مطابق خالد په کور کښي اوسيدو.او اوس د خالد وفات اوشو.نو موصی به، به وارثانو ته حواله کولې شی.
**دليل** خکه چه موصی د زيد دپاره دا وصيت کړې وو.چه هغه د موصی د ملك په حکم باندې ددې نه نفع حاصله کړی.اوکه اوس موصی به د خالد وارثانو ته ورکړې شی.نو په دې سره به دا لازميږی.چه د موصی د رضامندئ نه بغير په ابتداء کښي د موصی له وارثان د منافعو مستحق کيږی.حالانکه دا جائز نه دی.چه د مالك د رضامندئ نه بغير د ملك استحقاق اوشی.

| |
|---|
| وَإِنْ مَاتَ الْمُوصَى لَهُ فِي حَيَاةِ الْمُوصِي بَطَلَتِ الوصية او که د موصی په ژوند کښي موصی له مړ شی.نو وصيت به باطل وی |

**تشريح** اوکه د زيد په ژوند کښي د خالد وفات اوشی.نو وصيت به باطليږی.
**دليل** خکه چه وصيت هم يو عقد دي.چه په دې کښي د ايجاب او قبول ضرورت دي.د موصی قول ايجاب دي.او د موصی د مرګ نه پس د موصی له ددې ايجاب قبلولو ته قبول ونيلې شی.او موصی پخپل ژوند کښي ايجاب کوی.او ددې ظهور د اثر په اعتبار سره د موصی د مرګ په وخت کيږی.او دلته چه کله موصی له د موصی په ژوند کښي مړ شو.نود موصی ايجاب باطل شو.
**نظيره** لکه مثلاً که بائع ايجاب کړې وو.او اوس لا مشتری قبول کړې نه وو.چه د مشتری وفات اوشو.نو د بائع ايجاب به باطليږی.

**په .. ولد فلان.. الفاظو سره د وصيت حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا أَوْصَى لِوَلَدِ فُلَانٍ او کله چې د فلانی ولد دپاره وصيت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ نو وصيت به ددوی په منځ کښي لِلذَّكَرِ وَالْأُنْثَى سَوَاءٌ د نارينه او زنانه دپاره برابر وی |

**تشريح** ابن نه صرف څوئي مراد وی.او په لفظ د ،، ولد ،، سره څامن او لونړه ټول مراد وی.په نورو الفاظو کښي داسې چه لفظ د ولد په حقيقت کښي مطلق اولاد ته شامل دي.نو کله چه زيد د خالد ولد

دپاره وصیت اوکړو.نو دخالد خامن او جینکۍ به په دې وصیت کښې برابر برابر شریك وي.

**د.. فلاني وارثانو.. الفاظو سره د وصیت حکم**

وَإِنْ أَوْصَى لِوَرَثَةِ فُلَانٍ او که د فلاني وارثانو دپاره وصیت اوکړو فَالْوَصِيَّةُ بَيْنَهُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ نو وصیت به ددوی په منځ کښې د (لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ) په طریقه وي

**تشریح** زید وصیت اوکړو.چه د فلاني وارثانو دپاره وصیت دې.نو دلته به په هلك او جینۍ کښې د میراث مطابق تقسیم کولې شي.یعنې کوم چه جینۍ ته ملاویږي.د هغې دوچند به هلك ته ملاویږي.

**دلیله** خکه چه د لفظ ورثه تصریح دې طرف ته اشاره کوي.چه د زید اراده هم دا ده.چه د هلکانو حق د جینکو نه زیات وي.لکه څنګه چه په میراث کښې کیږي.

**دوه کسانو دپاره د ثلث مال وصیت کولو نه پس معلومه شوه چه یو کس مړ شوې دې نو څه حکم دې ؟**

وَمَنْ أَوْصَى لِزَيْدٍ وَعَمْرٍو بِثُلُثِ مَالِهِ او چاچه وصیت اوکړو.د زید او عمرو دپاره، د خپل مال د ثلث فَإِذَا عَمْرٌو مَيِّتٌ نوعمرو مړ دې فَالثُّلُثُ كُلُّهُ لِزَيْدٍ نو ثلث به ټول په ټوله د زید دپاره وي

**تشریح** بکر د زید او عمرو دواړو دپاره د خپل دریمه حصه مال وصیت اوکړو.خو عمرو ژوندې نه دې.بلکه هغه د وصیت کولو نه وړاندې مړ شوې دې.نو پوره ثلث به زید ته ملاویږي.

**دلیله** خکه چه مړې د وصیت اهل نه دې.او زید چونکه ژوندې دې.او د وصیت اهل دې.نو عمرو به د اهلیت نه کیدو په وجه د زید مقابل نه جوړیږي.او هغه ته به د ثلث ورکولو نه مانع نه جوړیږي.

**نظیره** لکه مثلاً که بکر د زید او دیوال دپاره د ثلث مال وصیت اوکړو.نو پوره ثلث به زید ته ملاویږي.خکه چه دیوال کښې اهلیت نشته.چه هغه (دیوال) ته هم ورکړې شي.نو عمرو (چه مړ دې) هم د دیوال په مرتبه کښې دې.او په دواړو صورتونو کښې به زید ته پوره ثلث ملاویږي.

**د دوو کسانو په منځ کښې د ثلث مال وصیت نه پس معلومه شي چه یوکس مړ شوې دې نو څه حکم دې ؟**

وَإِنْ قَالَ ثُلُثُ مَالِي بَيْنَ زَيْدٍ وَعَمْرٍو وَزَيْدٌ مَيِّتٌ او که موصي اووئیل.چه زما دریمه حصه مال د زید او عمرو په منځ کښې دې.او زید مړ دې كَانَ لِعَمْرٍو نِصْفُ الثُّلُثِ نو عمرو دپاره به د ثلث نصف وي

**تشریح** که موصی هغه الفاظ استعمال کړي.کوم چه وړاندې تیر شو.چه زما د مال ثلث د زید او عمرو دپاره وصیت دې.نو ددې حکم خو ذکر شوې دې.او که هغه ددې په ځاې لفظ د بین (منځ) استعمال کړي.اوداسې اووائي.چه زما دمال دریمه حصه د زیداوعمرو په منځ کښې ده.او په دوی کښې زید ژوندې نه دې.صرف عمرو ژوندې دې.نو عمرو دپاره به د ثلث، نصف وي.

**دلیله** خکه چه موصی کوم د بین (منځ) لفظ استعمال کړې دې.د هغې تقاضا هم دا ده.چه موصی په دوی دواړو کښې هر یو ته د ثلث نصف ورکول غواړي.

او په مخکښې مسئله کښې داسې هیڅ لفظ نشته.چه هغه په دې خبره دلالت اوکړي.چه موصی په دوی دواړو کښې هر یو ته د ثلث نصف ورکول غواړي.

**د وصیت په وخت مال موجود نه وي او روستو اوګټي نو د وصیت څه حکم دې ؟**

وَمَنْ أَوْصَى بِثُلُثِ مَالِهِ وَلَا مَالَ لَهُ ثُمَّ اكْتَسَبَ مَالًا او چاچه د مال د ثلث وصیت اوکړو.او هغه دپاره

مال نشته.بیا موصی مال اوګټلو اسْتَحَقَّ الْمُوصَى لَهُ ثُلُثَ مَا يَمْلِكُهُ عِنْدَ الْمَوْتِ نو موصی له به د هغې مال د ثلث مالك وی.چه موصی د مرګ په وخت د کوم مالك وو

**تشریح**> زیدوصیت اوکړو.چه زما د مال ثلث بکر ته ورکړئ.خو زید سره مال نشته.البته زید د وصیت نه روستو مال اوګټلو.اود مرګ په وخت ئې مال پریخودو.او مړ شو.نو زید چه د مرګ په وخت د څومره مال مالك دې.د هغې مال ثلث به موصی له ته ورکولې شی.

**دلیله**> ځکه چه په وصیت کښې د وصیت په وخت د مال وجود شرط نه دې.بلکه د مرګ په وخت د مال وجود شرط دې.او د مرګ په وخت مال موجود دې.ځکه چه د وصیت حکم د موصی د مرګ نه پس هم ثابتیږی.نو دغه وخت به ملکیت کتلې شی. ځکه چه د وصیت حقیقت هم دا دې.چه موصی ګویا دا وائی.چه ته زما د مرګ نه روستو زما د مال په ثلث کښې زما خلیفه او زما قائم مقام یې.

# كِتَابُ الْفَرَائِضِ

**ترجمه**> داکتاب دې دَ فرائضودَ احکامو په بیان کښې.

### د فرائضولغوی معنی اود تسمیه وجه

لفظ فرائض جمع ده اومشتق دَ فرض نه دې متعین څیز،چونکه په میراث کښې حصې متعین وی په دې وجې دغه حصوته فرائض وئیلې شی. بیا په مزه مزه علم میراث ته فرائض او دَ فن واقف کارته فرضی اوفراض اووئیلې شو.

**الفرائض اصطلاحاً**> دَ فقه اوحساب هغه قواعدوباندې پوهیدل په کوم سره چه دَهریووارث حصه دَ ترکه نه معلومه شی.

**موضوعها**> دَعلم فرائض موضوع ترکه او وارثان دی. هم دَدې دواړواحوالوسره په دې فن کښې بحث کولې شی.

**غرضها وغایتها**> دَدې فن غرض وغایت حقدارانوته دَهغوی حق رسول اودَ ترکه په تقسیم کښې دَ غلطئی نه بچ کیدل دی.

**حکمها**> دَدې علم زده کړه فرض کفایه ده یعنی په اندازه دَ شرعی سفر(په موجوده زمانه کښې ۸۷کلومیتر ۷۸۲ میتر، ۴۰ سنتی میتر دی) دَ مقاماتو په مسافت کښې کم نه کم دَ یوعالم دَ فرائضو کیدل ضروری دې ګنی په دغه کلوکښې اوسیدونکی ټول خلق به ګناهګاروی.

**شرائطها**> دَدې علم درې شرطونه دی: ① دَ مورث مرګ ② دَ مورث دَ مرګ په وخت دَ وارث وجود. ③ دا پیژندل چه په کوم طرف وارث جوړیږی دَ خپلولئی دَ وجې نه که دَ نکاح دَ وجې نه یا دَ ولاء دَ وجې نه.

**ارکانها**> دَدې علم درې ارکان دی. ① وارث ② مورث (مړې) ③ حق مورث یعنی ترکه.

**اسبابه**> ① نسب ② نکاح ③ ولاء.

### دعلم فرائض فضیلت

علم فرائض ډیر اهم اودَ غټوفضیلتونو والاعلم دې. دَدې دَاهمیت اندازه دَدې خبرې نه لګولې شی چه الله تعالٰی نور احکام لکه مونځ روژه وغیره اجمالاً نازل کړی دی اودَدې تفصیل ئې نبی کریم ﷺ ته حواله کړې دې اودَ وراثت ټول تفصیل ئې پخپله نازل کړې دې:

اَلْمُجْمَعُ عَلٰى تَوْرِيْثِهِمْ مِنَ الذُّكُوْرِ عَشَرَةٌ اَلْاِبْنُ وَابْنُ الْاِبْنِ وَاِنْ سَفَلَ وَالْاَبُ وَالْجَدُّ اَبُوالْاَبِ وَاِنْ عَلَا وَالْاَخُ وَابْنُ الْاَخِ وَالْعَمُّ وَابْنُ الْعَمِّ وَالزَّوْجُ وَمَوْلَى النِّعْمَةِ. وَمِنَ الْاِنَاثِ سَبْعٌ اَلْبِنْتُ وَبِنْتُ الْاِبْنِ وَالْاُمُّ وَالْجَدَّةُ وَالْاُخْتُ وَالزَّوْجَةُ وَمَوْلَاةُ النِّعْمَةِ]

**حل اللغة**> ابن الابن: دَ خوئي خوئ يعني نمسي. سفل «دَ نصر، سمع، كرم» دريوارو بابونونه راځي البته دَ باب نصر نه لوستل ډيربهتراو مشهوردي. دَ كرم نه لوستلو ته غلط ونيلې شوی دی. ځكه چه دَدې مصدر سفالة هم دې دكوم معنى چه دنائت اوحقارت ده. الجد: نيكونه په دواړو طرفوباندې دَدې اطلاق كيږي مګرصاحب دَ قدوری ابوالاب ونيلوسره داخبره واضحه كړه چه دلته صرف دَ پلاردَ طرف نيكه مراد دې دَ موردَ طرف نيكه مرادنه دې ځكه چه هغه دَ ذوی الارحام نه دې هغه ته وراثت نه ملاويږي. كه څوك وارث نه وی نو په آخيره كښې مال دَ مورطرف نيكه يا ماماته وركولې شي.

**مولي النعمة**: دَ كوم چه مړی سره دَ عتاقت تعلق وی يعنی آزادونكې آقا اودَهغه اولاد دې ته مولی العتاقه ومولی التعامه هم ونيلې شي.

**ترجمه**> دَ چاچه په وارث كيدو باندې اتفاق دې دَسړونه هغه لس دی. خوئي نمسي سره دَدې چه دَ لاندې نه وی پلار نيكه يعنی دَ پلار پلار سره دَدې چه دَ بره پورې وی. رور، وراره، تره، دَ تره خوئي، خاوند آزاد كونكې آقا او دَ ښځونه اووه دی: لور نمسئی مور جده صحيحه «دَ موراوپلاردواړودَ طرفو نيا تربره پورې» خور، ښځه، آزادونكې.

### ترکه به په دې ترتيب سره تقسيميږي

**تشريح**> صاحب دَ قدوری په دې عبارت كښې مطلقًا دَهغه خلقو تذكره كړې ده كوم چه دَ ميراث حقداردی. كه هغه دَاصحاب فرائض په اعتبارسره يادَ عصبه په اعتبارسره يعنی سره دَدې دَ اقسامو كه عصبه په اعتبارسره. بل داخيزتی هم په خيال كښې نه دې ساتلې چه په دې قسمونوكښې به دَ كوم قسم خلق مقدم وی اوكوم مؤخر بلكه په يوه جمله كښې بيان كړې دې خوتركه به په دې لاندينی ترتيب سره تقسيميږي:

① تركه به دَ ټولونه اول صاحب فرائض ته ملاويږي. اصحاب فرائض هغه وارثان دی دَچاحصې چه په شريعت كښې متعين دی. دا ټول دولس كسان دی څلور سړی او اته ښځې. (۱) پلار (۲) جد صحيح «نيكه دَ بره پورې» (۳) اخيافی «دَمورشريك» رور (۴) خاوند (۵) ښځه (۶) لور (۷) نمسئی لاندې پورې (۸) حقيقی خور (۹) علاتی «دَپلارشريك» خور (۱۰) اخيافی خور (۱۱) مور (۱۲) جده صحيحه «دواړه نياګانې دَ بره پورې».

② دَ ذوی الفروض نه پس به تركه عصبه نسبی ته ملاويږي. عصبه دَ مړی هغه رشته داران دی چه دَ ذوی الفروض نه پاتې شوې تركه اخلي اوكه ذوالفروض نه وی نوټوله تركه اخلي. دَ عصبه دوه قسمونه دی: (۱) عصبه نسبی (۲) عصبه سببی، عصبه نسبی هغه دی دَ كومو چه دَمړی سره دَ ولادت تعلق دې اوعصبه سببی هغه دی دَ كوموچه دَمړی سره دَ آزادئی تعلق دې تفصيل به په باب العصبات كښې راځي.

③ چه ذوالفروض او عصبه نسبی نه وی نوتركه به عصبه سببی ته ملاويږي.

④ كه دَ مړی آزادونكې مړشی نودَهغه عصبه بنفسه ته يعنې دَهغه خوئي پلار رور وراره تره او دَتره خوئي ته به تركه ملاويږي اوكه چرې داهم نه وی نوكه آزادونكې دَ چاغلام وی نودَهغه آزادونكې آقا ته به تركه ملاويږي وهكذا.

۵ که دَ یوقسم هم عصبه نه وی نوباقی پاتې ترکه به دوباره نسبی ذوی الفروض ته حصه ورکولې شي.«زوجین ته به نه شي ورکولې ځکه چه هغه نسبي وارثان نه دي سببي یعني دَ زوجیت دَ رشتې دَ وجې نه وارثان دي»

۶ که دَ ذوی الفروض اوعصبات نه څوك نه وی نو ذوی الارحام ته به ترکه ملاویږي تفصیل به دَ ذوی الارحام په باب کښې راځي.

۷ که ذوی الارحام هم نه وی نومولی الموالات ته به ترکه ورکولې شي.

۸ که دَ دغه پورتنو وارثانونه یوهم نه وی نوهغه سړي به وارث وی دَ چادَ پاره چه مړی دَخپل غیرنه دَ نسب اقرار کړې دې یعني چه دَ یومجهول النسب باره کښې ئې دا وئیلی وی چه دا زما رور یا تره دې. اوبه دې اقرارسره دَ هغه نسب دَغیرنه ثابت شوې نه وی اواقرار کونکی دَخپل اقرار نه ترمرګه پورې رجوع هم نه وی کړې نوهغه مقرله رور یا تره کیدو په حیثیت سره به وارث وی.

۹ که دَ دغه پورتنو وارثانونه څوك هم نه وی اومړی دَ چادَپاره دَ دریمې حصې نه دَ زیات یا دَ ټولې ترکه وصیت کړې وی نودَ دریمې نه زیات یا ټوله ترکه به دغه موصیٰ له ته ورکولې شي.

۱۰ که دَ دغه پورتنوخلقونه هیڅوك هم نه وی نودَ مړی ترکه به په بیت المال یعني اسلامي حکومت په خزانه کښې جمع کولې شي چه په عاموسلمانانو فقیرانو غریبانانو اومسکینانو او حاجت مندو خلقو باندې خرچ کړې شي. په اسلامي خزانه کښې بې لارې کیدل یادې په عدم موجودګئ کښې په زوجین باندې ردوی څویادساتئ چه ذوی الارحام په موجودګئ کښې به په زوجین باندې ردنه وی دَخلقونه دې خائی کښې هیره کیږي.

**نوټ>** نن صباپه هندوستان کښې چونکه اسلامي خزانه او بیت المال نشته نوچه کله یووارث دَ یوقسم هم موجودنه وی نوبیادَ مړی ترکه په ځائی دَبیت المال په فقراؤ باندې خرچ کړئی.

| وَلَا يَرِثُ اَرْبَعَةٌ اَلْمَمْلُوْكُ وَالْقَاتِلُ مِنَ الْمَقْتُوْلِ وَالْمُرْتَدُّ وَاَهْلُ الْمِلَّتَيْنِ |
|---|

**حل اللغة > مرتد:** اسم فاعل ازافتعال لوټ کونکې دا په اصل کښې مرتدد وو. دَدوو دالونو په یوځائی دَ جمع کیدودَ وجې دَرومبی دال حرکت حذف کولوسره ادغام اوکړې شو.

**ترجمه>** او وارثان کیدې نه شي څلورکسان غلام قاتل دَمقتول وارث نه شي کیدې مرتد اودَمختلف دین والا.

## دَ موانع ارث بیان

**تشریح >** کله داسې هم کیږي چه وارث دَ وراثت دَ سبب په موجودګئ کښې په خپل ذات کښې دَ وصف موجودکیدودَ وجې نه دَ وراثت نه محروم کیږي دغه اوصاف ته موانع ارث وائي. صاحب دَ کتاب موانع ارث څلوربیان کړې دی. ۱ **رقیت:** که وارث غلام دې نودَ غلامیت دَ سبب دَ وجې نه به دَ خپل مورث دَ وراثت نه محروم کیږي. غلامی که دَهرقسم نه وی. عبدالخالص مکاتب مدبر ام ولد او معتق البعض «دَ راجع قول مطابق معتق البعض دَ غلام په حکم کښې دې» نه به چاته هم وراثت نه ملاویږي. دَغلام دَ محرومیاوجه داده چه غلام دَ خپل مال مالك نه وی دَهغه ټول مال دَهغه دَآقا وی په دې وجه ده ته وراثت ورکول داسې دی لکه چه دَ ده آقانه وراثت ورکول وی چه دَ مړی رشته دارنه دې. او غیررشته دارته بغیردَ څه سبب نه وراثت ورکول باالاجماع باطل دی. په دې وجه غلام ته وراثت نه ملاویږي.

۲ **قتل:** قاتل دَ مقتول وارث نه وی. دَ قتل پنځه قسمونه دی. قتل عمد، شبه عمد، خطاء، شبه خطا او قتل بالسبب په رومبو څلور قسمونوکښې قاتل دَ مقتول دَ وراثت نه محروم دې. البته په قتل بالسبب

سره د وراثت نه نه محروم کیږي. مګر یادساتئ چه د قتل دغه څلور صورتونه هغه وخت مانع ارث وي کله چه قاتل خپل مورث بغیرد شرعي وجه نه قتل کړې وي خوکه قتل د شرعي وجې نه وي مثلاً مورث ئې قصاصاً قتل کړې وي یا حد زنا کښې رجم کړې وي یادخپل ځان بچ کولودپاره ئې مجبوراً قتل کړې وي نو په دې صورتونو کښې به قاتل د وراثت نه نه محروم کیږي.

**قاتل ولې محروم کیږي؟**

دالله تعالی رسول ﷺ ارشاد فرمائیلې دې: اَلْقَاتِلُ لَایَرِثُ. [ترمذی ج۲ ص۳۱]. یعنې مقاتل وارث نه وي اود فقه قاعده ده چه من استعجل بالشئ قبل اوانه عوقب بحرمانه. کوم سړې چه یوځیزد هغې د وخت نه وړاندې اخستل غواړي نوهغه د سزاپه توګه ددغه ځیزنه محروم کولې شي. که قاتل د وراثت نه محروم نه کړې شي نوخلق به د میراث د وجې نه خپل مورث قتل کوی اونظام عالم به تس نس شي.

③ مسلمان به د مرتدوارث وي خومرتدبه د مسلمان وارث نه وي. ځکه چه ارتداد په منزله د مرګ دې نوځنګه چه مسلمان د خپل رشته دار د مرګ نه پس دهغه وارث کیږي دغه شان هغه د مرتد دارتدادنه پس به دهغه وارث وي اود مرتد مالونه به په مسلمانانو وارثانو کښې تقسیم کولې شي. اولکه څنګه چه مرتد د ژوندي وارث نه وي دغه شان به یومرتد د یومسلمان وارث نه وي.

④ دوه مختلف دینونه والا یعنې مسلمان د غیرمسلم او غیرمسلم د مسلمان وارث نه وي. ځکه چه دالله تعالی رسول ﷺ ارشاد فرمائیلې دې لایرث المسلم الکافرولاالکافر المسلم [بخاری۲/۱۰۰۱]. یعنې نه خویه مسلمان د کافر وارث وي اونه کافرد مسلمان وارث. د کفرنه مراد د نبي کریم ﷺ د نبوت نه انکاردې. که دې سره د الله تعالی د وحدانیت نه انکار وي اوکه نه وي لهذا یهودیت نصرانیت مجوسیت هندوازم وغیره ټول کفردې. بل قادیانې هم د مسلمان وارث نه شي جوړیدې اونه به مسلمان د قادیاني وارث وي. ځکه چه دوی هم د رسول الله ﷺ آخري نبي کیدونه انکاري دی دغه شان ملعون مرزا قادیاني نبي مني.

لکه څنګه چه مسلمانان د یوبل وارثان وي دغه شان کافران هم په خپل مینځ کښې د یوبل وارثان وي سره ددې چه هغوی د خپل مذهب په اعتبارد یوبل نه مختلف وي. یهودی خپل نصراني رشته او نصراني دخپل یهودي رشته دار به وارث وي. وقس علی هذا.

| وَالْفُرُوْضُ الْمَحْدُوْدَةُ فِیْ كِتَابِ اللهِ تَعَالٰی سِتَّةٌ اَلنِّصْفُ وَالرُّبُعُ وَالثُّمُنُ وَالثُّلُثَانِ وَالثُّلُثُ وَالسُّدُسُ |
|---|

**ترجمه**﴾ اوهغه حصې کومې چه مقرردی کتاب الله کښې شپږدی. نیمه څلورمه اتمه دریونه دوه دریونه یوه او شپږمه.

**فروض مقدره اودهغې مستحقین**

**تشریح**﴾ فروض د فرض جمع ده دکوم معنی چه حصه ده. په قرآن پاک کښې چه کومې حصې ذکردی دهغې شمیر شپږ دې.

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | نصف | نیمه | دوو نه یو | ۲/۱ |
| ۲ | ربع | څلورمه | څلورونه یوه | ۴/۱ |
| ۳ | ثمن | اتمه | اتونه یوه | ۸/۱ |
| ۴ | ثلث | دریمه | دریونه یوه | ۳/۱ |
| ۵ | ثلثان | دوتهائی | دریونه دوه | ۳/۲ |
| ۶ | سدس | شپږمه | شپږونه یوه | ۶/۱ |

ددې شپږو حصومستحق په مختلفوحالاتوکښې ټول دولس کسان دی څلورسړی او اته ښځې د کوم تفصيل چه په مسئله نمبر ۱ کښې تيرشوی دی.

وَالنِّصْفُ فَرْضُ خَمْسَةٍ اَلْبِنْتُ وَبِنْتُ الْاِبْنِ اِذَا لَمْ تَكُنْ بِنْتُ الصُّلْبِ وَالْاُخْتُ لِاَبٍ وَاُمٍّ وَالْاُخْتُ لِاَبٍ اِذَا لَمْ تَكُنْ اُخْتٌ لِاَبٍ وَاُمٍّ وَالزَّوْجُ اِذَا لَمْ تَكُنْ لِلْمَيِّتِ وَلَدٌ وَلَا وَلَدُ ابْنٍ وَاِنْ سَفَلَ ؛

ترجمه> اونصف د پنځوکسانو حصه ده. لور نمسئی کله چه حقيقی لورنه وی حقيقی خورد پلارشريک خورکله نه وی حقيقی خوراو خاوندچه کله نه وی نودمړی څوئی يا نمسې سره ددې که لاندې نه وی.

تشريح > نصف حاصلونکی پنځه قسمه وارثان دادی: ① دَ هلکانو په عدم موجودګئی کښې که صرف يوه جينئی موجود وی نوهغې ته به دَ ټول مال نصف ملاويږی. ② دَحقيقی اولاد په عدم موجودګئی کښې که يوه نمسئی وی نوهغې ته به نيم مال ملاويږی. ③ دَ لوڼړو او نمسويه عدم موجودګئی حقيقی خور که چرې يوه وی نوهغې ته به نيمه حصه ملاويږی. ④ دَ حقيقی خوئيندويه عدم موجودګئی که چرې علاتی خور يوه وی نوهغې ته به نيمه حصه ملاويږی. ⑤ که دَ مړې ښځې خپل اولاد څوئی لورکه هم دَدغه خاوندنه وی اوکه دَ بل نه وی. بل دَ نمسی اونمسو وغيره نه چه څوک موجودنه وی نوخاوندئی د نصف (۲/۱) ترکې مستحق دی.

**څلورمه حصه حاصلونکی دوه وارثان دی**

وَالرُّبُعُ لِلزَّوْجِ مَعَ الْوَلَدِ وَوَلَدِ الْاِبْنِ وَاِنْ سَفَلَ وَلِلْمَرْاَةِ اِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْمَيِّتِ وَلَدٌ وَلَا وَلَدُ ابْنٍ ؛

ترجمه> دَ خاونددَپاره څلورمه حصه ده څوئی يانمسی سره دَدې که لاندې نه وی اودَ ښځې دَپاره ده کله چه دَ مړی څوئی اونمسې نه وی.

تشريح > ① که دَ مړی اولاد يا دَنارينه اولاد اولاد ترلاندې پورې (څوئی لور نمسې نمسئی لاندې پورې) وی نوخاوندته به څلورمه حصه ملاويږی. داخبره يادساتئی چه اولاد عام دې که نارينه وی که زنانه اوکه دَ دغه خاوندنه وی يا دَ وړاندينی خاوندنه وی البته دَ اولادَ مړی دَ مرګ په وخت ژوندی موجود کيدل ضروری دی. کوم اولاد چه وړاندې وفات شوې دَهغې اعتبارنشته.

② که دَ مړی اولاد يا دَنارينه اولاد اولاد ترلاندې پورې نه وی نوښځوته به څلورمه ملاويږی که ښځه ئی يوه وی اوکه زياتې په ربع کښې به ټولې برابرشريکې وی.

**ثمن حاصلونکې يووارث**

وَالثُّمُنُ لِلزَّوْجَاتِ مَعَ الْوَلَدِ اَوْوَلَدِ الْاِبْنِ ؛

ترجمه> اوثمن دَ ښځودَپاره دې څوئی يا نمسی سره.

تشريح > ثمن حاصلونکې صرف يووارث دې که دَ مړی اولاد يا دَنارينه اولاد اولاد (څوئی لور نمسې نمسئی) لاندې پورې وی نوښځې ته به ۸/۱ ملاويږی دلته هم که دَ يونه زيات وی نوثمن به په دغه ټولو کښې برابرتقسيم کيږی.

**ثلثان حاصلونکی څلورقسم وارثان دی**

وَالثُّلُثَانِ لِكُلِّ اثْنَيْنِ فَصَاعِدًا مِمَّنْ فَرْضُهُ النِّصْفُ اِلَّا الزَّوْجَ ؛

ترجمه> اوثلثان دَهر دوو يا دَدې نه زياتودَپاره دې دَهغه خلقو نه دکوموحصه چه نصف يعنی نيمه ده بغيردَ خاوند نه.

**تشريح** > ثلثان حاصلونكى څلورقسم وارثان دى.
① دَ خامنويه عدم موجودګئى كښې كه چرته لونړه دوه يا زياتې وى نوهغوى ته به ثلثان(دَدريونه دويمه) ۳/۲ حصه ملاويږى كومه چه به هغوى په خپل مينځ كښې برابرتقسيم كوى.
② دَصلبى اولادپه غيرموجودګئى كښې كه نمسئى دوه يادَدوونه زياتې وى نوهغوى ته به ثلثان ملاويږى او ثلثان به دَهغوى په مينځ كښې برابرتقسيميږى.
③ دَ لونړو او نمسو په عدم موجودګئى كښې كه حقيقى خوئيندې دوه يا زياتې وى نوهغوى ته به ثلثان ملاويږى.
④ دَ حقيقى خوئيندوپه عدم موجودګئى كښې كه علاتى خوئيندې دوه يازياتې وى نوهغوى ته به ثلثان ملاويږى.

## ثلث حاصلونكى دوه قسم وارثان دى

| |
|---|
| وَالثُّلُثُ لِلْاُمِّ اِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْمَيِّتِ وَلَدٌ وَلَا وَلَدُ ابْنٍ وَلَا اثْنَانِ مِنَ الْاِخْوَةِ وَالْاَخَوَاتِ فَصَاعِدًا وَيُفْرَضُ لَهَا فِيْ مَسْئَلَتَيْنِ ثُلُثُ مَا بَقِيَ وَهُمَا زَوْجٌ وَاَبَوَانِ وَامْرَاَةٌ وَاَبَوَانِ فَلَهَا ثُلُثُ مَا بَقِيَ بَعْدَ فَرْضِ الزَّوْجِ اَوِالزَّوْجَةِ وَهُوَلِكُلِّ اثْنَيْنِ فَصَاعِدًا مِنْ وَلَدِ الْاُمِّ ذُكُوْرُهُمْ وَاِنَاثُهُمْ فِيْهِ سَوَاءٌ |

**ترجمه** > اوثلث دَموردَپاره دې كله چه نه وى دَ مړى خوئى اونه نمسې اونه دوه رونړه او خوئيندې يادَدې نه زيات او مقرركولې شى دَموردَپاره په دوومسئلوكښې دَ مابقيه دريمه اوهغه داده چه كله وى خاونداو والدين يا ښځه او والدين نودَموردَپاره ثلث دې. دَدې نه چه كومه باقى پاتې شى دَ خاونديا ښځې دَحصې نه پس اوثلث دَهرودوو يا زياتودَپاره دې دَاخيافى خوئيندو رونړونه په كوم كښې چه نارينه او زنانه برابردى.

**تشريح** > ثلث حاصلونكى صرف دوه قسم وارثان دى: ①كه دَ مړى څه اولاد يا رونړه خوئيندې دوه يا زيات نه وى نومورته به دَ ټولې حصې ثلث (دَټولې تركې دريمه)حصه ملاويږى.
**ويفرض لهالي قوله اوالزوجة**: كه چرې مړى خپلې مورسره خپل پلار اودَښځې خاوندنه يوپريخودې وى نومورته دَ خاوندياښځې حصه وركولونه پس دَ باقى پاتې تركې دريمه ملاويږى هم دې ته ثلث مابقيه يا ثلث مابقى وئيلې شى. په كتاب كښې هم دې ته ثلث مابقيه بعدفرض الزوج او الزوجة وئيلې شوې ده اودابه صرف په دوو مسئلوكښې وى: ① يوچه دَښځې انتقال اوشى او پسماندګانوكښې خاوند موريلار پريږدى نو اول به دَ ټول مال نه خاوندته حصه وركولې شى دې نه پس مابقيه نه به يوثلث مورته وركولې شى اومابقيه به پلارته وركولې شى لكه چه په دې نقشه كښې واضحه شوى دى:
**مسئله ۶**

كريمه ميت..............................................

| خاوند | مور | پلار |
|---|---|---|
| نصف | ثلث باقى | عصبه |
| ۳ | ۱ | ۲ |

② كه يوسړې مړشى او پسمانده ګانوكښې يوه ښځه موراوپلارپريږدى نو په داسې صورت كښې به دَ ټول مال نه اول دَ ښځې حصه ويستلې شى دَدې نه پس دَمابقيه مال ثلث به مور ته وركړى او دوه ثلث به پلارته ملاويږى لكه چه دَدې نقشه نه واضح دى.
مسئله ۱۲

زید میت--------------------------------------------------------------------------------

| | | |
|---|---|---|
| پلار | مور | ښځه |
| عصبه | ثلث | ربع |
| ۶ | ۳ | ۳ |

وهولكل اثنين> په دې عبارت كښې ټول ثلث حاصلونكې دويم وارث تذكره ده هغه دا ده چه كه اخيافي رور خور دوه يا د دوو نه زيات وى نوهغوى ته به ثلث ملاويږى او اخيافي رونړه خوئيندې حقدار كيدوسره په حصو كښې به ټول برابر وى رونړوته به د خوئيندونه زياته حصه نه ملاويږى.

**سوال>** كه چرې په مذكوره بالا دوارو مسئلو كښې د پلاريه ځائې نيكه وى نو مور ته به څه ملاويږى؟

**جواب>** په دې صورت كښې اختلاف دادې چه دامام ابويوسف رحمه الله په نيزد پلاريه ځائې كه نيكه وى نو بيابه هم مورته ثلث باقى ملاويږى. البته دامام اعظم رحمه الله او امام محمد رحمه الله مسلك دادې چه كه د پلاريه ځائې نيكه وى نو مورته به ثلث كل ملاويږى او هم په دې باندې فتوى ده.

## سدس حاصلونكي اوه قسمه وارثان دي

> وَالسُّدُسُ فَرْضُ سَبْعَةٍ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْأَبَوَيْنِ مَعَ الْوَلَدِ أَوْوَلَدِ الْإِبْنِ وَهُوَلِلْأُمِّ مَعَ الْإِخْوَةِ وَهُوَلِلْجَدَّاتِ وَالْجَدِّ مَعَ الْوَلَدِ وَوَلَدِ الْإِبْنِ وَلِبَنَاتِ الْإِبْنِ مَعَ الْبِنْتِ وَلِلْأَخَوَاتِ لِلْأَبِ مَعَ الْأُخْتِ لِلْأَبِ وَالْأُمِّ وَلِلْوَاحِدِ مِنْ وَلَدِ الْأُمِّ ]

**حل اللغة>** ولدالام: د مورشريك رور خور(اخيافي)

**ترجمه>** اوسدس د اووكسانوحصه ده. ① د والدين نه د هريوديپاره د ځوئې يا نمسى سره ② او د مورديپاره رونړوسره ③ او شپږمه د نيادپاره ده. ④ او د نيكه دپاره ده ځوئي يا نمسى سره ⑤ د نمسودپاره ده د لورسره ⑥ او د علاتى خوئيندودپاره ده يوې حقيقى خورسره ⑦ اويوه د اخيافي خوردپاره ده.

**تشريح >** سدس حاصلونكي اوه قسمه وارثان دي ① كه چرې مړى څپل پلار سره څپل نارينه اولاد (ځوئې نمسى ترلاندې پورې)پريخودې وى نوپلارته به شپږمه حصه ملاويږى د نارينه اولاد په موجودګئ كښې د زنانه اولاد اعتبارنشته.

② كه چرې مورسره د مړى ځوئي لور نمسى يانمسئى (لاندې پورې) نه څوك هم وى ياد مړى دريواړه قسم (حقيقى علاتى اخيافي) رونړو خوئيندنه دوه يا زيات وى يا بعض حقيقى بعض اخيافي اوبعض علاتى وى بل چه صرف مذكر وى يامحض مؤنث وى نو په دې صورت كښې به مور د سدس ۶/۱ حصې حقداره وى.

③ جدات د جده جمع ده اود جده نه مراد جده صحيحه ده. جده صحيحه هغه مؤنث اصل بعيدته وئيلې شى د كوم چه مړى سره رشته يوځائې كولو كښې د جدفاسد واسطه رانه شى لكه د پلار مور د نيكه مور د مور مور وغيره.

د جده صحيحه دوه حالتونه دى ① د وارث كيدو ② د محروم كيدو. دلته په متن كښې د اول حالت بيان دې اود دويم حالت بيان په وړاندې عبارت كښې دې. خيركه چرې څوك حاجب نه وى نو جده صحيحه ته به سدس ملاويږى كه هغه د پلارد طرف نيا وى اوكه د مور د طرف نيا كه هغه يوه وى اوكه د يوې نه زيات شپږمه حصه به په هغوى كښې برابرتقسيميږى. د جدات د مستحق كيدودپاره داضروري ده چه هغه فاسد نه وى بلكه صحيحه وى اوپه مرتبه كښې برابروى. يعنى كه يوه جده په يوه واسطه سره نياوى

نوبله هم په يوه واسطه سره نیاوی که يوه د نیزدې وی او بله د لرې نونیزدې والابه وارثت وی او د لرې والا به ساقط شي.

④ دپلار په عدموجودګئی کښې اودمړی نارینه اولاد (خوئی نمسې کړوسې ترلاندې پورې)وی نونیکه ته به شپږمه حصه ملاویږی

⑤ که چرې يوه صلبی لوروی نو نمسوته به سدس ملاویږی دې دپاره چه دریوکښې دوه حصې کومه چه د لونړوده هغه به پوره شي.

⑥ که حقیقي خوریوه وی اوعلاتی خوئیندوته سدس ملاوشی یعنی د لونړو اونمسو په شان خوئیندو ته هم د ثلثان نه زیاته نه ملاویږی نوچه یوې حقیقي خورنصف واخستو نود ثلثان مکمل کیدودپاره سدس بچ شو نودا به علاتي خوئیندوته ملاویږی دې دپاره چه ثلث مکمل شي.

⑦ که چرې د مړی فروع مطلق یعنی خوئی لور نمسې یانمسئی وغیره نه او اصول مذکر یعنی پلار نیکه غرنیکه وغیره نه څوك موجودنه وی نو یواخیافي رور یا یواخیافي خور ته به شپږمه حصه ملاویږی.

**جده په څلوروصورتونوکښې محروم کیږی**

| |
|---|
| وَتَسْقُطُ الْجَدَّاتُ بِالْأُمِّ |

**ترجمه** > اوساقطیږی جدات دمورنه.

**تشریح** > په دې عبارت کښې د جده د دویم حالت د محروم کیدو بیان دې. جده په دې څلوروصورتونوکښې ساقط کیږی. ①د مورد وجې نه ټول جدات ساقط کیږی که د پلارد طرف نه وی که د مور د طرف نه وی. ②د پلارد وجې نه صرف د پلارطرف جدات ساقط کیږی دمورطرف جدات نه ساقط کیږی. ③ د پلارطرف نیکه د وجې نه هغه نیاګانې ساقط کیږی کومې چه د پلارطرف د نیکه په واسطه دی. مثلاً د نیکه مور د نیکه د وجې نه ساقط کیږی مګرنیایعنی د نیکه ښځه د نیکه د وجه نه نه ساقط کیږی. ④ نیزدې جده که هغه دهرې یوې رشتې وی د لرې والاساقط کوی که د پلارد طرف نه وی که دمورد طرف نه وی او دنیزدې والاوارث کیږی اوکه نه.

| |
|---|
| وَالْجَدُّ وَالْإِخْوَةُ وَالْأَخَوَاتُ بِالْأَبِ |

**ترجمه** >او نیکه رور اوخوئیندې د پلارد وجې نه (ساقط کیږی).

**تشریح** > په دې عبارت کښې دوه مسئلې بیان کړې شوې دی: ① که د مړی د نیکه سره د هغه پلار هم موجود وی نو نیکه به ساقط کیږی ځکه چه د پلاررشته مړی سره د نیزدې ده او د وراثت قاعده داده چه د اقرب په موجودګئی کښې ابعدساقط کیږی. دغه شان د نیکه د وجې نه غرنیکه محروم کیږی.

② حقیقي اوعلاتي رونړه خوئیندې د پلارپه موجودګئی کښې په اتفاق سره محروم کیږی لیکن د نیکه په موجودګئی کښې د صاحبینو په نیزنه محروم کیږی البته د امام اعظم رحمه الله په نیزد نیکه په موجودګئی کښې هم ساقط کیږی او هم په دې باندې فتوی ده.

| |
|---|
| وَتَسْقُطُ وَلَدُ الْأُمِّ بِأَرْبَعَةٍ بِالْوَلَدِ وَوَلَدِ الْابْنِ وَالْأَبِ وَالْجَدِّ |

**ترجمه** > اوساقط کیږی اخیافي رونړه خوئیندې د څلورو واتانوسره یعنی خوئی نمسی پلار او نیکه سره.

**تشریح** > که دمړی اولاد یا د نارینه اولاد اولاد ترلاندې پورې یادمړی پلارنیکه د پورته پورې وی نواخیافي رونړه خوئیندې په اتفاق سره محروم کیږی.

### د لمسو د حالاتو له د یو حالت تفصیل

وَاِذَا اسْتَكْمَلَتِ الْبَنَاتُ الثُّلُثَيْنِ سَقَطَتْ بَنَاتُ الْاِبْنِ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ بِاِزَائِهِنَّ اَوْاَسْفَلَ مِنْهُنَّ اِبْنُ ابْنٍ فَيُعَصِّبُهُنَّ

**ترجمه>** اوچه کله واخلی لونړه پوره دریوحصوکښې دوه نوساقط کیږی نمسنی مګر داچه وی دهغوی په مقابل یا دهغوی نه لاندې نمسې چه هغه دا عصبه کوی.

**تشریح>** که دوه یازیاتې لونړه وی نو نمسنی به ساقط شی ځکه چه ثلثان لونړو واخستلولیکن که نمسوسره برابریونمسې یا دمړی کروسې وی نوساقط کیدونکې نمسنی به هغوی سره عصبه بالغیرشی. ذوی الفروض ته د ورکولونه پس باقی پاتې ترکه به هغوی ته ملاوشی اوهغه به په خپل مینځ کښې داسې تقسیم کولې شی چه نمسی ته ډبل اونمسنی ته نیمه حصه.

زید میت---------------------------------------------

| | فریق اول | | | فریق دوم | | فریق سوم | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| (بطن ۱) | (ابن) عمرو | | | (ابن) بکر | | (ابن) خالد | |
| (بطن ۲) | ابن | بنت | نصف | ابن | | ابن | |
| (بطن ۳) | ابن | بنت | سدس (تکملة للثلثین) | ابن | بنت | ابن | |
| (بطن ۴) | ابن | بنت | | ابن | بنت | ابن | بنت |
| (بطن ۵) | ابن | | | ابن | بنت | ابن | بنت |
| (بطن ۶) | ابن | | | ابن | | ابن | بنت |

اوس په دغه مذکوره نقشه باندې د غورکولوحاجت دې چه په دې کښې درې کالمونه او شپږ بطن دی. اوس فرض کړه دمړی د طرف نه صرف نمسنی ژوندې دی. ټول ځامن نمسی د زید نه وړاندې وفات شوی دی. په بطن اول کښې په یوکالم کښې لورنشته اود بطن ثانی په کالم اول کښې یوه لورده. په دویم کالم او دریم کالم کښې یوه جینئی نشته. نودې جینئی ته به د ټول مال نصف ملاویږی او په بطن ثالث کښې کالم اول او کالم ثالث کښې یوه یوه جینئی ده خو په دریم کالم کښې هیڅ یوه جینئی نشته. په دې وجه د بطن ثالث دواړه لونړه د نمسنی په درجه کښې کیدو سره د شپږمې حصې حقداروی. د دوو ثلث مکمل کولودپاره ددې نه پس څلورم نمبربطن کښې په دریواړو کالمونو کښې یوه یوه جینئی ده دا جینکئی دداسې نمسنې په درجه کښې دی دکومونه چه دوه یا ددوو نه زیاتو لونړو کیدو د وجه نه محروم شوی دی. ځکه چه د پاسه لونړو دوه ثلث مکمل کړل د نمسنی دپاره هیڅ پاتې نه شو. اوس د غور خبره داده چه دڅلورم نمبر بطن سره هیڅ یونمسې موجود نه دې نوهغه به د څلورم بطن ټول نمسی عصبه جوړکړی یا د پنځم بطن یا شپږم بطن کښې که څوك نمسې وی اودهغه نه پورته څوك نمسې نه وی نودا نمسې به خپل برابر والا جینکې او دخپل ځان د پاسه جینکئی عصبه جوړې کړی اود ذوی الفروض نه بچ شوې ترکه به دهغوی په مینځ کښې داسې تقسیمیږی چه مذکوره ډبل حصه او زنانه ته نیمه حصه ورکړې شی. بل د نمسی نه پورته بطن نمسنی ته د نمسی ددرجې فضیلت حاصل نه وی په دې وجه د پورته او ښکته دواړو درجو نمسنی ته برابر حصه ملاویږی.

### د علاتی خور د یو حالت تفصیل

وَاِذَا اسْتَكْمَلَتِ الْاَخَوَاتُ لِاَبٍ وَاُمٍّ الثُّلُثَيْنِ سَقَطَتِ الْاَخَوَاتُ لِاَبٍ اِلَّا اَنْ يَّكُوْنَ مَعَهُنَّ اَخٌ لَهُنَّ فَيُعَصِّبُهُنَّ

**ترجمه** > اوچه کله واخلی حقیقی خوئینديږ پوره دریوکښې دوه نوساقط به شی علاتی خوئینديږ مګر دا چه وی هغوی سره دهغوی رور چه هغه دوی عصبه کوی.

**تشریح** > که علاتی خورسره دوه یا زیاتې حقیقی خوئینديږ وی نوعلاتی خوربه ساقط شی ځکه چه دَ خوئیندو ټوله حصه ثلثین ده کومه چه حقیقی خوئیندواخستې ده.

مسئله ۳

مثال میت رحیمه-----------------------------------------------

| تره | ۳ حقیقی خوئینديږ | علاتی خور |
|---|---|---|
| عصبه | ثلثان | ساقط |
| ۱ | ۲ | |

خوکه علاتی خوئیندوسره علاتی رور هم وی نوعلاتی خوئینديږ رونړوسره عصبه بالغیرشی. اودَ ذوی الفروض په موجودګئی کښې مابقیه ترکه او په عدم موجودګئی کښې ټوله ترکه هغوی ته ملاویږی. او هغوی به ئی په خپل مینځ کښې داسې تقسیم کوی چه مذکرته ډبل او مؤنث ته نیمه حصه ملاوشی.

مسئله ۴

مثال صبیحه میت-----------------------------------------------

| مور | ۲ حقیقی خوئینديږ | علاتی خور |
|---|---|---|
| سدس | عصبه | عصبه بالغیر |
| ۱ | ۴ | ۱ |

# بَابُ الْعَصَبَاتِ

(دعصبات بیان)

**ماقبل سره ربط** > دَ ذوی الفروض حصه اداکولونه پس که چرې ترکه باقی وی نودهغې مستحق عصبات وی په دې وجه دَ ذوی الفروض دَ بیان نه فارغ کیدو نه پس ئی عصبات بیان کړل.

**د عصبات لغوی او صرفی تحقیق**

عصبة دَ عـاصب جمع ده مذکرمؤنث واحداوجمع ټولودپاره دَ اسم جنس په شان مستعمل دې دَدې جمع الجمع عصبـات ده. عصبه دَ سړی دَپلاررشتې ته وانی دَدې مصدرعصبوبة دې. په معنی ګیرول احاطه کول دامعنی عصب القوم بالرجل نه ماخوذ ده. دا جمله هغه وخت وئیلې شی کله چه یوځوکسـان یوکس په خپل حمایت کښې واخلی اودهغه څلوروواړو طرفوته راجمع شی.

**وجه تسمیه** > عصبه هم مړې دَ څلوروواړو طرفونه په خپله ګیره کښې راولی داسې چه پورته دَ پلاررشته وی لاندې دَ خوئی یوطرف ته رور او بل طرف ته تره په دې وجه دې ته عصبه وائی.

**اصطلاحي تعریف** > عصبه دَ مړی هغه رشته داران دی دچاحصه چه په قرآن اوحدیث کښې متعین نه ده. بلکه هغوی دَ یواځې کیدو په صورت کښې ټوله ترکه او ذوی الفروض سره دَ باقی پاتې ترکې مستحق وی. دَعصبه اول دوه قسمونه دی: ① عصبه نسبی ② عصبه سببی.

① **عصبه نسبي** > دا هغه خلقو ته وئیلې شی چه مړی سره دَ ولادت تعلق لری.

② **عصبه سببي** > دا هغه عصبه ده دَ کوم چه مړی سره دَ عتاقت تعلق وی.

**عصبه بنفسه>** هرهغه نارینه رشته دارته وائی د کوم چه مړی سره رشته یوځائی کولوکښې د مؤنث واسطه رانه شی. د دې تعریف په اعتبارسره هغه ټول رشته داران اووتل چه د مؤنث په واسطه سره د مړی طرف ته منسوب کیږی. مثلاً نمسی چه د لورپه واسطه سره وی دمورطرف نیکه چه د مور په واسطه سره وی. بیا د عصبه بنفسه څلور قسمه دی: ① د مړی جزء مذکر یعنی د مړی مذکرنسل یا فروع مذکر سره د دې که د لاندې نه وی لکه ځامن نمسی اوکړوسی وغیره.② دمړی اصول مذکر که هغه د پورته وی لکه پلار بیا نیکه بیاغرنیکه. ③ دمړی اصول قریب فروع مذکر او اصول قریب پلاردې اود پلار فروع مذکر رور اود رور اولاد دې. لکه حقیقی رور بیا علاتی رور. بیا د حقیقی رور ځامن اوبیاد علاتی رور ځامن دغه شان د لاندې پورې. ④ د مړی اصول بعیدفروع مذکر او اصول بعید کښې نیکه غرنیکه وغیره او فروع مذکردهغوی اولاد لکه حقیقی رور تره بیا علاتی تره بیا دحقیقی تره ځامن اوبیا دعلاتی تره ځامن. باقی تفصیل به سراجی کښې راځی.

**د عصبه بنفسه په مینځ کښې ترجیح**

| |
|---|
| وَاَقْرَبُ الْعَصَبَاتِ الْبَنُوْنَ ثُمَّ بَنُوْهُمْ ثُمَّ الْاَبُ ثُمَّ الْجَدُّ ثُمَّ بَنُوا الْاَبِ وَهُمُ الْاِخْوَةُ ثُمَّ بَنُوا الْجَدِّ وَهُمُ الْاَعْمَامُ ثُمَّ بَنُوا اَبِ الْجَدِّ |

**ترجمه>** عصبات کښې د ټولونه نیزدې ځامن دی. بیا نمسی بیا پلار بیا نیکه بیاد پلارځامن او هغه رونړه دی. بیا د نیکه ځامن او هغه ترونه دی. بیا د نیکه د پلار ځامن (د مړی د پلارترونه)

**تشریح >** ماقبل کښې په ترتیب سره عصبه بنفسه څلورقسمونه بیان کړې شو. په وراثت کښې هم دغه ترتیب په ذهن کښې وی. د مړی جزء مذکر د مړی په اصول مذکرباندې مقدم وی او اصول مذکر د مړی اصول قریب فروع مذکرباندې مقدم کیږی. اود اصول قریب فروع مذکر، داصول بعید فروع مذکرباندې مقدم وی. مطلب دادې چه ړومبی قسم والاعصبه ته په دویم قسم والاعصبه باندې دویم قسم والاته په دریم قسم والااو دریم قسم والاباندې څلورم قسم والاته ترجیح ورکولې شی. یعنی د ځوئی اونمسی په موجودګئی کښې پلار نیکه عصبه کیدې نه شی اود پلار نیکه په موجودګئی کښې رور عصبه کیدې نه شی اود رور اود هغه د ځوئی په موجودګئی کښې تره اودهغه ځامن نشی عصبه کیدې.

**فائده>** که چرې دعصبه بنفسه هم یوقسم متعددکسان راجمع شی نو په هغوی کښې چه مړی ته کوم ډیرنیزدې وی هغه به عصبه وی او هغه د لرې والابه ساقط شی. مثلاً ① چه د مړی ځوئی اونمسې دواړه وی نو ځوئی به عصبه وی او نمسې ساقط. ② پلار اونیکه کښې به پلارعصبه وی او نیکه به ساقط وی او د نیکه په موجودګئی کښې به غرنیکه ساقط وی. ③ په رور او وراره کښې به رور عصبه وی او وراره به ساقط. ④ تره اود تره په ځامنو کښې به تره عصبه وی او دتره ځامن به ساقط وی.

**د قوت قرابت اصول**

| |
|---|
| وَاِذَا اسْتَوٰی بَنُوْاَبٍ فِیْ دَرَجَةٍ فَاَوْلٰهُمْ مَنْ کَانَ مِنْ اَبٍ وَاُمٍّ |

**ترجمه>** اوچه کله د پلار ځامن برابروی په درجه کښې نوزیات حقداربه هغه وی چه د پلار اومور دواړود طرف نه وی.

**تشریح >** دماقبل د بیان نه داخبره معلومه شوه که هم د یوطرف متعدد وارثان موجود وی نو په هغوی کښې به د قرب قرابت په اعتبار سره ترکه تقسیمیږی مثلاً ځوئی به مقدم وی په نمسی باندې. اوس په دې متن کښې دا بیان کولې شی چه که د برابردرجې ډیر عصبه بنفسه جمع شی او په هغوی کښې د قرابت د وجې نه فرق وی یودوه د قرابت والا وی اودیوم د یوقرابت والا نودهغوی په مینځ کښې به د

تقسیم څه صورت وي؟ دا بیان کړې شو چه د رشتي قوت ته به کتلې شي د کوم رشته چه ډیره قوي وي هغه ته به ترجیح وي. د مړي حقیقي رور ته به په علاتي روربانديې او حقیقي خورته کله د لور یا نمسئ د وجې نه عصبه وي نو په علاتي رور خور بانديې به حقیقي تره ته او علاتي تره بانديې به حقیقي وراره ته او په علاتي وراره بانديې په دې وجه ترجیح وي چه د علاتي رشته صرف د پلار سره وي او د حقیقي مورپلار دواړو سره یعني د حقیقي د پاره د مور رشته د ترجیح وجه جوړېږي.

**مسئله : ۱**

مثلاً میت ---------------------------------------

| علاتي خور | علاتي رور | حقیقي رور |
|---|---|---|
| عصبه بغیره | عصبه | عصبه |
| محروم | محروم | ۱ |

مثلاً میت ---------------------------------------

| علاتي خور | علاتي رور | حقیقي خور | خور |
|---|---|---|---|
| عصبه بغیره | عصبه بنفسه | عصبه مع غیره | نصف |
| محروم | محروم | ۱ | ۱ |

## د عصبه بغیره تعریف او د هغې مصداق

وَالْاِبْنُ وَابْنُ ابْنٍ وَالْاِخْوَةُ يُقَاسِمُوْنَ اَخَوَاتِهِمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْاُنْثَيَيْنِ

**ترجمه** > خوئي نمسي اوروڼه به تقسیم کولوسره ورکولې شي د خپلو خوئیندومذکر د پاره د مؤنث د دوو حصو برابر.

**تشریح** > دلته نه د عصبه بغیره بیان دې. عصبه بغیره هغه ښځې دي د چا حصه چه شریعت د ذوي الفروض کیدوپه حیثیت سره نصف یا ثلثان مقررکړې وي. اوهغه د خپل رور په موجودګئ کښې عصبه کیږي. د عصبه بغیره مصداق صرف څلورښځې دي: ① لور ② نمسئ ③ حقیقي خور ④ علاتي خور. لور د خوئي د وجه نه نمسئ د نمسي د وجې نه اوحقیقي خورد حقیقي رور د وجې نه اوعلاتي خور د علاتي رور د وجې نه عصبه کیږي. اود نورو ذوي الفروض په موجودګئ کښې د هغوي نه بچ شوې او په عدم موجودګئ کښې به ټوله ترکه هغوي ته ملاوېږي اوهغوي به ئې په خپل مینځ کښې داسې تقسیم کوي چه هرمذکرته دوه او د مؤنث د حصې برابرملاؤشي.

وَمَنْ عَدَاهُمْ مِنَ الْعَصَبَاتِ يَنْفَرِدُ بِالْمِيْرَاثِ ذُكُوْرُهُمْ دُوْنَ اُنَاثِهِمْ

**ترجمه** > اودې نه علاوه نورعصبات خانله وي په میراث حاصلولو کښې د هغوي سړي نه چه د هغوي ښځې.

**تشریح** > د پورته بیان نه معلومه شوه چه کوم رور پخپله عصبه وي هغه خپله خورهم عصبه جوړه وي خوشرط دادې چه هغه خور په اصحاب الفرائض کښې داخلیدوسره د نصف یا ثلثان مستحق وي. لهذا که یوړور چه پخپله خو عصبه دې اود هغه خورد ذوي الفروض نه نه ده نوهغه د هغې رور سره دې چه پخپله عصبه کیدوسره به عصبه نه شي جوړولې اوټول مال به رور ته ملاؤشي خوربه ئې محروم شي. مثلاً تره او ترور خوراو رور دی ولې ترور چه د اصحاب الفرائض نه نه ده په دې وجه به ټول مال تره ته ملاوېږي.

ترور ته به هیڅ نه ملاویږي. دغه شان د تره لور خوی سره یعنی وریره او وراره سره به عصبه بالغیرنه وی په دې وجه دا ټولې ښځې داصحاب الفرائض نه نه دی.

**دعصبه سببي بیان**

| وَاِذَالَمْ يَكُنْ عَصَبَةٌ مِنَ النَّسَبِ فَالْعَصَبَةُ هُوَالْمَوْلَى الْمُعْتِقُ ثُمَّ الْاَقْرَبُ فَالْاَقْرَبُ مِنْ عَصَبَةِ الْمَوْلَى |
| --- |

**ترجمه﴾** اوچه کله نه وی(دمړي)نسبي عصبه نوآزادونکې مولی عصبه وی بیا دمولی په عصبات کښې چه کوم د ټولو نه زیات نیزدې وی.

**تشریح﴾** دعصبه د دوو قسمونو نسبي اوسببي نه د نسبي بیان ختم شو اوس دویم قسم سببي بیان شروع کیږي. عصبه سببي هغه خلقوته وئیلې شی د کوم چه مړي سره د عتاقت تعلق وی یعنی آزادونکی آقا اود هغه اولاد. غلام آزادونکی ته د آزادولوپه عوض کښې د انعام په توګه د آزادشوی غلام وراثت ملاویږي اوچه دغلام شرعي وارثان موجودنه وی دې ته ولاء عتق وائي.

**د عصبات سببیه ترتیب﴾** که د مړي په وارثانوکښې نه خو اصحاب فرائض وی اونه عصبات نسبي د کوم تفصیل چه په تیرو صفحاتوکښې تیرشوې دې نودمړي ترکه به دهغه سببي عصبات ته ملاویږي. عصبه سببي (مولی العتاقة) کښې هم د عصباتو ترتیب دې کوم چه دعصبه بنفسه دې یعنی که معتق موجودنه وی نومیراث به د معتق فرع ته ملاویږي بیابه دمعتق اصل ته بیا د معتق اصل قریب (پلار) فرع ته او په آخرکښې د معتق اصل بعید (نیکه اوغرنیکه)فرع ته تفصیل دالاندې درج دې.

**دمعتق فرع﴾** که چرې معتق موجودنه وی نودهغه ځامن نمسی (ترلاندې پورې) ته به د آزاد کړې شوی غلام ترکه ملاویږي.

**دمعتق اصل﴾** که د معتق فرع موجودنه وی نودهغه پلارنیکه (ترپورته پورې) ته به د ازادشوی غلام ترکه ملاویږي.

**دمعتق د پلار فرع﴾** که د معتق اصل موجودنه وی نودمعتق رور ته به د آزادکړې شوی غلام وراثت ملاویږي.

**دمعتق د نیکه فرع﴾** که د معتق رور هم موجودنه وی نود آزادکړې شوی غلام ولاء به دهغه تره ته ملاویږي.

حاصل دا چه دمعتق په نارینه عصبات کښې به د غلام ولاء دائر وی اوبس.

که په دغه ټولوکښې هیڅ څوك نه وی نوکتلې به شی چه معتق د چاغلام ووهم که نه که چرې وو نودهغه آقاته به دده ولاء ملاویږي اوکه هغه ژوندې نه وو نوبیادهغه نارینه عصبات کښې په مذکوره ترتیب سره ولاء تقسیمیږي. د دغه ذکرشوی تفصیل نه دامعلومه شوه چه د آزاد شوی غلام شرعي وارثانو په عدم موجودګئی کښې د غلام ولاء معتق اودهغه ځامن نمسی پلار نیکه رونړو او ترونوکښې دائروې د معتق زنانه عصبات ته ولاء نه ملاویږي. داسې ځکه دی چه رسول الله ﷺ د ښځو په حق کښې د ولاء نفی فرمائیلې ده. البته په اتوصورتونوکښې ښځوته ولاء ملاویږي اودا اته صورتونه استثنائی دی. دکوم تفصیلي بیان چه انوارالقدوری جلددوم کتاب الولاء کښې تیرشوې دې.

# بَابُ الْحُجُبِ

(دَ یو وارث دَ بل وارث دَ وجې نه دَ محروم کیدو بیان)

**ماقبل سره ربط** ماقبل کښې ذوی الفروض او دَهغې تفصیلی احوال اودَ عصباتو تفصیلی بیان ذکرشو اوس په دې باب کښې دَ حجب اصول اوقواعدبیانولې شی چه په حقیقت کښې دَ ماقبل ابواب تتمه او تکمله دې.

**دَحجب لغوی معنی** دَ حجب لغوی معنی بندول هم دَدې نه حاجب دربان حجاب پرده ده.

**اصطلاحي تعریف** دَاهل فرائض په اصطلاح کښې دَ حجب داتعریف بیان کړې شوې دې دَ مخصوص سړی دَ میراث اخستلونه منع کیدل دَ بل سړی دَ موجودکیدو دَ وجه نه.

**دَحجب اقسام** دَحجب دوه قسمونه دی ① حجب نقصان ② حجب حرمان.

① **حجب نقصان** دَ یووارث دَ دویم وارث دَ وجه نه دَ زیاتې حصې په ځانی کمه حصه حاصلیدل لکه چه مورته دَ اولاد په عدم موجودګئی کښې اودَ دوو یا دوو نه زیاتو رونړو خوئیندو په عدموجودګئی کښې ثلث الکل ملاویږی خودَ مذکوره وارثانو په موجودګئی کښې دَ مور حصه ثلث الکل نه سدس طرف ته منتقل کیږی.

حجب نقصان په پنځوکسانوباندې جاری کیږی خاوند ښځه مور نمسئی او علاتی خور تفصیل دَهریوپه احوال کښې تیرشوې دې.

② **حجب حرمان** دَ یووارث دَ دویم وارث په موجودګئی کښې دَ وراثت نه بالکل محروم کیدل دَ پلار په موجودګئی نیکه دَ وراثت نه بالکل محروم کیږی اودَ صلبی ځوئی په موجودګئی کښې نمسی دَ وراثت نه بالکل محروم کیږی. دَدې حجب دَتعلق سره دَ وارثانو دوه ډلې دی یوه هغه چه کله هم نه محروم کیږی دا شپږ کسان دی زوجین والدین ځامن او لونړه.

بله ډله دَهغه وارثانوده چه کله محروم کیږی اوکله نه محروم کیږی دغه کسان دادی نیکه نیا حقیقی رور حقیقی خور علاتی رور خور اخیافی رور خور نمسی نمسئی حقیقی تره اوعلاتی تره او دَ حقیقی اوعلاتی رونړو او ترونو ځامن هم په دې کښې شمیرلې شی.

**په چاچه د حجب نقصان شروع کیږی دهغوی تفصیلی بیان**

| وَيُحْجَبُ الْأُمُّ مِنَ الثُّلُثِ إِلَى السُّدُسِ بِالْوَلَدِ أَوْوَلَدِ الْإِبْنِ أَوْأَخَوَيْنِ. |
|---|

**ترجمه** اومحجوب کیږی مور دَ دریمې نه شپږمې طرف ته دَ ځوئی یا نمسی یا دوو رونړو په موجودکیدوسره.

**تشریح** دَمور حصه ثلث الکل ده خودَاولاد په موجودګئی کښې دَ دوو یا دوو نه زیات خوئیندو رونړو په موجودګئی کښې دَ ثلث نه سدس طرف ته منتقل کیږی لهذا دا خلق حجب نقصان جوړشو.

| وَالْفَاضِلُ عَنْ فَرْضِ الْبَنَاتِ لِبَنِي الْإِبْنِ وَأَخَوَاتِهِمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ. |
|---|

**ترجمه** اوکوم چه باقی پاتې شی دَ لونړو دَحصې نه هغه دَ نمسو اودَهغوی دَخوئیندو دی دَ سړی دَپاره دَ دوو ښځو برابر حصه.

**تشریح** نمسئی، دَدې اصل حصه دَ صلبی اولاد په عدم موجودګئی کښې نصف ده. که چرې نمسئی یوه وی اودَ لونړو په عدم موجودګئی کښې نمسئی دَ یونه زیاتې وی نوهغوی ته به ثلثان ملاویږی اوپه هغوی

کېږي به برابر تقسیمېږي. خود یوې لور په موجودګئ کښې به د نصف یا ثلثان نه سدس طرف ته منتقل کیږي. اوکه چرې دوه یا زیاتې لونړه وی نونمسئ به ساقط شي ځکه چه ثلثان لونړو واخستو خوکه نمسئ سره برابر یونمسې یا د مړي کړوسې یا کودې وی نوساقط کیدونکې نمسئ به هغه سره عصبه بالغیرشي اود ذوی الفروض نه د ورکولونه پس باقي پاتې ترکه به هغوی ته ملاویږي. اوهغوی به ئې په خپل مینځ کښې داسې تقسیم کوی چه نمسی ته به دوه او نمسئ ته یوه حصه ملاؤشي. که چرې لونړه ئې نه وې نوټول مال به نمسی او نمسو ته ملاویدلو لیکن د لونړو د وجه نه نمسی او نمسوته حجب نقصان اوشو.

| |
|---|
| وَالْفَاضِلُ عَنْ فَرْضِ الْأَخَوَاتِ لِلْأَبِ وَالْأُمِّ لِلْإِخْوَةِ وَلِأَخَوَاتٍ مِنَ الْأَبِ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ] |

**ترجمه>** اوکوم چه د حقیقي خوئیندو د حصې نه باقي پاتې شي هغه د علاتي خوئیندو رونړو ده د سړي د پاره د دوو ښځو د حصې برابر.

**تشریح >** د حقیقي خوئیندو په عدم موجودګئ کښې د یوعلاتي خور حصه نصف ده اوکه دوه یا د دوو نه زیات وی نوثلثان وی خود یوحقیقي خورپه موجودګئ کښې نصف یا ثلثان نه سدس طرف ته منتقل کیږي. لهذا یو حقیقي خور د علاتي خوئیندو د پاره حجب نقصان دې اوکه علاتي خوئیندوسره علاتي رور وی نو د علاتي خوئیندو رونړو سره به عصبه بالغیروی اود ذوی الفروض په موجودګئ کښې مابقیه ترکه او په عدم موجودګئ کښې ټوله ترکه هغوی ته ملاویږي اوهغوی به ئې په خپل مینځ کښې داسې تقسیم کوی چه نارینه ده ډبل او زنانه ته یوه حصه ملاویږي.

| |
|---|
| وَإِذَا تَرَكَ بِنْتًا وَبَنَاتِ ابْنٍ وَبَنِي ابْنٍ فَلِلْبِنْتِ النِّصْفُ وَالْبَاقِي لِبَنِي الْابْنِ وَأَخَوَاتِهِمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ] |

**ترجمه>** اوچه کله پرېږدی یوه لور او څو نمسی او څو نمسئ نود لور د پاره نصف اوباقي د نمسو او د هغوی د خوئیندو ده د سړي د پاره د دوو ښځوبرابر حصه.

**تشریح >** د یوسړي انتقال اوشي هغه صرف یوه لورپرېخودې وی اوڅو نمسی اونمسئ نولورته به ئې نیمه حصه ملاویږي اوباقي نیمه به د نمسا نمسود پاره به د عصبه په توګه وی. په دې کښې به د نمسی د پاره د نمسئ دوچندوی او نمسئ ته به یوه حصه ملاویږي.

| |
|---|
| وَكَذٰلِكَ الْفَاضِلُ عَنْ فَرْضِ الْأُخْتِ لِلْأَبِ وَالْأُمِّ لِبَنِي الْأَبِ وَبَنَاتِ الْأَبِ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنْثَيَيْنِ] |

**ترجمه>** دغه شان چه کومه باقي پاتې شي د حقیقي خور د حصې نه هغه د علاتي خوئیندو رونړو ده د سړي د پاره د دوو خوئیندوبرابر حصه.

**تشریح >** د دې تفصیل مسئله (۳) کښې تیرشوې دې.

| |
|---|
| وَمَنْ تَرَكَ ابْنَيْ عَمٍّ أَحَدُهُمَا أَخٌ لِأُمٍّ فَلِلْأَخِ السُّدُسُ وَالْبَاقِي بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ] |

**ترجمه>** اوچاچه پرېخودل دوه د تره خامن په کوم کښې چه یواخیافي رور دې نود اخیافي رور د پاره شپږمه حصه ده او باقي به په دوی کښې نصفانصف وی.

**تشریح >** یوسړي دوه د تره خامن پرېخودل یود تره خوئي د هغه اخیافي (مورشریك) رور هم وو اول خو به دغه اخیافي رور ته د ټول مال ۶/۱ حصه ملاویږي اوکوم چه باقي پاتې شي هغه به دواړه رونړه د عصبه په توګه خپل مینځ کښې نیم نیم تقسیم کړي.

وَالْمُشْتَرِكَةُ أَنْ تَتْرُكَ الْمَرْأَةُ زَوْجًا وَأُمًّا أَوْجَدَّةً وَإِخْوَةً مِنْ أُمٍّ وَأَخًا مِنْ أَبٍ وَأُمٍّ فَلِلزَّوْجِ النِّصْفُ وَلِلْأُمِّ السُّدُسُ وَلِأَوْلَادِ الْأُمِّ الثُّلُثُ وَلَا شَيْءَ لِلْإِخْوَةِ لِلْأَبِ وَالْأُمِّ

**حل اللغة**> المشتركة: دامسئله مشترکه ده ځکه چه په دې کښې څوقسمه رونړه دی اوذ مور اونیامسئله هم ده په یولغت کښې المشترکة دې دَدې مطلب به داشی چه بعض حضراتو حقیقی رور دَ مور شریك رور په حصه کښې شریك گرځولې اوبعضو شریك نه دې گرځولې.

**ترجمه**> مشترکه مسئله داده چه پریخوده ښځې خاوند مور یا نیا (دواړه طرف نیاګانې) یوڅو اخیافی رونړه او حقیقی رور نودَخاونددپاره نصف دَمور دَپاره شپږمه حصه او دَاخیافی روردَپاره دریمه اوهیڅ نشته دَ حقیقی رونړو دَ پاره.

**تشریح**> دَمسئلې تشریح داسې ده چه یوه ښځه مړه شوه هغې په وارثانوکښې خاوند مور یا نیا څودَ مور شریك رونړه او حقیقی رونړه پریخودل نوترکه به څنګه تقسیمیږی؟ فرمائیلې شوی دی چه دَ خاونددَپاره په ټول مال کښې نیم دې ځکه چه دَ اولاد په عدم موجودګنی کښې خاوندته دټول مال نصف ملاویږی. اودَ موردپاره شپږمه حصه ده ځکه چه دَمړی دریواړه قسمه حقیقی علاتی او اخیافی رونړو خوئیندونه چه دوه یا ددوو نه زیات وی نوموږ ته سدس ملاویږی یا دَ مور دَنه کیدو په صورت کښې جده وی نوهغې ته به هم شپږمه حصه ملاویږی او اخیافی ته به دریمه ملاویږی ځکه چه دَ یونه زیات اخیافی رونړه وی نوهغوی ته ثلث ملاویږی اوحقیقی رونړو ته هیڅ نه ملاویږی ځکه چه هغه عصبه دی په دې وجه چه دَ اصحاب فرائض نه باقی پاتې ترکې نه هغوی ته ملاویږی اودلته څه باقی پاتې نه شو په دې وجه به دوی محروم شی.

# بَابُ الرَّدِّ

(باب: دَ رد بیان)

### د رد لغوی او اصطلاحی معنی

دَ رد لغوی معنې ده ګرځیدل، واپس کیدل واپس کول. دامصدردې اودَباب نصر او ینصر نه رَدَّ يَرُدُّ رَدًّا مستعمل دې اودَ فن فرائض په اصطلاح کښې دَ رد معنی ده کله چه ذوی الفروض ته دَحصې ورکولونه پس کومه ترکه باقی پاتې شی اودَهغې دَ اخستلو دَپاره هیڅ قسم عصبه موجودنه وی نو په داسې صورت کښې به دا په ذوی الفروض باندې دهغوی دَ سهام دَ تناسب په اعتبارسره واپس کولې شی هم دې ته رد وئیلې شی.

**فائده**> رد صرف په نسبی اصحاب فرائض باندې کیږی اودې ته من یردعلیه وائی او زوجین څو نسبی رشته دار نه دی په دې وجه په هغوی باندې ردنه کیږی هغوی ته من لایردعلیه وئیلې شی. رد دَعول ضد دې او په عول کښې دَ اصل مسئلې نه حصه زیاتیږی او په رد کښې دَاصل مسئلې نه حصې کمې پاتې کیږی یعنی دَ ذوی الفروض دَ ورکړې نه پس څه پاتې کیږی.

**نوټ**> په دې باب کښې دَ رد نه علاوه هم دَدیرو مسائلو تذکره ده په دې وجه باب الرد یوجزوی نوم دې.

### په اصحاب فرائض باندې رد جائزدې که نه؟

وَالْفَاضِلُ عَنْ فَرْضِ ذَوِي السِّهَامِ إِذَا لَمْ تَكُنْ عَصَبَةٌ مَرْدُودٌ عَلَيْهِمْ بِقَدْرِ سِهَامِهِمْ إِلَّا عَلَى الزَّوْجَيْنِ.

**ترجمه**> کوم مال چه دَ ذوی الفروض دَحصې نه بچ شی اونه وی عصبه نو ورکولې به شی ذوی الفروض ته دَهغوی دَ حصو موافق بغیردَ زوجین نه.

**تشریح** پہ اصحاب فرائض باندې رد کول جائزدی که نه، په دې کښې اختلاف دې دَوه دوورونه تیرشوی دی. دَاول دور اختلاف دَ صحابه کرامو اختلاف دې په دې باره کښې دَ صحابه کرامو دوه ډلې شوې. ① یوه دَحضرات خلفاء راشدین او جمهور صحابه کرامو چه دَدې خبرې قائل وو چه مابقیه ترکه دَ زوجین نه علاوه به په ټولو ذوی الفروض باندې رد کولې شی. ② دَ حضرت زیدبن ثابت رضی الله عنه په نیز په ذوی الفروض باندې ردنه شی کولې بلکه باقی پاتې ترکه به په بیت المال کښې جمع کولې شی اودَ دویم دور اختلاف دَ ائمه مجتهدین اختلاف دې.

① دَ ائمه احناف دامسلك دې چه دَ زوجین نه علاوه به په ټولو اصحاب فرائض باندې رد کیږی. ② دَحضرت امام مالك رحمه الله او امام شافعی رحمه الله په نیز ذوی الفروض ته دَ ورکولونه پس باقی پاتې مال به په بیت المال کښې کیخودې شی خو متاخرین شوافع دَ بیت المال غیرمنظم کیدو په صورت کښې دَ احنافو دَ قول مطابق فتوی ورکړې ده. اودَ امام مالك رحمه الله یو روایت هم دَ احنافو دَ مسلك مطابق دې. [ردالمختار: ۵/۵۵۶ مکتبه رشیدیه پاکستان].

**په زوجین باندې کوم وخت رد جائزکیږی؟**

**فائده** کهٔ دَښځې خاوند نه علاوه دَ مړی بل څوك وارث نه وی مثلاً ذوی الارحام مولی الموالات مقرله بالنسب علی الغیر او موصیٰ له بجمیع المال نه وی. اوبیت المال هم نه وی یا بیت المال وی خو په شرعی نقطه نظرسره غیرمنظم وی په هغې کښې جمع شوې مال په صحیح مصرف کښې نه خرچ کیږی نو په دې صورتونوکښې متاخرین احناف په زوجین باندې دَ رد کولو فتوی ورکړې ده. [ردالمختار ۵/۵۵۶].

> وَلَا يَرِثُ الْقَاتِلُ مِنَ الْمَقْتُولِ وَالْكُفْرُ مِلَّةٌ وَاحِدَةٌ يَتَوَارَثُ بِهِ أَهْلُهُ وَلَا يَرِثُ الْمُسْلِمُ الْكَافِرَ وَالْكَافِرُ وَالْمُسْلِمَ وَمَالُ الْمُرْتَدِّ لِوَرَثَتِهِ الْمُسْلِمِينَ وَمَا اكْتَسَبَهُ فِي حَالِ رِدَّتِهِ فَيْءٌ

**ترجمه** او وارث نه وی قاتل دَمقتول اوهرقسم کفر هم یومذهب دې دَدې په سبب به کافروارث وی دَ بل کافر او وارث کیږی نه مسلمان دَ کافر اونه کافردَمسلمان مرتد مال دَهغه دَمسلمانانو وارثانودې اوکوم مال نې چه ګټلې وی هغه دَ ردت په حالت کښې هغه غنیمت دې.

**تشریح** دَدې ټولو مسائلوتفصیل دکتاب الفرائض په شروع کښې تیرشوې دې.

**ډوبیدو سوزیدو او ختیدوسره دمړه کیدولکی احکام**

> وَإِذَا غَرِقَ جَمَاعَةٌ أَوْ سَقَطَتْ عَلَيْهِمْ حَائِطٌ فَلَمْ يُعْلَمْ مَنْ مَاتَ مِنْهُمْ أَوَّلًا فَمَالُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ لِلْأَحْيَاءِ مِنْ وَرَثَتِهِ

**ترجمه** اوکه چرې یوجماعت ډوب شی یا په هغوی باندې دیوال راپریوځی اومعلومه نه شی چه رومبې څوك مړدې نو په هغوی کښې دَهریومال دَهغوی دَ ژوندووارثانوډپاره دې.

**تشریح** که یوڅو رشته دار په څه حادثه کښې مړه شی مثلاً کشتنی ډوبه شی یا اور اولګی یا دیوال چت وغیره راپریوځی یا په میدان جنګ کښې ټول جنګیدوسره شهیدان شی یا یوڅو رشته داران چرته لرې ملك ته لاړشی اوټول مړه شی او په هیڅ شان سره دا معلومه نه شی چه کوم یوم یو وړاندې وفات شوې او څوك روستو مړشوې (که دَتقدیم اوتاخیردَ یولحظې هم وی دَهغې اعتباربه کولې شی) نوپه نورو ژوندو وارثانو کښې به دَهغوی وراثت تقسیمیږی. داخلق (په یوه حادثه کښې مړه کیدونکی) به دَ یوبل وارثان نه وی اوهم دغهٔ مختارمذهب دې. هم په دې باندې فتوی هم ده. مذکوره حکم دَ امام اعظم رحمه الله آخری قول اودَ امام شافعی رحمه الله مختارمسلك دې دحضرت علی او عبدالله بن مسعود رضی الله عنهما یو روایت هم دغه دې اوعلامه شامی رحمه الله هم دې ته معتمدوئیلې دې.

**مثال** پلار زید او خوئی عمرپه یوځائی ډوب شو مړه شول. پلارئی خپله ښځه رحیمه او لور کریمه اونمسي بکر (پلارسره د ډوب شوی خوئی خوئی) پریخودل او خوئی ئی ښځه رفیقه مور رحیمه او خوئی بکر پریخودو نو د پلار او خوئی ترکه به دوه ځایه جداجدا تقسیم کولې شی. البته خوئی ته به د پلار او پلارته د خوئی وراثت نه ملاویږی تخریج دادې:

**مسئله ۸**

زید میت

| (زوجه (رحیمه | (بنت (کریمه | (ابن الابن (بکر |
| --- | --- | --- |
| ثمن | نصف | عصبه |
| ۱ | ۴ | ۳ |

**مسئله ۲۴**

عمر میت

| (زوجه (رفیقه | (ام (رحیمه | (ابن (بکر |
| --- | --- | --- |
| ثمن | سدس | عصبه |
| ۳ | ۴ | ۱۷ |

او د حضرت علی او ابن مسعود رضی الله عنهما هم روایت دادې چه کله په یوځائی باندې ډیر رشته داران وفات شي نو که په هغوی کښې هریو د بل وارث وی نوهغوی به په خپل مینځ کښې د یوبل وارثان نه وی اوکه د یوطرف نه چاته وراثت ملاویږی نوهغه به وارث وی.

**وَاِذَا اجْتَمَعَ لِلْمَجُوْسِيِّ قَرَابَتَانِ لَوْتَفَرَّقَتْ فِيْ شَخْصَيْنِ وَرِثَ اَحَدُهُمَا مَعَ الْاٰخَرِ وُرِّثَ بِهِمَا**

**ترجمه** اوکله چه جمع شی د مجوسی داسې دوه قرابتونه چه که هغه جدا جداوی په دوکسانوکښې نو د یوبل وارثان وی نوهغه به وارثان وی مجوسی د هغوی نه د هریو په ذریعه.

**وَلَايَرِثُ الْمَجُوْسِيُّ بِالْاَنْكِحَةِ الْفَاسِدَةِ الَّتِيْ يَسْتَحِلُّوْنَهَا فِيْ دِيْنِهِمَا**

**ترجمه** اووارثان به نه شی مجوسیان په دغه فاسدونکاحونوسره کوم چه هغوی حلال ګنړی په خپل دین کښې.

**تشریح** مجوسیانوته به د دغه فاسدو نکاحونو په سبب میراث نه ملاویږی کوم چه هغوی په خپل دین کښې حلال ګنړی مثلاً خپلې مورلور خورسره نکاح کول هغوی حلال ګنړی ځکه چه فاسدنکاح د مسلمان په حق کښې مثبت توارث نه ده نود مجوسیانو په حق کښې به هم نه وی.

**وَعَصَبَةُ وَلَدِ الزِّنَا وَوَلَدِ الْمُلَاعَنَةِ مَوْلٰى اُمِّهِمَا**

**ترجمه** او د ولدزنا عصبه او ولدملاعنه عصبه د هغوی د مورآقادې.

**تشریح** د زنانه چه کوم بچې پیداشو په شرعی اعتبارسره د هغه پلارنه دې یاچه دکومې ښځې خاوندسره ده لعان اوکړو نود هغه بچی رشته د هغه پلارسره ختمه شوه اوس هغه پلارپاتې نه شو په دې وجه به ئی نه پلاروارث وی اونه د پلاررشته داران. بلکه د هغه تعلق د مور سره شو په دې وجه به ئی هم مور وارثه وی اود موررشته داران به ئی وارث وی اوداهلك به د مور وارث وی اود مورد طرف نه چه کوم رشته داران دی د هغوی وارث به وی.

**تنبیه>** مولی آزادونکي او عصبه دواړه عام دی یعنې چه کله ئې مور اصلاً آزاده وی نومیراث دهغې دمولی دپاره دې اوهم هغه عصبه ده. اوکه چرې مورئې آزاده کړې شوی وی نومیراث دهغې دمعتق دپاره دې.

## د حمل دمیراث بیان

وَمَنْ مَاتَ وَتَرَكَ حَمْلاً وُقِفَ مَالُهُ حَتّٰى تَضَعَ امْرَأَتُهُ حَمْلَهَا فِيْ قَوْلِ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالىٰ؛

**ترجمه>** اوچه کوم سړې مړشو حمل ئې پرېخودو نوموقوف به وی مال دهغه ترهغه پورې چه راوړی دهغه ښځه خپل حمل دامام صاحب رحمه الله په قول کښې.

**تشریح >** په دې عبارت کښې صاحب کتاب دحمل میراث بیانوی اول خوداخبرې په ذهن کښې اوساتئ چه حمل ته هم میراث ملاوېږی مګردې دپاره شرط دادې چه هغه ژوندې راپیداشی مړماشوم راپیداشی نو هغه ته به میراث نه ملاوېږی. بل داهم شرط دې چه هغه دمورث د مرګ په وخت یقیناً په خیټه کښې وی اوداخبره داسې معلومیدې شی چه هغه داکثرمودې دحمل کښې پیداشی اود حمل کم نه کم موده شپږ میاشتې ده اود احنافو په نیز اکثرموده دوه کاله ده. که د مورث دمرګ نه پس په دوکاله کښې دننه بچې پیداشو نوهغه به وارث وی که دې نه پس پیداشو نووارث به نه وی. خکه چه په دې صورت کښې د مرګ په وخت کښې دبچی په خیټه کښې موجود کیدل یقینی نه دی. اوس دمسئلې صورت باندې ځان پوهه کړئ. که ښځې ولادت ته نیزدې وی اوخاوندئې مړشی نو بهتره داده چه دمیراث په تقسیم کښې تندی اونه کړی بلکه دترکې تقسیم دې دوضع حمل پورې روستوکړې شی دې دپاره چه په تقسیم کښې څه پریشانی رانه شی اوولادت په نیزدې کیدلو مدار په عرف باندې دې اوبعض فقهاؤ د یوې میاشتې نه کم ته قریب او دې نه زیات ته بعید وئیلې دې. خوکه چرې وارثان انتظارنه کوی اودولادت نه وړاندې ترکه تقسیم کول غواړی او په ولادت کښې وخت وی نو ترکه تقسیم کول پکاردی بغیرد څه وجه نه د ترکې په تقسیم کښې روستوالې کول مناسب نه دی. په دې صورت کښې به دترکې نه دحمل حصه بندولې شی او د یوحمل نه په عام توګه سره یوبچې پیداکیږی خوکله زیات هم پیداکیږی. په دې وجه سوال پیداکیږی چه د څومره بچو حصه به بندولې شی او باقی ترکه په وارثانوکښې تقسیم کړې شی. دامام محمد رحمه الله نه دا روایت نقل دې چه ددوو هلکانو یا دوو جینکوحصه دې د حمل دپاره بنده کړې شی. دریم قول چه مفتی به دې خصاف رحمه الله د امام یوسف رحمه الله نه دا روایت نقل کړې دې چه دیوهلك یا یوجینئی حصه دې د حمل دپاره بنده کړې شی څکه چه عموماً د یوحمل نه هم یو ماشوم پیداکیږی اود وارثانونه دې ضمانت واخستې شی که د یونه زیات ماشومان پیداشی نوهغه به د اخستې شوې ترکه نه دزیاتی بچوحصه واپس کوی. د حمل دتوریث ضابطه اوطریقه څه ده په دې باره کښې نور تفصیل سراجی فصل فی الحمل کښې اوګورئی.

وَالْجَدُّ أَوْلىٰ بِالْمِيْرَاثِ مِنَ الْإِخْوَةِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالىٰ، وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالىٰ يُقَاسِمُهُمْ إِلَّا أَنْ تَنْقُصَهُ الْمُقَاسَمَةُ مِنَ الثُّلُثِ؛

**ترجمه>** اونیکه ډیرحقداردې په میراث کښې د رونړو په مقابله کښې د امام صاحب په نیز او صاحبینو حضراتو فرمائیلی چه د دوو رونړو برابربه ورکولې شی مګردا چه کم وراورسی دا برابر تقسیم کولوکښې دریمه حصه ده.

**تشریح >** په دې عبارت کښې صاحب کتاب نیکه او رونړو خوئیندو په مینځ کښې دترکه تقسیم باره کښې بیان کوی. په متن کښې لفظ مقاسمة راغلې دې دا د باب مفاعله نه دې دکوم چه لغوی معنی ده

په خپل مینځ کښې تقسیم کول او په اصطلاح کښې د ترکې په تقسیم کښې نیکه د یو رور په شان ګڼړل د نیکه په موجودګئی کښې د حقیقی او علاتی خوئیندو رونړو محروم کیدو او نه محروم کیدو باره کښې د صحابه کرامو ﷺ دوه رائې وې.

① **رومبې رائې** د حضرت ابوبکرصدیق ﷺ په نیز د نیکه په موجودګئی کښې به حقیقي اوعلاتی خوئیندې رونړه محروم وی. د صحابه کرامو یوه لویه ډله دَدې تائیدکوی اوامام اعظم ﷺ هم دا اختیارکړې ده اوهم دغه مفتی به قول هم دې.

② **دویمه رائې** د حضرت زیدبن ثابت ﷺ په نیزحقیقی خوررور ته به نیکه سره وراثت ملاویږی ائمه ثلاثه او د احنافو نه صاحبین هم دَدې قائل دی. اوس تاسو په وراندې د مقاسمة الجد دوه صورتونه بیانولې شی چه د ائمه ثلاثه او صاحبینو حضراتو د رائې مطابق دی ولې د صاحبینو قول مفتی به نه دې.

① که نیکه سره حقیقی اوعلاتی خوئیندې رونړه وی نو نیکه ته مقاسمه او د پوره ترکې په دریمه حصه کښې چه کومه مفیدوی ورکولې شی. یعنی نیکه ته د یورور فرض کولو په صورت کښې ډیره ترکه ملاویږی نو نیکه ته به د مقاسمه په طریقه باندې ترکه ورکولې شی اوکه د پوره ترکې په دریمه حصه کښې نیکه ته زیاته ملاویږی نو د پوره ترکې دریمه حصه به ورکولې شی.

② چه نیکه سره حقیقی اوعلاتی خوئیندې رونړه وی اود ذوی الفروض نه هم څوك وی نو په دې صورت کښې چه نیکه ته مقاسمه او ثلث باقی او سدس کل نه کوم زیات وی هغه به ملاویږی یعنی که دمقاسمه په طریقه ورکولو کښې نیکه ته زیات ملاویږی نود مقاسمه په طریقه به نیکه ته ورکولې شی اوکه اصحاب فرائض ته د ورکړې نه پس کوم مال بچ کیږی د هغې دریمه (ثلث باقی) زیات وی نو نیکه ته به د باقی پاتې دریمه ورکولې شی اوکه د پوره ترکې سدس زیات دې نو نیکه ته به د پوره ترکې سدس ورکولې شی.

**د پلار د طرف نیاد وارث کیدو صورت**

| |
|---|
| وَإِذَا اجْتَمَعَ الْجَدَّاتُ فَالسُّدُسُ لِأَقْرَبِهِنَّ |

**ترجمه** اوچه کله جمع شی جدات نوشپږمه حصه به هغه ته ملاویږی کومه چه ټولونه زیاته نیزدې وی.

**تشریح** که څوك حاجب نه وی نو جده صحیحه ته به سدس ملاویږی که هغه د مور د طرف نه وی اوکه د پلار د طرف نه وی. اوکه هغه یوه وی اوکه د یوې نه زیاتې البته دا ضروری دی چه هغه فاسده نه وی بلکه صحیحه وی او په مرتبه کښې برابروی. یعنی که یوه جده په یوه واسطه سره نیاوی نو بله هم په یوه واسطه سره نیاوی که یوه د نیزدې وی که هغه د هرې یوې رشتې وی نو د لرې والا ساقط کوی که هغه د پلار د طرف نیاوی اوکه دمور د طرف نیا وی اود نیزدې والاوارث کیږی که اویاساقط کیږی.

| |
|---|
| وَيَحْجُبُ الْجَدُّ أُمَّهُ |

**ترجمه** محجوب کوی نیکه خپله مور.

**تشریح** د نیکه د وجې نه هغه نیاګانې ساقط کیږی کومې چه د نیکه د واسطې نه دی مثلاً د نیکه مور به د نیکه د وجې نه ساقط کیږی خونیا یعنی د نیکه ښځه به د نیکه د وجې نه نه ساقط کیږی ځکه چه د نیا د مړی سره رشته یو ځانی کولو کښې د نیکه واسطه نه راځی دغه شان د غړنیکه د وجې نه د غړنیکه ښځه (دنیامور) به نه ساقط کیږی هم دغه شان د پورته نیاګانو حال هم اوګڼړئی.

| |
|---|
| وَلَا تَرِثُ أُمُّ أَبِ الْأُمِّ بِسَهْمٍ |

**ترجمه** > او وارث کیږي نه دَ مور دَ پلار مور هیڅ هم نه.

**تشریح** > دَمور دَپلار مور دَ مور نیاشوه اودَ مرې پردنۍ نیاشوه او پردنۍ نیا دجده فاسده په دائره کښې راځي او شریعت جده صحیحه دَ وارثانو په فهرست کښې شمیرکړې ده او جده فاسده ئې دَ وارثانو دَ فهرست نه خارج کړې ده ځکه چه هغه په ذوي الارحام کښې راځي په دې وجه ئې اوفرمائیل دَمورد طرف دَنیامور به وارث نه وي.

[وَكُلُّ جَدَّةٍ تَحْجُبُ أُمَّهَا]

**ترجمه** > هره جده محجوب کوي خپله مور.

**تشریح** > نیادَمور په درجه کښې ده اوچه مور وي نو دواړه طرف ته نیاګانې محروم کیږي دغه شان نیاخپله خور محجوب کوي.

# بَابُ ذَوِي الْأَرْحَامِ

(باب: دَ ذوي الارحامو بیان)

دَ اصحاب فرائض او عصبات وغیره دَ تفصیلي بحث فارغیدونه پس ذوي الارحام بیانولې شي. رَحِمٌ دَ رِحْمٌ جمع ده أَرْحَامٌ بچه داني مطلقًا رشته داري، ذوالرحم رشته دار که رشته دَ پلار دَ طرف نه وي اوکه دَ مورد طرف نه وي.

**اصطلاحي تعریف** > دَمرې هغه رشته داردَچاحصه چه قرآن اوحدیث کښې مقررنه وي نه په اجماع سره فیصله شوې وي اونه هغه عصبات وي لکه دَ مور خور دَ پلار خور ماما خورئې او نمسې.

**د ذوي الارحام په توریث کښې اختلاف**

[وَإِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْمَيِّتِ عَصَبَةٌ وَلَا ذُوْ سَهْمٍ وَرِثَ ذَوُو الْأَرْحَامِ]

**ترجمه** > کله چه نه وي دَ مرې عصبه او نه ذوي الفروض نووارثان به وي دَهغه ذوي الارحام.

**تشریح** > کله چه ذوي الفروض او عصبات نه وي نو ذوي الارحام وارث جوړ کروکه نه؟ نوپه دې سلسله کښې دَ صحابه کرامودَ دور نه اختلاف راروان دې. په دې باره کښې دَ اکثر صحابه کرامو اوتابعینورائې داده چه دَ ذوي الفروض او عصبات په عدم موجودګئ کښې به ترکه ذوي الارحام ته ملاویږي. دَ احنافو اوحنابله هم دغه مسلك دې. خو په صحابه کرامو کښې دَحضرت زیدبن ثابت رضي الله عنه مسلك دادې چه په داسې صورت کښې به ترکه په بیت المال (اسلامي سرکاري خزانه)کښې جمع کولې شي ذوي الارحام ته به نه شي ورکولې. دَ امام مالك او امام شافعي هم دغه مسلك دې.

**فائده** > کوم فقهاء چه دَ نادارو کمزورو او ګتې نه عاجزو مسلمانانودَامداد په غرض په بیت المال کښې دَترکې کیخودو رائې لرې دَهغوي په نیز شرط دادې چه بیت المال په شرعي نظم اوضبط سره چلیږي مال په صحیح مصرف کښې خرچ کیږي. نواوس دَ دې قسم بیت المال موجودنه دې په دې وجه متاخرین مالکیه دَ دریمې صدئ هجرئ نه پس ئې ذوي الارحام ته دَ ترکې ورکولوفتوی ورکړې ده اودَ فقهاء شافعیه هم دغه رائې ده. لهذا اوس هیڅ اختلاف باقي پاتې نه دې.[المواریث ص ۱۸۴].

## دذوی الارحام د اقسام بیان

[وَهُمْ عَشَرَةٌ وَلَدُ الْبِنْتِ وَوَلَدُ الْاُخْتِ وَبِنْتُ الْاَخِ وَبِنْتُ الْعَمِّ وَالْخَالُ وَالْخَالَةُ وَاَبُو الْاُمِّ وَالْعَمُّ لِاُمٍّ وَالْعَمَّةُ وَوَلَدُ الْاَخِ مِنَ الْاُمِّ وَمَنْ اَدْلٰی بِهِمَا]

**ترجمه** > اوهغه لس دی دَ لور اولاد دَخوراولاد دَ رور لور دَ تره لور ماما ترور دَموريلار اخيافی تره ترور دَاخيافی رور اولاد اوکوم چه هغوی سره متعلق وی.

**تشریح** > په دې عبارت کښې دَ ذوی الارحام دَ اقسام بيان دې. دَ استحقاق ارث په اعتبار سره دَ عصبات په شان دَ ذوی الارحام هم څلور قسمونه دی.

① هغه ذوی الارحام دی کوم چه دَمړی طرف ته منسوب وی يعنی (۱) دَ لورنارينه اوزنانه اولاد (نمسي نمسئی کروسي کروسئی ترلاندې پورې) (۲) دَنمسئی نارينه او زنانه اولاد ترلاندې پورې.

② هغه ذوی الارحام دی دَ چاطرف ته چه مړې منسوب کيږی. يعنی (۱) جد فاسده (دَ مورطرف نيکه اودَ نيکه پلار پورته پورې) (۲) جده فاسده (دَ مورطرف دَنيکه مور، دَ نيکه دَمور مور).

③ هغه ذوی الارحام دی چه دَمړی والدين طرف ته منسوب وی يعنی (۱) دَحقيقی علاتی اواخيافی خور نارينه او زنانه اولاد. (۲) دَحقيقی علاتی او اخيافی رور لونړه اودَ هغه رونړو دَ خامنو اونمسئی لونړه. (۳) دَاخيافی رونړو خامن اودَ دغه خامنو نارينه او زنانه اولاد.

④ هغه ذوی الارحام دی چه دَمړی دَ پلارطرف نيکه اونياطرف ته منسوب وی که جد صحيح او جده صحيحه وی يا جد فاسد اوجده فاسده وی لکه (۱) دَپلار حقيقی علاتی اواخيافی خوينيندې (تروريانې) اودَ دغه ټولو تروريانو خامن اولونړه ترښکته پورې. (۲) دَ پلار اخيافی رور (اخيافی تره) اودَ هغه خامن او لونړه تر ښکته پورې. حقيقی اوعلاتی تره عصبه وی په دې وجه په ذوی الارحام کښې دَ اخيافی قيد اولګولې شو. (۳) دَمور حقيقی علاتی او اخيافی رور (ماما) اودَهغه خامن او لونړه ترښکته پورې. (۴) دَمور حقيقی علاتی اواخيافی خوينيندې (خاله ګانې) اودَ دغه خاله ګانو نارينه او زنانه اولاد ترښکته پورې.

**فائده** > علامه شامی رحمه الله دا څلورم قسم ذوی الارحام په نور تفصيل سره ليکلې دې چه دادې: ① دَ حقيقی اوعلاتی تره لونړه اودَ دغه ټولو اولاد ترښکته پورې. ② دَ مړی دَ پلار اخيافی تره او حقيقی علاتی او اخيافی تروريانې اوخاله ګانې اوماماګان. ③ دَ مړی دَ مور حقيقی علاتی اواخيافی تره تروريانې خاله ګانې او ماماګان. ④ بياچه څومره قسمونه تيرشوی دی دَ دغه ټولو اولاد اودَ اولاد اولاد تراخيره پورې.

## د ذوی الارحام په اقسام کښې ترجيح

[فَاَوْلٰهُمْ مَنْ كَانَ مِنْ وَلَدِ الْمَيِّتِ ثُمَّ وَلَدُ الْاَبَوَيْنِ اَوْ اَحَدِهِمَا وَهُمْ بَنَاتُ الْاِخْوَةِ وَاَوْلَادُ الْاَخَوَاتِ ثُمَّ وَلَدُ اَبَوَيْ اَوْ اَحَدِهِمَا وَهُمُ الْاَخْوَالُ وَالْخَالَاتُ وَالْعَمَّاتُ]

**ترجمه** > دې ټولو کښې اولی هغه دې کوم چه دَمړی اولاد وی بياهغه چه دَ مور پلار وی يا په دوی کښې دَ يواولاد وی او هغه وريرې او دَ خوينيندو اولاد دې. بيا دَ والدينو دَ والدين يا په دوی کښې دَ يو اولاد دې اوهغه ماماګان خاله ګانې او تروريانې دی.

**تشریح** > په دې عبارت کښې دَ ذوی الارحام په اقسام کښې ترجيح بيانولې شی. دَامام اعظم رحمه الله نه دوه روايتونه دی. ① دَوراثت دَپاره دَټولو نه مقدم دويم قسم دې بيا رومبې قسم. ② دَ وراثت دَپاره دَټولو نه

مقدم رومبي قسم دي بيا دويم بيا دريم او بيا څلورم لکه چه په عصبات کښې د ترجيح هم دغه ترتيب دي او هم په دې دويم روايت باندې فتوئ ده. صاحبين حضرات د ذوى الارحام دريم قسم (يعنى د رونړو خوئيندو اولاد) جدفاسد يعنى په دويم قسم باندې ترجيح ورکوى.

**اعتراض>** د صاحبينو چه کوم مذهب په الجوهرة المنير کښې ذکردې متعارض دې څکه چه باب الرد مسئله ۸ کښې صاحبين دپلار طرف نيکه رونړو سره محروم کوى نه اودلته ئې محروم کوى. په دې وجه فتوئ هم د امام اعظم رحمه الله په قول باندې ده.

**قوت قرابت به د ترجيح وجه وى**

| |
|---|
| [وَاِذَا اسْتَوٰى وَلَدُ اَبٍ فِيْ دَرَجَةٍ فَاَوْلٰهُمْ مَنْ اَدْلٰى بِوَارِثٍ وَاَقْرَبُهُمْ اَوْلٰى مِنْ اَبْعَدِهِمَا] |

**ترجمه>** اوچه کله برابروى د پلار اولاد په درجه کښې نو په دوى کښې اولى هغه دې چه مړى ته ډيرنيزدې وى د يو وارث په ذريعه اود نيزدې والابه اولى وى د لرې رشتې والانه.

**تشريح >** که ټول اولاد د يوشان رشتې وى اوبعض د وارث اولاد وى اوبعض د ذوى الارحام نود وارث اولاد به وارث وى اوذوى الارحام اولاد به محروم وى. يعنى قوت قرابت به د ترجيح وجه وى. لکه يوه د لورنمسئى ده او بله د خوئى نمسئى ده. د مړى دپاره دواړه رشته دارئى د برابرې درجې دى خود خوئى لور يعنى نمسئى وارثه ده په دې وجه دهغه لور يعنى د خوئى نمسئى ته به ورکولې شى اود لور لور وارثه نه وى په دې وجه به دهغې نمسئى ته نشى ورکولې. ددې نه پس ئې يوه قاعده بيان کړې ده هغه دا چه بعض اولاد مړى سره په رشته کښې نيزدې وى اوبعض لرې نود نيزدې والا اولاد به وارث وى اودلرې والابه محروم وى. يعنى دالاقرب فالاقرب قاعده به جارى وى لکه نمسئى (د لور لور) اود نمسئى لور وى نو نمسئى به وارثه وى او د نمسئى لور به محروم وى څکه چه نمسئى يوه درجه اقرب ده.

| |
|---|
| [وَاَبُو الْاُمِّ اَوْلٰى مِنْ وَلَدِ الْاَخِ وَالْاُخْتِ] |

**ترجمه>** اود مور طرف نيکه اولئ دې د رور خور د اولادنه.

**تشريح >** چه د مړى وريره وى يا خورئى يا خورزه وى اود مور طرف نيکه وى نود امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز دغه نيکه به مقدم وى د وريرې خورئى او خورزې نه لکه مفتى به روايت مسئله ۳ کښې تيرشوى دى چه دويم قسم به مقدم وى په دريم قسم باندې.

| |
|---|
| [وَالْمُعْتِقُ اَحَقُّ بِالْفَاضِلِ مِنْ سَهْمِ ذَوِي السِّهَامِ اِذَا لَمْ تَكُنْ عَصَبَةٌ سِوَاهُ] |

**حل اللغة >** سهم ذوي السهام: دحصې والاحصه.

**ترجمه>** اوآزاد کونکې زيات حقداردې دبچ شوى مال د ذوى الفروض نه کله چه نه وى څوك عصبه ددې نه علاوه.

**تشريح >** آزادشوې غلام مرشو هغه اصحاب فرائض اودعصبه په توګه آزادونکې آقا پريخودو د آقانه علاوه څوك نيزدې عصبه نه وو نوذوى الفروض ته حصې ورکولونه پس به باقى مال آزادونکى آقاته ملاويږى او ذوى الارحام به محروم شى.

| |
|---|
| [وَمَوْلَى الْمُوَالَاتِ يَرِثُ] |

**ترجمه>** اومولى الموالات وارث وى.

**تشريح >** د ذوى الفروض عصبات او ذوى الارحام په عدم موجودګئى کښې ترکه مولى الموالات کښې

تقسیم کیږي. دَ موالات معنی ده دوستي کول او دَ فقه په اصطلاح کښې یو خاص قسم معاهدې ته موالات وئیلې شي. دَ احنافو په نیز په میراث کښې عقد معتبر دې او دَ شوافعو په نیز معتبر نه دې.

[وَإِذَا تَرَكَ الْمُعْتَقُ أَبَ مَوْلَاهُ وَابْنَ مَوْلَاهُ فَمَالُهُ لِلْإِبْنِ عِنْدَهُمَا وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى لِلْأَبِ السُّدُسُ وَالْبَاقِيْ لِلْإِبْنِ]

**ترجمه**> او چه کله پرېخودو آزادشوی دَ خپل آقا پلار او دَ خپل آقا خوئی نو دَ ده مال دَ خوئی دې دَ طرفین په نیز او امام ابو یوسف رحمه الله فرمائی چه دَ پلار دَ پاره شپږمه حصه ده او باقی دَ خوئی دَ پاره ده.

**تشریح** > که دَ معتق زیات عصبات وی مثلاً آزادشوی غلام خوئی او نیکه پرېخودو نو په دې دواړو صورتونو کښې دَ طرفین په نیز پلار او نیکه به محروم وی او ټوله ترکه به دَ معتق خوئی ته ملاویږی په خلاف دَ امام ابو یوسف رحمه الله چه هغه په دویم صورت کښې دَ معتق دَ نیکه محروم کیدو باندې قائل دې لکه چه دویمه مسئله متفق علیه ده مگر په رومبی صورت کښې دَ هغه مذهب دادې چه دَ ولاء شپږمه حصه ۶/۱ به پلار ته ملاویږی او باقی پاتې به ئې خوئی ته ملاویږی خومفتی به قول دَ طرفینو دې.

[فَإِنْ تَرَكَ جَدَّ مَوْلَاهُ وَأَخَا مَوْلَاهُ فَالْمَالُ لِلْجَدِّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ تَعَالَى وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ رَحِمَهُمَا اللهُ تَعَالَى هُوَ بَيْنَهُمَا]

**ترجمه**> که آزاد کړې شوی غلام دَ آزادونکی نیکه او رور پرېخودو نو مال به دَ نیکه وی دَ امام صاحب په نیز او صاحبینو فرمائیلی چه مال به دَ دواړو وی.

**تشریح** > که آزاد شوی غلام آقا او دَ هغه رور پرېخودو نو امام صاحب فرمائی چه ټول مال به ئې دَ نیکه دَ پاره وی او دَ آقا رور به محروم وی ځکه چه دَ نیکه په موجودگئی کښې حقیقي یا علاتی رور خور وارث نه شی جوړیدې بلکه محروم به شي. هکذا فی الولاء باندې دَ حنفیه فتویٰ ده. دَ صاحبینو په نیز دَ نیکه په موجودگئی کښې حقیقي یا علاتي خوئیندې رونړه نه محروم کیږی بلکه نیکه به دَ یو رور په درجه کښې ساتلې شی او وراثت به تقسیمیږی لهذا دَ نیکه او رور ولاء به هم نصفا نصف وی.

**دَ ولاء دَ بیع او هبه کولو ناجائز کیدو وجه**

[وَلَا يُبَاعُ الْوَلَاءُ وَلَا يُوْهَبُ]

**ترجمه**> او مه خرڅوئی ولاء او مه ئې هبه کوئی.

**تشریح** > ولاء الموالاة او ولاء العتاقه (تعریفات انوارالقدوری جلد دویم کتاب الولاء کښې اوگورئی) بیع په دوو وجوهاتو سره ناجائزده. رومبئی وجه داده چه دا داسې شرعی حقوق دی چه قابل انتقال نه دی او دویمه وجه داده چه په دې بیع کښې دهوکه ښکاری او داشان چه دَ مشتری دَ طرف نه دَ ثمن ملاویدل یقینی وي خو بل طرف ته معلوم نه دی چه مشتری ته به څه ملاویږی هم که نه؟ ځکه چه ممکن دی چه مشتری دَ ولاء دَ حصول نه وړاندې مړشي او که مشتری ته ولاء ملاؤهم شی نوپته نشته چه څومره به ملاویږی؟ نو دَ مشتری دَ طرف نه دَ رقم اداکولو دَ ثمن په ټوگه یقینی دی خو دَ دویم طرف نه عوض ملاویدل یقینی نه وی بلکه متوهم او وهم دغه دهوکه ده. او دَ موالاتو هبه کول ناجائز کیدو کښې صرف رومبئی وجه کیدې شی چه دا قابل انتقال نه دې البته په دې کښې دَ دهوکې والا وجه نه شی کیدې ځکه چه دهوکه خو صرف په عقود او معاوضه کښې حرام کیږی په عقو وتبرع کښې دهوکه حرام او ناجائز نه ده.

## بَابُ حِسَابِ الْفَرَائِضِ

«د مسئلې جوړولو قواعدو بیان»

**ضروري نوټ>** په قرآن کریم کښې چه د وارثانو د حصو کوم مقدار متعین کړې شوې دې هغه ټول شپږ دي کوم چه په دوو کالمونو کښې وړاندې کولې شي.

| کالم اول | کالم دویم |
|---|---|
| نصف | ثلثان |
| ربع | ثلث |
| ثمن | سدس |

اوس به په دواړو کالمونو کښې پنځه اصول قایم کیږي. ① که صرف یوه حصه حاصلونکی راشي نو د دغه حصې همنام والاعددنه به مسئله جوړیږي. مثلاً که نصف حاصلونکی راشي نومسئله به ۲ سره جوړیږي که ربع حاصلونکی راشي نومسئله به د ۴ نه جوړیږي که ثمن حاصلونکی راشي نومسئله ۸ سره جوړیږي. که ثلث یا ثلثان حاصلونکی راشي نومسئله به ۳ جوړیږي که سدس والا راشي نو مسئله به ۶ سره جوړیږي.

② که د یوکالم زیات سهام حاصلونکي راشي نو د وړوکی سهام په عدد سره به مسئله جوړولې شي مثلاً نصف او ربع حاصلونکي راشي، نومسئله به د ۴ نه جوړیږي.

③ د کالم اول نصف د دویم کالم یوسهم سره ملاؤشي نو مسئله به د ۶ نه جوړیږي مثلاً نصف حاصلونکی او ثلث حاصلونکی یا نصف حاصلونکی او سدس حاصلونکی راشي نومسئله به ۶ جوړیږي.

④ که دکالم اول ربع د دویم کالم یوسهم سره هم ملاؤشي نو مسئله به ۱۲ نه جوړیږي مثلاً ربع حاصلونکی اوثلث حاصلونکی راشي نومسئله به د ۱۲ نه جوړیږي.

⑤ د کالم اول ثمن د کالم ثاني یوسهم سره هم ملاؤشي نو مسئله به د ۲۴ نه جوړیږي.

[إِذَا كَانَ فِي الْمَسْئَلَةِ نِصْفٌ وَنِصْفٌ أَوْنِصْفٌ وَمَا بَقِيَ فَأَصْلُهَا مِنَ اثْنَيْنِ]

**ترجمه>** کله چه په مسئله کښې دوه نصف وي یا یونصف اومابقیه وي نو اصل مسئله به په دوو سره جوړیږي.

**تشریح >** کله چه په مسئله کښې دوه نصف وي مثلاً مړې یوخاوند اویوحقیقي خورپریږدي یا یونصف وي اوباقي وي مثلاً خاوند اوتره پریږدي نو په دواړو صورتونو کښې به مسئله هم په دوو جوړیږي.

[وَإِنْ كَانَ فِيهَا ثُلُثٌ وَمَا بَقِيَ أَوْثُلُثَانِ وَمَا بَقِيَ فَأَصْلُهَا مِنْ ثَلَثَةٍ]

**ترجمه>** اوکه چرې وي په دې کښې دریمه حصه او مابقیه یاپه دریوکښې دوه یا مابقیه نواصل مسئله به په درې سره جوړیږي.

**تشریح >** د ثلث اومابقیه مثال مثلاً مور اوتره وارث وي ثلثان اومابقیه لکه چه دوه لونړه او یوتره وارث وي نواصل مسئله به په درې سره جوړیږي.

**مسئله: ۳** ------------------------------------------------ عاطف میت

| ۲ لونړه | تره |
|---|---|
| ثلثان | عصبه |
| ۲ | ۱ |

[وَاِنْ كَانَ فِيْهَا رُبْعٌ وَمَا بَقِيَ اَوْ رُبْعٌ وَنِصْفٌ فَاَصْلُهَا مِنْ اَرْبَعَةٍ]

**ترجمه>** اوکه چرې وی په دې کښې ربع اومابقیه یا ربع اونصف نو اصل مسئله به په څلورو سره جوړیږی.

**تشریح >** دَ ربع اومابقیه مثال لکه چه یوه ښځه او یوتره پریږدی نو مسئله به په ۴ سره جوړیږی.

**مسئله: ۴** خویلد میت-----------------------------------

| عم | زوجه |
|---|---|
| عصبه بنفسه | ربع |
| ۳ | ۱ |

دَ ربع اونصف مثال:

**مسئله: ۴**

| تره | یوه لور | خاوند |
|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۱ |

[وَاِنْ كَانَ فِيْهَا ثُمُنٌ وَمَا بَقِيَ اَوْ ثُمُنٌ وَنِصْفٌ فَاَصْلُهَا مِنْ ثَمَانِيَةٍ]

**ترجمه>** اوکه چرې وی په دې کښې ثمن اومابقیه یا ثمن او نصف نواصل مسئله به په ۸ سره جوړیږی.

**تشریح >** دَ ثمن اومابقیه مثال

**مسئله: ۸** مثال: زاهد میت-----------------------------------

| ابن | زوجه |
|---|---|
| عصبه بنفسه | ثمن |
| ۷ | ۱ |

**مسئله: ۸** دَ ثمن اونصف مثال

ساجد میت-----------------------------------

| تره | یوه لور | ښځه |
|---|---|---|
| ۳ | ۴ | ۱ |

**دعول لغوی اواصطلاحی معنی**

[وَاِنْ كَانَ فِيْهَا نِصْفٌ وَثُلُثٌ اَوْ نِصْفٌ وَسُدُسٌ فَاَصْلُهَا مِنْ سِتَّةٍ وَتَعُوْلُ اِلَى سَبْعَةٍ وَثَمَانِيَةٍ وَتِسْعَةٍ وَعَشَرَةٍ]

**ترجمه>** او که چرې وی په دې کښې نصف اوثلث یا نصف او سدس نواصل مسئله به په ۶ سره جوړیږی کوم چه به عول کوی دَ ۷ ۸ ۹ او ۱۰ طرف ته.

**تشریح >** دَ عول لغوی معنی زیاتې اوغلبه ده. عربی محاوره ده عال المیزان دا هغه وخت وئیلې شی کله چه دَ تلې یوچابرې دَ بل چابرې نه دَ وزن دَ زیاتوالی دَ وجی نه اوچتیږی.

**اصطلاحي تعریف>** دَمخرج نه د حصو دَ زیاتوالی په صورت کښې دَ مخرج په اجزاء کښې اضافه کول لکه یوه خربوزه په څلورو تقسیم کول وی نودَهغې به څلورحصې کولې شی. خوکه اخستونکی پنځه وی نودَې به دَ څلورو په ځائی پنځه حصې کولې شی هم دغه مطلب دَمخرج په اجزاء کښې دَ اضافه ده اوهم دې ته عول وئیلې شی. صاحب کتاب فرمائی چه دَ ۶ عول تر ۱۰ پورې راځی دَهریومثال لاندې اوګورئی:

مسئله: ۶/۷ نزهت میت

| خاوند | حقیقي خور | اخیافي خور |
|---|---|---|
| نصف | نصف | سدس |
| ۳ | ۳ | ۱ |

مسئله: ۶/۸ نکهت میت

| خاوند | ۲حقیقي خوئیندې | مور |
|---|---|---|
| نصف | ثلثان | سدس |
| ۳ | ۴ | ۱ |

مسئله: ۶/۹ عشرت میت

| خاوند | ۲حقیقي خوئیندې | ۲اخیافي خوئیندې |
|---|---|---|
| نصف | ثلثان | ثلث |
| ۳ | ۴ | ۲ |

مسئله: ۶/۱۰

رفعت میت

| خاوند | ۲حقیقي خوئیندې | ۲ اخیافي خوئیندې | مور |
|---|---|---|---|
| ۳ | ۴ | ۲ | ۱ |

وَاِنْ كَانَ مَعَ الرُّبُعِ ثُلُثٌ اَوْسُدُسٌ فَاَصْلُهَا مِنَ اثْنَیْ عَشَرَ وَتَعُوْلُ اِلٰی ثَلٰثَ عَشَرَ وَخَمْسَةَ عَشَرَ وَسَبْعَةَ عَشَرَ

ترجمه> اوکه چرې وی ربع سره ثلث یا سدس نو اصل مسئله به په ۱۲ سره جوړیږی او د ۱۲ عول ۱۳، ۱۵ او ۱۷ راځي یعنی په طاق عدد کښې عول راځی. د هریو مثال لاندې درج دې:

مسئله: ۱۲/۱۳ ظفر میت

| ښځه | ۲حقیقي خوئیندې | یوه اخیافي خور |
|---|---|---|
| ربع | ثلثان | سدس |
| ۳ | ۸ | ۲ |

مسئله: ۱۲/۱۵ ظفیر میت

| ښځه | ۲حقیقي خوئیندې | ۲اخیافي خوئیندې |
|---|---|---|
| ربع | ثلثان | ثلث |
| ۳ | ۸ | ۴ |

مسئله: ۱۲/۱۷ مظفر میت

| ښځه | ۲حقیقي خوئیندې | ۲اخیافي خوئیندې | مور |
|---|---|---|---|
| ربع | ثلثان | ثلث | سدس |
| ۳ | ۸ | ۴ | ۲ |

وَاِذَا كَانَ مَعَ الثُّمُنِ سُدُسَانِ اَوْثُلُثَانِ فَاَصْلُهَا مِنْ اَرْبَعَةٍ وَعِشْرِيْنَ وَتَعُوْلُ اِلٰى سَبْعَةٍ وَعِشْرِيْنَ

**ترجمه>** اوچه کله وی ثمن سره دوه سدس یا دوه ثلث نواصل مسئله ۲۴ سره جوړیږی. اوعول به کوی دَ ۲۷ طرف ته.

**تشریح>** که چرې ثمن سره سدسان یا ثلثان وی نواصل مسئله به ۲۴ سره جوړیږی اودَ جمهور امت په نیزدَ ۲۴ عول صرف ۲۷ راځی دَدې نه علاوه نه راځی مګردَحضرت عبدالله بن مسعود رضی الله عنه په نیز دَ ۲۴ دوه عول راځی ① ۲۷ ② ۳۱ دَ جمهورامت فتویٰ دَحضرات جمهور دَقول مطابق ده.

**مسئله:** ۲۴/۲۷ ---------------- کریمه میت

| ښځه | ۲لونړه | مور | پلار |
|---|---|---|---|
| ثمن | ثلثان | سدس | سدس |
| ۳ | ۱۶ | ۴ | ۴ |

دَ ۲۴عول عندابن مسعود رضی الله عنه

**مسئله:** ۲۴/۳۱

کریمه میت ----------------

| ښځه | (ابن (کافریاقاتل | مور | ۲حقیقی خوئیندې | ۲اخیافی خوئیندې |
|---|---|---|---|---|
| ثمن | محروم | سدس | ثلثان | ثلث |
| ۳ | - | ۴ | ۱۶ | ۸ |

لیکن جمهورفقهاء او احنافویه نیز به مسئله ۱۲ سره جوړیږی او په ۱۷ سره به عائله شی لکه چه

**مسئله:** ۱۲/۱۷ افروز میت----------------

| ښځه | مور | ۲حقیقی خوئیندې | ۲اخیافی خوئیندې | (ابن (کافر |
|---|---|---|---|---|
| ربع | سدس | ثلثان | ثلث | محروم |
| ۳ | ۲ | ۸ | ۴ | - |

## د تصحیح بیان

[وَاِذَا انْقَسَمَتِ الْمَسْئَلَةُ عَلَى الْوَرَثَةِ فَقَدْ صَحَّتْ وَاِنْ لَمْ تَنْقَسِمْ سِهَامُ فَرِيْقٍ مِنْهُمْ عَلَيْهِمْ فَاضْرِبْ عَدَدَهُمْ فِىْ اَصْلِ الْمَسْئَلَةِ وَعَوْلِهَا اِنْ كَانَتْ عَائِلَةً فَمَا خَرَجَ صَحَّتْ مِنْهُ الْمَسْئَلَةُ كَامْرَأَةٍ وَاَخَوَيْنِ لِلْمَرْأَةِ الرُّبُعُ سَهْمٌ وَلِلْاَخَوَيْنِ مَا بَقِىَ ثَلٰثَةُ اَسْهُمٍ وَلَاتَنْقَسِمُ عَلَيْهِمَا فَاضْرِبِ اثْنَيْنِ فِىْ اَصْلِ الْمَسْئَلَةِ فَتَكُوْنُ ثَمَانِيَةً وَمِنْهَا تَصِحُّ الْمَسْئَلَةُ]

**ترجمه>** اوچه کله برابرتقسیم شی مسئله په ورثاء باندې نوهغه صحیح شوه اوکه چرې تقسیم نه شی په هغوی کښې دَ یوفریق حصې نو په هغې باندې ضرب ورکړنی دَ دغه فریق عدد ته په اصل مسئله کښې اودَې په عول کښې که چرې دَعول والا وی نوچه کوم حاصل ضرب وې هغې سره به مسئله صحیح شی لکه ښځه او دوه رونړه چه د ښځې ربع دې یوه حصه او دَ دوو رونړود پاره باقی درې حصې دی چه په هغوی باندې تقسیم کیږی نه نو ضرب ورکړئی ۲ ته په اصل مسئله کښې نودا به ۸ شی اوهم په دې سره به مسئله صحیح شی.

**تشریح>** که دَهرفریق حصې دَهغې په رؤس باندې بغیردَ کسر تقسیم شی نودَ ضرب هیڅ ضرورت نشته.

**مسئله:** ۶

مثال: ميت--------------------------------

| لور | | لور | پلار | مور |
|---|---|---|---|---|
| ثلثان | | | سدس وعصبه | سدس |
| ۲ | | ۲ | ۱ | ۱ |

په دې مثال کښې په ۶ سره مسئله جوړه شوه مور اوپلار ته يويوسهام ملاؤشو او دواړو لونړوته دوه دوه سهام ملاؤ شو په هروارث باندې سهام بلاکسر تقسيم شوپه دې وجه دَ ضرب ضرورت پيښ نه شو اوکه چرې په يوفريق باندې کسر واقع شي اودهغوی دَ سهام او رؤس په مينځ کښې دَ توافق نسبت وی نودَعدد رؤس وفق ته به په اصلِ مسئله کښې ضرب ورکولوسره اوکه چرې مسئله عائله وی نو په عول کښې ضرب ورکولوسره به دَ مسئلې تصحيح کيږی. په تصحيح سره دهرفريق سهام راويستلودپاره اصلِ مسئلې سره ملاؤشوې سهام ته به په مضروب کښې ضرب ورکولې شی. مثلاً که چايو ښځه او دوه رونړه وارثان پريخودل نو څلورمه حصه مال دَ ښځې دې او باقی دَ دوو رونړو ليکن باقی درې حصې دی چه په دې دواړو باندې برابر تقسيم کيدې نه شی لهذا دوو له به په اصل مسئله کښې ضرب ورکولې شی او اصل مسئله په ۴ سره ده نو ۲ له په ۴ کښې ضرب ورکولوسره ۸ شو نوپه ۸ سره به دَ مسئلې تصحيح اوشی يعنی ښځې ته به دوه سهام اوهررور ته به دزې درې سهام ملاويږی.

**مسئله:** ۴/۸

مثال ميت--------------------------------

| رور | (۲) | رور | ښځه |
|---|---|---|---|
| | ۳ | ۳ | ۲/۱ |

په عول کښې دَ ضرب ورکولو مثال ۴۵

**مسئله:** ۱۲/۱۵

| ۶لور | مور | پلار | خاوند |
|---|---|---|---|
| ثلثان | سدس | سدس وعصبه | ربع |
| ۲۴/۸ | ۶/۲ | ۶/۲ | ۹/۳ |

**وضاحت<** دامسئله عائله ده خاوند ته درې سهام پلار ته دوه اومور ته دوه سهام ملاؤشوی دی په دې کښې په يو باندې هم کسرنه دې واقع شوې مګر شپږو لونړوته اته سهام ملاؤشوی دی چه په دوی باندې برابرنه تقسيميږی او عدد رؤس (۶) او سهام (۸) کښې توافق بالنصف دې دَ ۶ وفق ۳ اودَ ۸ وفق ۴ دې. نو دَ ۶ وفق۳ ته عول ۱۵ کښې ضرب ورکړونوحاصل ضرب ۴۵ سره دَمسئلې تصحيح اوشوه په تصحيح مذکوره بالاطريقه باندې دَ هرفريق سهام رااوويستلې شو.

**توافق او وفق تعريف**

> فَإِنْ وَافَقَ بِهَامُهُمْ عَدَدَهُمْ فَاضْرِبْ وَفْقَ عَدَدِهِمْ فِيْ أَصْلِ الْمَسْئَلَةِ كَامْرَأَةٍ وَسِتَّةِ إِخْوَةٍ لِلْمَرْأَةِ الرُّبُعُ وَلِلْإِخْوَةِ الثَّلٰثَةُ أَسْهُمٍ لَا تَنْقَسِمُ عَلَيْهِمْ فَاضْرِبْ ثُلُثَ عَدَدِهِمْ فِيْ أَصْلِ الْمَسْئَلَةِ وَمِنْهَا تَصِحُّ

**ترجمه<** که چرې توافق وی په سهام اوعدد رؤس کښې نوضرب ورکړنی دَعددوفق ته په اصل مسئله کښې لکه چه يوه ښځه او شپږ رونړه دَ ښځې دَپاره څلورمه ده او دَ رونړو دَپاره درې سهام دی چه په

هغوی باندې تقسیم کیدې نه شي نودهغوی ثلث عدد یعنی ۲ ته په اصل مسئله کښې ضرب ورکړنی نو په دې سره به مسئله صحیح شي.

**تشریح** > په مذکوره صورت باندې دَ پوهیدلودپاره په ذهن کښې اوساتنی توافق په دوو عددونوکښې وړوکې عدد چه لوئی عدد کټ نه کړی البته یودریم عدد دې داسې وی چه دواړه کټ کړی نودَغه دواړو عددونودَخپل مینځ نسبت ته به توافق وئیلې شي.

**وفق** دریم عددچه دواړه څومره ځل کټ کوی هغې ته دَ دغه عدد وفق وائی لکه ۸ او ۲۰ په دې کښې یوبل نه کټ کوی خو۴ دا دواړه کټ کوی ۸ دوه ځل ا و ۲۰ پنځه ځل نو په دې دواړو عددونوکښې توافق بالربع نسبت شو دَ ۸ وفق به ۲ وی او دَ ۲۰ به ۵. اوس اوګورئی که چرې سهام ورثاء اودَ هغوی اعداد کښې توافق وی نودَ هغې وفق عدد ته به په اصل مسئله کښې ضرب ورکوی.

**نوټ**> لفظ توافق دَ تداخل په معنی کښې هم استعمالیږي.

میت ------------------------------------ مذکر

| | |
|---|---|
| ښځه | ۶ رونړه |
| ربع | ۶/۳ |
| ۲/۱ | |

**وضاحت**> دَ رونړو عدد رؤس (۶) اوسهام (۳) کښې دَ تداخل نسبت دې دَ عددرؤس دخل (۲) ته په اصل مسئله (۴) کښې ضرب ورکړو نوحاصل ضرب ۸ سره دَمسئلې تصحیح اوشو. بیاښځې ته اصل مسئله (۴) نه ملاؤشوی سهام (۱) ته مضروب (۲) کښې ضرب ورکړو نوحاصل ضرب (۲) دَښځې حصه رااووتله او رور ته دَ اصل مسئله (۴) نه ملاؤ شوې سهام (۳) ته مضروب (۲) کښې ضرب ورکړو نوحاصل ضرب (۶) دَ رونړو په تصحیح سره حصه رااووتله.

## د نسبت تباین بیان

[فَإِنْ لَمْ تَنْقَسِمْ سِهَامُ فَرِيْقَيْنِ أَوْأَكْثَرَ فَاضْرِبْ أَحَدَ الْفَرِيْقَيْنِ فِي الْآخَرِ ثُمَّ اجْتَمَعَ فِي الْفَرِيْقِ الثَّالِثِ ثُمَّ مَا اجْتَمَعَ فِيْ أَصْلِ الْمَسْئَلَةِ]

**ترجمه**> که چرې تقسیم نه وی دوه فریق یا دې نه زیات سهام نوضرب ورکړنی دَ یوفریق عددته په بل سره بیاحاصل ضرب ته ضرب ورکړنی دَ دریم فریق عدد کښې بیاحاصل ضرب ته په اصل مسئله کښې.

**تشریح** > کله هم چه دَ دوو عددو تحقق کیږی نودَهغې په مینځ کښې دَ څلورو نسبتونو تماثل تداخل توافق تباین نه چرته یونسبت به ضرور موجودوی په دې عبارت کښې دَ تباین صورت بیان کړې شوې دې لهذا اودَ تباین تعریف باندې پوهیدل ضروری دی.

**تباین**> دَداسې دوو عددونو نسبت ته وائی چه نه خو برابر وی نه وړوکې عدد لوئی عدد کټ کړی اونه چرته دریم عدد دواړه کټ کړی لکه ۴ او ۵ نه برابر دی نه وړوکې لوئی کټ کوی اونه چرته دریم عدد دواړه کټ کوی.صورت مسئله دادې چه په ډیرو جماعتونوباندې کسرواقع وی او عریوعدد په رؤس کښې تباین نسبت وی نو یوعدد ته په بل کښې ضرب ورکړنی بیاحاصل ضرب ته په دریم عدد سره ضرب ورکړنی بیاچه کوم حاصل ضرب وی هغې لهٔ په اصل مسئله کښې ضرب ورکړنی نو په دې سره به دَ مسئلې تصحیح اوشي.

**مسئله**: ۳۶۰/۱۲

مثال: میت ------------------احمد

| ۲ښځې | ۵نیاګانې | ۳اخیانی | یو تره |
|---|---|---|---|

| | | | |
|---|---|---|---|
| | | خوئینندي | |
| ۹۰/۳ | ۶۰/۲ | ۱۲۰/۴ | ۹۰/۳ |
| ۴۵ | ۱۲ | ۲۰ | ۰ |

**وضاحت>** ۲ او ۵ کښې د تباین نسبت دې په دې وجه ۲ له ۵ کښې ضرب ورکړو حاصل ضرب ۱۰ شو بیا حاصل ضرب ۱۰ او وړاندې عدد کښې د تباین نسبت دې په دې وجه ۱۰ته په ۳ کښې ضرب ورکړې شو نوحاصل ضرب ۳۰ شو بیاحاصل ضرب ته اصل مسئله ۱۲ کښې ضرب ورکړو نوحاصل ضرب ۳۶۰ شو هم په دې سره دمسئلې تصحیح اوشو. بیا د ورثاء د سهام دتخریج دپاره داصل مسئلې ۱۲ نه ملاؤشوي سهام ته په مضروب ۳ کښې ضرب ورکړو نو دهر فریق حصه رااووتله بیا حاصل ضرب په عدد رؤس باندې تقسیم کړه نود هرکس حصه رااووتله.

### د نسبت تماثل بیان

(فَإِنْ تَسَاوَتِ الْأَعْدَادُ أَجْزَأَ أَحَدُهُمَا عَنِ الْآخَرِ كَامْرَأَتَيْنِ وَأَخَوَيْنِ فَاضْرِبِ اثْنَيْنِ فِي أَصْلِ الْمَسْئَلَةِ)

**ترجمه>** که چرې برابر وي اعداد نوکافي به شي په دې کښې د یوبل دپاره لکه دوه ښځې او دوه رونړه نوضرب ورکړه ۲ له په اصل مسئله کښې.

**تشریح>** په دې عبارت کښې نسبت تماثل سره مثال بیان کړې دې.

**دتماثل تعریف>** د یوعدد دبل برابر اویوشان کیدل لکه ۴ – ۴ دواړه برابر اوهم مثل دی دغه چه د دوو عددونو په مینځ کښې کوم نسبت وی هغې ته دتماثل نسبت ونیلې شي.

صورت مسئله دادې چه دوه یاد دوو نه زیات فریق باندې کسر واقع شی اودهغوی عدد رؤس او د عدد رؤس په مینځ کښې دتماثل نسبت وی نو په داسې صورت کښې به د یو فریق عدد رؤس واخلی او په اصل مسئله کښې به ضرب ورکړی نو هم دې سره به د مسئلې تصحیح اوشی.

**مسئله : ۸/۴**

میت ........................................ احمد

| | |
|---|---|
| ۲ ښځې | ۲ رونړه |
| ۱ | ۳ |
| ۲ | ۶ |

**وضاحت>** وارثان دوه ښځې او دوه رونړه دی نواصل مسئله د ۴ نه جوړه شوه او په هرفریق باندې کسر واقع دې په دې وجه ۲ ته په ۴ کښې ضرب ورکړو ۸ سره دمسئلې تصحیح اوشوه په کوم کښې چه دوه سهام د دوارو ښځو او ۶ سهام دوارو رونړو ته ملاویږی.

### د نسبت تداخل بیان

(وَإِنْ كَانَ أَحَدُ الْعَدَدَيْنِ جُزْءًا مِنَ الْآخَرِ أَغْنَى الْأَكْثَرُ عَنِ الْأَقَلِّ كَأَرْبَعِ نِسْوَةٍ وَأَخَوَيْنِ إِذَا ضَرَبْتَ الْأَرْبَعَةَ أَجْزَأَتْ عَنِ الْآخَرِ)

**ترجمه>** اوکه په دوو عددونوکښې د یوفریق عدد جزء وی د دویم فریق دعدد نوکفایت به اوکړی اکثر د اقل نه لکه چه څلور ښځې او دوه رونړه چه کله ضرب ورکړې په ۴ سره نوکفایت به کوی د بل نه.

**تشریح>** په دې عبارت کښې په نسبت تداخل باندې پوهه ورکړې ده دتداخل لغوی معنی ده د یو څیز په بل څیز کښې ورننوتل او اصطلاحی تعریف دادې چه په دوو مختلف عددونوکښې وروکې عدد که لوئی عدد کټ کړی نوددوارو په مینځ کښې به د تداخل نسبت وی. مثلاً ۳ او ۹ په دې کښې ۳ عدد ۹ کټ کوی. صورت مسئله دادې چه کله په متعدد فریقوباندې کسر واقع کیږی نو په اعداد رؤس کښې چه

کوم عدد لونی وی هغې ته په اصل مسئله کښې ضرب ورکړه داضرب ورکول به د باقي اعدادو دپاره هم کافي شي حاصل ضرب به د دغه مسئلې تصحیح شي.

**مسئله، ۲۶/۴** مثال: میت ---------------------- احمد

| ۲ رونړه | ۴ ښځې |
|---|---|
| ۱۲/۳ | ۴/۱ |

**دنسبت توافق بیان**

فَاِنْ وَافَقَ اَحَدَ الْعَدَدَيْنِ الْاٰخَرَ ضَرَبْتَ وَفْقَ اَحَدِهِمَا فِيْ جَمِيْعِ الْاٰخَرِ ثُمَّ مَا اجْتَمَعَ فِيْ اَصْلِ الْمَسْئَلَةِ كَاَرْبَعِ نِسْوَةٍ وَّاُخْتٍ وَسِتَّةِ اَعْمَامٍ فَالسِّتَّةُ تُوَافِقُ الْاَرْبَعَةَ بِالنِّصْفِ فَاضْرِبْ نِصْفَ اَحَدِهِمَا فِيْ جَمِيْعِ الْاٰخَرِ ثُمَّ فِيْ اَصْلِ الْمَسْئَلَةِ تَكُوْنُ ثَمَانِيَةً وَّاَرْبَعِيْنَ وَمِنْهَا تَصِحُّ الْمَسْئَلَةُ

**ترجمه>** که د دواړو فریقو په عدد کښې توافق وی نوضرب ورکړنی د دوو نه په یو وفق سره د دویم په کل کښې بیا حاصل ضرب ته په اصل مسئله کښې لکه څلور ښځې اویه خور او شپږ ترونه. په څلورو کښې توافق بالنصف دې نو په دوی کښې د یویونصف د دویم په کل کښې ضرب ورکړه بیا په اصل مسئله کښې ضرب ورکړه نودا په ۴۸ شی اوهم دې سره به مسئله صحیح شي.

**تشریح>** دنسبت دا قسام اربعه نه دتوافق بیان دې. دتوافق تعریف مسئله ۱۰ لاندې تیرشوی دې. قاعده داده که چرته د وارثانو په ډیرو جماعتونوباندې کسرواقع وی دهغوی د عدد رؤس په مینځ کښې توافق نسبت وی نود یوجماعت عدد رؤس وفق دبل جماعت په پوره عدد رؤس کښې به ضرب ورکوې بیا حاصل ضرب اود دریم جماعت عدد رؤس په مینځ کښې به نسبت ګورې که چرته دتوافق نسبت وی نوحاصل ضرب به د دریم جماعت د عدد رؤس په وفق کښې ضرب ورکوې بیابه آخری حاصل ضرب له په اصل مسئله کښې ضرب ورکوې نود مسئلې تصحیح به اوشي.

**مسئله: ۴۸/۴** توافق بالنصف

مثال میت ---------------------- حمدان

| ۶ ترونه | یوخور | ۴ښځې |
|---|---|---|
| ۱۲/۱ | ۲۴/۲ | ۱۲/۱ |
| ۲ | ۲۴ | ۳ |

**وضاحت>** په ۶ او ۴ کښې د توافق نسبت وو د ۲ عدد دواړه فناکول په دې وجه ۶ د ۴ دفق ۲ کښې ضرب ورکړو نو ۱۲ شو بیا ۱۲ ته په اصل مسئله ۴ کښې ضرب ورکړو نو ۴۸ شو. ۱۲ سره اصل مسئله ۴ کښې ضرب ورکړې وو په دې وجه د ۱۲ نه د ښځو حصې ته په ۱ کښې ضرب ورکړو نوباره راغله چه د څلورو ښځو حصه ده دغه شان ۱۲ نه د خور حصې ته په ۲ کښې ضرب ورکړو نو ۲۴ شو. دغه شان ۱۲ نه د یوتره حصې ته په ۱ کښې ضرب ورکړو ۱۲ شو چه د شپږو ترونوحصه ده.

**دهروارث حصه معلومولو طریقه**

فَاِذَا صَحَّتِ الْمَسْئَلَةُ فَاضْرِبْ سِهَامَ كُلِّ وَارِثٍ فِي التَّرِكَةِ ثُمَّ اقْسِمْ مَا اجْتَمَعَ عَلٰى مَا صَحَّتْ مِنْهُ الْفَرِيْضَةُ يَخْرُجُ حَقُّ الْوَارِثِ

**ترجمه>** کله چه صحیح شی مسئله نوضرب ورکړنی دهروارث سهام ته په ترکه کښې بیاتقسیم کړنی حاصل ضرب په هغې په کوم سره چه مسئله صحیح شوې ده نودهروارث حق به راوځی.

**تعریح >** دترکې نه دهروارث حصه معلومولوطریقه داده چه دتصحیح اوترکې په مینځ کښې نسبت اوکتلې شی که دتباین نسبت وی نوهروارث ته به دتصحیح نه چه کوم سهام ملاؤشوی دی هغې له به په پوره ترکه کښې ضرب ورکولې شی بیا به حاصل ضرب په تصحیح باندې تقسیم کولې شی نوخارج قسمت ترکې نه به د هغه وارث حصه شی.

**ترکه او تصحیح په مینځ کښې دتباین مثال**

مسئله:۶

میت ............ترکه ۷ دینار

| لور | لور | مور | پلار |
|---|---|---|---|
| ثلثان | | سدس | سدس |
| ۲ | ۲ | ۱ | ۱ |
| ۲-۲/۶ | ۲-۲/۶ | ۱-۱/۶ | ۱-۱/۶ |

**وضاحت >** دترکې نه د لورحصه معلومولوډپاره دهغې دتصحیح نه ملاؤشوې سهام (۲) له ترکه (۷) کښې ضرب ورکړو بیا حاصل ضرب (۱۴) په تصحیح (۶) باندې تقسیم کړو نوخارج قسمت ۲-۲/۶ د یوې لوردترکې نه حصه شوه اوبلې لورته به هم دومره ملاویږی.

مورته د تصحیح نه ملاؤشوې سهام ۱ له په کل ترکه (۷) کښې ضرب ورکړو بیا حاصل ضرب ۷ په ۶ باندې تقسیم کړو نو خارج قسمت ۱-۱/۶ دمور حصه شوه. د پلارحصه هم بعینه دغه شان راوځی. اوس ټول اعداد یوځائې کړنی اوګورنې چه ترکه (۷دینار)پوره تقسیم شوه که نه؟ د سالم عددونو د یوځائې کولو طریقه خو آسانه ده اود کسرونو د یوځائې کولوطریقه داده چه د کرښې دپاسه اعداد جمع کړنی که هغې مجموعه ۶ شوه نوهغه یوکامل شو دا په سالم اعدادکښې جمع کړنی.

وَاِذَالَمْ تُقْسَمِ التَّرِكَةُ حَتّٰى مَاتَ اَحَدُ الْوَارِثَةِ فَاِنْ كَانَ مَا يُصِيبُهُ مِنَ الْمَيِّتِ الْاَوَّلِ يَنْقَسِمُ عَلٰى عَدَدِ وَرَثَتِهٖ فَقَدْ صَحَّتِ الْمَسْئَلَتَانِ مِمَّا صَحَّتِ الْاُوْلٰى وَاِنْ لَّمْ تَنْقَسِمْ صَحَّتْ فَرِيْضَةُ الْمَيِّتِ الثَّانِيْ بِالطَّرِيْقَةِ الَّتِيْ ذَكَرْنَاهَا ثُمَّ ضَرَبْتَ اِحْدَى الْمَسْئَلَتَيْنِ فِي الْاُخْرٰى وَاِنْ لَّمْ يَكُنْ بَيْنَ سِهَامِ الْمَيِّتِ الثَّانِيْ وَمَا صَحَّتْ مِنْهُ فَرِيْضَةٌ مُوَافَقَةٌ فَاِنْ كَانَتْ بَيْنَهُمَا مُوَافَقَةٌ فَاضْرِبْ وَفْقَ الْمَسْئَلَةِ الثَّانِيَةِ فِي الْاُوْلٰى فَمَا اجْتَمَعَ صَحَّتْ مِنْهُ الْمَسْئَلَتَانِ وَكُلُّ مَنْ لَهٗ شَيْءٌ مِنَ الْمَسْئَلَةِ الْاُوْلٰى مَضْرُوْبٌ فِيْمَا صَحَّتْ مِنْهُ الْمَسْئَلَةُ الثَّانِيَةُ وَمَنْ كَانَ لَهٗ شَيْءٌ مِنَ الْمَسْئَلَةِ الثَّانِيَةِ مَضْرُوْبٌ فِيْ وَفْقِ تَرِكَةِ الْمَيِّتِ الثَّانِيْ وَاِذَا صَحَّتْ مَسْئَلَةُ الْمُنَاسَخَةِ وَاَرَدْتَ مَعْرِفَةَ مَا يُصِيبُ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْ حِسَابِ الدَّرَاهِمِ قَسَمْتَ مَا صَحَّتْ مِنْهُ الْمَسْئَلَةُ عَلٰى ثَمَانِيَةٍ وَاَرْبَعِيْنَ فَمَا خَرَجَ اَعْطَتَ لَهٗ مِنْ سِهَامِ كُلِّ وَارِثٍ حِصَّةً وَاللهُ اَعْلَمُ بِالصَّوَابِ

**ترجمه >** اوس لاتقسیم نه وو شوې چه یووارث مړشونوکه چرې ووچه رسیږی هغه ته د رومبی مړی نه تقسیمیږی دهغه د وارثانو په تعدادباندې نوصحیح به شی دواړه مسئلې په دې سره کوم سره چه صحیح شوې ده رومبې مسئله اوکه چرې تقسیم نه وی نوصحیح به شی ددویم مړی فریضه په دې طریقه کومه چه مونږ ذکر کړې ده بیابه ضرب ورکړی نویوې مسئلې ته په دویمه کښې. که چرې نه وی ددویم مړی په سهام کښې او په هغې کښې چه په کوم سره صحیح شوې ده فریضه دموافقت اوکه چرې دهغوی په سهام کښې موافقت وی نوضرب ورکړه د دویمې مسئلې وفق ته په رومبې مسئله کښې نوچه کوم حاصل ضرب شو په هغې سره به صحیح شی دواړه مسئلې اوچاته چه څه ملاؤ شو د رومبې مسئلې نه هغې ته به ضرب ورکولې شی هغې سره کوم سره چه صحیح شوې ده.دویمه مسئله. اوچاته چه څه ملاؤشوی دی ددویمې مسئلې نه هغې ته به ضرب ورکولې شی د دویم مړی د ترکې وفق کښې کله چه صحیح شی

دمناسخه مسئله اوکه غواړې نوهغه حصه معلومه کړه کومه چه رسیږي هریوته د دراهم په حساب سره نوتقسیم کړه هغه عدد په کوم سره چه صحیح شوې ده مسئله په ۴۸ باندې بیاچه کوم خارج قسمت وی دهروارث دسهام نه د هغه حصه واخلئی اوالله تعالی صحیح کونکې زیات پیژندونکې دې.

**تعریح** > د دې ځائی نه دمناسخه د احکامو بیان دې.

**دمناسخه لغوی معنی** > مناسخه د مفاعلة مصدردې دنسخ نه مشتق دې زائل کول، باطل کول اونقل کول.

**اصطلاحي تعریف** > د بعض یا ټولو وارثانوحصې دهغوی نه روستو والاطرف استحقاق د وراثت دوجې نه منتقل کیدل.

**یوڅواصطلاحات** > ① **مورث اعلی** > مناسخه کښې دټولو نه رومبې مړکیدونکې.

② **مافي اليد** > د دې مختصر مف دې (یعنی میم اوبې نقطې فا) د مړی حصې ته وائی چه هغه ته د پورته بویازیاتو مورثونونه ملاؤشوې ده دمړی د اوږدې کربنې ګس طرف ته لیکلې کیږی.

③ **دقبرنښان** > دهرمړی مافی الید نقل کولونه پس نقل کړې شوې حصې زر راګیرولې شی د کوم هینت (چه داوی) استاذان دې ته دقبرعلامت وائی دادې خبرې علامت وی چه هغه مړ شوې دې اودهغه حصې منتقل شوې.

④ **المبلغ** > مناسخه آخری حاصل ضرب ته وائی.

⑤ **الاحیاء** > ټولو ژوندو وارثانوته وائی په آخره کښې دا په بنه اوږدوالی سره لیکل اودې نه لاندې ټولوژوندو وارثانو نوموننه اود نومونونه لاندې دهغوی حصې لیکلې کیږی.

**یوڅوهدایات** > ① په مناسخه کښې راغلی ټول کسان (وارث مورث) نومونه سره د رشتې لیکل ضروری دی. ② دهر دویم مړی د وارثانونومونه او رشتې لیکلوخت کښې د پورته وارثان یونظرکتل پکاردی خکه چه یو وارث ته د څو رشتو د وجې نه دمتعددخایونونه وراثت ملاویدې شی. ③تصحیح ثانی اومافی الید کښې چه کوم نسبت هم وی د مړی اوږدې کربنې په مینځ کښې واضح کول پکاردی. ④ که چرې مړی ته د متعددځایونونه حصې ملاؤ شوی دی نو ما فی الیدلیکلوخت متعدد حصې اود الاحیاء لیکلوخت دهروارث متعدد حصې یوځائی کول پکاردی.

**نوټ** > په دې کښې دهرې یوې خبرې لحاظ ساتل ضروری دی ګنی غلطی کیدې شی.

**اصول مناسخه** > اول د رومبی مړی د مسئلې تصحیح دتیرو شوو قواعدوپه رڼاکښې اوکړئی اود رومبی مړی ورثاء ته سهام ورکړئی بیاد دویم مړی د مسئلې تصحیح اوکړئی اود دویم مړی حصه کومه چه د رومبی مړی نه ملاؤشوې ده هغه د مړی د اوږدې کربنې ګس طرف ته مافی الید نښان جوړولوسره اولیکئی. بیا د دویم مړی تصحیح اوما فی الیدکښې چه کوم نسبت اوکتلې شی.

① که چرې د تماثل نسبت وی نو په داسې صورت کښې مافی الید دهغه بطن په تصحیح باندې برابر تقسیم شی او وراندې د څه کولوضرورت نشته. د بطن اول تصحیح به هم د دواړو بطنونو تصحیح شمیرلې کیږی. د تماثل مثال:

**مسئله: ۳**

میت..........................................

| ابن (جمال) | بنت (جمیله) |
|---|---|
| (۲) | ۱ |

**مسئله: ۲**

میت...............جمال ۲

ابن کمال　　　　ابن اکمل
۱　　　　　　　　۱

المبلغ ۳

الاحیاء..............................................................

| جمیله | کمال | اکمل |
|---|---|---|
| ۱ | ۱ | ۱ |

**وضاحت>** تصحیح ثانی اومافی الیدکبنې دتماثل نسبت دې په دې وجه نور هیڅ اونه کړې شو د جمیل ترکه په دریو حصوکبنې تقسیم شوه اوهریوژوندی وارث ته یوه یوه ملاؤشوه.

④ که چرته په تصحیح او مافی الیدکبنې دتوافق نسبت وی نودداوارو وفق اوباسه او په کوم عددسره چه وفق اوخی نوهغه بینهماتوافق لیکلوسره ظاهرکړه. بیا دتصحیح وفق د بطن اول تصحیح کبنې ضرب ورکړه نوحاصل ضرب به د دواړو بطونو تصحیح شی. بیا د مافی الیدوفق دهغې د ورثاء سهام (کوم چه هغوی ته هم ددې مسئلې د تصحیح نه ملاؤشو)کبنې ضرب ورکړه حاصل ضرب به دهروارث حصه شی او په بطن اول کبنې ورثاء ته چه کوم سهام د دغه بطن د تصحیح نه ملاؤشوی وو هغه د تصحیح ثانی په وفق کبنې (کوم ته چه په تصحیح اول کبنې ضرب ورکړې شوې وو هغه ته عدد مضروب هم وئیلې شی) ضرب ورکړه حاصل ضرب به د دغه ورثاء حصه شی.

**دتوافق مثال:**

**مسئله.** ۳۲/۱۶/۴ باقی ۳ **مسئله رد** ۴/۴

میت............................................................فاطمه

| (زوج (شکیل) | (بنت (عشرت) | (ام (بتول) |
|---|---|---|
| ۱/۴ | ۳/۹ | ۱/۳ |
| ۸ | | ۶ |

**مسئله:** ۲/۶

توافق بالثلث　　　　عشرت مف ۳/۹

میت............................................................

| (اب (شکیل) | (ابن(سلمان) | (جده (بتول) |
|---|---|---|
| سدې | عصبه | سدس |
| ۱/۳ | ۴/۱۲ | ۱/۳ |

المبلغ ۳۲

الاحیاء..............................................................

| شکیل | سلمان | بتول |
|---|---|---|
| ۱۱ | ۱۲ | ۹ |

حسب بیان سائل مرحومه فاطمه تولې ترکه په تعداد د ادائیګئی حقوق متقدمه علی المیراث وعدم موانع ارث ۳۲ سهام باندې تقسیم کیدوسره د هغې ورثاء مذکوره بالا (دکوم شمیرچه درج دې)په تفصیل ذکرکړې شوی د پورته نقشې مطابق به دومره ملاویږی کوم چه دهغې لاندې درج دې. **فقط والله سبحانه تعالى اعلم.** العبدوسیم احمدخادم جامعه ۲۱/۷/۲۸هجری

③ که چرې د بطن ثانی تصحیح اودهغې مافی الیدکبنې دتباین نسبت وی نود تصحیح کل عدد ته به د بطن اول په تصحیح سره ضرب ورکړې حاصل ضرب به د دواړو بطونوتصحیح شی دې نسبت ته بینهما

تباین لیکلو سره ظاهر کړه اود مافي الید کل ته ددې ورثاء په سهام کښې ضرب ورکړه نوحاصل ضرب به د هر وارث حصه شي اود بطن اول د ورثاء سهام ته هم دغه عدد مضروب (کوم چه د بطن ثاني تصحیح ده) کښې ضرب ورکړې نو حاصل ضرب به د هر وارث سهام شي. بیا د دواړو بطنونو د ورثاء سهام یوځائی کولو سره اوګوره که چرې هغه مبلغ (چه د دواړو تصحیح مجموعه او جمع ده) برابر وي نومسئله صحیح شوه ګنې غلطه به شي په هغې باندې بیا نظر واچونی.

**د تباین مثال:**

**مسئله:** ۹۱ / ۱۳ / ۱۲

میت---------- مسیح الرحمن

| (زوجه (مه جبین | (اخت (سیارو | علاتی (خور (حمیده | اخیافی (خور (محمدی |
|---|---|---|---|
| ربع | نصف | سدس | سدس |
| ۲۱/۳ | ۶ | ۱۴/۲ | ۱۴/۲ |

**مسئله:** ۶/۷ تباین سیارومف۶

میت----------

| (زوج (حنیف | علاتی (خور (حمیده | (اخیافی (محمدی |
|---|---|---|
| نصف | نصف | سدس |
| ۱۸/۳ | ۱۸/۳ | ۶/۱ |

المبلغ ۹۱

الاحیاء----------

| مه جبین | حمیده | محمدی | حنیف |
|---|---|---|---|
| ۲۱ | ۳۲ | ۲۰ | ۱۸ |

حسب بیان سائل د مرحوم مسیح الرحمن ټوله ترکه پس د اداکولو دحقوقو متقدمه علی المیراث وعدم موانع ارث ۹۱ سهام باندې تقسیم شوه دغه ورثاء پورته بیان کړې شوو ته په تفصیل د پورتنئی نقشې مطابق به دومره ملاویږي کوم چه د هغې لاندې درج دي. فقط والله أعلم بالصواب. العبد وسیم احمد ۲۱/۷/۲۸ هجری

**فائده>** مذکوره اصول صرف د دوو بطنونو د مناسخه دپاره دي. که د دریو بطنونو مناسخه وي نو دریم بطن به د دویم مړي په ځائې جوړولې شي او رومبی دواړه بطنونه به د رومبی مړي او څلورم بطن به دویم مړي اود پنځم بطنونو مناسخه وي نو رومبی څلور واړه بطنونه اول مړي او پنځم بطن به دویم مړي منلو سره قواعد جاري ساتلې شي اودغه شان که د زیاتو بطنونو مناسخه وي نو اول د ټولو بطنونو تصحیح کول پکاردي دې سره مناسخه جوړولو کښې آساني وي. دا لاندې مثالونه په یووخت تماثل، توافق او تباین دریواړو نسبتونو دي.

**مسئله:** ۱۲۸ / ۳۲ / ۱۶ / ۴

۴ باقی ۳ مسئله در ۴/۴ فاطمه

بطن اول ------------------------- ميت ------------------------------------

| (زوج) شکيل | (بنت) اسرانه | (ام) رشيدن |
| --- | --- | --- |
| ربع | نصف | سدس |
| ۴/۱ | ۹/۳ | ۶/۳/۱ |

مسئله: ۴ (تماثل) شکيل مف۴

بطن ثانی ------------------------- ميت ------------------------------------

| (زوج) شکيله | (اب) الله دیا | (ام) بتول |
| --- | --- | --- |
| ربع | عصبه | ثلث باقی |
| ۲/۱ | ۴/۲ | ۲/۱ |
| ۸ | ۱۶ | ۸ |

مسئله: ۶/۴ بينهما توافق بالثلث اسرانه مف۹/۳

بطن ثالث ------------------------- ميت ------------------------------------

جده نانی رشيدن ابن عبدالوحيد ابن عبدالکريم بنت عائشه

عصبه ------------------------------------

سدس ۱/۳ ۲/۶/۲۴ ۲/۶/۲۴ ۱/۳/۱۲

مسئله: ۲/۴ (تباين) رشيدن مف۹

بطن رابع ------------------------- ميت ------------------------------------

زوج عبدالواحد اخ اصغر ۲/۱ اخ اکبر

نصف عصبه ------------------------------------

۱/۲/۱۸ ۱/۹ ۱/۹

المبلغ۱۲۸

الاحياء ------------------------------------

| شکيله | الله دیا | بتول | عبدالواحيد | عبدالکريم | عائشه | عبدالواجد | اصغر | اکبر |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۸ | ۱۶ | ۸ | ۲۴ | ۲۴ | ۱۲ | ۱۸ | ۹ | ۹ |

حسب بيان سائل فاطمه مرحومه توله ترکه پس د اداکولو د حقوقو متقدمه علی الميراث وعدم موانع ارث ۱۲۸ سهام باندې تقسيم شو د هغې ورثاء پورته بيان کړې شوی (کوم چه نهه دی) په تفصيل د پورته ذکر شوي نقشي مطابق چه د هريو وارث ته به دومره ملاويږی کوم چه د هغوی لاندې درج دی. فقط والله تعالی اعلم وعلمه اتم.

جلد دريم ختم شو